
تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
جلد ۵
شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی
نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه (رجسٹرڈ) قصه خوانی پشاور پاکستان

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

## جلد ۵ پاره ۲۱ تا ۲۵

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

تاج کتب خانه رجسټرډ

C 88 CODE DTB5

C-18

# تاج البخاري پاره ۲۱ دمضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۱. | د سورت فاتحې فضيلت | ۳۲۶۰ |
| ۲. | د سورت بقرې فضيلت | ۳۲۶۱ |
| ۳. | د سورت كهف فضيلت | ۳۲۶۲ |
| ۴. | د سورت فتح فضيلت | ۳۲۶۳ |
| ۵. | د قل هو الله احد فضيلت | ۳۲۶۳ |
| ۶. | د معوذاتو فضيلت | ۳۲۶۴ |
| ۷. | د قرآن تلاوت وخت كښې د فرشتو نزول | ۳۲۶۵ |
| ۸. | د قرآن حفاظت باندې د اُمت دعوئ | ۳۲۶۶ |
| ۹. | د قرآن فضيلت | ۳۲۶۷ |
| ۱۰. | كتاب الله باندې د عمل فضيلت | ۳۲۶۸ |
| ۱۱. | قرآن په خوش آوازي سره لوستل | ۳۲۶۹ |
| ۱۲. | صاحب قرآن ته پسخيدل | ۳۲۷۰ |
| ۱۳. | تاسو كښې د ټولو نه بهتر قرآن زده كونكې دې | ۳۲۷۱ |
| ۱۴. | د قرآن تلاوت د حفاظې مدد سره | ۳۲۷۲ |
| ۱۵. | هميشه تلاوت كول | ۳۲۷۴ |
| ۱۶. | په سورلئ باندې تلاوت | ۳۲۷۵ |
| ۱۷. | د ماشومانو تلاوت كول | ۳۲۷۵ |
| ۱۸. | قرآن هيرول | ۳۲۷۶ |
| ۱۹. | د يو سورت نوم اينبودل | ۳۲۷۷ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۰. | تلاوت ذَ مخارجونه | ۳۲۷۹ |
| ۲۱. | تلاوت كښې مد كول | ۳۲۸۰ |
| ۲۲. | تلاوت كښې آواز په حلق كښې تاوول | ۳۲۸۱ |
| ۲۳. | خوش آوازئ سره تلاوت كول | ۳۲۸۱ |
| ۲۴. | بل نه قرآن اوريدل | ۳۲۸۱ |
| ۲۵. | قاري ته وئيل چه بس كړه | ۳۲۸۲ |
| ۲۶. | په څومره موده كښې قرآن ختمول پكار دي | ۳۲۸۲ |
| ۲۷. | د قرآن تلاوت وخت كښې ژړل | ۳۲۸۵ |
| ۲۸. | فخر د پاره قرآن لوستل | ۳۲۸۶ |
| ۲۹. | د زړه شوق پورې تلاوت كول پكار دي | ۳۲۸۸ |
| | كتاب النكاح | |
| ۳۰. | د نكاح ترغيب | ۳۲۸۹ |
| ۳۱. | څوك چه د نكاح وس لري | ۳۲۹۱ |
| ۳۲. | د نكاح وس نه لرل | ۳۲۹۲ |
| ۳۳. | كنړې بيبيانې ساتل | ۳۲۹۲ |
| ۳۴. | د عمل مدار په نيت دې | ۳۲۹۳ |
| ۳۵. | د تنگ دست وادهٔ | ۳۲۹۴ |
| ۳۶. | د ايثار او رور ولئ يو صورت | ۳۲۹۴ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۷. | عبادت د پاره نكاح نه پرهيز | ۳۲۹۵ |
| ۳۸. | پيغلو سره نكاح | ۳۲۹۷ |
| ۳۹. | ناپيغلو سره نكاح | ۳۲۹۷ |
| ۴۰. | د كم عمر زيات عمر والا سره وادهٔ | ۳۲۹۹ |
| ۴۱. | چا سره نكاح اوكړې شي | ۳۲۹۹ |
| ۴۲. | وينزو سره د نكاح تعلق | ۳۳۰۰ |
| ۴۳. | د وينزې مَهر | ۳۳۰۲ |
| ۴۴. | د تنگ دست نكاح | ۳۳۰۲ |
| ۴۵. | په نكاح كښې ددين كُفوه | ۳۳۰۳ |
| ۴۶. | په مال كښې كُفوه | ۳۳۰۵ |
| ۴۷. | د ښځې سپيره والي نه خان ساتل | ۳۳۰۶ |
| ۴۸. | آزاده ښځه د غلام په نكاح كښې | ۳۳۰۸ |
| ۴۹. | څلور ښځې په يو وخت كښې | ۳۳۰۸ |
| ۵۰. | د رضاعت حرمت | ۳۳۰۹ |
| ۵۱. | دوؤ كالو نه پس حرمت نيشته | ۳۳۱۱ |
| ۵۲. | د رضاعت تعلق خاوند سره | ۳۳۱۱ |
| ۵۳. | د پي دركونكې گواهي | ۳۳۱۲ |
| ۵۴. | د حلالو او حرامو ښځو ذكر | ۳۳۱۲ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۵. | د بيبيانو لونړه | ۳۳۱۴ |
| ۵۶. | دوه خويندې يوځائے كول حرام دي | ۳۳۱۲ |
| ۵۷. | د ښځې د پلار خور سره نكاح | ۳۳۱۲ |
| ۵۸. | د شغار نكاح | ۳۳۱۷ |
| ۵۹. | آيا ښځه خپل ځان هبه كولے شي | ۳۳۱۸ |
| ۶۰. | په احرام كښې نكاح | ۳۳۱۸ |
| ۶۱. | د متعې والا نكاح ممانعت | ۳۳۱۸ |
| ۶۲. | د ښځې خپل ځان پيش كول | ۳۳۲۰ |
| ۶۳. | لُور يا خور ښه سړي له وركول | ۳۳۲۱ |
| ۶۴. | ښځې ته دَ نكاح پيغام | ۳۳۲۳ |
| ۶۵. | مخطوبې ښځې ته كتل | ۳۳۲۴ |
| ۶۶. | د ښځې نكاح ولي نه بغير درست نه ده | ۳۳۲۶ |
| ۶۷. | ولي سره نكاح | ۳۳۲۹ |
| ۶۸. | د نابالغو بچو نكاح | ۳۳۳۰ |
| ۶۹. | خلور نكاح امام سره | ۳۳۳۱ |
| ۷۰. | بادشاه هم ولي دے | ۳۳۳۱ |
| ۷۱. | پلار د د لور د رضا نه بغير لُور نه وركوي | ۳۳۳۲ |
| ۷۲. | د لور نكاح جبراً كول | ۳۳۳۳ |
| ۷۳. | د يتيمې جينۍ نكاح | ۳۳۳۳ |
| ۷۴. | د ولي مهر تړل | ۳۳۳۵ |
| ۷۵. | د نكاح پيغام بساندې پيغام وركول نه دي پكار | ۳۳۳۶ |
| ۷۶. | د نكاح د پيغام ذكر | ۳۳۳۶ |
| ۷۷. | د نكاح خطبه | ۳۳۳۷ |
| ۷۸. | په نكاح او وليمه كښې تنبل وهل | ۳۳۳۷ |
| ۷۹. | د مهر ادا كولو ذكر | ۳۳۳۸ |
| ۸۰. | پــه قرآن باندې نكاح كول | ۳۳۳۹ |
| ۸۱. | پــه مهــر كښې كوتمه وركول | ۳۳۳۹ |
| ۸۲. | د نكاح شرطونه | ۳۳۴۰ |
| ۸۳. | كوم شرطونه چه جائز نه دي | ۳۳۴۰ |
| ۸۴. | واده كونكي د پاره زيړ رنګ | ۳۳۴۱ |
| ۸۵. | باب ۸۵ | ۳۳۴۱ |
| ۸۶. | خلمي ته دعا كول | ۳۳۴۲ |
| ۸۷. | ذ ناوے ډول سِنګار | ۳۳۴۲ |
| ۸۸. | د غزانه مخكښې ناوے سره | ۳۳۴۲ |
| ۸۹. | د نهو كالو ناوے | ۳۳۴۳ |
| ۹۰. | په سفر كښې ناوے سره | ۳۳۴۳ |
| ۹۱. | د ورځے وخت كښې خلوت | ۳۳۴۴ |
| ۹۲. | د ناوے د مخملو توشك | ۳۳۴۴ |
| ۹۳. | ناوے له ډول سنګار كونكې ښځې | ۳۳۴۵ |
| ۹۴. | د خلمي يا ناوے تحفه | ۳۳۴۵ |
| ۹۵. | ناوے د پاره جامے | ۳۳۴۷ |
| ۹۶. | چــه كلــه خاوند ښځې له راشي | ۳۳۴۷ |
| ۹۷. | وليمه ضروري ده | ۳۳۴۸ |
| ۹۸. | وليـمه د يوے چيلۍ غوښے سره | ۳۳۴۹ |
| ۹۹. | د يوے ښځې وليمه د بلے نه زياته | ۳۳۵۰ |
| ۱۰۰. | د يــوے چيلۍ نــه كمه وليمه | ۳۳۵۱ |
| ۱۰۱. | د وليمے دعوت قبلول | ۳۳۵۱ |
| ۱۰۲. | دعــوت كښــے شــركــت نــه كول ګناه ده | ۳۳۵۲ |
| ۱۰۳. | د خــاروي ســر او خپو سره دعوت | ۳۳۵۳ |
| ۱۰۴. | د وادهٔ دعوت قبلول | ۳۳۵۳ |
| ۱۰۵. | ښـخـو او ماشومانو لـه پـه وليـمه كښے شريكيدل | ۳۳۵۴ |
| ۱۰۶. | دعـوت نــه واپـس راتلل | ۳۳۵۴ |
| ۱۰۷. | نوے ناوے په وليمه كښے | ۳۳۵۵ |
| ۱۰۸. | د واده مشروب | ۳۳۵۵ |
| ۱۰۹. | د ښځو خاطرداري | ۳۳۵۶ |
| ۱۱۰. | د ښځو باره كښے وصيت | ۳۳۵۶ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۱۱ | خپل خان او ښځه بال بچ دوزخ نه بچ کړئ | ۳۳۵۷ |
| ۱۱۲ | بي بي سره ښه سلوک | ۳۳۵۷ |
| ۱۱۳ | خپلې لورته نصیحت | ۳۳۶۱ |
| ۱۱۴ | د خاوند اجازت نه بغیر نفلي روژه | ۳۳۶۷ |
| ۱۱۵ | ښځې له د بسترې نه جدا کیدل | ۳۳۶۷ |
| ۱۱۶ | د خاوند کورته د راتللو اجازت | ۳۳۶۸ |
| ۱۱۷ | باب ۱۱۷ | ۳۳۶۸ |
| ۱۱۸ | د خاوند ناشکري | ۳۳۶۹ |
| ۱۱۹ | په خاوند د ښځې حق | ۳۳۷۱ |
| ۱۲۰ | ښځه د خاوند د کور نګرانه ده | ۳۳۷۱ |
| ۱۲۱ | د سږي اوچتوالې | ۳۳۷۲ |
| ۱۲۲ | د حضورﷺ خپلو بیبیانو نه یوه میاشت جداوالې | ۳۳۷۲ |
| ۱۲۳ | ښځې وهل | ۳۳۷۳ |
| ۱۲۴ | ښځه به کله منل نه کوي | ۳۳۷۴ |
| ۱۲۵ | د خاوند د طرفه د نفرت خطره | ۳۳۷۴ |
| ۱۲۶ | د عزل حکم | ۳۳۷۵ |
| ۱۲۷ | سفر د پاره د بي بي انتخاب | ۳۳۷۶ |
| ۱۲۸ | ښځه خپل نمبر ورکولې شي | ۳۳۷۶ |
| ۱۲۹ | په بیبیانو کښې انصاف | ۳۳۷۷ |
| ۱۳۰ | د ناپیغلې نه پس پیغلې سره واده | ۳۳۷۷ |
| ۱۳۱ | د پیغلې نه پس ناپیغلې سره نکاح | ۳۳۷۷ |
| ۱۳۲ | ګنړو بیبیانو سره خاص تعلق | ۳۳۷۸ |
| ۱۳۳ | په ورځ کښې بیبیانو سره تعلق | ۳۳۷۸ |
| ۱۳۴ | په بیمارۍ کښې یوې بي بي نه اجازت | ۳۳۷۹ |
| ۱۳۵ | یوې بي بي سره د محبت زیاتوالې | ۳۳۸۰ |
| ۱۳۶ | چه یو څیز ورته حاصل نه وي او فخر پرې کوي | ۳۳۸۰ |
| ۱۳۷ | غیرت | ۳۳۸۱ |
| ۱۳۸ | د ښځې ناراضګي | ۳۳۸۵ |
| ۱۳۹ | د غیرت په معامله کښې | ۳۳۸۶ |
| ۱۴۰ | سږي به کم شي | ۳۳۸۶ |
| ۱۴۱ | د محرم نه سوا | ۳۳۸۷ |
| ۱۴۲ | د خلقو په موجود والي کښې | ۳۳۸۸ |
| ۱۴۳ | د ښځو چال | ۳۳۸۸ |
| ۱۴۴ | که د تهمت ویره نه وي نو | ۳۳۸۸ |
| ۱۴۵ | د ښځو بهرته وتل | ۳۳۸۹ |
| ۱۴۶ | د ښځو جومات د پاره اجازت غوښتل | ۳۳۹۰ |
| ۱۴۷ | د رضاعت ذکر | ۳۳۹۰ |
| ۱۴۸ | هیڅ یوه ښځه د خاوند ته د بلې ښځې خبرې نه کوي | ۳۳۹۱ |
| ۱۴۹ | د یو سړي وئیل چه الخ | ۳۳۹۱ |
| ۱۵۰ | د اورد سر نه د شپې کورته راتلل | ۳۳۹۲ |


تمت

# يوويشتمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## بَابُ ١ : فَضْلُ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ.

## باب ١ : د سورة فاتحه د فضيلت بيان.

١ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ كُنْتُ اُصَلِّيْ فَدَعَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ اُجِبْهُ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ كُنْتُ اُصَلِّيْ قَالَ اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ ثُمَّ قَالَ اَلَا اُعَلِّمُكَ اَعْظَمَ سُوْرَةٍ فِي الْقُرْاٰنِ قَبْلَ اَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاَخَذَ بِيَدِيْ فَلَمَّا اَرَدْنَا اَنْ نَخْرُجَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ قُلْتَ لَاُعَلِّمَنَّكَ اَعْظَمَ سُوْرَةٍ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنُ الْعَظِيْمُ الَّذِيْ اُوْتِيْتُهُ.

١ : علي بن عبداللّٰه. يحيي بن سعيد. شعبه. خبيب بن عبدالرحمٰن. حفص بن عاصم. ابو سعيد بن معلٰي نه روايت كوي، هغه وائي، ما مونځ كولو، چه حضورؐ زه اوغبنتلم، ما حضورؐ له څه جواب ورنه كړلو (چه فارغ شوم نو) ما اووے يا رسول اللّٰه، ما مونځ كولو. حضورؐ اوفرمائيل، آيا اللّٰه دانه دي. فرمائيلي، چه كله هم اللّٰه او رسول تاسو و بللي، نو جواب زر وركوئے، زه به تاته د جُمات نه د، وتلو نه مخكښ يو سورت وښايم، چه د قرآن شريف د ټولو سورتونو نه افضل دے. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خما لاس اونيولو. كوم وخت چه مونږ بهر وتلو، نو ما خواست او كه، يا رسول اللّٰه، تاسوؐ فرمائيلي وو، زه به تاته د ټولونه افضل سورت اوښايم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه سورت الحمدللّٰه رب العٰلمين دے. ددے نوم سبع مثاني او قرآن عظيم دے چه ماته راكړے شوے دے.

**ف**: يعني سورت فاتحه: الحمد نه والضآلين، پورے.

٢ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ

٢ : محمد بن مثنٰي. وهب بن هشام. محمد. معبد. ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، مونږ سفر كښ يو مقام كښ مقيم وو، نو يوه وينزه راغله، او هغے اووے

مَعْبَدٍ عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ قَالَ کُنَّا فِیْ مَسِیْرٍ لَنَا فَجَاءَتْ جَارِیَةٌ فَقَالَتْ اِنَّ سَیِّدَ الْحَیِّ سَلِیْمٌ وَ اِنَّ نَفَرَنَا غَیَبٌ فَهَلْ مِنْکُمْ رَاقٍ فَقَامَ مَعَهَا رَجُلٌ مَا کُنَّا نَأْبُنُهُ بِرُقْیَةٍ فَرَقَاهُ فَبَرَاَ فَاَمَرَ لَهٗ بِثَلٰثِیْنَ شَاةً وَ سَقَانَا لَبَنًا فَلَمَّا رَجَعَ قُلْنَا لَهٗ اَکُنْتَ تُحْسِنُ رُقْیَةً اَوْ کُنْتَ تَرْقِیْ قَالَ لَا مَا رَقَیْتُ اِلَّا بِاُمِّ الْکِتَابِ قُلْنَا لَا تُحْدِثُوْا شَیْئًا حَتّٰی نَأْتِیَ اَوْ نَسْاَلَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِیْنَةَ ذَکَرْنَاهُ لِلنَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَمَا کَانَ یُدْرِیْهِ اَنَّهَا رُقْیَةٌ اَقْسِمُوْا وَاضْرِبُوْا لِیْ بِسَهْمٍ وَ قَالَ اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِیْرِیْنَ عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ بِهٰذَا.

### باب ۲ : فَضْلِ الْبَقَرَةِ.

۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ کَثِیْرٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَیْمَانَ عَنْ اِبْرَاهِیْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِیْ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَرَاَ بِالْاٰیَتَیْنِ حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَیْمٍ حَدَّثَنَا سُفْیٰنُ عَنْ مَنْصُوْرٍ

چه ددے قوم سردار مار خوړلے دے. او خمونږ د آبادي خلق موجود نه دي. آیا تاسو کښې څوک منتر واله شته. نو هغې سره زمونږ یو سړے لاړ، هغه مونږ پیژندلو، چه هغه په منتر نه پوهیدلو. هغه چه ورغے، نو په هغه ئے منتر اولوست، او هغه سړے روغ شولو، هغه مونږ له دیرش چیلئے راکړے او په مونږ ئے پئے وڅکول، کوم وخت چه هغه واپس شو، نو مونږ د هغه نه تپوس اوکه، آیا ته په منتر په ښه شان پوهیږے، یا ته منتر کوے، راوي ته شک دے. هغه جواب راکه. ما هیڅ کله منتر نه دے لوستے، ما خو صرف سورت فاتحه اولوسته او په هغه م چُف که. بیا مونږ خپلو کښې مشوره اوکړه، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم له ورشو، نو ددے متعلق به ترے تپوس کوو. مدینے ته چه اورسیدو نو مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته عرض اوکه. حضورؐ اوفرمائیل، تاسو ته د څه خیز نه شبه وشوه چه دا منتر دے، دا مال تاسو تقسیم کړئے، او ماته هم حصه راکړئے. ابو معمر وائي، چه مونږ ته عبدالوارث، هغه نه هشام، هغه نه محمد بن سیرین. حدیث بیان که، هغه ابو سعید خدري نه دا حدیث روایت کوي.

### باب ۲ : د سورۀ بقره د فضیلت بیان.

۳: محمد بن کثیر. سلیمان. ابراهیم. عبدالرحمٰن. ابو مسعود نه روایت کوي. نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. کوم سړے چه دوه اٰیتونه ولولي. ابو نعیم. سفیان. منصور. ابراهیم. عبدالرحمٰن بن یزید ابو مسعودؓ نه روایت کوي، چه کوم سړے د سورۀ بقره آخري دوه

عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَاَ بِالْاٰيَتَيْنِ مِنْ اٰخِرِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ فِيْ لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ وَ قَالَ عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ وَ كَّلَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ فَاَتَانِيْ اٰتٍ فَجَعَلَ يَحْثُوْ مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لَاَرْفَعَنَّكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَصَّ الْحَدِيْثَ فَقَالَ اِذَآ اَوَيْتَ اِلٰى فِرَاشِكَ فَاقْرَاْ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ لَنْ يَّزَالَ مَعَكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَّلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتّٰى تُصْبِحَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوْبٌ ذَاكَ شَيْطَانٌ.

**باب ٣: فَضْلُ سُوْرَةِ الْكَهْفِ.**

٤: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يَقْرَاُ سُوْرَةَ الْكَهْفِ وَ اِلٰى جَانِبِهٖ حِصَانٌ مَرْبُوْطٌ بِشَطْنَيْنِ فَتَغَشَّتْهُ سَحَابَةٌ فَجَعَلَتْ تَدْنُوْ وَ تَدْنُوْ وَ جَعَلَ فَرَسُهٗ يَنْفِرُ فَلَمَّا اَصْبَحَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

آيتونه د شپې ولولي، نو هغه د هغه د پاره کافي دي. عثمان بن هيثم وائي. مونږ ته عوف دا حديث بيان کړے دے، هغه د محمد بن سيرين نه هغه د ابوهريرةؓ نه روايت کوي. ابو هريرةؓ وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زه د عيد الفطر (وړوکي اختر) د صدقې په نګرانئ مقرر کړے ووم، يو سړي د هغې لپے ډکول شروع کړل، نو ما هغه اونيولو او ورته م اووے، چه تا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له بوځم او ضرور به دے بوځم. دے نه پس ئے پوره حديث بيان که. بيا هغه وښودل چه کله په خپله بستره آرام کوے، نو آيت کرسي لوله. دے سره به هميشه اللّٰه تعالٰي ستا نګهبان وي، او صبا پورے به شيطان درله نه راځي، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه چه څه وئيلے دي، رښتيا، ئے وئيلے دي، ليکن خپله هغه دروغجن دے (او، وے فرمائيل) چه هغه ويونکے شيطان وو.

**باب ٣: د سورة کهف د فضيلت بيان.**

٤: عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحٰق. براء نه روايت کوي، چه يو سړي سورة کهف لوستلو، او د هغه يو طرف ته يو اس په رسو (رسيوں) تړلے شوے وو، نو په هغې سړي وريخ راخوره شوه، او هغه ته رانزدے شوه، نو هغه اَس په تړپونو شو، صباته چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دا واقعه بيان کړے شوه، نو حضورؐ اوفرمائيل، هغه سکينه وه چه

وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ تِلْكَ السَّكِيْنَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْاٰنِ.

د قرآن په سبب راکوزه شوې وه. سکينه: معني قريبنته (سکون او طمانيت).

**بـاب ۴: فَضْلِ سُوْرَةِ الْفَتْحِ.**

**بـاب ۴: د سورة فتح د فضيلت بيان.**

۵: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيْرُ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ وَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسِيْرُ مَعَهٗ لَيْلًا فَسَاَلَهٗ عُمَرُ عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَاَلَهٗ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَاَلَهٗ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ عُمَرُ ثَكِلَتْكَ اُمُّكَ نَزَّرْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ لَا يُجِيْبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيْرِيْ حَتّٰى كُنْتُ اَمَامَ النَّاسِ وَ خَشِيْتُ اَنْ يُّنْزَلَ فِيَّ قُرْاٰنٌ فَمَا نَشِبْتُ اَنْ سَمِعْتُ صَارِخًا يَصْرُخُ قَالَ فَقُلْتُ لَقَدْ خَشِيْتُ اَنْ يَّكُوْنَ نَزَلَ فِيَّ قُرْاٰنٌ قَالَ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَقَدْ اُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُوْرَةٌ لَهِيَ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَاَ اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا.

۵: اسمعيل. مالک. زيد بن اسلم نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو سفر کښې د شپې تلو، او حضرت عمرؓ ورسره وو، حضرت عمرؓ د حضورؐ نه څه تپوس اوکه. حضورؐ جواب ورنه کړلو، بيا حضرت عمرؓ د حضورؐ نه تپوس اوکه، حضورؐ هيڅ جواب ورنه کړلو. بيا حضرت عمرؓ دَ حضورؐ نه تپوس اوکه، حضورؐ هيڅ جواب ورنه کړلو. حضرت عمرؓ زړه کښې اووې. اے عمرؓ مور در باندې اوژاړه، تا د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه درې ځله تپوس اوکه خو حضورؐ يو ځل هم جواب درنه کړلو، شايد حضورؐ ناراضه شوے دے. حضرت عمرؓ فرمائي، ما خپل اوښ لرې که او د خلقو نه مخکښې شوم او زه ويريدم چه چرته زما حق کښې د قرآن څه حکم نازل نشي، لږ ساعت لا هم نه وو شوے، ما واوريدل چه څوک ما ته آواز کوي، زه اويريدم چه زما حق کښې چرته قرآن نه وي نازل شوے، بيا زه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلم، سلام مې ورته اوکه، نو حضورؐ اوفرمائيل، نن شپه په ما يو سورت نازل شوے دے، چه خما د ټولې دنيا او مافيها نه زيات خوښ دے، بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم: اِنَّا فَتَحْنَا لَکَ فَتْحًا مُّبِيْنًا: اولوست.

**بـاب ۵: فَضْلِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ**

**باب ۵: د سورۀ قل هو اللّٰه احد د فضيلت بيان.**

اَحَدُ فِيْهِ عَمْرَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دے باب کښې د عمره حدیث په واسطه د بي بي عائشےؓ تېر د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دے.

۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَجُلًا سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ يُرَدِّدُهَا فَلَمَّا اَصْبَحَ جَآءَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهٗ وَ كَاَنَّ الرَّجُلَ يَتَقَالُّهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖٓ اِنَّهَا لَتَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْاٰنِ وَ زَادَ اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَخِيْ قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ اَنَّ رَجُلًا قَامَ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ مِنَ السَّحَرِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ لَا يَزِيْدُ عَلَيْهَا فَلَمَّا اَصْبَحْنَا اَتَى رَجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهٗ.

۶ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. عبدالرحمٰن بن ابي صعصعة. د خپل پلار نه. هغه د ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، یو سړي د چا نه: قل هو اللّٰه احد: بار بار لوستل واوریدل، سحر ته هغه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته بیان او که، او هغه سړي: قل هو اللّٰه احد: دو رکوتي سورت په وجه کمتر ګڼړلو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، په هغه ذات م دے قسم وي، چه د هغه په قبضه کښې ځما ساه ده، دا قل هو اللّٰه د تهائي (1/3) قرآن برابر دے. ابو معمر مزید بیان او که، چه مونږ ته اسماعیل بن جعفر هغه ته مالک بن انس هغه عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن بن ابي صعصعة، هغه ته د هغه پلار، هغه ته ابوسعید روایت او که، چه ماته زما ورور قتاده بن نعمان خبر راکه چه یو سړے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم زمانه کښې د شپے آخر (سحر) کښې پاسید، قل هو اللّٰه لوستل ئے شروع کړل، او ددے نه علاوه ئے نور هیڅ اونه لوستل، کوم وخت چه صبا شو، نو هغه سړے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته راغے او د مخکښې (ذکر شوي) حدیث په شان بیان ئے او که.

## بَاب ۶ : فَضْلِ الْمُعَوِّذَاتِ.

## باب ۶ : د معوذاتو[1] د فضیلت بیان.

۱. معوذات درے سورتونه دي، سورت اخلاص، سورت فلق او سورت الناس.

۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ

۷: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه

عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اشْتَكٰى يَقْرَأُ عَلٰى نَفْسِهٖ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَ يَنْفُثُ فَلَمَّا اشْتَدَّ وَجَعُهٗ كُنْتُ اَقْرَاُ عَلَيْهِ وَ اَمْسَحُ بِيَدِهٖ رَجَآءَ بَرَكَتِهَا.

وسلّم چه ناروغه شو، نو معوذتين به ئې لوستل، او په خاء به ئې دم كول، او كوم وخت چه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ناروغتيا زياته شوه، نو دا سورتونه به ما (عائشې) په حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لوستل او د هغوئ لاسونه به مې په حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم راښكل د بركت د پاره.

٨ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اَوٰى اِلٰى فِرَاشِهٖ كُلَّ لَيْلَةٍ جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيْهِمَا فَقَرَاَ فِيْهِمَا قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ وَ قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَ قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهٖ يَبْدَاُ بِهِمَا عَلٰى رَاْسِهٖ وَ وَجْهِهٖ وَمَا اَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهٖ يَفْعَلُ ذٰلِكَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ.

٨ : قتيبه بن سعيد. مفضل. عقيل بن شهاب. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه به په خپله بستره آرام كولو، نو روزانه به ئې د شپې خپل دواړه لاسونه يوځائے كړل، په هغې به ئې قل هو اللّٰه احد، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ بربّ الناس (يعني دا، درې واړه سورتونه) لوستلو سره دم كول او خپل دواړه لاسونه به ئې په خپل ټول بدن ګرځول. اول به ئې په خپل سر او مخ مبارك ګرځول. بيا به ئې په خپل ټول جسم د پاسه، كوم ځائے پورې به چه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لاس مبارك رسيدلو او دا فعل به حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم درې خله كولو.

## بَابٌ ٧ : نُزُوْلُ السَّكِيْنَةِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ عِنْدَ قِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ وَ قَالَ اللَّيْثُ.

## باب ٧ : د قرآن د، قرات په وخت د، سكينه او فريښتو د، نزول بيان.

٩ : حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ الْهَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ قَالَ بَيْنَمَا هُوَ يَقْرَاُ مِنَ اللَّيْلِ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ وَ فَرَسُهٗ مَرْبُوْطٌ عِنْدَهٗ اِذْ جَالَتِ

٩ : ليث د يزيد بن هاد قول نقل كوي، محمد بن ابراهيم وئيلے چه اسيد بن حضير يوه شپه سورة بقره لوستلو او اَس ورسره خوا كښې تړلے وو، ناساپه اس په ټوپونو شو، هغه چپ شو، نو، اَس هم اُودريدلو. بيا هغه قرات شروع كه، نو اَس بيا په ټوپونو شو. بيا هغه

الْفَرَسُ فَسَكَتَ فَسَكَنَتْ فَقَرَاَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ وَ سَكَنَتِ الْفَرَسُ ثُمَّ قَرَاَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ فَانْصَرَفَ وَ كَانَ ابْنُهُ يَحْيٰى قَرِيْبًا مِنْهَا فَاَشْفَقَ اَنْ تُصِيْبَهُ فَلَمَّا اجْتَرَّهُ رَفَعَ رَاْسَهُ اِلَى السَّمَآءِ حَتّٰى مَا يَرٰهَا فَلَمَّا اَصْبَحَ حَدَّثَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اقْرَءْ يَا بْنَ حُضَيْرٍ اقْرَاْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ قَالَ فَاَشْفَقْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْ تَطَاَ يَحْيٰى وَ كَانَ مِنْهَا قَرِيْبًا فَرَفَعْتُ رَاْسِيْ فَانْصَرَفْتُ اِلَيْهِ فَرَفَعْتُ رَاْسِيْ اِلَى السَّمَآءِ فَاِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيْهَا اَمْثَالُ الْمَصَابِيْحِ فَخَرَجْتُ حَتّٰى لَا اَرَاهَا قَالَ وَ تَدْرِيْ مَا ذَاكَ قَالَ لَا قَالَ تِلْكَ الْمَلٰٓئِكَةُ دَنَتْ لِصَوْتِكَ وَلَوْ قَرَاْتَ لَاَصْبَحَتْ يَنْظُرُ النَّاسُ اِلَيْهَا لَا تَتَوَارٰى مِنْهُمْ قَالَ ابْنُ الْهَادِ وَ حَدَّثَنِيْ هٰذَا الْحَدِيْثَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنْ اُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ.

خاموش شو، نو آس اودریدلو. بیا هغه لوستل شروع کړل، نو بیا آس په ټوپونو شو. دے نه پس ابن حضیر چپ (خاموش) شولو. د هغه خوئے یحیٰي آس ته قریب اوده وو، هغه سره ویره شوه چه چرته آس هغه چیخنړے (میده) نه کړي، هر کله چه هغه خپل خوے د هغه ځائے نه لرے کړه، او آسمان طرف ته ئے نظر اوچت کړه، نو آسمان ورته نه ښکاریده (بلکه یوه وریځ چه هغے کښې رنړاګانے پرقیدے، پورته په ختلو په نظر راغله) صباته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له راغے، پوره قصه ئے ورته بیان کړه. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. اے ابن حضیر، که تا برابر لوستے، نو ښه به وے. هغه عرض اوکه. یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم، یحیٰي آس سره نزدے وو، ما سره ویره پیدا شوه چه چرته آس یحیٰي پښو کښې چیخنړے نه کړي، په دے وجه زه یحیٰي طرف ته متوجه شوم. بیا ما آسمان طرف ته سر اوچت که نو یوه عجیبه چهتري شان چه هغے کښې ډیرے ډیوے لګیدلے وے راته ښکاره شوله، بیا چه زه بهرته راووتم، نو هغه ماته په نظر رانغله. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. هغه فرینښے وے، چه ستا آواز آوریدو سره ستا پلے راغلے وے، که تا د سحر پورے تلاوت کولے، نو خلقو به هغه صفا لیدلے وے، ابن الهاد وائي دا حدیث ماته عبداللّٰه بن خباب د، ابو سعید خدري نه بیان که، چه هغه اسید بن حضیر نه نقل که.

بَابُ ٨: مَنْ قَالَ لَمْ يَتْرُكِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا مَا بَيْنَ

باب ۸: د قرآن د جلد مینځ کښې چه څه دي، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د هغے نه علاوه د څه نه پریښودو بیان (یعني د قرآن د ترکه رسالتمآب کیدو

الدَّفَّتَيْنِ.

بيان).

● ۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَشَدَّادُ بْنُ مَعْقِلٍ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ شَدَّادُ بْنُ مَعْقِلٍ اَتَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ مَا تَرَكَ اِلَّا مَا بَيْنَ الدَّفَّتَيْنِ قَالَ وَ دَخَلْنَا عَلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ مَا تَرَكَ اِلَّا مَا بَيْنَ الدَّفَّتَيْنِ.

● ۱ : قتيبه بن سعيد. سفيان وائي' د عبدالعزيز بيان دے' چه زه او' شداد بن معقل' ابن عباسؓ له ورغلو' شداد بن معقل د هغه نه تپوس اوكه. آيا نبي صلى الله عليه وسلّم څه پټ څيز هم پريښے دے. هغه اووے' ده قرآن د جلد مينځ كښ چه كلام ايښے دے' صرف هغه ئے پريښے دے' بيا مونږ محمد بن حنفيه له ورغلو او د هغه نه مو تپوس اوكه' نو هغه همدغسے اووے' چه د قرآن د جلد مينځ كښ چه څه دي ددے نه علاوه حضور صلي الله عليه وسلّم نور هيڅ نه دي پريښے.

## بَاب ۹ : فَضْلِ الْقُرْاٰنِ عَلٰى سَائِرِ الْكَلَامِ.

## باب ۹ : د قرآن شريف په ټولو كلامونو د فضيلت بيان.

۱۱ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ اَبُوْ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَالْاُتْرُجَّةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَالَّذِيْ لَا يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَالتَّمْرَةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَّ لَا رِيْحَ لَهَا وَ مَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الرَّيْحَانَةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ وَ مَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِيْ لَا يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَّ لَا رِيْحَ لَهَا.

۱۱ : قتيبه بن خالد. ابو خالد. همام. قتاده. انس. ابو موسٰي نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. د قرآن لوستونكي مؤمن مثال په شان د سنګترے دے' چه ددے مزه هم ښه ده او خوشبو' ئے هم ښه. او د قرآن نه لوستونكي مثال د هغے قجورے په شان دے' چه د هغے مزه خو' ښه ده' ليكن خوشبو' ئے نه شته. او د هغے فاسق مثال چه قرآن لولي' د' ګل ريحان په شانتے دے' چه خوشبو ئے ښه ده او مزه ئے ترخه ده. او د هغے فاسق مثال چه قرآن نه لولي' د' اِندرائن د ميوے په شان دے چه د هغے مزه هم ترخه ده' او بوئي هم خراب دے.

ف: (۱) اِندرائن' ترخه منړه' يوه ميوه چه په ښكاره خائسته اوپه خوند كښ ډيره ترخه وي. ښكلے خو ډير بد خويه او تريخ سړے.

۱۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ

۱۲ : مسدد. يحيٰي. سفيان. عبدالله بن دينار.

يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَجَلُكُمْ فِيْ اَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْاُمَمِ كَمَا بَيْنَ الصَّلٰوةِ الْعَصْرِ وَ مَغْرِبِ الشَّمْسِ وَ مَثَلُكُمْ وَ مَثَلُ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ عَلٰى قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُوْدُ فَقَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ اِلَى الْعَصْرِ فَعَمِلَتِ النَّصَارٰى ثُمَّ اَنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ مِنَ الْعَصْرِ اِلَى الْمَغْرِبِ بِقِيْرَاطِيْنِ قِيْرَاطِيْنِ قَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ عَمَلًا وَّ اَقَلُّ عَطَآءً قَالَ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِّنْ حَقِّكُمْ؟ قَالُوْا لَا قَالَ فَذَالِكَ فَضْلِيْ اُوْتِيْهِ مَنْ شِئْتُ.

ابن عمرؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ستاسو عمر د تیرو خلقو د عمرونو مقابله کښې داسے دے لکه د مازیګر د مونځ او د نمر ډوبیدو مینځ کښې وخت. او د یهودو نصاري مقابله کښې ستاسو مثال داسے دے لکه چه یو سړے مزدوران په اُجرت اونیسي او، اووائي څوک دے چه د پخے غرمے (تکنه غرمے) پورے په یو قیراط خما کار وکړي، نو یهودو په خپله ذمه هغه کار واخست، غرمے پورے ئے کار اوکه. بیا هغه اووے. څوک شته چه خما کار د یو قیراط په عیوض د، غرمے نه مازیګر پورے اوکړي هغه کار نصاراؤ اوکه. بیا تاسو د مازیګر نه د نمر پریوتلو پورے په دوه دوه قیراط کار کولو، نو یهودو، نصاريٰ اووے، څمونږ کار ډیر زیات دے. او مزدوري ډیره لږه ده، هغے سړي ورته اووے. آیا ما ستاسو څه حق وهلے دے، هغوي اووے نه، بیا هغے سړي ورته اووے، دا خما فضل دے، چه چاله غوارم، هغه له ورکوم.

## بـاب ۱۰ : اَلْوَصَاةِ بِكِتَابَ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

## بـاب ۱۰ : د قرآن په وصیت د عمل کولو بیان.

۱۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفُ حَدَّثَنَا مٰلِكُ بْنُ مِغْوَلٍ حَدَّثَنَا طَلْحَةُ قَالَ سَاَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰى اَوْصَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا فَقُلْتُ كَيْفَ كُتِبَ عَلَى النَّاسِ الْوَصِيَّةُ اُمِرُوْا بِهَا وَ لَمْ يُوْصِ قَالَ

۱۳ : محمد بن یوسف. مالک بن مغول. طلحه نه روایت کوي، چه ما د عبدالله بن اوفيٰ نه تپوس اوکه. آیا نبي صلي الله علیه وسلّم څه وصیت کړے دے. هغه جواب کښې اووے نه. ما، اووے بیا په خلقو وصیت کول ولے فرض دي. مونږ خلقو ته حکم راکړے شوے دے، او حضور صلي الله علیه وسلّم وصیت نه دے کړے، هغه اووے، حضور صلي الله علیه وسلّم په کتاب الله د عمل

اَوْصٰی بِکِتَابِ اللّٰهِ.

کولو وصیت فرمائیلے دے.

**بَابٌ ۱۱: مَنْ لَّمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْاٰنِ. وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰی: اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّا اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ يُتْلٰی عَلَيْهِمْ.**

**باب ۱۱: څوک چه په خوش آوازئ سره** قرآن نه وائي' او د الله تعالی قول چه آیا هغوي له کافي نه ده چه مونږ په تا قرآن نازل که' چه په هغوي لوستلے شي.

۱۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه اَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَأْذَنِ اللّٰهُ لِشَيْءٍ مَّا اَذِنَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَغَنّٰى بِالْقُرْاٰنِ وَ قَالَ صَاحِبٌ لَهٗ يُرِيْدُ يَجْهَرُ بِهٖ.

۱۴: یحیی بن بکیر. لیث. عقیل. ابن کتاب. ابو سلمه ابن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت کوي' د هغه بیان دے رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' الله جل جلاله د هیڅ قرآن دومره توجه سره وانه ریدلو. څومره چه د هغے نبي ئے واوریدلو' چه قرآن په خوش آوازئ سره وائي[۱]' د' ابوهریره رضي الله عنه یو دوست اووے' د ابوهریره رضي الله عنه مراد (د حدیث لفظ) تغني نه جهر سره لوستل دي.

۱. د طاؤس رحمة الله علیه نه په یو مرسل روایت کښے دي چه د نبي کریم صلي الله علیه وسلّم نه تپوس اوکړے شو چه د قرآن شریف په تلاوت کښے څرنګے آواز د ټولونه زیات خوښ کړے شوے دے؟ نو پاک حضرتﷺ اوفرمائیل چه د کوم تلاوت اوریدلو سره چه د الله ویره پیدا شي. د حذیفه رضي الله عنه نه د نبي کریم صلي الله علیه وسلّم دا ارشاد نقل دے چه "قرآن شریف د عربو په لهجه کښے او د هغوئ د اواز مطابق وایئ. د اهل عِشقو او اهل کتابو لب و لهجه د قرآن کریم په تلاوت کښے استعمالولو نه پرهیز اوکړئ. مانه پس به یو داسے قوم پیدا کیږي چه قرآن کریم به د سندرغاړو په شان په وزن سره وائي' دغه تلاوت به د هغوئ د حلق نه لاندے نه کوزیږي او د هغوئ زړونه به په فتنه کښے مبتلا کیږي". په اصل کښے همدغه تلاوت ممنوع دے کوم کښے چه د سندرغاړو نقل اوکړے شي. چه یو سړے د سندرو عادي شي نو سندرے د هغهٔ په زړه او دماغ باندے داسے حاوي شي چه هغه هر وختے د ځان سره ګونګیږي' او که چرے یو ښه څیز په ښه لب و لهجه کښے د لوستلو کوشش کوي نو لازماً به د هغه د ګانے مخصوص لهجه به عَود کوي. د قرآن مجید په تلاوت کښے د همدے طریقے ممانعت دے. خوش آوازي ښه څیز دے لیکن کچرے د سندر غاړو لب و لهجه اختیار کړے شي نو ممنوع او ګناه ده. په حدیث کښے د "نبي" په ځائے بعضو روایتونو کښے "عبد' (یعني بنده) راغلے دے. ګویا خوش آوازئ سره د بنده قرأت الله تعالی ته ډیر خوښ دے' لیکن بس دا ضروري ده چه د دغے خوش آوازئ پُولے د سندر غاړو لب و لهجے سره ملاؤ

نشي. او عربو به هم په خيمو كښې او ځائو په خپلو مخصوصو محفلونو كښې د سندرونه خوندونه اخستل، او ظاهره ده چه په ممانعت كښې هغه لهجه هم شامله ده كومه چه عربيان ځائې د پاره استعمالوي.

۱۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی اللہ عنہ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَذِنَ اللّٰهُ لِشَيْءٍ مَّا اَذِنَ لِلنَّبِيِّ اَنْ يَّتَغَنّٰى بِالْقُرْاٰنِ قَالَ سُفْيٰنُ تَفْسِيْرُهٗ يَسْتَغْنِيْ بِهٖ.

۱۵ : علي بن عبدالله. سفيان. زهري. ابو سلمه. ابوهريرة رضی اللہ عنہ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. الله جل جلاله د هيڅا قرآن دومره توجه سره واونه ريدلو، څومره چه د هغې نبي قرآن ته توجه سره واوريدلو، چه قرآن ځان ۵ پاره كافي ګنړي. سفيان وائي چه تفسير د تغنّي، يستغني دے او دے نه خوش الحاني مراد ده.

بَابُ ۱۲ : اِغْتِبَاطِ صَاحِبِ الْقُرْاٰنِ.

باب ۱۲ : قرآن لوستونكي باندے د، رشك كولو بيان (رشك معنٰي پسخيدل).

۱۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رضی اللہ عنہ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا حَسَدَ اِلَّا عَلٰى اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْكِتَابَ وَ قَامَ بِهٖ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَ رَجُلٌ اَعْطَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يَتَصَدَّقُ بِهٖ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ.

۱۶ : ابواليمان. شعيب. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ نه روايت كوي، ما د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي. چه چاته پسخيدل سيوا، د دوو سړونه جايز نه دي، يو هغه سړے چه هغه له الله جل جلاله كتاب وركه، او هغه پاسي، د شپې ئې لولي، او بل هغه سړے چه الله جل جلاله هغه له مال وركه، او هغه ورځ او شپه هغه د الله جل جلاله په لار كښې صدقه كوي. (كه دا دواړه د، يو بل نه د مخكښې كيدو كوشش اوكړي، نو جائز دي).

۱۷ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا حَسَدَ اِلَّا فِيْ

۱۷ : علي بن ابراهيم. روح. شعبه. سليمان. ذكوان. حضرت ابوهريرة رضی اللہ عنہ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كه رشك كوئے، نو دوو څيزونو كښې كوئے، يو په هغه سړي چه الله تعالٰي هغه له قرآن وركړے وي، او هغه، هغه ورځ او

اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ يَتْلُوْهُ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَ اٰنَآءَ النَّهَارِ فَسَمِعَهُ جَارٌ لَهُ فَقَالَ لَيْتَنِيْ اُوْتِيْتُ مِثْلَ مَا اُوْتِيَ فُلَانٌ فَعَمِلْتُ مِثْلَ مَا يَعْمَلُ وَ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يُهْلِكُهُ فِي الْحَقِّ فَقَالَ رَجُلٌ لَيْتَنِيْ اُوْتِيْتُ مِثْلَ مَا اُوْتِيَ فُلَانٌ فَعَمِلْتُ مِثْلَ مَا يَعْمَلُ.

باب۱۳ : خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَ عَلَّمَهُ.

۱۸ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عُثْمَانَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَ عَلَّمَهُ قَالَ وَ اَقْرَاَنِيْ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِيْ اِمْرَةِ عُثْمَانَ حَتّٰى كَانَ الْحَجَّاجُ قَالَ وَ ذَاكَ الَّذِيْ اَقْعَدَنِيْ مَقْعَدِيْ هٰذَا.

۱۹ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَلْقَمَةَ ابْنِ مَرْثَدٍ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَفْضَلَكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَ عَلَّمَهُ.

شپه لولي. د هغه ګوانډي چه ئې واوري نو وائي کاش چه زما هم دا شان لوستل نصیب وے، نو ما به هم داسے عمل کولے، دویم په هغه سړي چه اللّٰه تعالٰي هغه له دولت ورکړے دے او هغه ئې د حق په لار کښ خرچ کوي. بیا په هغه څوک رشک کونکے اووائي، کاش که ماسره هم داسي مال وے نو ما به هم دا شان صرف کولے.

باب۱۳ : د هغے سړي د ټولو نه د بهتر کیدو بیان چه قرآن شریف زده کړي یا چاته ئې اوښائي.

۱۸ : حجاج بن منهال. شعبه. علقمه بن مرثد. سعد بن عبیده. ابو عبدالرّحمٰن سلمي. حضرت عثمانؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. څوک چه تاسو کښ قرآن زده کړي، یا، ددے تعلیم ورکړي، هغه د ټولو نه ښه دے، د، ابو عبیده بیان دے، ماته ابو عبدالرحمٰن د حضرت عثمانؓ په خلافت کښ قرآن اوښودلو او د حجاج د، زمانے پورے تعلیم راکولو. ابو عبدالرحمٰن وئیلے دا حدیث دے چه هغے زه دے ځائے کښ د قرآن د تعلیم د پاره کینولے یم.

۱۹ : ابو نعیم. سفیان. علقمه بن مرثد. ابو عبدالرحمٰن سلمي حضرتؓ بن عفان نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو، تاسو کښ هغه سړے د ټولو نه بهتر دے، چه قرآن زده کړي او، ورے ښائي.

۲۰ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِمْرَاَةٌ فَقَالَتْ اِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلّٰهِ وَ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَالِيْ فِي النِّسَآءِ مِنْ حَاجَةٍ فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيْهَا قَالَ اَعْطِهَا ثَوْبًا قَالَ لَآ اَجِدُ قَالَ اَعْطِهَا وَلَوْ خَاتَمًا مِّنْ حَدِيْدٍ فَاعْتَلَّ لَهٗ فَقَالَ مَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

۲۰ : عمرو بن عون. ابو حازم. سهيل بن سعد نه روايت كوي، يوه ښځه راغله، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته ئې عرض اوكه، يا حضرتؐ، ما خپل نفس الله او د هغه رسول ته بخشش كړلو، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ماته د ښځې حاجت نشته. يو صحابي عرض اوكه، يا رسول الله ددې نكاح ماسره اوكړئې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ته دې له جوړه وركړه. هغه اووې ماسره كپړې نشته. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، څه خو دې له وركړه، آيا د، اوسپنې ګوته هم تاسره نشته. هغه غريب ډير خفه شو (ځكه چه هيڅ ورسره نه وو) بيا ترې حضور صلي الله عليه وسلّم تپوس اوكه، تا څه قرآن لوستې دې، هغه اووې، ما فلانې فلانې سورت لوستې دې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ما د، دې تاسره د قرآن خواني په وجه نكاح اوكړله.

## باب ۱۴ : اَلْقِرَآءَةِ عَنْ ظَهْرِ الْقَلْبِ.

## باب ۱۴ : قرآن شريف بغير ليدو، د، لوستو د فضيلت بيان.

۲۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ امْرَاَةً جَآءَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جِئْتُ لِاَهَبَ لَكَ نَفْسِيْ فَنَظَرَ اِلَيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ

۲۱ : قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روايت كوي، يوه ښځه نبي صلي الله عليه وسلّم له راغله او عرض ئې اوكه، يا رسول الله ما خپل نفس تاسوته اوبښلو. حضور صلي الله عليه وسلّم هغې ته د پاسه نه لاندې پورې غور سره اوكتل. بيائې خپل سر ښكته كړلو. هر كله چه هغې ښځې ته معلومه شوه، چه حضور صلي الله عليه وسلّم د هغې په باره كښې هيڅ حكم ونه كړلو. نو هغه كيناسته. بيا د حضور صلي الله عليه وسلّم يو صحابيؓ عرض اوكه، يا

الْمُهَا وَ صَوَّبَهُ ثُمَّ طَأْطَأَ رَأْسَهُ فَلَمَّا رَأَتِ الْمَرْأَةُ أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ فِيهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيهَا فَقَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ اذْهَبْ إِلَى أَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا قَالَ انْظُرْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ هَذَا إِزَارِي قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتَّى طَالَ مَجْلِسُهُ ثُمَّ قَامَ فَرَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَاذَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَ سُورَةُ كَذَا عَدَّهَا قَالَ أَتَقْرَأُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ.

رسول الله، كه تاسو ته د دې ښځې ضرورت نه وي. نو ماته ئې په نكاح كړې. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، آيا تاسره څه سامان شته. هغې جواب وركه، هيڅ راسره نشته. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، خپل كورته لاړ شه، اوكوره، شايد تاته څه په لاس درشي، هغه لاړلو، بيا واپس راغې، او وئيلې، يا رسول الله، ماته هيڅ هم په لاس رانغلل. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، لاړشه اوكوره، خواه د اوسپنې گوته ولې نه وي. هغه لاړ، بيا راغې، عرض ئې اوكه، يا رسول الله د اوسپنې گوته هم راكره نشته، البته دا تهِ بند دې. سهل وائي، هغه سره دويم څادر هم نه وو. ليكن هغه اووې. دې ښځې له نيم، تهِ بند، وركړئې، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ته به دې خپل تهِ بند سره څه اوكړې، كه ته ئې اغندې نو ښځې سره څه نه پاتې كيږې اوكه هغه ئې اغندي، نو تاسره هيڅ نه پاتې كيږې. بيا هغه سړې كيناست او ډير وخته پورې ناست وو. بيا پاسيد، حضور صلي الله عليه وسلم چه هغه غمجن وليد، نو راوې غوښتلو او، ورته ئې اوفرمائيل، تاته څه قرآن ياد دې (كه نه) هغه اووې، ماته فلاني فلاني سورتونه ياد دي، هغه سورتونه ئې شمار كړل. د هغې تعداد ئې هم اوښودلو. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، دا سورتونه تاته حفظ دي. هغه عرض اوكه، جي او، حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل څه، ما، ته د قرآن شريف د حفظ كولو په وجه ددې مالک كړلې (يعني د هغې نكاح ئې ورسرا اوكړله).

باب۱۵ : اسْتِذْكَارِ الْقُرْاٰنِ وَ تَعَاهُدِهٖ.

باب۱۵ : د قرآن شریف د' لوستو او د هغے د همیشه تلاوت کولو بیان.

۲۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا مَثَلُ صَاحِبِ الْقُرْاٰنِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْاِبِلِ الْمُعَقَّلَةِ اِنْ عَاهَدَ عَلَيْهَا اَمْسَكَهَا وَ اِنْ اَطْلَقَهَا ذَهَبَتْ.

۲۲ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي' د هغه بیان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' د قرآن لوستونکي مثال داسے دے' لکه د چا اُوبن چه تړلے شوے وي' که هغه د هغے نګهباني کوي' نو د تښتیدو نه به محفوظ وي' او که پریږدي (یعني نګهباني ئے نه کوي) نو هغه به تربے لاړ شي.

۲۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَمَا لِاَحَدِهِمْ اَنْ يَّقُوْلَ نَسِيْتُ اٰيَةَ كَيْتَ وَ كَيْتَ بَلْ نُسِّيَ وَاسْتَذْكِرُوا الْقُرْاٰنَ فَاِنَّهٗ اَشَدُّ تَفَصِّيًا مِّنْ صُدُوْرِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ.

۲۳ : محمد بن عرعره. شعبه. منصور. ابو وائل عبداللّٰه بن مسعود نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' دا بده خبره ده چه تاسو کښ څوک دا' اووائي' چه ما فلانے فلانے آیت هیر کړلو' بلکه داسے دے وائي' چه هغه آیت مانه هیر کړے شو. تاسو خلق قرآن یاد ساتئے' ځکه چه هغه د خلقو د سینو نه وتلو کښ د' وحشي څناورو نه زیات تیزئ سره تښتیدونکے دے.

۲۴ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ مِثْلَهٗ تَابَعَهٗ بِشْرٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ شُعْبَةَ وَ تَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَبْدَةَ عَنْ شَقِيْقٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۴ : عثمان. جریر. منصور نه روایت دے' چه محمد بن عرعره' (د حدیث د راوي) بشر مطابعت اوکه' هغه د' ابن مبارک نه' هغه د' شعبه نه روایت کوي' او د' شعبه ابن جریج متابعت کړے دے' عبده شقیق نه روایت کوي' چه ما د عبداللّٰه نه واوریدل' هغه وئیلے' ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دا شان حدیث اوریدلے دے.

۲۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ

۲۵ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بریده د' ابو موسي په ذریعه روایت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه

بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعَاهَدُوا الْقُرْاٰنَ فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَهُوَ اَشَدُّ تَفَصِّيًا مِّنَ الْاِبِلِ فِيْ عُقُلِهَا.

وسلّم اوفرمائيل' قرآن هميشه لولئے قسم دے په هغه ذات چه د هغه په قبضه کښ زما ساه ده' قرآن د سړو د سينے نه د تړلے شوي اُوبښ نه هم زيات تيزے سره تښتيدونکے دے.

بَابُ ۱٦ : اَلْقِرَاٰءَةِ عَلَى الدَّآبَّةِ.

باب ۱٦ : په سورلي د' قرآن شريف د' لوستلو بيان.

۲٦ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اِيَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مُغَفَّلٍ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَهُوَ يَقْرَاُ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ سُوْرَةُ الْفَتْحِ.

۲٦ : حجاج بن منهال. شعبه. ابو اياس. عبدالله بن مغفل نه روايت کوي' د هغه بيان دے' ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم د مکے د فتح په ورځ' اوليدلو چه هغوئ د سورلئ د پاسه سورت فتح لوستلو.

بَابُ ۱۷ : تَعْلِيْمُ الصِّبْيَانِ الْقُرْاٰنَ.

باب ۱۷ : بچو ته د قرآن شريف ښودلو بيان.

۲۷ : حَدَّثَنِيْ مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ اِنَّ الَّذِيْ تَدْعُوْنَهُ الْمُفَصَّلُ هُوَ الْمُحْكَمُ قَالَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا ابْنُ عَشْرِ سِنِيْنَ وَقَدْ قَرَاْتُ الْمُحْكَمَ.

۲۷ : موسي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير نه روايت کوي' د هغه بيان دے' کوم سورتونو ته چه تاسو مفصل وايئے هغه محکم دي' سعيد وائي' حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل' د نبي صلي الله عليه وسلّم د وفات په وخت' زه د لسو کالو ووم او محکم سورتونه مې لوستي وو.

۲۸ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍؓ جَمَعْتُ الْمُحْكَمَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهٗ

۲۸ : يعقوب بن ابراهيم. هشيم. ابو بشر. سعيد بن جبير نه روايت کوي' حضرت' ابن عباسؓ به فرمائيل' ما د' رسول الله صلي الله عليه وسلّم زمانه کښ محکم سورتونه ياد کړے وو (سعيد وائي) ما د ابن عباسؓ نه تپوس اوکه. محکم څه ته وائي. هغه اووے' محکم

وَمَا الْمُحْكَمُ قَالَ الْمُفَصَّلُ.

مفصل ته وائي.

باب۱۸ : نِسْيَانِ الْقُرْاٰنِ وَهَلْ يَقُوْلُ نَسِيْتُ اٰيَةَ كَذَا و كَذَا وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰى اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ.

باب۱۸ : د قرآن شريف هيرولو بيان' او داسې وئيل چه ما' فلانې فلانې آيت هير كړلو (جائز نه دي) خكه چه اللّٰه تعالٰي فرمائي' زر به مونږ تاته اوښايو' بيا به ته هيڅ كله نه هيروې خو چه اللّٰه اُغواړي:

۲۹ : حَدَّثَنَا رَبِيْعُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ لَقَدْ اَذْكَرَنِيْ كَذَا وَ كَذَا اٰيَةً مِّنْ سُوْرَةِ كَذَا.

۲۹ : ربيع بن يحيٰي. زائده. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي' د هغې بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم جمات كښې د يو سړي نه قرآن لوستل واوريدل' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل' اللّٰه تعالٰي دې په دې سړي رحم او كړي' چه ماته ئې فلانې فلانې آيت د فلاني فلاني سورت راياد كړلو.

۳۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُوْنٍ حَدَّثَنَا عِيْسٰى عَنْ هِشَامٍ وَّ قَالَ اَسْقَطْتُهُنَّ مِنْ سُوْرَةِ كَذَا تَابَعَهُ عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ وَّ عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ.

۳۰: محمد بن عبيد بن ميمون. عيسٰي نه روايت كوي' هشام اووې.(ماته ئې هغه آيتونه راياد كړلو چه) مانه فلاني فلاني سورت كښې هير كړې شوې وو. د محمد بن عبيد' علي بن مسهر او عبده متابعت كړې دې.

۳۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِيْ سُوْرَةٍ بِاللَّيْلِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ لَقَدْ اَذْكَرَنِيْ كَذَا وَ كَذَا اٰيَةً كُنْتُ اُنْسِيْتُهَا مِنْ سُوْرَةِ كَذَا وَ كَذَا.

۳۱: احمد بن ابي رجاء. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي' د هغې بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د شپې د' يو سړي نه قرآن لوستل واوريدل' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' اللّٰه جل جلاله دې په هغه سړي رحم او كړي' هغه ماته فلانې فلانې آيت چه فلاني فلاني سورة كښې دې' چه هغه مانه هير كړې شوې وو' راياد كړلو.

۳۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا

۳۲: ابو نعيم. منصور. ابو وائل. حضرت عبداللّٰه

سُفۡيَانُ عَنۡ مَنۡصُوۡرٍ عَنۡ اَبِيۡ وَآئِلٍ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَا لِاَحَدِهِمۡ يَقُوۡلُ نَسِيۡتُ اٰيَةَ كَيۡتَ وَ كَيۡتَ بَلۡ هُوَ نُسِّيَ.

بن مسعود نه روايت کوي، د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، دا خبره ډيره بده ده، چه څوک اووائي چه ما فلانے فلانے آيت هير کړلو، بلکه داسے د اووائي چه مانه هير کړے شو.

باب ۱۹ ا: مَنۡ لَمۡ يَرَ بَاۡسًا اَنۡ يَّقُوۡلَ سُوۡرَةُ الۡبَقَرَةِ وَ سُوۡرَةُ كَذَا وَ كَذَا.

باب ۱۹ ا: سورهٔ بقره يا سورهٔ فلان فلان وئيلو کښې د څه حرج نه کيدو بيان.

۳۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بۡنُ حَفۡصٍ حَدَّثَنَا اَبِيۡ حَدَّثَنَا الۡاَعۡمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيۡ اِبۡرٰهِيۡمُ عَنۡ عَلۡقَمَةَ وَ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ بۡنِ يَزِيۡدَ عَنۡ اَبِيۡ مَسۡعُوۡدَ الۡاَنۡصَارِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ الۡاٰيَتَانِ مِنۡ اٰخِرِ سُوۡرَةِ الۡبَقَرَةِ مَنۡ قَرَاَ بِهِمَا فِيۡ لَيۡلَةٍ كَفَتَاهُ.

۳۳: عمر بن حفص. اعمش. ابراهيم. علقمه. عبدالرحمٰن بن يزيد. ابو مسعودؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، د سورهٔ بقره آخري دوه آيتونه چه څوک د شپے لولي، نو دا به د هر مصيبت نه خلاصي ورکړي.

۳۴: حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ اَخۡبَرَنَا شُعَيۡبٌ عَنِ الزُّهۡرِيِّ قَالَ اَخۡبَرَنِيۡ عُرۡوَةُ عَنۡ حَدِيۡثِ الۡمِسۡوَرِ بۡنِ مَخۡرَمَةَ وَ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ بۡنِ عَبۡدِ ۣالۡقَارِيِّ اَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ بۡنَ الۡخَطَّابِ يَقُوۡلُ سَمِعۡتُ هِشَامَ بۡنَ حَكِيۡمِ بۡنِ حِزَامٍ يَقۡرَءُ سُوۡرَةَ الۡفُرۡقَانِ فِيۡ حَيَاةِ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاسۡتَمَعۡتُ لِقِرَآءَتِهٖ فَاِذَا هُوَ يَقۡرَءُ هَا عَلٰى حُرُوۡفٍ كَثِيۡرَةٍ لَمۡ يُقۡرِئۡنِيۡهَا رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَكِدۡتُ اُسَاوِرُهُ فِي الصَّلَاةِ فَانۡتَظَرۡتُهُ

۳۴: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه. مسور بن محرمه. عبدالرحمٰن عبدالقاري. حضرت عمرؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، ما د نبي صلي الله عليه وسلّم ژوند کښې د هشام بن حکيم بن حزام نه د قرآن لوستل واوريدل، ما چه غور سره د هغه لوستل واوريدل، نو هغه داسے طرز سره لوستلو چه ما هيڅ کله په دے طرز نه وو لوستے ما سوچ اوکه. چه مانځه کښې ورسره پوه شم، خو ما د، مونځ د، ختميدو انتظار اوکه، کوم وخت چه هغه سلام اوګرځولو، نو ما د هغه غاړه کښې څادر واچولو. بيا مې ترے تپوس اوکه، چه دا سوره تاته چا ښودلے دے، چه اوس درنه ما واوريدلو، هغه اووے، ددے سورت ماته

حَتّٰى سَلَّمَ فَلَبَّبْتُهٗ فَقُلْتُ مَنْ اَقْرَاَكَ هٰذِهِ السُّوْرَةَ الَّتِىْ سَمِعْتُكَ تَقْرَاُ قَالَ اَقْرَاَنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهٗ كَذَبْتَ فَوَاللّٰهِ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُوَ اَقْرَاَنِىْ هٰذِهِ السُّوْرَةَ الَّتِىْ سَمِعْتُكَ فَانْطَلَقْتُ بِهٖ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقُوْدُهٗ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّىْ سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَاُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ عَلٰى حُرُوْفٍ لَّمْ تُقْرِئْنِيْهَا وَ اِنَّكَ اَقْرَاْتَنِىْ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ فَقَالَ يَا هِشَامُ اقْرَاْهَا فَقَرَاَهَا الْقِرَآءَةَ الَّتِىْ سَمِعْتُهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰكَذَا اُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ اقْرَاْ يَا عُمَرُ فَقَرَاْتُهَا الَّتِىْ اَقْرَاَنِيْهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰكَذَا اُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْقُرْاٰنَ اُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تعليم راكړے دے، ما ورته اووے ته دروغ وائے، په اللّٰه م دے قسم وي، دا سوره چه ما، تانه واوريدلو، ماته هم رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ښودلے دے (خو ته ئے په بل طرز لولے) ما هغه په راښكلو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راوستلو. او عرض م اوكه يا رسول اللّٰه، ما د، ده نه سورت فرقان په دے طريقه اوريدلے دے، چه ما په دے طريقه نه دے زده كړے، حالانكه ماته تاسو (خپله) سورت فرقان ښودلے دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. اے هشام، سورت فرقان واوروه، هغه هم هغسے اولوست، څنګه چه ترے ما آوريدلے وو. نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا شان دا سورت نازل شوے دے. دے نه پس ئے اوفرمائيل. اے عمر رضي اللّٰه عنه ته هم اولوله، نو ما هم داسے لوستل شروع كړل، څنګه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته ښودلے وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دا سورت داسے هم نازل شوے دے، دے نه پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، قرآن اوو قراتونو كښې نازل شوے دے، نو څنګه چه آساني سره لوستے شے، هغسے ئے لولئ.

۳۵: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ اٰدَمَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَارِئًا يَّقْرَاُ مِنَ اللَّيْلِ فِى الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ لَقَدْ اَذْكَرَنِىْ كَذَا و كَذَا اٰيَةً اَسْقَطْتُهَا

۳۵: بشر بن ادم. علي بن مسهر. هشام. عروه. بي بي عائشے‌ؓ نه روايت كوي، د هغے بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د شپے جمات كښې د، يو قاري نه قرآن واوريدلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه دے په دے سړي رحم اوكړي. ده ماته فلانے فلانے آيت چه مانه فلاني فلاني سورة كښې پاتے

مِنْ سُوْرَةِ كَذَا وَ كَذَا.

شوي وو، را ياد کړلو.

**بَابٌ ۲۰ : اَلتَّرْتِيْلِ فِي الْقِرَاءَةِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ رَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا وَ قَوْلِهٖ وَ قُرْاٰنًا فَرَقْنَاهُ لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ وَّمَا يُكْرَهُ اَنْ يُّهَذَّ كَهَذِّ الشِّعْرِ يُفْرَقُ يُفَصَّلُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَرَقْنَاهُ فَصَّلْنَاهُ.**

**باب ۲۰ :** قرآن شريف په قلاره قلاره د، لوستو بيان او د اللّٰه تعالٰي فرمائيل، چه قرآن په قلاره قلاره لولئې (او دويم قول: وَ قُرْاٰنًا فَرَقْنَاه لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ: ترتيل سره د لوستو دليل دے. د شعرونو په شان زر، زر دے نه نه شے وئيلے. امام بخاريؒ د لفظ يفرق تفسير يفصل سره کوي. او ابن عباسؓ د فرقناه تفسير فصّلنا سره کړے دے.

۳۶: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُوْنٍ حَدَّثَنَا وَاصِلٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ غَدَوْنَا عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ رَجُلٌ قَرَاْتُ الْمُفَصَّلَ الْبَارِحَةَ فَقَالَ هَذًّا كَهَذِّ الشِّعْرِ اِنَّا قَدْ سَمِعْنَا الْقِرَاءَةَ وَ اِنِّيْ لَاَحْفَظُ الْقُرَنَاءَ الَّتِيْ كَانَ يَقْرَءُ بِهِنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَ عَشَرَةَ سُوْرَةً مِّنَ الْمُفَصَّلِ وَ سُوْرَتَيْنِ مِنْ اٰلِ حٰمٓ.

۳۶: ابو نعمان. مهدي بن ميمون. واصل. ابو وائل نه روايت کوي، چه مونږ د چاشت په وخت عبداللّٰه بن مسعودؓ له ورغلو، يو سړي اووے، نن شپه ما پوره مفصل سورتونه اولوستل. عبداللّٰه بن مسعودؓ اووے، دا خو وابنه ريبل شو. ما، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه لوستل واوريدل. او ماته بنه ياد دي، کوم سورتونه چه به نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم لوستل هغه اته لس مفصل سورتونه وو، چه هغے کښې دوه سورتونه حٰمٓ واله وو.

۳۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مُوْسَى بْنِ اَبِيْ عَائِشَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهٖ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا نَزَلَ جِبْرِيْلُ

۳۷: قتيبه بن سعيد. جرير. موسٰي ابن ابي عائشه. سعيد بن جبير نه روايت کوي، چه د اللّٰه تعالٰي د هغے قول: لا تحرک به لسانک الخ: (ژبه تادي سره مه خوزوه) په تفسير کښې داسے روايت دے چه جبرائيل عليه السلام به کوم وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته وحي راوړلے نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به تادي سره خپلے شُنډے او ژبه خوزوله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته به دا گرانه وه، او نورو خلقو ته به هم دا

بِالْوَحْيِ وَ كَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ بِهٖ لِسَانَهٗ وَ شَفَتَيْهِ فَيَشْتَدُّ عَلَيْهِ وَ كَانَ يُعْرَفُ مِنْهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ الْاٰيَةَ الَّتِيْ فِيْ لَا اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَ قُرْاٰنَهٗ فَاِذَا قَرَاْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ. فَاِذَا اَنْزَلْنَاهُ فَاسْتَمِعْ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ. قَالَ اِنَّ عَلَيْنَا اَنْ نُبَيِّنَهٗ بِلِسَانِكَ قَالَ وَ كَانَ اِذَا اَتَاهُ جِبْرِيْلُ اَطْرَقَ فَاِذَا ذَهَبَ قَرَاَهٗ كَمَا وَعَدَهُ اللّٰهُ.

ناكواره محسوس كيده' نو دغه وخت الله تعالٰي دا آيت نازل كړلو: لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ الخ: يعني د تادئ نه ژبه مه خوزوه. ستا سينه كښ د دے محفوظ كول او لولول خمونږ ذمه ده. ابن عباسؓ دا لفظ علينا جمعه' تفسير' جمعه' في صدرك كړے دے' يعني ستا سينه كښ ددے محفوظ ساتل خمونږ په ذمه دے: فاذا قراناهُ فَاتّبع قرانه: كوم وخت چه مونږ دا لولو' نو' بنه توجه سره آوره: ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ: بيا دا ستا په ژبه بيانول خمونږه ذمه ده. ابن عباسؓ وائي. دے نه پس چه به جبرائيلؑ وحي راوړله' نو حضور صلي الله عليه وسلّم به سر ښكته كړلو' او آوريدله به ئے' او څه وخت چه به جبرائيل عليه السلام لاړلو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم به د وعدهٔ الٰهي په موجب هغه لوستله.

## بَابُ ۲۱: مَدِّ الْقِرَآءَةِ.

## باب ۲۱: الفاظ راښكلو سره د تلاوت كولو بيان.

۳۸: مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ الْاَزْدِيُّ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنْ قِرَآءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يَمُدُّ مَدًّا.

۳۸: مسلم بن ابراهيم. جرير بن حازم. قتاده نه روايت كوي' چه ما د حضرت انس بن مالكؓ نه د حضور صلي الله عليه وسلّم د' قرأت د حال تپوس او كه' نو هغه جواب راكه چه حضور صلي الله عليه وسلّم به بنه راښكلو سره قرأت لوستلو.

۳۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سُئِلَ اَنَسٌ كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَتْ مَدًّا ثُمَّ قَرَاَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ يَمُدُّ بِبِسْمِ اللّٰهِ وَ يَمُدُّ بِالرَّحْمٰنِ وَ

۳۹: عمرو بن عاصم. همام. قتاده' نه روايت كوي' ما د حضرت انس بن مالكؓ نه تپوس او كه' د حضور صلي الله عليه وسلّم قرأت به څنګه وو' نو هغه جواب راكه چه حضورصلي الله عليه وسلّم به راښكلو سره لوستلو. بيا بسم الله الرحمٰن الرحيم لوستلو سره ئے اووے چه بسم الله' او' الرحمٰن' او الرحيم به ئے

يَمُدُّ بِالرَّحِيمِ.

رابنکلو سره لوستلو.

بَاب ۲۲ : التَّرْجِيْعِ.

باب ۲۲ : آواز سره د قرآن مجید د تلاوت کولو بیان.

۴۰ : حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِيْ إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِيَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مُغَفَّلٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ وَهُوَ عَلٰى نَاقَتِهٖ أَوْ جَمَلِهٖ وَهِيَ تَسِيْرُ بِهٖ وَهُوَ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْفَتْحِ أَوْ مِنْ سُوْرَةِ الْفَتْحِ قِرَاءَةً لَيِّنَةً يَقْرَأُ وَهُوَ يُرَجِّعُ.

۴۰ : آدم بن ابي اياس. شعبه. ابو اياس. عبدالله بن مغفل نه روايت کوي، د هغه بيان دے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو، چه حضور صلي الله عليه وسلم په خپله أوښه يا أوښ کښې سورت فتح، يا د سورت فتح څه حصه نرم آواز سره ترجيع[۱] سره لوستلو.

**ف** : ترجيع: د آواز غاړه کښې ګرځول. خوش آوازي.

۱. په بعضو روايتونو کښې دي چه د لوستو وخت کښې به ئې آ، آ، آ کول. غالباً د سورلي په حرکت سره به دا آواز پيدا کيدلو، قصداً به هغوی داسے لوستل نه وي کړے.

بَاب ۲۳ : حُسْنِ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ.

باب ۲۳ : خوش آوازي سره د قرآن شريف د لوستو بيان.

۴۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلَفٍ أَبُوْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ يَحْيَى الْحِمَّانِيُّ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهٖ أَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهٗ يَا أَبَا مُوْسٰى لَقَدْ أُوْتِيْتَ مِزْمَارًا مِّنْ مَّزَامِيْرِ اٰلِ دَاوُدَ.

۴۱ : محمد بن خلف ابوبکر. ابو يحيي حماني. بريد بن عبدالله بن ابي برده د خپل پلار ابو برده. حضرت ابو موسٰي نه روايت کوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم څما حق کښې اوفرمائيل اے ابو موسٰي تا ته د، داؤد عليه السلام خوش الحاني درکړے شوے ده.

بَاب ۲۴ : مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَسْمَعَ الْقُرْاٰنَ مِنْ غَيْرِهٖ.

باب ۲۴ : د، بل سړي نه د، قران شريف د آوريدلو بيان.

۴۲ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ عَنِ الْأَعْمَشِ

۴۲ : عمرو بن حفص بن غياث. ابو حفص. اعمش. ابراهيم. عبيده. عبدالله مسعودؓ نه روايت کوي،

قَالَ حَدَّثَنِيُ إِبْرٰهِيُمُ عَنُ عَبِيُدَةَ عَنُ عَبُدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقُرَأُ عَلَيَّ الْقُرْاٰنَ قُلُتُ اَقُرَأُ عَلَيُكَ و عَلَيُكَ اُنُزِلَ قَالَ اِنِّيُ اُحِبُّ اَنُ اَسْمَعَهُ مِنُ غَيْرِيُ.

د هغه بیان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اے عبداللّٰه' ماته قرآن واوروه' هغه اووے' تاسوٓ خما نه آوریدل غواړئے' حالانکه' قرآن شریف تاسوٓ باندے نازل شوے دے' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' ماته د بل چا نه آوریدل ښه معلومیږي.

باب ۲۵ : قَوْلِ الْمُقُرِیءِ لِلْقَارِیءِ حَسُبُكَ.

باب ۲۵ : قرآن شریف اوریدلو سره د' آوریدونکي د' بَس بَس وئیلو بیان.

۴۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بُنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفُيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنُ اِبْرٰهِيُمَ عَنُ عَبِيُدَةَ عَنُ عَبُدِ اللّٰهِ بُنِ مَسُعُوُدٍؓ قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقُرَأُ عَلَيَّ قُلُتُ يَا رَسُوُلَ اللّٰهِ اَقُرَأُ عَلَيُكَ وَ عَلَيُكَ اُنُزِلَ قَالَ نَعَمُ فَقَرَأْتُ سُوُرَةَ النِّسَآءِ حَتّٰى اَتَيُتُ اِلٰى هٰذِهِ الْاٰيَةِ فَكَيُفَ اِذَا جِئُنَا مِنُ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيُدٍ وَّ جِئُنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيُدًا قَالَ حَسُبُكَ الْاٰنَ فَالْتَفَتُّ اِلَيْهِ فَاِذَا عَيُنَاهُ تَذُرِفَانِ.

۴۳ : محمد بن یوسف. سفیان. اعمش. ابراهیم. عبدالرحمٰن بن مسعودؓ نه روایت کوي ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اے عبداللّٰه ماته قرآن واوروه. ما عرض اوکه' یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم زه تاسوته څه واوروم' په تاسو خو قرآن نازل شوے دے' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. او (ته واوروه) ما سورة النساء لوستل شروع کړل. هر کله چه فکیف اِذا جئنا: الخ (یعني څه حال به وي' چه مونږ د اُمت نه ګواه راولو' او' تا' اے پیغمبرهٔ' په هغوي ګواه کړو) ته راورسیدم' نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. اوس بس کړه. ما چه حضورؐ ته وکتل نو د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د سترګو مبارکو نه اوښکے جاري وے.

باب ۲۶ : فِيُ كَمُ يُقُرَأُ الْقُرْاٰنُ وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنُهُ.

باب ۲۶ : د قرآن ختم څو ورځو کښې په کار دے او د' اللّٰه تعالٰي قول پس لوستل کوئ هغه چه آسان وي ددے قرآن نه.

۴۴ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفُيَانُ قَالَ لِيُ بُنُ شُبُرُمَةَ نَظَرُتُ كَمُ يَكُفِي الرَّجُلَ مِنَ الْقُرْاٰنِ فَلَمُ

۴۴ : علي سفیان نه روایت کوي ما ته ابن شبرمه اووے' ما غور اوکه سړي له (مونږ کښې) څومره آیتونه کافي دي' نو هیڅ سورت م

أَجِدُ سُوْرَةً أَقَلَّ مِنْ ثَلٰثِ اٰيَاتٍ فَقُلْتُ لَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ اَنْ يَّقْرَأَ اَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِ اٰيَاتٍ قَالَ سُفْيَانُ اَخْبَرَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ اَخْبَرَهُ عَلْقَمَةُ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ وَّ لَقِيْتُهُ وَهُوَ يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مَنْ قَرَأَ بِالْاٰيَتَيْنِ مِنْ اٰخِرِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ فِيْ لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ.

د درې آيتونونه کم بيانه مونـد. مـا سوچ او کـه د درې آيتونونه کم لوستل نه دي پکار. سفيان د' استدلال په طور' ابو مسعود انصاري نه روايت او کـه' چـه علقمه وائي' زه ابو مسعود سره هغه وخت يوځائې شوم' کوم وخت چه هغه د بيت اللّٰه شريف طواف کولو' نو هغه بيان او کـه' حضور صلي اللّٰه عليـه وسلّم فرمائيلې دي' چه څوک د شپې د سورة بقره آخري دوه آيتونه اولولي' نو هغه به ورله کافي شي.

۴۵: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ اَنْكَحَنِيْ اَبِيْ امْرَاَةً ذَاتَ حَسَبٍ فَكَانَ يَتَعَاهَدُ كَنَّتَهُ فَيَسْأَلُهَا عَنْ بَعْلِهَا فَتَقُوْلُ نِعْمَ الرَّجُلُ مِنْ رَّجُلٍ لَمْ يَطَأْ لَنَا فِرَاشًا وَّلَمْ يُفَتِّشْ لَنَا كَنَفًا مُذْ اَتَيْنَاهُ فَلَمَّا طَالَ ذٰلِكَ عَلَيْهِ ذَكَرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْقَنِيْ بِهٖ فَلَقِيْتُهُ بَعْدُ فَقَالَ كَيْفَ تَصُوْمُ قَالَ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ وَ كَيْفَ تَخْتِمُ قَالَ كُلَّ لَيْلَةٍ قَالَ صُمْ فِيْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلٰثَةً وَاقْرَا الْقُرْاٰنَ فِيْ كُلِّ شَهْرٍ قُلْتُ اُطِيْقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ صُمْ ثَلٰثَةَ

۴۵: موسي. ابو عوانه. مغيره. مجاهد. عبداللّٰه بن عمرو بن عاص نه روايت کوي' چه ځما پلار يو' ښه خاندان والو سره ځما نکاح او کړله' او ځما پلار به ځما د خپلې ښروور (بهو) نه (اکثر اوقات ځما د حال پښتنه کوله' هغې به ئې جواب ورکولو چه هغه يو ډير نيک سړې دې. خو' د' کومې ورځې نه چه زه راغلې يم. ځما په بستره ئې قدم هيڅ کله نه دې ايښې او نه ماته رانزدې شوې دې' چه څه موده تيره شوه نو زما پلار رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دا واقعه بيان کړله' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل هغه ماله راوله' نو زه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اوليږلې شوم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس او کـه' ته روژې څنګه نيسې' ما اووې' روزمره بيائې اوفرمائيل' قرآن څنګه ختموې' ما اووې هره شپه. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم راته اوفرمائيل. روژې هره مياشت کښې درې نيسه او قرآن کريم په مياشت کښې ختموه. ما عرض او کـه! ما کښې ددې نه زيات طاقت شته' حضور

اَیَّامٍ فِی الْجُمُعَةِ قُلْتُ اُطِیْقُ اَکْثَرَ مِنْ ذَالِکَ قَالَ اَفْطِرْ یَوْمَیْنِ وَ صُمْ یَوْمًا قَالَ قُلْتُ اُطِیْقُ اَکْثَرَ مِنْ ذٰلِکَ قَالَ صُمْ اَفْضَلَ الصَّوْمِ صَوْمَ دَاوُدَ صِیَامَ یَوْمٍ وَ اِفْطَارَ یَوْمٍ وَّ اقْرَأْ فِیْ کُلِّ سَبْعِ لَیَالٍ مَرَّةً فَلَیْتَنِیْ قَبِلْتُ رُخْصَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَاکَ اَنِّیْ کَبِرْتُ وَ ضَعُفْتُ فَکَانَ یَقْرَأُ عَلٰی بَعْضِ اَهْلِهٖ السُّبُعَ مِنْ الْقُرْاٰنِ بِالنَّهَارِ وَالَّذِیْ یَقْرَءُهٗ یَعْرِضُهٗ مِنَ النَّهَارِ لِیَکُوْنَ اَخفَّ عَلَیْهِ بِاللَّیْلِ وَ اِذَا اَرَادَ اَنْ یَّتَقَوّٰی اَفْطَرَ اَیَّامًا وَّ اَحْصٰی وَ صَامَ مِثْلَهُنَّ کَرَاهِیَةَ اَنْ یَّتْرُکَ شَیْئًا فَارَقَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلَیْهِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ فِیْ ثَلٰثٍ وَ فِیْ خَمْسٍ وَ اَکْثَرُهُمْ عَلٰی سَبْعٍ.

صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' یو ه هفته کښې درې روژې نیسه. ما عرض او که. ما کښې ددې نه زیات طاقت شته. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' همیشه دوه ورځې کوژه کوه او یوه ورځ روژه نیسه. ما عرض او که' ما کښې ددې نه هم زیات طاقت شته' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' ښه ده' د داود علیه السلام په شان روژه نیسه چه د ټولونه افضله ده' یعني یو ورځ روژه کوه او بله ورځ کوژه کوه. او قرآن اوو ورځو کښې ختموه (عبداللّٰه وائي) کاش چه ما د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم رخصت منظور کړې وې خکه چه اوس زه بوډا او ضعیف شوې یم' او ما کښې هغسې طاقت نشته' بوډا توب کښې به ئې خپل کوروا له ته اوه حصې قرآن آورولو چه د هغې لوستل د شپې آسان شي' او کله چه به ډیر کمزورې شو' او طاقت حاصلول به ئې غوښتل نو څو ورځې به ئې روژه نه نیسله' بیا به ئې په شمار هغومره روژې نیولې' چه چرته څه ترې باقي پاتې نه شي' چه د هغې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مخکښې ما عهد کړې وو (امام بخاري وائي) بعضو درې شپې او بعضو پنځه شپې د شپې قرآن ختمول یاد کړې دي' او زیات روایتونه اوو شپو کښې بیامنده شي (یعني اوو شپو کښې به ئې قرآن شریف ختمولو).

۴۶: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَیْبَانُ عَنْ یَحْیٰی عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو وَ قَالَ لِیَ النَّبِیُّ

۴۶: سعد بن حفص. شیبان. یحیي. محمد بن عبدالرحمٰن. ابو سلمه. حضرت عبداللّٰه بن عمرو نه روایت کوي' ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. ته قرآن څومره موده کښې

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ كَمْ اَقْرَأُ الْقُرْاٰنُ حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ شَيْبَانَ عَنْ يَحْيٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ مَوْلٰى بَنِيْ زُهْرَةَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَاِ الْقُرْاٰنَ فِيْ شَهْرٍ قُلْتُ اِنِّيْ اَجِدُ قُوَّةً حَتّٰى قَالَ فَاقْرَأْهُ فِيْ سَبْعٍ وَّلَا تَزِدْ عَلٰى ذٰلِكَ.

**باب ۲۷: اَلْبُكَاءِ عِنْدَ قِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ.**

۴۷: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ قَالَ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبِيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ يَحْيٰى بَعْضُ الْحَدِيْثِ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبِيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ الْاَعْمَشُ وَ بَعْضُ الْحَدِيْثِ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَأْ عَلَيَّ قَالَ قُلْتُ اَقْرَأُ عَلَيْكَ وَ عَلَيْكَ اُنْزِلَ قَالَ اِنِّيْ اَشْتَهِيْ اَنْ

ختموے. اسحاق، عبیدالله، شیبان، یحیٰي، محمد بن عبدالرحمٰن (د، بني زهري غلام) ابو سلمه او زه ګمان کوم، چه هغه اووے ما د ابو سلمه نه واوریدل، چه هغه د عبدالله بن عمروؓ نه روایت کولو، د هغه بیان دے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل قرآن یوه میاشت کښې ختموه، ما عرض اوکه زه ددے نه زیات طاقت لرم او دا مکالمه کیدله آخر حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. اوو ورځو کښې ختموه او ددے نه زیات مه لوله (نه پڑھو).

**باب ۲۷: دَ قرآن شریف، لوستو په وخت د، ژړا بیان.**

۴۷: صدقه. یحیٰي. سفیان. سلیمان. ابراهیم. عبیده. عبدالله (بن مسعودؓ) یحیٰي اووے، د، د حدیث څه حصه دَ عمرو بن مره، واسطے سره ده، چه ماته نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل (دونم سند) مسدد. یحیٰي. سفیان. اعمش. ابراهیم. عبیده. عبدالله (بن مسعود). اعمش اووے چه دَ حدیث څه حصه په واسطه دَ عمرو بن مره. ابراهیم. دَ ابراهیم پلار. ابوالضحي. عبدالله (بن مسعود) نه روایت کوي، د، هغه بیان دے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم ماته اوفرمائیل، اے عبدالله ماته قرآن شریف واوروه، ما عرض اوکه، عجیبه ده، تاسو خما نه آورئے حالانکه په تاسو خو قرآن پاک نازل شوے دے، حضرت جواب کښې اوفرمائیل، خما دَ بل چا نه آوریدل زیات خوښ دي. بیا ما سورة نساء لوستل شروع کړل، کوم وخت

اَسْمَعَهٗ مِنْ غَيْرِيْ قَالَ فَقَرَأْتُ النِّسَآءَ حَتّٰى اِذَا بَلَغْتُ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّ جِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰؤُلَآءِ شَهِيْدًا قَالَ لِيْ كُفَّ اَوْ اَمْسِكْ فَرَاَيْتُ عَيْنَيْهِ تَذْرِفَانِ يَعْنِيْ تَسْفَحَانِ.

چه زه، فكيف اذا جئنا من كل امة بشهيد و جئنا بك على هٰؤلآء شهيدا: پورې راورسيدم، نو حضورؐ ماته اوفرمائيل، ايسار شه (اودريږه، يعني بس دے، نور مه وايه) ما اوليدل، چه ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ سترګو مبارکو اوښکے څڅيدلے.

٤٨: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبِيْدَةَ السَّلْمَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَاْ عَلَيَّ قُلْتُ اَقْرَاُ عَلَيْكَ وَ عَلَيْكَ اُنْزِلَ قَالَ اِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ اَسْمَعَهٗ مِنْ غَيْرِيْ.

٤٨: قيس بن حفص. عبدالواحد. اعمش. ابراهيم. عبيدالله سلماني. عبدالله (بن مسعود) نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، ماته رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چه ماته قرآن واوروه، ما عرض اوكه، زه تاسوّ ته څنګه واوروم، قرآن خو په تاسو نازل شوے دے حضورؐ اوفرمائيل، په ما ذ بل چا نه آوريدل ښه لږي.

## بَابُ ٢٨: مَنْ رَّايَا بِقِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ اَوْ تَاَكَّلَ بِهٖ اَوْ فَخَرَ بِهٖ.

## باب٢٨: خلقوته د ښودنے، د، دنيا ګټهلو، يا، د فخر په طور، د، قرآن لوستلو بيان.

٤٩: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ قَالَ عَلِيٌّ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَاْتِيْ فِيْ اٰخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ حُدَثَآءُ الْاَسْنَانِ سُفَهَاءُ الْاَحْلَامِ يَقُوْلُوْنَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الْاِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ لَا يُجَاوِزُ اِيْمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ فَاَيْنَمَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ فَاِنَّ

٤٩: محمد بن كثير. سفيان. اعمش. خيثمه. سويد بن غفله. حضرت عليؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي، آخره زمانه كښې به نو عمر خلق سپک (هلكي) عقلونو سره پيدا شي، چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم قول به بيانوي، او هغوي به د دين نه داسے وتلي وي، څنګه چه تير د ښکار نه اُوځي. د هغوي ايمان به د هغوي د مرو (ګلوں) نه لاندے نه كوزيږي، كوم خائے چه هغوي تاسو سره يوخائے شي، قتل ئے كړي خكه چه

قَتْلَهُمْ اَجْرٌ لِمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

قتلونکو ته به د هغوي د قتلولو په وجه د قيامت په ورځ ثواب رسي.

۵۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ ابْنِ الْحَارِثِ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ ؓ اَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَخْرُجُ فِيْكُمْ قَوْمٌ تَحْقِرُوْنَ صَلَاتَكُمْ مَّعَ صَلَاتِهِمْ وَ صِيَامَكُمْ مَعَ صِيَامِهِمْ وَ عَمَلَكُمْ مَعَ عَمَلِهِمْ وَ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ يَنْظُرُ فِيْ النَّصْلِ فَلَا يَرٰى شَيْئًا وَ يَنْظُرُ فِيْ الْقِدْحِ فَلَا يَرٰى شَيْئًا وَ يَنْظُرُ فِي الرِّيْشِ فَلَا يَرٰى شَيْئًا وَّ يَتَمَارٰى فِي الْفُوْقِ.

۵۰ : عبدالله بن يوسف. مالک. يحيي بن سعيد. محمد بن ابراهيم بن حارث تيمي. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي، تاسو کښې به يو قوم راپيدا کيږي چه د هغوي مقابله کښې به تاسې خپل مونځ، روژې او اعمال سپک (حقير) ګڼړئ، ليکن هغه قوم به قرآن لولي چه د هغوي د، مرو (ګلوں) نه به لاندې نه کوزيږي د دين نه به هغوي داسې اُوځي. څنګه چه غشې د، ښکار نه اوځي. چه ښکاري ته نه پيکان کښې څه معلوم وي او نه ډنډئ کښې څه لګيدلې محسوس وي. او نه په وزر باندې څه اثر وي. البته په سوفار څه شبه شان وي.[۱]

ف : پيکان: د تير سوبنه يا تيره خوکه (تيرکا پھل). سوفار: د تير خوله. ډنډئ: دستګې، لاستګې، قبضه.

۱. يعني څرنګ چه غشي باندې ښکار اولګي او سمدستي ترې بُرته اوځي همدغه حال به د دغه خلقو وي چه اسلام ته راتلو سره به ذ حصارتيا نه بغير بهر کيږي او څرنګ چه په غشي کښې د ښکار د وينې وغيره هم څه اثر نه محسوسيږي همدغه حال به د هغوئ د قرآن د تلاوت وي. بې فائده او بې اثره.

۵۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ

۵۱ : مسدد. يحيي. شعبه. قتاده. انس بن مالک. ابو موسٰي نه روايت کوي، د هغه بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم مومن چه قرآن لولي، او په هغې عمل کوي. هغه د سنګترې په مثل دې، چه د هغې مزه ښه ده او بوئي ئې هم ښه دې. او

الَّذِيْ لَا يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ وَ يَعْمَلُ بِهٖ كَالتَّمْرَةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَلَا رِيْحَ لَهَا وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ يَقْرَءُ الْقُرْاٰنَ كَالرِّيْحَانَةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ لَا يَقْرَءُ الْقُرْاٰنَ كَالْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ اَوْ خَبِيْثٌ وَ رِيْحُهَا مُرٌّ.

کوم مسلمان چه قرآن نه لولي او عمل پرے کوي هغه د قجورے په شان دے چه د هغے مزه خوښه ده، خو بوي ئے نه وي او د هغے منافق مثال چه قران لولي د خوشبوداره کشمالو د ګل په شان دے، چه د هغے بوي خوښه دے، خو خوند ئے تریخ دے، او د هغے منافق مثال چه قرآن نه لولي هغه د کاکورے (اندرائن) میوه ده چه د هغے مزه هم خرابه ده او بوي ئے هم خراب دے.

ف: اندرائن: ترخه منړه.

باب ۲۹: اقْرَؤُا الْقُرْاٰنَ مَا ائْتَلَفَتْ قُلُوْبُكُمْ.

باب ۲۹: زړه لریدو پورے د، قرآن شریف د لوستو بیان.

۵۲: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ عَنْ جُنْدُبِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْرَءُ وا الْقُرْاٰنَ مَا ائْتَلَفَتْ قُلُوْبُكُمْ فَاِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُوْمُوْا عَنْهُ.

۵۲: ابو نعمان. حماد. ابو عمران جوني. جندب بن عبدالله نه روایت کوي، د هغه بیان دے، حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، څو پورے چه ستاسو زړه لري قرآن لولئے او چه زړه مو موړ شي نو بیا مه لولئے.

۵۳: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ اَبِيْ مُطِيْعٍ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ عَنْ جُنْدَبٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَءُوْا الْقُرْاٰنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوْبُكُمْ فَاِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُوْمُوْا عَنْهُ تَابَعَهُ الْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ وَ سَعِيْدُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ حَمَّادُ بْنُ

۵۳: عمرو بن علي عبدالرحمن بن مهدي. سلام بن ابي مطيع. ابو عمران جوني. حضرت جندب نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلے دي، څو پورے چه ستاسو زړه لریدلے وي، نو قرآن لولئے، او کوم وخت چه مو زړه موړ شي نو مه ئے لولئے، سلام بن ابي مطیع، د، حارث بن عبید او سعید بن زید متابعت کړے دے، چه ابي عمران نه روایت کوي، چه ما دا خبره په طور د جندب د قول آوریدلے

سَلَمَةَ وَ اَبَانُ وَ قَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا قَوْلَهُ وَ قَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ عُمَرَ قَوْلَهُ وَ جُنْدَبٌ اَصَحُّ وَ اَكْثَرُ.

ده' يعني د حضور صلي الله عليه وسلّم قول نه دے. ابو عون وائي' ابو عمران نه روايت دے' چه عبدالله بن صامت نه روايت كوي' چه دا قول هغه د حضرت عمرؓ قول بيانوي. خو د جندب روايت ډير صحيح دے.

۵۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنِ النَّزَالِ بْنِ سَبْرَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ اٰيَةً سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِلَافَهَا فَاَخَذْتُ بِيَدِهٖ فَانْطَلَقْتُ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ فَاقْرَاَ اَكْبَرُ عِلْمِيْ قَالَ فَاِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اِخْتَلَفُوْا فَاَهْلَكَهُمْ.

۵۴: سليمان بن حرب. شعبه. عبد الملك بن ميسره. نزال بن سبره. عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي' ما د يو سړي نه يو آيت لوستل واوريدل' چه ما د' رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه هغسے نه وو آوريدلے' نو لاس نيولے م رسول الله صلي الله عليه وسلّم له بوتلو' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' تاسو دواړه ښه لولئ. تاسو دواړه لولئ' شعبه وائي زما غالب گمان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم خلق چه تاسو نه مخكښ وو' هغوي د' اختلاف په وجه هلاك شولو.

# كِتَابُ النِّكَاحِ

# (د نكاح بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَاب ۳۰: التَّرْغِيْبِ فِي النِّكَاحِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَآءِ.

باب ۳۰: د' نكاح د' ترغيب بيان فرمان الهي: فانكحوا ما طاب لكم مِنَ النسآء: په دے سند دے.

۵۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ بْنُ اَبِيْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلُ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عَنْهُ يَقُوْلُ جَآءَ ثَلٰثَةُ رَهْطٍ اِلٰى بُيُوْتِ

۵۵: سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. حميد بن ابو حميد طويل. انس بن مالكؓ نه روايت كوي. د' رسول الله صلي الله عليه وسلّم كورته درے سړي د حضور صلي الله عليه وسلّم د عبادت د حال تپوس كولو د پاره راغلل. هر كله

أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْئَلُوْنَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أُخْبِرُوْا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوْهَا فَقَالُوْا وَ أَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ قَالَ أَحَدُهُمْ أَمَّا أَنَا فَإِنِّيْ أُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا وَّ قَالَ اٰخَرُ أَنَا أَصُوْمُ الدَّهْرَ وَ لَا أُفْطِرُ وَ قَالَ اٰخَرُ أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَآءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَنْتُمُ الَّذِيْنَ قُلْتُمْ كَذَا وَ كَذَا أَمَا وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ وَ أَتْقَاكُمْ لَهُ لٰكِنِّيْ أَصُوْمُ وَ أُفْطِرُ وَ أُصَلِّيْ وَ أَرْقُدُ وَ أَتَزَوَّجُ النِّسَآءَ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ.

چه هغوي ته بيان اوکړے شو' نو د حضور صلي الله عليه وسلّم عبادت ئے لکه چه کم اوګنړلو' او وے وئيل. مونږ د حضورؐ برابري څنګه کولے شو' د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خو مخکني ورستني ټول ګناهونه معاف کړے شوے دي' يو کس په کښې اووے' زه به ټوله شپه مونځ کوم. دوئم اووے' زه به هميشه روژے نيسم' دريم کس اووے. زه به نکاح نه کوم' او ښځے نه به هميشه جدا اوسم' دے نه پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي له تشريف راوړلو. او' وے فرمائيل' آيا تاسو خلقو داسے خبره کړے ده' په اللّٰه م دے قسم وي' زه ستاسو په نسبت د' اللّٰه تعالٰي نه ډير زيات ويريدونکے او خوف واله يم' بيا' روژه هم نيسم' او کوژه هم کوم. مونځ هم کوم' او اُوده کيږم هم' ورسره ورسره ښځو سره نکاح هم کوم. ياد لرے' څوک چه زما د سنت نه مخ آړوي هغه زما په طريقه نه دے.

۵۶: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ سَمِعَ حَسَّانَ بْنَ إِبْرٰهِيْمَ عَنْ يُوْنُسَ بْنِ يَزِيْدَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَ ثُلٰثَ وَ رُبٰعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ذٰلِكَ أَدْنٰى أَنْ لَّا تَعُوْلُوْا قَالَتْ يَا ابْنَ أُخْتِيْ الْيَتِيْمَةُ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِ وَلِيِّهَا

۵۶: علي. حسان بن ابراهيم. يونس بن يزيد نه روايت کوي' زهري نه روايت دے ماته عروه بيان کړے دے' چه ما د' بي بي عائشےؓ نه: فان خفتم الا تقسطوا فى اليتمٰى فانكحوا ما طاب لكم مِنَ النسآءِ الخ: تفسير تپوس اوکه' نو هغے جواب کښې اوفرمائيل' خوريه (بهانجے) يو يتيمه جينئ چه ولي سره وي' که د هغے مال و جمال ورته ښه معلوميږي' او هغه غواړي چه زه دے جينئ سره په لږ شان رقم خپله نکاح اوکړم' نو' واوره دے مسئله کښې په دے وجه الله

فَيَرْغَبُ فِيْ مَالِهَا وَ جَمَالِهَا يُرِيْدُ اَنْ يَّتَزَوَّجَهَا بِاَدْنٰى مِنْ سُنَّةِ صَدَاقِهَا فَنُهُوْا اَنْ يَّنْكِحُوْهُنَّ اِلَّا اَنْ يُّقْسِطُوْا لَهُنَّ فَيُكْمِلُو الصَّدَاقَ وَ اُمِرُوْا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ مِنَ النِّسَآءِ.

**بَابُ ۳۱: قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَآءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ لِاَنَّهُ اَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَ اَحْصَنُ لِلْفَرَجِ وَ هَلْ يَتَزَوَّجُ مَنْ لَّا اَرَبَ لَهُ فِي النِّكَاحِ.**

۵۷: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ فَلَقِيَهُ عُثْمَانُ بِمِنًى فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِنَّ لِيْ عَلَيْكَ حَاجَةً فَخَلَيَا فَقَالَ عُثْمَانُ هَلْ لَّكَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِيْ اَنْ نُّزَوِّجَكَ بِكْرًا تُذَكِّرُكَ مَا كُنْتَ تَعْهَدُ فَلَمَّا رَاٰى عَبْدُ اللّٰهِ اَنْ لَّيْسَ لَهُ حَاجَةٌ اِلٰى هٰذَا اَشَارَ اِلَيَّ فَقَالَ يَا عَلْقَمَةُ فَانْتَهَيْتُ اِلَيْهِ وَ هُوَ يَقُوْلُ اَمَا لَئِنْ قُلْتَ ذٰلِكَ لَقَدْ قَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ

تعالى منع اوکړه، او ذکر شوي آيت کښې ئې اوفرمائيل، که تاسو انصاف کولے شئے، نو هغوي سره نکاح کوئے، او د هغوي پوره پوره مهر مقررولے. کنې ددے جينکو نه علاوه کوم ځائے چه تاسو غواړئے، نکاح اوکړئے.

**باب ۳۱: د، نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيل** څوک چه د، واده قوت لري، نو نکاح دې اوکړي، د هغے مطلب دا دے، چه څوک د جماع (صحبت) کولو هم قوت لري، هغه دې نکاح اوکړي، ځکه چه نکاح نظر (د، پردئے ښځے د ليدلو نه) خکته لري، او د حرامُ نه سړے بچ کوي، چاته چه د نکاح حاجت نه وي، هغه له نکاح ضروري نه ده.

۵۷: عمر و بن حفص. اعمش. ابراهيم. علقمه نه روايت کوي، زه عبدالله سره ووم، هغه سره حضرت عثمانؓ يوځائے شولو، او، ونيلے، اے ابو عبدالرحمٰن، ځما تا سره يو ضروري کار دے، او هغوي دواړه يو جدا ځائے ته لاړل، حضرت عثمانؓ اُووے، اے ابو عبدالرحمٰن، آيا ستا زړه غواړي، چه زه يوے جينۍ ښځے سره ستا نکاح اوکړم، چه د، تيرے زمانے ارزوګانے تا ته يادے کړي، عبدالله بن مسعود چه اوليدل. چه د حضرت عثمانؓ بغير ددے مشورے نه بل هيڅ کار نشته، نو ماته ئې اشاره اوکړه. او وے فرمائيل. اے علقمه نو زه هغوي له ورغلم او هغه (د حضرت عثمانؓ جواب کښې) ونيلے، واوره، که تاسو، دا فرمائے، نو مونږ ته نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي. اے د خلمو جماعته، څوک چه تاسو کښې د نکاح طاقت لري،

مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَآءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ وَ مَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ.

هغه دې واده وكړي' او چا كښې چه طاقت نه وي' هغه دې روژې ونيسي. روژه هغه خصي كوي (يعني شهوت كموي).

## بـاب ٣٢: مَـنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْبَآءَةَ فَلْيَصُمْ.

## باب ٣٢: كه د' واده طاقت نه لري' نو د' روژې نيولو بيان.

٥٨: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَارَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ عَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَبَابًا لَّا نَجِدُ شَيْئًا فَقَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ الْبَآءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَإِنَّهُ اَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَ اَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَ مَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَآءٌ.

٥٨: عمر بن حفص بن غياث. اعمش. عمارة عبدالرحمن نه روايت كوي' زه علقمه او اسود سره عبدالله بن مسعود لره ورغلم' هغه اوفرمائيل' كومه زمانه كښې چه مونږ ځوانان وو' او مونږ سره هيڅ نه وو (يعني بې سروسامانه وو) نو مونږ ته يو ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' اې د' ځوانانو ډلې' څوک چه تاسو كښې د نكاح طاقت لري' هغه دې نكاح اوكړي' ځكه چه نكاح پردئې ښځې ليدو نه نظر ځكته كوي. او د' حرام كارئ نه سړے بچ كوي' البته د چا چه وَس نه وي' هغه دې روژې اونيسي' ځكه چه روژې نيولو سره شهوت كميږي.

## بَاب ٣٣: كَثْرَةِ النِّسَآءِ.

## باب٣٣: د' ځو' ودونو كولو بيان.

٥٩: حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ قَالَ حَضَرْنَا مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍؓ جَنَازَةَ مَيْمُوْنَةَ بِسَرِفَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هٰذِهِ زَوْجَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا رَفَعْتُمْ نَعْشَهَا فَلَا تُزَعْزِعُوْهَا وَلَا تُزَلْزِلُوْهَا وَارْفُقُوْا فَإِنَّهُ

٥٩: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن يوسف. ابن جريج. عطاء نه روايت كوي' چه زه ابن عباسؓ سره مقام سرف كښې د' بي بي ميمونېؓ جنازې سره روان ووم' نو ابن عباسؓ اووې' دا' د' رسول الله صلي الله عليه وسلم تبر' دې. ددې جنازې اوچتولو سره زيات حركت مه وركوئې' او په مزه مزه (رو' رو) ځئې' د وفات په وخت د' رسول الله صلي الله عليه وسلم نهه بيبيانې وې' د اتو بيبيانو حضور صلي الله عليه

كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسْعٌ كَانَ يَقْسِمُ لِثَمَانٍ وَ لَا يَقْسِمُ لِوَاحِدَةٍ.

وسلّم وار نمبر کړې وو' په هغې کښې بي بي میمونهؓ هم شامله وه' او د' یوې نمبر' نه وو!' هغه بي بي سودهؓ وه او بوډۍ شوې وه.

۱. په ازواجو مطهراتو کښې بي بي سودې رضي الله عنها خپل نمبر عائشې رضي الله عنها له ورکړې وو ولې چه هغه بوډۍ شوې وه د هغې ذکر په دې حديث کښې دې.

۲۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ فِي لَيْلَةٍ وَاحِدَةٍ وَّ لَهُ تِسْعُ نِسْوَةٍ وَّ قَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۰ : مسدد. یزید بن زریع. سعید. قتاده. انسؓ نه روایت کوي' حضور صلي الله علیه وسلّم به په تولو بیبیانو د شپې دوره کوله. او د حضور صلي الله علیه وسلّم نهه بیبیانې وې (بخاريؒ وائي) ماته خلیفه (چه خما شیخ دې) اووې. مونږ ته یزید بن زریع په روایت د' سعید' هغه په روایت د' قتاده' هغه په روایت د انسؓ دا حدیث بیان که' چه د' رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه روایت کړې شوې دې.

۲۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ الْأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ رَقَبَةَ عَنْ طَلْحَةَ الْيَامِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ هَلْ تَزَوَّجْتَ قُلْتُ لَا قَالَ فَتَزَوَّجْ فَإِنَّ خَيْرَ هٰذِهِ الْأُمَّةِ أَكْثَرُهَا نِسَاءً.

۲۱ : علي بن حکم انصاري. ابو عوانه. رقبه. طلحه یامي. سعید بن جبیر نه روایت کوي' ما نه ابن عباسؓ تپوس او که' ستا واده شوې دې (یا نه) ما جواب ورکه' نه' نو هغه اوفرمائیل' نکاح او کړه' ځکه چه دې اُمت کښې بهتر هغه دې چه د هغه زیاتې بیبیانې وي.

بَابُ ۳۴: مَنْ هَاجَرَ أَوْ عَمِلَ خَيْرًا لِتَزَوُّجِ امْرَأَةٍ فَلَهُ مَا نَوَى.

باب ۳۴: چا چه د یوې ښځې سره د نکاح کولو د پاره یا بل څه کار' د پاره هجرت او که' هغه ته د هغه نیت مطابق د حاصلیدو بیان.

۲۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ ابْنِ الْحَارِثِ عَنْ

۲۲ : یحیی بن قزعه. مالک. یحیی بن سعید. محمد بن ابراهیم. ابراهیم بن حارث. علقمه بن وقاص. حضرت عمرؓ بن خطاب نه روایت

عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَمَلُ بِالنِّيَّةِ وَ اِنَّمَا لِامْرِءٍ مَا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ مَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ اِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهُ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' هر عمل په نيت موقوف دے. انسان ته د هغه د نيت مطابق حاصليږي' د چا هجرت چه د' الله تعالٰي او د هغه د' رسول رضامندنے د پاره وي' نو د هغه هجرت به د خدائے او رسول د' رضامندي د پاره وي. او د چا هجرت چه دنيا حاصلولو د پاره يا' يوے ښځے سره نكاح كولو د پاره وي' نو د هغه د هجرت بدله دغه ده' چه د هغے د پاره ئے هجرت كړے دے.

باب ۳۵: تَزْوِيْجِ الْمُعْسِرِ الَّذِيْ مَعَهُ الْقُرْاٰنُ وَالْاِسْلَامُ فِيْهِ سَهْلٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۵: د تنګدست مسلمان چه په قرآن پوهيږي' د هغه د' نكاح كولو بيان. دے كښې د سهل روايت د نبي صلي الله عليه وسلم نه دے.

۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا نَغْزُوْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ لَنَا نِسَآءٌ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا نَسْتَخْصِيْ فَنَهَانَا عَنْ ذٰلِكَ.

۶۳: محمد بن مثني. يحيٰي. اسماعيل. قيس. ابن مسعودؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے. مونږ به رسول الله صلي الله عليه وسلم سره جهاد كولو' هغه وخت زمونږ بيبيانے نه وے' نو مونږ عرض اوكه' يا رسول الله' آيا تاسو اجازت راكوئے' چه مونږ خانونه خصي كړو' نو حضور صلي الله عليه وسلم مونږ ددے نه منع كړلو.

باب ۳۶: قَوْلِ الرَّجُلِ لِاَخِيْهِ انْظُرْ اَيَّ زَوْجَتَيَّ شِئْتَ حَتّٰى اَنْزِلَ لَكَ عَنْهَا رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ.

باب ۳۶: د' يو سړي خپل رور ته د' اوئيل چه ته څما په دوؤ ښځو كښے يوه خوښه كړه چه تا ته ئے پريدم. دا عبدالرحمٰن بن عوف روايت كړے دے.

۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ

۶۴: محمد بن كثير. سفيان. حميد طويل. انس بن مالكؓ نه روايت كوي' عبدالرحمٰن بن عوف مديني ته تشريف راوړلو' نو رسول الله صلي الله عليه وسلم

مَـالِكٍ قَـالَ قَـدِمَ عَبْـدُ الرَّحْـمٰـنِ ابْـنُ عَـوْفٍ فَـاٰخـى النَّبِيُّ صَلّـى اللّـٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ سَعْدِ ابْـنِ الـرَّبِيْـعِ الْاَنْـصَـارِيِّ وَ عِـنْـدَ الْاَنْـصَـارِيِّ امْرَاَتَانِ فَعَرَضَ عَلَيْهِ اَنْ يُّنَاصِفَهٗ اَهْلَهٗ وَ مَالَهٗ فَقَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِيْ اَهْـلِكَ وَ مَـالِكَ دُلُّـوْنِـيْ عَلَى السُّـوْقِ فَـاَتَـى السُّوْقَ فَرَبِحَ شَيْـئًـا مِنْ اَقِـطٍ وَ شَيْـئًـا مِـنْ سَـمَـنٍ فَرَاٰهُ النَّبِيُّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ اَيَّامٍ وَّ عَـلَيْهِ وَ ضَرٌ مِّنْ صُفْرَةٍ فَقَالَ مَهْيَمْ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ تَزَوَّجْتُ اَنْصَارِيَّةً قَـالَ فَـمَـا سُـقْـتَ قَـالَ وَزْنَ نَـوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ اَوْ لِمْ وَ لَوْ بِشَاةٍ.

عبدالرحمٰن او سعد بن ربيع انصاري كښې ورورولي جوړه كړه. د سعد انصاري دوه بيبيانې وې، سعد عبدالرحمٰن ته اووې، زما د مال او بيبيانونه نيم ته واخله. هغه جواب وركه. اللّٰه دې ستا مال زيات كړي، او بيبيانې دې تاته مبارك وي. ماته بازار اوښايه، نو بازار ته لاړ، د پنير او غوړو د تجارت سره ئې نفع حاصله كړه. څو ورځې پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه په كپړو زردي وليده، نو وې فرمائيل. اې عبدالرحمٰن، دا څه خبره ده، هغه جواب وركه. ما يو انصارې ښځې سره نكاح كړې ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل په، څومره مهر، عرض ئې اوكه په يو ګټكي سرو زرو په دې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. وليمه هم اوكړه، اګر كه يوه چيلئ هم وي.

باب ۳۷: مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّبَتُّلِ وَالْخِصَاءِ.

باب ۳۷: لونډ (مجرد) اوسيدل او خپل ځان د نامرد جوړولو د كراهت بيان.

۶۵: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَـدُ بْـنُ يُـوْنُـسَ حَـدَّثَـنَـا اِبْـرٰهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ اَخْبَـرَنَـا ابْـنُ شِهَـابٍ سَمِعَ سَعِيْدَ بْنَ الْـمُسَيَّبِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ سَعْدَ ابْنَ اَبِيْ وَقَّـاصٍؓ يَـقُـوْلُ لَـقَدْ رَدَّ رَسُوْلُ اللّـٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عُثْمَانَ بْـنِ مَـظْـعُـوْنٍ التَّبَتُّلَ وَ لَوْ اَذِنَ لَـهٗ لَا خْتَـصَيْـنَـا حَـدَّثَـنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُـعَيْـبٌ عَـنِ الزُّهْـرِيِّ قَـالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّهٗ سَمِعَ سَعْدَ ابْنَ

۶۵: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. سعد بن وقاصؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، عثمان بن مطعون منع كړې وو، اوكه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه له اجازت وركړې وې، نو مونږ به هم ځان خصي كړې وو، او هيڅ كله به مو د نكاح اراده نه وې كړې. (دونم سند) ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. سعد بن وقاص نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم. عثمان بن معظون د، نكاح

أَبِيْ وَقَّاصٍ يَقُوْلُ لَقَدْ رَدَّ ذٰلِكَ يَعْنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عُثْمَانَ وَلَوْ اَجَازَ لَهُ التَّبَتُّلَ لَاخْتَصَيْنَا.

ترک کولو نه منع کړے وو، که حضور صلي الله عليه وسلّم هغه ته د نکاح نه کولو اجازت ورکړے وے، نو مونږ به خصي شوي وو او هيڅ کله به مو، د، نکاح اراده نه وے کړے.

**ف:** خصي: تکيدلے. خايے ايستل. هغه ځناور چه خايے ئے تکولے شوے يا ترے نه ايستلے شوے وي. نامرد. مخنث. خواجه سرا. نامرد کول. بيکاره کول. يا، د کار نه ايستل.

۶۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كُنَّا نَغْزُوْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ لَنَا شَيْءٌ فَقُلْنَا اَلَا نَسْتَخْصِيْ؟ فَنَهَانَا عَنْ ذٰلِكَ ثُمَّ رَخَّصَ لَنَا اَنْ يَنْكِحَ الْمَرْاَةَ بِالثَّوْبِ ثُمَّ قَرَاَ عَلَيْنَا يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ وَقَالَ اَصْبَغُ اَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ بْنِ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ رَجُلٌ شَابٌّ وَّ اَنَا اَخَافُ عَلٰى نَفْسِيَ الْعَنَتَ وَلَا اَجِدُ مَا اَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَآءَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ جَفَّ

۶۲: قتيبه بن سعيد. جرير. اسماعيل. قيس نه روايت کوي، چه حضرت عبدالله (بن مسعودؓ) ونيلے، مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره جهاد کولو، مونږ سره هيڅ نه وو، په دے وجه مونږ عرض اوکه. يا رسول الله. آيا مونږ دے خصي نه شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ ددے فعل نه منع کړلو، بيائے مونږ ته د يو کپړے په عوض ښځے سره د نکاح کولو اجازت راکړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ ته دا آيت اولوست: اے ايمان والو، هغه پاک څيزونه چه الله په تاسو حلال کړي دي، په ځان مه حرام کوئے او زياتے مه کوئے، ځکه چه الله تعالٰي زياتے کونکي دوست نه ساتي (دونم سند) اصبغ. وهب. يونس بن يزيد. ابن شهاب. ابي سلمه. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوکه، زه ځوان يم او ماسره خوف دے، چه مانه زنا اونشي، او ما کښ د، نکاح طاقت نشته حضور صلي الله عليه وسلّم هيڅ جواب رانه کړلو. ما بيا هغه عرض اوکه. حضورؐ خاموش شولو. ما بيا عرض اوکه. بيا هم حضورؐ څه جواب رانه کړلو. ما بيا دغسے عرض اوکه. اخر حضورؐ جواب راکړلو. ابوهريرهؓ څه چه ستا تقدير کښ وي (هغے ليکلو سره) قلم خشک

الْقَلَمُ بِمَا أَنْتَ لَاقٍ فَاخْتَصِ عَلٰى ذٰلِكَ أَوْذَرْ.

شو. اوس حكم الٰهي بدليدلے نشي، خواه ته خصي شے يا نه شے.

**باب ۳۸: نكاحِ الْأَبْكَارِ.** وَ قَالَ ابْنُ مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِعَائِشَةَ لَمْ يَنْكِحِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكْرًا غَيْرَكِ.

**باب ۳۸: پيغلے جينئ سره د، نكاح كولو بيان:** ابن ابي مليكه وائي، ابن عباسؓ بي بي عائشےؓ ته اووے، نبي صلي الله عليه وسلم ستانه سيوا هيڅ پيغلے جينئ سره نكاح نه ده كړے.

۶۷: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ لَوْ نَزَلْتَ وَادِيًا وَّ فِيْهِ شَجَرَةٌ قَدْ أُكِلَ مِنْهَا وَ وَجَدْتَّ شَجَرًا لَمْ يُؤْكَلْ مِنْهَا فِيْ أَيِّهَا كُنْتَ تُرْتِعُ بَعِيْرَكَ قَالَ فِي الَّذِيْ لَمْ يُرْتَعْ مِنْهَا تَعْنِيْ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَتَزَوَّجْ بِكْرًا غَيْرَهَا.

۶۷: اسماعيل. عبدالله. عبدالحميد. سليمان. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ما عرض اوكه يا رسول الله، كه تاسو په يو مقام كوز شئے. او هلته داسے اُونے وي، چه د هغے نه خوړلے شوے وي، او څه اُونے تاسو داسے بيامومئے، چه د هغے نه هيڅ نه وي خوړلے شوي، نو، اووائے، تاسو به د كومے اُونے نه خپل اوبښ لـه خوراک وركوئے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، د كومے نه چه خوراک نه وي شوے. د، د بي بي عائشےؓ ددے نه دا مراد وو، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم څما نه علاوه هيڅ پيغلے جينئ سره واده نه وو كړے.

۶۸: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ ابْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيْتُكِ فِي الْمَنَامِ مَرَّتَيْنِ إِذَا رَجُلٌ يَحْمِلُكِ فِيْ سَرَقَةِ حَرِيْرٍ فَيَقُوْلُ هٰذِهِ امْرَأَتُكَ فَأَكْشِفُهَا فَإِذَا هِيَ أَنْتِ فَأَقُوْلُ إِنْ يَكُنْ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ.

۶۸: عبيد بن اسماعيل. ابو الاسامه. هشام. د خپل پلار نه. هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي، ما، ته دوه خلـه خوب كښ ليدلے وے، چه يو سړي ستا صورت د ريښمينے كپړے په ټكړه كښ اخستے، وائي چه دا ستا ښځه ده. ما هغه ټكړه، پرانسته، نو هغه ستا صورت وو، بيا ما اووے، كه دا خبره من جانب الله وي نو هغه به دا جاري كړي.

**باب ۳۹: الثَّيِّبَاتِ.** وَ

**باب ۳۹: ثيبه.** يعني كُنډي ښځے سره د، واده

قَالَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ.

کولو بیان. او اُم حبیبه فرمائي، ماته نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائیل (اے بي بي) ماته خپلې خويندې اولونړه نکاح د پاره مه پيش کوئے، ځکه چه هغه شرعًا په ما حرام دي.

۶۹: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمٰنِ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا سَيَّارٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَفَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةٍ فَتَعَجَّلْتُ عَلٰى بَعِيرٍ لِّيْ قَطُوفٍ فَلَحِقَنِيْ رَاكِبٌ مِّنْ خَلْفِيْ فَنَخَسَ بَعِيرِيْ بِعَنَزَةٍ كَانَتْ مَعَهُ فَانْطَلَقَ بَعِيرِيْ كَأَجْوَدِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِّنَ الْإِبِلِ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا يُعْجِلُكَ قُلْتُ كُنْتُ حَدِيثَ عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ ثَيِّبٌ قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ قَالَ أَمْهِلُوا حَتّٰى تَدْخُلُوا لَيْلًا أَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ.

۶۹: ابوالنعمان. هشيم. سيار. شعبي. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، مونږ د حضور صلي الله عليه وسلّم سره د يو جنګ نه واپس راتلو، زه په خپل اوښ چه ډير سست وو، د چلولو په کوشش کښ ووم، چه زما د ورستو نه يو سور راغے، خما اُوښ ئے په خپله نيزه اووهلو (نیزه چبهودیا) نو خما اُوښ داسے روان شو، څنګه چه د ښه نه ښه اُوښ تاسو په تلو وينئے، ما چه ورروسته اوکتل، نو هغه حضور صلي الله عليه وسلّم وو. حضور صلي الله عليه وسلّم تپوس اوکه. اے جابر ته دومره تادي ولے کوے. ما اووے، ما تازه واده کړے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. پيغلے سره يا کُنډے سره. ما عرض اوکه. کُنډے سره. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. پيغلے سره دے واده ولے او نه که. خپلو کښ به مو لوبے کولے. جابر وائي. کوم وخت چه مونږ مدينے ته قريب راورسيدو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اودريږه، د شپے مدينے ته مه ځه، د پاره ددے چه کومې ښځے چه د هغوي خاوندان د هغوي نه غائب وو، هغوي خپل پريشانه ويښته ګومنز کړي او خپل ويښته صاف کړي.

۷۰: حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبٌ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ ابْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ تَزَوَّجْتُ

۷۰: آدم. شعبه. محارب بن دثار. جابر بن عبدالله نه روايت کوي. کوم وخت چه ما نکاح اوکړله، نو ما نه رسول الله صلي الله عليه وسلّم تپوس اوکه، تا

فَقَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَزَوَّجْتَ فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا فَقَالَ مَا لَكَ وَلِلْعَذَارٰى وَلِعَابِهَا فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَمْرِو وبْنِ دِيْنَارٍ فَقَالَ عَمْرُو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ.

ښځکه ښځے سره واده کړے دے. ما عرض اوکه. کُنډے ښځے سره. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. آيا ستا پيغلو او د هغوي لوبو سره رغبت نشته. شعبه وائي، ما عمرو بن دينار ته دا بيان اوکه، نو هغه دا جواب اوکه، ما، د جابر بن عبدالله نه واوريدل چه ماته رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تا، نو عمره جينئ سره ولے واده اونه که، چه تا هغے سره او هغے تا سره لوبے کولے.

بَاب ۴۰: تَزْوِيْجِ الصِّغَارِ مِنَ الْكِبَارِ

باب ۴۰: د، لوِ عمر واله جينئ د، زيات عمر واله سړي سره د، نکاح کولو بيان.

۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ عَائِشَةَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ اَبُوْ بَكْرٍ اِنَّمَآ اَنَا اَخُوْكَ فَقَالَ اَنْتَ اَخِيْ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ وَكِتَابِهٖ وَهِيَ لِيْ حَلَالٌ.

۷۱: عبدالله بن يوسف. ليث. يزيد. عراک. عروه نه روايت کوي، چه حضور صلي الله عليه وسلّم، ابوبکرؓ ته د، بي بي عائشےؓ خواست اوکه، نو حضرت ابوبکرؓ عرض اوکه، زه خو ستاسو ورور، يم. حضور صلي الله عليه وسلّم جواب ورکه، ته د الله تعالي د، دين او د هغه د کتاب د مخه ځما ورور ئے او بي بي عائشهؓ په ما حلاله ده.

بَاب ۴۱: اِلٰى مَنْ يُنْكِحُ وَاَيُّ النِّسَآءِ خَيْرٌ وَّمَا يُسْتَحَبُّ اَنْ يَّتَخَيَّرَ لِنُطَفِهٖ مِنْ غَيْرِ اِيْجَابٍ.

باب ۴۱: کومے ښځے سره نکاح کول پکار دي، او کومے ښځے ښے دي او خپل نسل د پاره د ښے ښځے د، انتخاب کولو بيان.

۷۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ نِسَآءٍ رَكِبْنَ الْاِبِلَ صَالِحُ نِسَآءِ قُرَيْشٍ اَحْنَاهُ عَلٰى وَلَدٍ فِيْ صِغَرِهٖ وَاَرْعَاهُ عَلٰى زَوْجٍ فِيْ

۷۲: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نارينه د پاره اعلٰي ښځے د قريشو عفيفه ښځے دي. هغوي په خپلو بچو د هغوي کم عمرئ کښې مهربانه وي او د خپل خاوند د،

ذَاتِ يَدِهٖ.

مال زياتے نگهبانے وي.

ف: (۱) عفيفه: پرهيزګارے (۲) نګهبانے: محافظے، حفاظت كونكے.

باب ۴۲: اِتِّخَاذ السَّرَارِيِّ وَمَنْ اَعْتَقَ جَارِيَتَهٗ ثُمَّ تَزَوَّجَهَا.

باب ۴۲: وينزو سره محبت كول، وينزه آزادول او هغے سره د، نكاح د، برترى بيان.

۴۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ صَالِحِ الْهَمْدَانِيُّ حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا رَجُلٍ كَانَتْ عِنْدَهٗ وَلِيْدَةٌ فَعَلَّمَهَا تَعْلِيْمَهَا وَ اَدَّبَهَا فَاَحْسَنَ تَاْدِيْبَهَا ثُمَّ اَعْتَقَهَا وَتَزَوَّجَهَا فَلَهٗ اَجْرَانِ وَاَيُّمَا رَجُلٍ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اٰمَنَ بِنَبِيِّهٖ وَاٰمَنَ بِيْ فَلَهٗ اَجْرَانِ وَاَيُّمَا مَمْلُوْكٍ اَدّٰى حَقَّ مَوَالِيْهِ وَحَقَّ رَبِّهٖ فَلَهٗ اَجْرَانِ قَالَ الشَّعْبِيُّ خُذْهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ قَدْ كَانَ الرَّجُلُ يَرْحَلُ فِيْمَا دُوْنَهٗ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ حَصِيْنٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْتَقَهَا ثُمَّ اَصْدَقَهَا.

۴۷: موسى بن اسماعيل. عبدالواحد. صالح همداني. شعبي. ابوبردهؓ نه روايت كوي. خما پلار د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكه، كوم سړي سره چه وينزه وي، او هغه، هغے ته (د، ضروري مسائلو) ښه تعليم وركړلو. او ښه آدب ئے ورته اوښودلو، بيائے هغه آزاده كړه، نكاح ئے ورسره اوكړه. هغه ته به دوچند ثواب حاصليږي او څوک چه د، اهل كتابو نه په خپل نبيّ او په ما ايمان راوړي، هغه ته به دوچند ثواب حاصليږي. او كوم غلام چه د خپل مالک او د خپل خدائے حق ادا كوي، نو هغه له هم دوچند ثواب دے. شعبي تپوس كونكي (سائل) ته اووے، خه، دا حديث ويړيا (مفتوكښې) د سفر وغيره د تكليف اوچتولو بغير يوسه. مخكښې زمانه كښې به دے نه د، كمتر مضمون حديث د پاره مدينے ته سفر كولے شو. ابوبكر وائي. ابو حصين نه روايت دے، هغه د، ابوبرده خپل پلار نه، او هغه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، چه وينزه ئے آزاده كړه، او بيائے هغے له مهر هم وركړلو.

۴۸: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ تَلِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۸: سعيد بن تليد. ابن وهب. جرير بن حازم. ايوب. محمد. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (دويم سند) سليمان. حماد بن زيد. ايوب. محمد. د ابوهريرهؓ نه روايت كوي حضرت ابراهيم عليه السلام ماسوا، د، درے خله نه هيڅ كله دوه

وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ حَمَّادِ ابْنِ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيْمُ مَرَّ بِجَبَّارٍ وَمَعَهُ سَارَةُ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ فَأَعْطَاهَا هَاجَرَ قَالَتْ كَفَّ اللّٰهُ يَدَ الْكَافِرِ وَأَخْدَمَنِيْ آجَرَ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَتِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِيْ مَآءِ السَّمَآءِ.

معنٰي خبره نه وه کړې. ناساپه يو ځل حضرت ابراهيم عليه السلام يو جابر بادشاه طرف ته ورغې، هغه وخت هغوي سره (خپله ښځه) بي بي سارهؓ هم وه. هغې بادشاه بي بي سارې ته بي بي هاجره خدمت د پاره ورکړه. بي بي سارې عرض اوکه. اللّٰه د کافر نه زه بچ کړم، بلکه هغه خدمت د پاره ماته هاجرهؓ راکړله. ابوهريرهؓ اووې، چه اې د آسمان د اوبو اولاده، دا هاجرهؓ ستاسو مور ده.

۵۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِيْنَةِ ثَلٰثًا يُبْنٰى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِيْنَ إِلٰى وَلِيْمَتِهِ فَمَا كَانَ فِيْهَا مِنْ خُبْزٍ وَّلَا لَحْمٍ أُمِرَ بِالْأَنْطَاعِ فَأُلْقِيَ فِيْهَا مِنَ التَّمْرِ وَالْأَقِطِ وَالسَّمْنِ فَكَانَتْ وَلِيْمَتَهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُوْنَ إِحْدٰى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ أَوْ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِيْنُهُ فَقَالُوْا إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ مِنْ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ.

۵۷: قتيبه. اسماعيل بن جعفر. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر او مدينې مينځ کښې درې ورځو پورې قيام اوکه، هلته ئې بي بي صفيهؓ بنت حي سره خلوت اوکه، او خپله ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د، وليمې د پاره خلق راوغوښتل، هغه وخت هغې کښې روټې او غوښه هيڅ نه وه، حضورؐ د، دسترخوان د، غوړولو حکم اوکړلو، په هغې قجورې، پنير او چربي کيښودې شوه. دا، د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم وليمه (د، واده ډوډي) وه. خلقو خپلو کښې اووې، آيا دا، به د حضورؐ په بيبيانو کښې شمار، وي، يا، وينزو کښې. هغوي سوچ اوکه، که حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د، بي بي صفيېؓ د پاره د پردې حکم اوکه، نو بيا دا، د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بي بي ګڼړل پکار دي، اوکه بي بي صفيېؓ د پاره ئې د، پردې حکم اونه که، نو بيا، ئې وينزه ګڼړل پکار دي. بيا چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم کوچ اوکه، نو بي بي صفيېؓ د پاره ئې په اُوښ خان پسې شاته ځائې باندې پرده کړې وه.

باب ۴۳: مَنْ جَعَلَ عِتْقَ الْاَمَةِ صَدَاقَهَا.

باب ۴۳: وينزه آزادول (يعني د هغې آزادي) د هغې د مهر مقرر كيدو بيان.

۷۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ وَشُعَيْبِ بْنِ الْحَبْحَابِ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا.

۷۶: قتيبه بن سعيد. حماد. ثابت. شعيب بن حجاب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم بي بي صفيهؓ ازاده كړه، او د هغې آزادي ئې د هغې مهر مقرر كړلو.

باب ۴۴: تَزْوِيْجِ الْمُعْسِرِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ.

باب ۴۴: د نادار، د، نكاح كولو بيان، په بناء، د، فرمان الٰهي، كه هغوي نادار وي، نو اللّٰه به خپل فضل سره هغوئ مالدار كړي.

۷۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جِئْتُ اَهَبُ لَكَ نَفْسِيْ قَالَ فَنَظَرَ اِلَيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ فِيْهَا وَصَوَّبَهٗ ثُمَّ طَاْطَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاْسَهٗ فَلَمَّا رَاَتِ الْمَرْاَةُ اَنَّهٗ لَمْ يَقْضِ فِيْهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيْهَا فَقَالَ وَهَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ

۷۷: قتيبه بن عبدالعزيز بن ابي حازم. معمر. بن دينار. سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي، يوه ښځه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت كښې حاضره شوه او عرض ئې اوكه، يا رسول اللّٰه زه د خپل ذات (ځان) تاسوّ مالك جوړوم. حضورؐ ورته لاندې باندې اوكتل. او سر مبارك ئې ښكته كړلو. ښځې چه اوليدلو چه حضورؐ هيڅ حكم اونه كړلو، نو هغه كيناسته. بيا د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو صحابي راپاسيد، عرض ئې اوكه، يا رسول اللّٰه، كه تاسو ته حاجت نه وي، نو ددې نكاح ماسره اوكړئ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ترې تپوس اوكه، تا سره څه (مال متاع) شته، هغه اووې هيڅ راسره نشته. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړ شه خپل كور كښې اوګوره شايد، څه درته په لاس درشي. هغه لاړ. بيا واپس راغې. او عرض ئې اوكه. په اللّٰه م دې قسم وي، ماته هيڅ په لاس رانغلل، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړ شه،

قَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ اذْهَبْ إِلَى أَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ وَلٰكِنْ هٰذَا إِزَارِيْ قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتّٰى إِذَا طَالَ مَجْلِسُهُ قَامَ فَرَآهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَعِيَ سُوْرَةُ كَذَا عَدَّدَهَا فَقَالَ تَقْرَؤُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ.

اوګوره، خواه د اوسپنې ګوته ولې نه وي. هغه لاړ. بيا واپس راغے، عرض ئې اوکړ، قسم په خدائے چه، د اوسپنې ګوته هم راکره نشته، البته صرف خما دا تهبند موجود دے. سهل وائي، هغه سره دونم څادر هم نه وو، ليکن هغه اووے، تاسو نيم تهبند دے ته ورکړے نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه به ستا په دے تهبند څه اوکړي، که ته ئې اغندے، نو هغه بربنډه پاتے کيږي، او که هغه ئې اغندي نو ته بربنډ پاتے کيږے آخر هغه نااميده شو، کيناست، او ډير وخته پورے ناست وو، بيا هغه تلو د پاره پاسيد، رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه هغه اوليد چه اوس ځي، نو ورته ئې اوفرمائيل، تاته د قرآن کوم کوم آيتونه ياد، دي، هغه اووے فلاني فلاني سورتونه راته ياد دي، چه هغه په شمار اوښودل، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا ته دا په ياد، وائې. هغه جواب ورکه، جي، او بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د قرآن شريف د برترئ په باعث ما، ته ددے ښځے مالک جوړ کړلے، او تاسره م ددے نکاح اوکړله.

**بَابٌ ۴۵: الْأَكْفَاءُ فِي الدِّيْنِ.** وَقَوْلُهُ وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَّصِهْرًا وَّكَانَ رَبُّكَ قَدِيْرًا.

**باب ۴۵:** نسب او خاندان کښې د اسلام او ديندارۍ د لزوم (لازم کيدو) بيان. نسب او صهر او کفر طرف ته اشاره ده. د کفو او کفايت معني نسب او خاندان. صهر: دامادي (خوم توب).

۷۸: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أَبَا حُذَيْفَةَ بْنَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ

۷۸: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. بي بي عائشې نه روايت کوي، ابو حذيفه بن ربيعه بن عبد شمس چه جنګ بدر کښې حاضر وو، سالم ئې خوئے جوړ که، او هغه ته ئې خپله وريره (جتيجي)

ابْنِ عَبْدِ شَمْسٍ وَ كَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَنَّى سَالِمًا وَ اَنْكَحَهُ بِنْتَ اَخِيْهِ هِنْدَ بِنْتَ الْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَهُوَ مَوْلًى لِامْرَاَةٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ كَمَا تَبَنَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَ كَانَ مَنْ تَبَنَّى رَجُلًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ اِلَيْهِ وَ وَرِثَ مِنْ مِّيْرَاثِهِ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ مَوَالِيْكُمْ فَرُدُّوْا اِلٰى اٰبَآئِهِمْ فَمَنْ لَّمْ يُعْلَمْ لَهُ اَبٌ كَانَ مَوْلًى وَ اَخًا فِي الدِّيْنِ فَجَآءَ تْ سَهْلَةُ بِنْتُ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ ثُمَّ الْعَامِرِيِّ وَهِيَ امْرَاَةُ اَبِيْ حُذَيْفَةَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا نَرٰى سَالِمًا وَلَدًا وَقَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ مَا قَدْ عَلِمْتَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

هنده، دختر (لور) ولید بن عتبه بن ربیعه په نکاح کړله، سالم د یو انصاري غلام وو. حضور صلي الله علیه وسلّم زیدؓ خوئے جوړ کړے وو. د جاهلیت زمانه کښ قاعده وه چه څوک به چا خوئے جوړ کړلو، نو خوئے جوړونکے ته به منسوب کیدلو او په هغه نوم به ئے بللو، او د هغه د مرګ نه پس به د، دولت وغیره هغه خوئے وارث کیدلو: ادعوهم لأبائهم الخ: (هر سړے د هغه د پلار په نوم بلئے دا، د، الله په نزد بهتره ده، که تاسو د هغوي پلرونه، نه پیژنئے، نو هغوي ستاسو دیني وروڼه او مولي دي) ددے فرمان الٰهي د، نزول نه پس هغوي ټول د خپل حقیقي پلرونو په نومونو بللے شو. او که د چا نوم به معلوم نه وو، نو هغه ته به مولي او دیني وروړ وئیلے شو، سهله دختر (لور) سهیل بن عمرو قریش ثم العامري د، ابو حذیفه ښځے حضور صلي الله علیه وسلّم ته عرض او که، یا رسول الله، مونږ سالم خپل خوئے ګڼړلو. اوس چه الله کوم حکم رالیږلے دے. ددے پیش نظر (ماله څه کول پکار دي) بیائے پوره حدیث بیان که.

۴۷۶۹: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ فَقَالَ لَهَا لَعَلَّكِ اَرَدْتِ الْحَجَّ قَالَتْ وَاللّٰهِ لَا اَجِدُنِيْ اِلَّا وَجِعَةً فَقَالَ لَهَا حُجِّيْ وَاشْتَرِطِيْ قُوْلِيْ اَللّٰهُمَّ مَحِلِّيْ حَيْثُ

۴۷۶۹: عبید. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم، ضباعه بنت (لور) زبیر بن عبدالمطلب نه تپوس او که. آیا ته حج کولو له ځے. هغے اووے، جي، او. خو ماته د سخت درد بیماري شوے ده. په دے حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، ته حج ته لاړه شه، او شرط اوکړه، چه اے الله خما د، احرام نه د بهر کیدو ځائے هغه دے کوم ځائے ته چه ته ما، خما د بیماري د عذر په

خَمْسَتَيْنِ وَكَانَتْ تَحْتَ الْمِقْدَادِ ابْنِ الْأَسْوَدِ.

۸۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُنْكَحُ الْمَرْاَةُ لِاَرْبَعٍ لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَجَمَالِهَا وَلِدِيْنِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّيْنِ تَرِبَتْ يَدَاكَ.

۸۱: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا تَقُوْلُوْنَ فِيْ هٰذَا قَالُوْا حَرِيٌّ اِنْ خَطَبَ اَنْ يُّنْكَحَ وَاِنْ شَفَعَ اَنْ يُّشَفَّعَ وَاِنْ قَالَ اَنْ يُّسْتَمَعَ قَالَ ثُمَّ سَكَتَ فَمَرَّ رَجُلٌ مِّنْ فُقَرَآءِ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ مَا تَقُوْلُوْنَ فِيْ هٰذَا؟ قَالُوْا حَرِيٌّ اِنْ خَطَبَ اَنْ لَّا يُنْكَحَ وَاِنْ شَفَعَ اَنْ لَّا يُشَفَّعَ وَاِنْ قَالَ اَنْ لَّا يُسْتَمَعَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا خَيْرٌ مِّنْ مِّلْءِ الْاَرْضِ مِثْلَ هٰذَا.

## بَابُ ۴۶: اَلْاَكْفَآءِ فِي الْمَالِ وَتَزْوِيْجِ الْمُقِلِّ

وجه منع کړے (روک دیگا) دا بي بي ضباعه د مقداد بن اسود په نکاح کښې وه.

۸۰: مسدد. يحيي. عبيدالله. سعيد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د، نکاح په وخت د ښځے څلور خبرے کتلے شي. (۱) مال (۲) نسب (۳) خوبصورتي (۴) دين. تاسو ديندار حاصلول پکار دي (که ته اونه منے) نو ستا دواړه لاسونه دِ په خاورو ککړ، وي.

۸۱: ابراهيم. ابو حازم. سهل نه روايت دے. د حضور صلي الله عليه وسلّم خوا کښې يو سړے تير شو. نو حضورؐ تپوس اوکه، تاسو دے څنګه ګنړئے، هغوي جواب ورکه، که چرته نسبت ئے اوشي، نو د نکاح کولو لايق دے. که د چا سفارش اوکړي، نو منظور به کړے شي، اوکه څه خبره اوکړي، نو دل جمعي سره به واوريدے شي، بيا يو بل مسلمان فقير تير شولو، حضور صلي الله عليه وسلّم تپوس اوکه، د، ده متعلق تاسو څه وائے، هغوي (ناستو صحابهؓ) جواب ورکه، که چاته ئے نسبت اوليږلے شي، نو ده سره به نکاح اونه کړي که سفارش اوکړي، نو منظور به نشي. اوکه څه خبره اوکړي، نو توجه به ورنه کړے شي. دے آوريدو سره رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د، ټول روئے زمين د، سرمايه دارو او اميرانو نه دا فقير بهتر دے.

## باب ۴۶: کفاءت (خواري) کښې د مالداري لحاظ او د مفلس مالدارے ښځے سره د نکاح کولو

الْمُثْرِيَةَ.

۸۲: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ وَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لَا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامٰى قَالَتْ يَا ابْنَ أُخْتِيْ هٰذِهِ الْيَتِيْمَةُ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِيْ جَمَالِهَا وَمَالِهَا وَيُرِيْدُ أَنْ يَنْتَقِصَ صَدَاقَهَا فَنُهُوْا عَنْ نِكَاحِهِنَّ إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوْا فِيْ إِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَأُمِرُوْا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ قَالَتْ وَاسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ إِلٰى وَتَرْغَبُوْنَ أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ لَهُمْ أَنَّ الْيَتِيْمَةَ إِذَا كَانَتْ ذَاتَ جَمَالٍ وَمَالٍ رَغِبُوْا فِيْ نِكَاحِهَا وَنَسَبِهَا فِيْ إِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَإِذَا كَانَتْ مَرْغُوْبَةً عَنْهَا فِيْ قِلَّةِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ تَرَكُوْهَا وَأَخَذُوْا غَيْرَهَا مِنَ النِّسَآءِ قَالَتْ فَكَمَا يَتْرُكُوْنَهَا حِيْنَ يَرْغَبُوْنَ عَنْهَا فَلَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَنْكِحُوْهَا إِذَا رَغِبُوْا فِيْهَا إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوْا لَهَا وَيُعْطُوْهَا حَقَّهَا الْأَوْفٰى فِي الصَّدَاقِ.

بيان.

۸۲: يحيى. ليث. عقيل. ابن شهاب نه روايت کوي. د بي بي عائشهؓ په واسطې عروه د: إن خفتم الا تقسطوا في اليتامٰى: مطلب تپوس او که، نو هغې اووې، اې خوريه (بهانجے) دے نه هغه يتيمه جينئ مراد ده، چه چا ولي سره وي، او د هغه د هغې مال او خوبصورتي خوښه وي (او هغه، هغې سره د، نکاح کولو اراده اوکړي) ليکن مهر پوره پوره ادا کول نه غواړي داسي خلق اللّٰه تعالٰي يتيمانو جينکو سره د، نکاح کولو نه منع کړے دي، او د، دوي نه علاوه نورو ښځو سره د نکاح کولو حکم ئې ورکړے دے، خو په شرط ددے چه هغوے ته پوره مهر ادا کولو کښ کمي ونه کړي، بي بي عائشهؓ فرمائي. دے نه پس خلقو د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه فتوي اوغوښتله. اللّٰه عز و جل دا آيت نازل کړلو: يستفتونک في النسآء الخ: د دے مطلب دادے که يتيمه جيني خوبصورته او مالداره وي، نو وليانو ته د هغې نسب او هغې سره نکاح کول مرغوب معلوميږي، او هر کله چه مفلسه او بدصورته وي، نو هغوي، هغه نه خوښوي. بيا هغه، پريږدي او بلې ښځې سره نکاح کوي. بي بي عائشهؓ د آيت مقصود اوښودلو، چه څنګه د ناخوښي، په وجه ئې پريږدئې، دغسې چاسره چه تاسو رغبت دے، هغوي سره نکاح مه کوئې، خو هر کله چه تاسو انصاف کولے شئې، او د هغې پوره پوره د مهر حق ادا کړئې.

باب ۴۷: مَا يُتَّقٰى مِنْ شُؤْمِ

باب ۴۷: د ښځې د، سپيره والي (نحوست) نه

الْمَرْاَةِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ.

د' پرهیز کولو بیان او فرمان الٰهي چه ستاسو بعضے بچي او ښځے ستاسو د پاره دشمنان دي.

۸۳: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ وَسَالِمٍ ابْنَيْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشُّؤْمُ فِي الْمَرْاَةِ وَالدَّارِ وَالْفَرَسِ.

۸۳: اسماعیل. مالک. ابن شهاب. حمزه او سالم د عبداللّٰه بن عمرؓ خوئے عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي. سپیره والے (نحوست) دے درے څیزونو کښ دے (۱) ښځه (۲) کور (۳) اَس.

۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ ابْنُ مُحَمَّدٍ الْعَسْقَلَانِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرُوا الشُّؤْمَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ كَانَ الشُّؤْمُ فِيْ شَيْءٍ فَفِي الدَّارِ وَالْمَرْاَةِ وَالْفَرَسِ.

۸۴: محمد بن منهال. یزید بن زریع. عمر بن محمد عسقلاني د خپل پلار نه' هغه د حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي' د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مخکښ د نحوست ذکر اوشه. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' که نحوست دے نو (۱) کور (۲) ښځه او (۳) اَس کښ دے.

۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْ كَانَ فِيْ شَيْءٍ فَفِي الْفَرَسِ وَالْمَرْاَةِ وَالْمَسْكَنِ.

۸۵: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابي حازم. سهل بن سعد نه روایت کوي' د هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل که سپیره والے (نحوست) څه څیز کښ دے' نو هغه (۱) اَس (۲) ښځه او (۳) مکان کښ دے.

۸۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا عُثْمَانَ النَّهْدِيَّ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۸۶: ادم. شعبه. سلیمان التیمي. ابو عثمان نهدي. اسامه بن زید نه روایت کوي د هغه بیان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' خما نه پس به هیڅ فتنه

قَالَ مَا تَرَكْتُ بَعْدِيْ فِتْنَةً اَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَآءِ.

په سړو (مردوں) د ښځو نه زياته ضرر رسانه باقي پاتې نه شي.

بَاب ۴۸: اَلْحُرَّةُ تَحْتَ الْعَبْدِ.

باب ۴۸: د آزادې ښځې، غلام سره د نکاح کولو بیان.

۸۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ رَبِيْعَةَ ابْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنِ الْقَاسِمِ ابْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ فِيْ بَرِيْرَةَ ثَلٰثُ سُنَنٍ عَتَقَتْ فَخُيِّرَتْ وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَدَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبُرْمَةٌ عَلَى النَّارِ فَقُرِّبَ اِلَيْهِ خُبْزٌ وَاُدْمٌ مِنْ اُدْمِ الْبَيْتِ فَقَالَ لَمْ اَرَا الْبُرْمَةَ فَقِيْلَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ عَلَى بَرِيْرَةَ وَاَنْتَ لَا تَاْكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ هُوَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ.

۸۷: عبدالله بن یوسف. مالک. ربیعه بن ابي عبدالرحمٰن. قاسم. بي بي عائشې نه روایت کوي، د بریرهؓ واقعې کښې درې شرعي مسئلې دي (۱) کوم وخت چه بریرهؓ آزاده کړې شوه، نو سردار عالم اختیار ورکړلو، او رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د ولاء حق د آزاد کونکي دې. او رسول الله علیه وسلّم کور ته تشریف راوړلو، نو وې لیدل چه کټوئې (ہانڈی) په انغري وه. د حضور صلي الله علیه وسلّم مخې ته روټئې او د کور پخکړې کیښودې شو، نو حضورؐ اوفرمائیل څه وجه ده چه په دستر خوان د کټوئې پخکړې په نظر رانغې، جواب ورکړې شو، دې کښې د صدقې غوښه ده، چه بریره ته چا ورکړیده، او تاسوؐ صدقه نه خورئې حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، بریرې د پاره صدقه ده او مونږ د پاره هدیه.

بَاب ۴۹: لَا يَتَزَوَّجُ اَكْثَرَ مِنْ اَرْبَعٍ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ وَقَالَ عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ يَعْنِيْ مَثْنٰى اَوْ ثُلٰثَ اَوْ رُبٰعَ وَقَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ اُولِيْ اَجْنِحَةٍ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ يَعْنِيْ مَثْنٰى اَوْ ثُلٰثَ اَوْ رُبٰعَ.

باب ۴۹: د څلورو ښځو نه د زیاتو نه ساتلو بیان. د الله تعالي قول دوه، دوه، درې درې، څلور څلور. علي بن حسین فرمائې دې نه مراد، دوه، دوه. یا درې، درې. یا څلور، څلور (مجموعه ترې مراد نه ده) امام بخاريؒ د، دې آیت په سند کښې، چه (دوه یا درې یا څلور) ښځې په یو وخت د ساتلو مقصود اوښودلو. او دا آیت ئې پېش که: اولی اجنحةٍ مثنٰی و ثلٰث وَ ربع.

۸۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا

۸۸: محمد عبده. هشام. عروه. بي بي عائشې نه

عَمْرَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ وَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لَا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامٰى قَالَ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ عِنْدَ الرَّجُلِ وَهُوَ وَلِيُّهَا فَيَتَزَوَّجُهَا عَلٰى مَالِهَا وَيُسِيءُ صُحْبَتَهَا وَلَا يَعْدِلُ فِي مَالِهَا فَلْيَتَزَوَّجْ مَا طَابَ لَهُ مِنَ النِّسَاءِ سِوَاهَا مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبَاعَ.

روايت كوي چه: و ان خفتم اَن لا تقسطوا في اليتامٰى: د تفسير نه هغه بچې مراد دي، چه ولي سره وي، او هغه د هغوئ د مال په وجه د هغوي سره واده اوكړي، ليكن صحبت كول ورسره بدګڼړي او د هغوي مال كښې حق تلفي كوي. ددې تولو نازيبا حركاتو نه بنه داده چه هغه ولي د، هغوي نه علاوه بلې ښځې سره چه د هغه خوښه وي دوه يا درې يا څلور نكاح اوكړي.

بَابُ ۵۰: وَأُمَّهَاتُكُمُ الّٰتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَيَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ.

باب ۵۰: د، پـئـې وركونكې مور بيان. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل كومې ښځې چه د نسب په وجه حرام دي، هغه د رضاعت په وجه هم حرامې دي.

۸۹: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَإِنَّهَا سَمِعَتْ صَوْتَ رَجُلٍ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِ حَفْصَةَ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرَاهُ فُلَانًا لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ قَالَتْ عَائِشَةُ لَوْ كَانَ فُلَانٌ حَيًّا لِعَمِّهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ دَخَلَ عَلَيَّ فَقَالَ نَعَمْ الرَّضَاعَةُ تُحَرِّمُ مَا تُحَرِّمُ الْوِلَادَةُ.

۸۹: اسماعيل. مالك. عبدالله بن ابي بكر. عمره بن عبدالرحمٰن. د نبي صلي الله عليه وسلّم ټبر بي بي عائشې نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم څما په كور كښې تشريف فرما وو، دې كښې ما د يو سړي آواز واوريدلو، چه د بي بي حفصې مكان ته د تلو اجازت ئې غوښتلو. نو ما اووې، يا رسول الله، څوك غير سړې ستاسو مكان ته تلل غواړي، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ماته معلومه ده، چه دا فلانې سړې دې چه د بي بي حفصې رضاعي تره (چچا) دې. بي بي عائشې تپوس اوكه، كه فلانې سړې ژوندې وې، چه څما د پيو د، رشتې نه تره (چچا) وو، نو آيا ما به د هغه نه پرده نه كوله حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل كومه رشته چه نسب سره حرام ده، هغه پيو څكلو سره هم حرام كيږي.

۹۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۹۰: مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. جابر بن

يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قِيْلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تَزَوَّجُ ابْنَةَ حَمْزَةَ قَالَ اِنَّهَا ابْنَةُ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ وَقَالَ بِشْرُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ زَيْدٍ مِثْلَهُ.

زيد. ابن عباسؓ روايت كوي' چـا رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم ته اووے تاسوٌ د حمزهٔ لور سره واده ولے نه كونيے' حضور صلي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' هغه د' پيؤ د' رشتے نه خما وريره (بھتیجی) ده' او بشر بن عمر اووے' مونږ ته شعبه بيان اوكه ما د قتادهٌ نه واوريدل چه هغه د جابر بن زيد نه د دے په مثل روايت كولو.

۱ ۹ : حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ بِنْتَ اَبِيْ سُفْيَانَ اَخْبَرَتْهَا اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ انْكِحْ اُخْتِيْ بِنْتَ اَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ اَوَ تُحِبِّيْنَ ذٰلِكَ فَقُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَ اُحِبُّ مَنْ شَارَكَنِيْ فِيْ خَيْرٍ اُخْتِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ ذٰلِكَ لَا يَحِلُّ لِيْ قُلْتُ فَاِنَّا نُحَدَّثُ اَنَّكَ تُرِيْدُ اَنْ تَنْكِحَ بِنْتَ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ بِنْتَ اُمِّ سَلَمَةَ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ لَوْ اَنَّهَا لَمْ تَكُنْ رَبِيْبَتِيْ فِيْ حَجْرِيْ مَا حَلَّتْ لِيْ اِنَّهَا لَابْنَةُ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ اَرْضَعَتْنِيْ وَاَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَ لَا

۱ ۹ : حكم بن نافع. شعيب. زهري. عروه بن زبير. زينت بنت ابي سلمه. حبيبه بنت ابو سفيان نه روايت كوي' هغے اووے' يا رسول اللّه' تاسوٌ خما خور' دختر (لور) ابوسفيان سره نكاح اوكړے. ارشاد اوشو' تاته به بنه (سوكن) ناگواره نامعلوميږي. ما عرض اوكه چه اوس خو هم زه ستاسوٌ يواځي ښځه نه يم بلكه زه خو خپله خور په نيكو (بھلائیوں) كښ خپله شريكه جوړول غواړم. په دے خبره حضور صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. ماله دا جائز نه دي چه دوه خويندے په يو وخت خپلے نكاح كښ اوساتم' په دے خبره ما اووے' مونږ خو اوريدلے دي' چه تاسوٌ د' ابو سلمه لور سره نكاح كول غواړے حضور صلي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' د ابو سلمه لور سره؟ ما اووے' او' نو حضور صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل' كه د ورمبني خاوند نه د ښځے لور هغه نه وے نو بيا هم هغه ماله حلاله نه ره' ځكه چه رضاعت سره هغه زما وريره (بھتیجی) ده. ما او ابوسلمه ته ثوبيه پئے راكړے دي. ماته' ته خپلے خويندے او لونړه مه پيش كوه' ځكه چه هغه ما د پاره حلالے نه دي. عروه وائي. ثوبيه د ابولهب وينزه وه' چ

أَخَوَاتِكُنَّ قَالَ عُرْوَةُ وَثُوَيْبَةُ مَوْلَاةٌ لِأَبِي لَهَبٍ كَانَ أَبُو لَهَبٍ أَعْتَقَهَا فَأَرْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا مَاتَ أَبُو لَهَبٍ أُرِيَهُ بَعْضُ أَهْلِهِ بِشَرِّ حِيبَةٍ قَالَ لَهُ مَاذَا لَقِيتَ قَالَ أَبُو لَهَبٍ لَمْ أَلْقَ بَعْدَكُمْ غَيْرَ أَنِّي سُقِيتُ فِي هٰذِهِ بِعَتَاقَتِي ثُوَيْبَةَ.

هغه ابو لهب آزاده کړه، بیا هغې حضور صلي الله علیه وسلّم له پئې ورکړې وو. کوم وخت چه ابولهب مړ شو، نو چا کوروالو هغه خوب کښې خراب حال کښې اولید. او تپوس ئې ترې اوکه، تاسره څه معامله اوشوه. جواب ئې ورکه. د کوم وخت نه چه تاسونه جدا شوې یم، سخت عذاب کښې آخته یم. د ثوبیه د ازادولو په وجه لږې شان اوبه راکولې شي، چه هغې سره څما تنده ماته شي.

بَابُ ۵۱: مَنْ قَالَ لَا رَضَاعَ بَعْدَ حَوْلَيْنِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ وَمَا يُحَرِّمُ مِنْ قَلِيلِ الرَّضَاعِ وَكَثِيرِهِ.

باب ۵۱: کوم سړے، چه دا، واني، چه د، دوه کاله عمر نه پس رضاعت (د پئې ورکولو) حرمت ثابت نه دې، ځکه چه اللّٰه تعالیٰ فرمائیلي دي، څوک چه رضاعت پوره کول غواړي، نو د هغې موده دوه کاله ده. او واقعه داده چه د ښځې پئې څکلو سره رضاعت ثابتیږي، خواه لږ وي، یا ډیر.

۹۲: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَشْعَثِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ فَكَأَنَّهُ تَغَيَّرَ وَجْهُهُ كَأَنَّهُ كَرِهَ ذٰلِكَ فَقَالَتْ إِنَّهُ أَخِي فَقَالَ انْظُرْنَ مَنْ إِخْوَانُكُنَّ فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ.

۹۲: ابوالولید. شعبه. اشعث. مسروق. بي بي عائشے نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلّم ما پله تشریف راوړلو، او یو سړے ماسره ناست وو، نو د حضور صلي الله علیه وسلّم مخ مبارک متغیر شولو، ګویا حضور صلي الله علیه وسلّم دا خبره بده وګنړله. نو ما اووې، یا رسول اللّٰه، دا څما رضاعي ورور دې. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، غور اوکه چه ستا ورور څوک څوک دې، ځکه چه د پیو رشته هغه وخت ثابتیږي، هر کله چه د بچي غذا، پئې وي.

بَابُ ۵۲: لَبَنِ الْفَحْلِ.

باب ۵۲: د، ښځې پئې څکلو سره د خاوند، د خوي شمیریدو (حسابیدو) بیان.

۹۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۹۳: عبداللّٰه بن یوسف. مالک ابن شهاب.

يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الْقُعَيْسِ جَآءَ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْهَا وَهُوَ عَمُّهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ بَعْدَ اَنْ نَزَلَ الْحِجَابُ فَاَبَيْتُ اَنْ اٰذَنَ لَهُ فَلَمَّا جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرْتُهُ بِالَّذِىْ صَنَعْتُ فَاَمَرَنِىْ اَنْ اٰذَنَ لَهُ.

عروه بن زبير. بي بي عائشې نه روايت کوي، چه زما د پيو د، ريشتې تره (چچا) د، پردې د حکم نازليدلو نه پس ما پله راغې، نو ما هغه ته دننه د راتللو اجازت ورنه کړه. بيا چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، نو ما حضورٌ ته دا، واقعه بيان کړه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تا به هغه رادننه کړې وو، ځکه چه هغه ستا رضاعي تره (چچا) دې.

بَابٌ ۵۳ : شَهَادَةِ الْمُرْضِعَةِ.

باب ۵۳ : د پئې ورکونکې شهادت سره د رضاعت د ثبوت بيان.

۹۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِىْ مُلَيْكَةَ قَالَ حَدَّثَنِىْ عُبَيْدُ بْنُ اَبِىْ مَرْيَمَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْ عُقْبَةَ لٰكِنِّىْ لِحَدِيْثِ عُبَيْدٍ اَحْفَظُ قَالَ تَزَوَّجْتُ امْرَاَةً فَجَآءَتْ امْرَاَةٌ سَوْدَآءُ فَقَالَتْ اَرْضَعْتُكُمَا فَاَتَيْتُ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ بِنْتَ فُلَانٍ فَجَآءَتْنَا امْرَاَةٌ سَوْدَآءُ فَقَالَتْ لِىْ اِنِّىْ قَدْ اَرْضَعْتُكُمَا وَهِىَ كَاذِبَةٌ فَاَعْرَضَ عَنِّىْ فَاَتَيْتُهُ مِنْ قِبَلِ وَجْهِهٖ قُلْتُ اِنَّهَا كَاذِبَةٌ قَالَ كَيْفَ بِهَا وَقَدْ زَعَمَتْ اَنَّهَا قَدْ اَرْضَعَتْكُمَا دَعْهَا عَنْكَ وَاَشَارَ اِسْمَاعِيْلُ بِاِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى يَحْكِىْ اَيُّوْبَ.

۹۴ : علي بن عبدالله. اسمٰعيل بن ابراهيم. ايوب. عبدالله بن ابي مليکه نه روايت کوي، چه عبيد بن ابي مريم د عقبه بن حارث نه عبدالله او عقبه نه هم دا حديث آوريدلې دې. ليکن ماته د عبيد حديث ښه ياد دې. عقبه وائي. ما يوې ښځې سره نکاح کړې وه. نو يوه حبش (حبشي ښځه) راغله، او هغې اووې، چه ما تاسو دواړو ته پئې درکړې دي، بيا ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوکه. ما فلانئې ښځې سره نکاح کړې وه. خو يوه حبش (حبشي ښځه) راغله، او وئيلې، تاسو دواړه له ما پئې درکړې دي، حالانکه هغه دروغجنه ده، نو حضورٌ مانه مخ واړولو. ما بيا دغه عرض اوکه چه هغه دروغجنه ده، حضورٌ اوفرمائيل، ته خپله ښځه څنګه ساتلې شې، حالانکه حبشۀ وائي، چه ما تاسو دواړو له پئې درکړې دي، دا پريږده اسماعيل د شهادت ګوتې او د مينځ ګوتې سره اشارې سره وښودل چه ايوب داسې بيان کولو.

بَابٌ ۵۴ : مَا يَحِلُّ مِنَ النِّسَآءِ

باب ۵۴ : د حلال او حرام ښځو بيان. الله

وَمَا يَحْرُمُ وَقَوْلِهِ تَعَالَى حُرِّمَتْ
عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ
وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ
وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ إِلَى آخِرِ
الْآيَتَيْنِ إِلَى قَوْلِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا
حَكِيمًا وَقَالَ أَنَسٌ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ
النِّسَاءِ ذَوَاتُ الْأَزْوَاجِ الْحَرَائِرُ حَرَامٌ
إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ لَا يَرَى بَأْسًا أَنْ
يَنْزِعَ الرَّجُلُ جَارِيَتَهُ مِنْ عَبْدِهِ وَقَالَ
وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا زَادَ عَلَى أَرْبَعٍ
فَهُوَ حَرَامٌ كَأُمِّهِ وَابْنَتِهِ وَأُخْتِهِ وَقَالَ
لَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى
ابْنُ سَعِيدٍ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي
حَبِيبٌ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ
حَرُمَ مِنَ النَّسَبِ سَبْعٌ وَمِنَ الصِّهْرِ
سَبْعٌ ثُمَّ قَرَأَ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ
الْآيَةَ وَجَمَعَ عَبْدُ اللَّهِ ابْنُ جَعْفَرٍ بَيْنَ
ابْنَةِ عَلِيٍّ وَامْرَأَةِ عَلِيٍّ وَقَالَ ابْنُ
سِيرِينَ لَا بَأْسَ بِهِ وَكَرِهَهُ الْحَسَنُ مَرَّةً
ثُمَّ قَالَ لَا بَأْسَ بِهِ وَجَمَعَ الْحَسَنُ ابْنُ
الْحَسَنِ ابْنِ عَلِيٍّ بَيْنَ ابْنَتَيْ عَمٍّ فِي
لَيْلَةٍ وَكَرِهَهُ جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ لِلْقَطِيعَةِ
وَلَيْسَ فِيهِ تَحْرِيمٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَأُحِلَّ
لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَلِكُمْ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ
إِذَا زَنَى بِأُخْتِ امْرَأَتِهِ لَمْ تَحْرُمْ عَلَيْهِ

تعالٰی فرمائي، خلقو، په تاسو دا ښځې حرام دي: مور، خور، لور، ترور (پهوپهي) خاله، وریره، خورزه. انسؓ وائي: والمحصنات مِنَ النسآء: نه آزادې خاوند والې ښځې مراد دي، چه حرام دي او وینزې حلالې دي. که یو سړے خپله وینزه د هغې د خاوند نه خلاصه کړي چه غلام دے، نو هیڅ خوف نشته، ځکه چه اللّٰه تعالٰی فرمائي. مشرکو ښځو سره د، ایمان راوړلونه بغیر نکاح کول جائز نه دي. ابن عباسؓ وائي. د نسب نه اوه ښځې حرام دي (چه د هغې ذکر اوس اوشو) او د سسرالي رشتې ذریعې سره اوه حرام دي. بیائې آیت: حرّمت علیکم امّهٰتکم: آخر پورې واورولو او عبداللّٰه بن جعفر د عليؓ لور او ښځه خپله نکاح کښې جمع کړې وې. ابن سیرین اووے، ددې هیڅ خوف نشته. حسن بصري اولا دا مکروه ګنړلې وو، په دې وجه ئې اوفرمائیل، هیڅ ویره (خوف) نشته. حسن بن حسن بن عليؓ بن ابي طالب په یوه شپه دوه چچا زاد خویندې جمع کړې. جابر بن زید د، قطع رحمي د، وجې نه دا مکروه اوګنړل او حرام ئې ورته اونه وې. ځکه چه د اللّٰه تعالٰی ارشاد دے چه د ذکر شوې محرماتو نه علاوه باقي ښځې حلالې دي. ابن عباسؓ وائي که د ښځې خور (سالي) سره زنا اوکړي. نو ښځه یې نه حرام کیږي (ځکه چه دوو خویندو کښې یوې سره نکاح شوې وي، بیا دونیمې سره اوکړي نو ورمنې حرا سه شي. زنا

| | |
|---|---|
| إِمْرَأَتُهُ وَيُرْوٰى عَنْ يَحْيَى الْكِنْدِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَأَبِيْ جَعْفَرٍ فِيْ مَنْ يَلْعَبُ بِالصَّبِيِّ إِنْ أَدْخَلَهُ فِيْهِ فَلَا يَتَزَوَّجَنَّ أُمَّهُ وَيَحْيٰى هٰذَا غَيْرُ مَعْرُوْفٍ لَمْ يُتَابَعْ عَلَيْهِ وَقَالَ عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِذَا زَنٰى بِهَا لَا تَحْرُمُ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ وَيُذْكَرُ عَنْ أَبِيْ نَصْرٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ حَرَّمَهُ وَأَبُوْ نَصْرٍ هٰذَا لَمْ يُعْرَفْ بِسَمَاعِهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَيُرْوٰى عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ وَجَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَالْحَسَنِ وَبَعْضِ أَهْلِ الْعِرَاقِ تَحْرُمُ عَلَيْهِ وَقَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ لَا تَحْرُمُ عَلَيْهِ حَتّٰى يُلْزِقَ بِالْأَرْضِ يَعْنِيْ تُجَامِعُ وَجَوَّزَهُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَعُرْوَةُ وَالزُّهْرِيُّ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ قَالَ عَلِيٌّ لَا تَحْرُمُ وَهٰذَا مُرْسَلٌ. | سره نه حرام کیږي) یحیٰي کندي پـه ذریعـه د، شعبـي او ابـي جعفـر نـه روایت کوي، کـه یو سړي جینـۍ سـره د قبیح فعل مـرتکب شي، نو پـه هغه د هغې جینـۍ مور حـرامـه شي، او بیا د هغې مور سره هغـه نکـاح نشي کولے یحیٰي څـه مشهور شخصیت نـه دے. او هیـڅـا (دے روایت کښې) د هغه متابعت نـه دے کـړے. عکـرمـه، ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه اوورے، چـه د ښځے خـور (سالي) سره زنا کولو باندے ښـځه هم حرام کیږے. عمران بن حصین او جابر بن زید او حسـن او بـعـضـے عراقیانو نه روایت دے. چه دا ټول حـرام دي. ابـوهـریـرهؓ وائي (نظر کولو سره د مصاهرت حـرمـت نه ثابتیږي) څو پورے چه هم بستري اونه کړے شي. ابـن مسیـب، عـروه او زهـري اووے. د ښځے مور وغیـره سـره زنـا کـولو سره ښځه نه حرام کیږي. زهري وائي، حـضـرت عـلـيؓ اوفـرمـائیل. حرام کیږي نه او د، زهري قول مرسل دے. |

ف: (۱) پهوپهي د پـلار خـور (تـرور). (۲) خاله: د مور خور (ترور) مامي. (۳) سسرالي: سخرګني. د خاوند د پاره د ښځے پلارګني، او د ښځے د پاره د خاوند پلارګني. (۴) مصاهرت: سخر کول، زوم کول. دا لفظ دوارو معنو کښې راځي.

| | |
|---|---|
| **باب ۵۵: وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِيْ فِيْ حُجُوْرِكُمْ مِنْ نِّسَآئِكُمُ اللَّاتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الدُّخُوْلُ وَالْمَسِيْسُ وَاللِّمَاسُ هُوَ الْجِمَاعُ وَمَنْ قَالَ بَنَاتُ وَلَدِهَا مِنْ بَنَاتِهِ فِي التَّحْرِيْمِ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ** | **باب ۵۵: ستاسو هغه لونړه چه ستاسو د** وړومبني خاوند نه دي، پـه تاسو د هغې د حرام کیدو بیان. ابـن عبـاسؓ وائي. دخول مسیس او طاس معني د، جمـاع (صحبت، کوروالي) دي. او، ونیلے د ښځے نوسـنے (پوتیاں اونواسیاں) هم د هغے د اولاد پـه شان حـرامـے دي. ځکـه چـه حضور صلي الله علیه وسلّم اُم حبیبـه تـه ارشـاد اوفـرمـائیل، چه ته ماته خپلے لونړه او |

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُمِّ حَبِيْبَةَ لَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَكَذٰلِكَ حَلَائِلُ وَلَدِ الْاَبْنَاءِ هُنَّ حَلَائِلُ الْاَبْنَاءِ وَهَلْ تُسَمَّى الرَّبِيْبَةُ وَاِنْ لَمْ تَكُنْ فِيْ حَجْرِهٖ دَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبِيْبَةً لَهُ اِلٰى مَنْ يَكْفُلُهَا وَسَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَ ابْنَتِهٖ ابْنًا.

خوينډې مه پيش کوه' او دغه شان د' نوسي ښځه او د خوي ښځه برابر دي. او' وئيلې' دا قول لفظ ربيبه سره نامزد دي' خواه غير (گور) کښې وي' يا نه وي. حضور صلي الله عليه وسلّم خپله ربيبه د هغې يو (رشته دار) کفالت کونکې ته ورکړې وه. او حضور صلي الله عليه وسلّم خپل نمسې د خوي لفظ سره موسوم کړې دې. حاصل دا چه د هر قسم لور او د هر قسم مور او د هر قسم خور حرام ده.

ف: ربيبه. د' ورمبني خاوند لور' چه ښځه ئې خان سره د' دونم خاوند کور ته راولي.

٩٥ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ لَكَ فِيْ بِنْتِ اَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ فَاَفْعَلُ مَا ذَا قُلْتُ تَنْكِحُ قَالَ اَتُحِبِّيْنَ؟ قُلْتُ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَاَحَبُّ مَنْ شَرِكَنِيْ فِيْكَ اُخْتِيْ قَالَ اِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِيْ قُلْتُ بَلَغَنِيْ اَنَّكَ تَخْطُبُ دُرَّةَ بِنْتَ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ ابْنَةَ اُمِّ سَلَمَةَ؟ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ لَوْ لَمْ تَكُنْ رَبِيْبَتِيْ مَا حَلَّتْ لِيْ اَرْضَعَتْنِيْ وَاَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا اَخَوَاتِكُنَّ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ دُرَّةُ بِنْتُ اَبِيْ سَلَمَةَ.

٩٥ : حميدي. سفيان. هشام. عروه. زينب. اُم حبيبهؓ نه روايت دې' ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته اووې' آيا ستاسو زما خور بنت ابو سفيان ته رغبت شته. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زه څه اوکړم. ما ورته اووې. نکاح ورسره اوکړئې' نو حضور صلي الله عليه وسلّم راته اوفرمائيل' ته په دې راضي ئې. ما اووې' آيا زه ستاسو يو ښځه يم څه؟ (يعني نورې ښځې خو' دې هم شته) زه خپله خور ستاسو په زوجيت کښې راوستل د تولونه زياته خوښوم. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه ما د پاره حلاله نه ده. ما' اووې' مونږ خو' خبر شوي يو چه تاسو خپله ربيبه دره' د' ابو سلمه لور ته د' نکاح پيغام ليږلې دې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' که هغه ځما کورته نه راتلې' نو بيا هم په ما حلاله نه وه' ځکه چه ماته او د هغې پلار ته ثوبيه پئې راکړې دي' ماته خپلې خوينډې او لونړه مه پيش کوه. ليث وائي. مونږ هشام ته دا بيان اوکه. او دره ئې د ابو سلمه لور اوښودله.

بَابٌ ٥٦: وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ.

باب ۵۶: د، الله تعالىٰ فرمائيل، په تاسو حرام دي، چه دوه خويندې يو نكاح كښې اوساتئې، خو چه څه تير شو، هغه تير شو.

٩٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ أَبِيْ سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أُمَّ حَبِيْبَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ انْكِحْ أُخْتِيْ بِنْتَ أَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ وَتُحِبِّيْنَ قُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ بِمُخْلِيَةٍ وَأَحَبُّ مَنْ شَارَكَنِيْ فِيْ خَيْرٍ أُخْتِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ ذٰلِكَ لَا يَحِلُّ لِيْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَوَاللّٰهِ إِنَّا لَنَتَحَدَّثُ أَنَّكَ تُرِيْدُ أَنْ تَنْكِحَ دُرَّةَ بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَ بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ؟ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَوَاللّٰهِ لَوْ لَمْ تَكُنْ فِيْ حَجْرِيْ مَا حَلَّتْ لِيْ إِنَّهَا لَابْنَةُ أَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ أَرْضَعَتْنِيْ وَأَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ.

۹۶: عبدالله بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب نه روايت كوي، عروه بن زبير د بنت (لور) ابو سلمه په ذريعه اووې، چه ماته أم حبيبهؓ خبر راكه، هغه وائي ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته اووې، چه تاسوّ زما خور، بنت ابو سفيان سره نكاح اوكړئې. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اووې. ستا داسې خوښه ده. هغې اووې، او. او دا، وخت هم زه ستاسوّ يوه ښځه نه يم، بلكه ستاسوّ نورې ببيانې هم شته. او څوک چه نيكي كښې ما سره شريک شي، هغې كښې د ټولونه زياته ماته خپله خور ښه لږي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه ما د پاره حلاله ده. ما اووې، په الله مِ دې قسم وي، مونږ اوريدلې دي، چه تاسوّ د ابو سلمه لور سره نكاح كول غواړئې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ايا هغه د ام سلمهؓ لور ده. ما اووې، جي. او. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، قسم په خدائې، ضرور، كه څما ربيبه (د بل خاوند نه ښځې سره راغلې لور) نه وې او د هغې باوجود هم هغه ما د پاره حلاله نه ده، څكه چه هغه د پيؤ د رشتې نه څما وريره (بھتیجی) ده، ماته او ابو سلمه ته ثوبيه (د، ابو لهب وينزه چه ورستو ازاده، كړې شوه) پئې راكړې دي، ته ماته خپلې خويندې او لونړه مه پيش كوه.

بَابٌ ٥٧: لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلٰى عَمَّتِهَا.

باب ۵۷: پهوپهي او وريره په يو نكاح كښې نشي جمع كيدې.

۹۷ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ سَمِعَ جَابِرًا قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُنْكَحَ الْمَرْاَةُ عَلٰى عَمَّتِهَا اَوْ خَالَتِهَا وَقَالَ دَاوٗدُ وَابْنُ عَوْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

۹۷ : عبدان. عبدالله. عاصم. شعبي. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ددې خبرې نه منع فرمائيلې ده، چه يو سړي خپلې خورزې يا وريرې سره نكاح اوكړي. (دا حديث) داؤد بن عون د شعبي نه، هغه د، ابوهريرهؓ نه روايت كړې دې.

۹۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْاَةِ وَعَمَّتِهَا وَلَا بَيْنَ الْمَرْاَةِ وَخَالَتِهَا.

۹۸ : عبدالله بن يوسف. مالک. ابي الزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلې دي، وريره (بھتیجی) او ترور (پھوپھی) نكاح كښې جمع كول نه دي پكار، اونه ترور (خاله) او خورزه جمع كول پكار دي.

۹۹ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَبِيْصَةُ ابْنُ ذُوَيْبٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُنْكَحَ الْمَرْاَةُ عَلٰى عَمَّتِهَا وَالْمَرْاَةُ عَلٰى خَالَتِهَا فَنُرٰى خَالَةَ اَبِيْهَا بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ لِاَنَّ عُرْوَةَ حَدَّثَنِيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ.

۹۹ : عبدان. عبدالله. يونس. زهري. قبيصه بن ذويب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ترور (پھوپھی) باندې د هغې د وريرې سره او، ترور (خاله) باندې د هغې خورزې سره د، نكاح كولو نه منعې فرمائيلې ده (زهري وايي) مونږ د ښځې د پلار د ترور (خاله) هم دغه حكم ګڼړو، ځکه چه عروه ماته. روايت کړې دې. بي بي عائشهؓ فرمائي. کومې ريشتې چه نسب سره حرام دي، هغه رضاعت (يعني پيۍ څکلو) سره هم حرام دي.

## باب ۵۸ : الشِّغَارِ

## باب ۵۸ : د، نكاح شغار (بټه) بيان.

۱۰۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ

۱۰۰ : عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم د

عُمَرَ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الشِّغَارِ وَالشِّغَارُ اَنْ يُّزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهٗ عَلٰى اَنْ يُّزَوِّجَهُ الْاٰخَرُ ابْنَتَهٗ لَيْسَ بَيْنَهُمَا صَدَاقٌ.

نکاح شغار نه منع فرمائیلے ده، او نکاح شغار داده، چه سړے د خپلے لور په دے شرط نکاح او کړي چه هغه بل د خپلے لور، ده سره نکاح او کړے او ددے دواړو مینځ کښ مهر هیڅ نه وي.

## باب ۵۹: هَلْ لِلْمَرْاَةِ اَنْ تَهَبَ نَفْسَهَا لِاَحَدٍ.

## باب ۵۹: د ښځے خپل نفس چاته د، هبه کولو بیان.

۱۰۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَتْ خَوْلَةُ بِنْتُ حَكِيْمٍ مِنَ اللَّاتِيْ وَهَبْنَ اَنْفُسَهُنَّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ ؓ مَا تَسْتَحْيِي الْمَرْاَةُ اَنْ تَهَبَ نَفْسَهَا لِلرَّجُلِ فَلَمَّا نَزَلَتْ تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا اَرٰى رَبَّكَ اِلَّا يُسَارِعُ فِيْ هَوَاكَ رَوَاهُ اَبُوْ سَعِيْدٍ الْمُؤَدِّبُ وَ مُحَمَّدُ ابْنُ بِشْرٍ وَعَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ يَزِيْدُ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ.

۱۰۱: محمد بن سلام. ابن فضیل. هشام. عروه نه روایت کوي چه خوله دختر (لور) د حکیم د هغے ښځو نه وه، چه هغے خپل نفس حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته هبه کړے (ښبلے) وو. بي بي عائشے ؓ اووے، چه ښځے له خپل نفس هبه کولو باندے شرم نه ورځي؟ بیا چه: ترجی من تشآء منهن: واله آیت نازل شولو، نو ما اووے، یا رسول اللّٰه زه ستاسو رب وینم چه هغه ستاسو، د مرضئ موافق حکم کوي. دا حدیث ابو سعید مؤدب، محمد بن بشر، عبده د، هشام د پلار په ذریعه د بي بي عائشے ؓ نه روایت که. یو د بل نه کم و بیش هم بیان کړلو.

## باب ۶۰: نِكَاحِ الْمُحْرِمِ.

## باب ۶۰: د، احرام حالت کښ د، نکاح کولو بیان.

۱۰۲: حَدَّثَنَا مَالِكُ ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو وَحَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ اَنْبَاَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ ؓ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

۱۰۲: مالک بن اسماعیل. ابن عیینه. عمرو بن دینار. جابر بن زید نه روایت کوي، مونږ ته ابن عباس ؓ روایت او که، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د، احرام حالت کښ نکاح کړے ده.

## باب ۶۱: نَهْيِ رَسُوْلِ اللّٰهِ

## باب ۶۱: د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِكَاحِ الْمُتْعَةِ اَخِيْرًا.

وسلّم د، نكاح متعه نه آخر وخت كښې د منع كولو بيان.

۱۰۳ : حَدَّثَنَا مَالِكُ ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ اَنَّهُ سَمِعَ الزُّهْرِيَّ يَقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ وَّاَخُوْهُ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِمَا اَنَّ عَلِيًّا قَالَ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُتْعَةِ وَعَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ زَمَنَ خَيْبَرَ.

۱۰۳ : مالک بن اسمٰعيل. ابن عيينه. زهري. حسن بن محمد بن علي او د هغه ورور عبداللّٰه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، حضرت عليؓ ابن عباسؓ ته اووے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د جنګ خيبر زمانه كښې د نكاح متعه او د خر د غوښے د خوړلو نه منعے فرمائيلے ده.

ف: نكاح متعه: ښځے سره عارضي او، اُوپړه نكاح كول. لږو ورځو يا، مودے د پاره نكاح كول. هغه ښځه چه ورسره متعه او كړے شي. استعمال، فائده، نفع، ميعادي نكاح.

۱۰۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ سُئِلَ عَنْ مُتْعَةِ النِّسَآءِ فَرَخَّصَ فَقَالَ لَهُ مَوْلًى لَهُ اِنَّمَا ذٰلِكَ فِي الْحَالِ الشَّدِيْدِ وَفِي النِّسَآءِ قِلَّةٌ اَوْ نَحْوَهُ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَعَمْ.

۱۰۴ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابي جمره نه روايت كوي، ما د، ابن عباسؓ نه د، نكاح متعه مسئلے تپوس اوكه، نو هغه دا جائز اوښودله. د هغه ازاد كړے غلام اووے. دا خو هغه وخت وو، چه سخت ضرورت وو، او ښځے كمے وے، نو ابن عباسؓ اووے او (هم دغسے ده).

۱۰۵ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو عَنِ الْحَسَنِ ابْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَسَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَا كُنَّا فِيْ جَيْشٍ فَاَتَانَا رَسُوْلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّهُ قَدْ اُذِنَ لَكُمْ اَنْ تَسْتَمْتِعُوْا فَاسْتَمْتِعُوْا وَقَالَ ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنِيْ اِيَاسُ ابْنُ

۱۰۵ : علي. سفيان. عمرو. حسن بن محمد. جابر بن عبداللّٰه او سلمه بن اكوع نه روايت كوي، مونږ يو لښكر كښې وو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ له راغے او ارشاد ئے اوفرمائيلو، تاسو ته د متعه كولو اجازت دركړے شوے دے. تاسو متعه كوئے (بخاريؒ وائي) سلمه بن اكوع روايت كړے دے.

سَلَمَةَ ابْنِ الْاَكْوَعِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا رَجُلٍ وَّامْرَاَةٍ تَوَافَقَا فَعِشْرَةُ مَا بَيْنَهُمَا ثَلٰثُ لَيَالٍ فَاِنْ اَحَبَّا اَنْ يَّتَزَايَدَا اَوْ يَتَتَارَكَا تَتَارَكَا فَمَا اَدْرِيْ اَشَيْءٌ كَانَ لَنَا خَاصَّةً اَمْ لِلنَّاسِ عَامَّةً قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَبَيَّنَهُ عَلِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ مَنْسُوْخٌ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کومه ښځه او سړے چه خپلو کښې موافق شي، نو درے شپو پورے خپلو کښې عشرت کول جائز دي. دے نه پس که کمے زياتے کول غواړي نو هغوئ اختيار لري. معلومه نه ده چه دا متعه خمونږ د پاره خاص وه، يا ټولو خلقو له جائز ده. ابو عبداللّٰه (امام بخاريؒ) فرمائي، حضرت عليؓ دا حکم د، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه منسوخ روايت کړے دے.

## بَاب ۶۲ : عَرْضِ الْمَرْاَةِ نَفْسَهَا عَلَى الرَّجُلِ الصَّالِحِ.

## باب ۶۲ : د ښځے، صالح سړي سره د خپلے نکاح د، خواست کولو د جائز کيدو بيان.

۱۰۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَرْحُوْمٌ قَالَ سَمِعْتُ ثَابِتًا الْبُنَانِيَّ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ اَنَسٍ وَعِنْدَهُ ابْنَةٌ لَهُ قَالَ اَنَسٌ جَآءَتْ امْرَاَةٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْرِضُ عَلَيْهِ نَفْسَهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَكَ بِيْ حَاجَةٌ فَقَالَتْ بِنْتُ اَنَسٍ مَّا اَقَلَّ حَيَاءَهَا وَاسَوْاتَاهُ وَاسَوْاتَاهُ قَالَ هِيَ خَيْرٌ مِنْكِ رَغِبَتْ فِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَضَتْ عَلَيْهِ نَفْسَهَا.

۱۰۶ : علي بن عبداللّٰه مرحوم. ثابت بناني نه روايت کوي، او د حضرت انسؓ لور، انسؓ سره ناسته وه. حضرت انسؓ اوفرمائيل. يوے ښځے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته خپل نفس پيش که. او، وئيلے، يا رسول اللّٰه، ايا تاسوّ ته خما، حاجت شته. د حضرت انس لور، اووے، هغه څنګه بے شرمه ښځه وه. افسوس بے شرمي. بے شرمي. حضرت انسؓ جواب ورکه. هغه تانه بهتره وه، چه هغے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته رغبت اوکه، د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخامخ ئے هغويّ ته خپل ځان پيش که.

۱۰۷ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ اَنَّ امْرَاَةً عَرَضَتْ نَفْسَهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ

۱۰۷ : سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. ابو حازم سهل نه روايت کوي. يوے ښځے د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې خپل ځان پيش که. يو سړي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه، يا رسول اللّٰه ددے نکاح ماسره اوکړئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم

زَوِّجْنِيهَا فَقَالَ مَا عِنْدَكَ قَالَ مَا عِنْدِيْ شَيْءٌ قَالَ اذْهَبْ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِّنْ حَدِيْدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللّٰهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا وَّلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ وَّلٰكِنْ هٰذَا إِزَارِيْ وَلَهَا نِصْفُهُ قَالَ سَهْلٌ وَّمَالَهُ رِدَاءٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ اِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَاِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتّٰى إِذَا طَالَ مَجْلِسُهُ قَامَ فَرَاٰهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَاهُ أَوْ دُعِيَ لَهُ فَقَالَ لَهُ مَا ذَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ فَقَالَ مَعِيَ سُوْرَةُ كَذَا وَسُوْرَةُ كَذَا لِسُوَرٍ يُعَدِّدُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْلَكْنَا كَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

تړې تپوس او که، تاسره څه (مال متاع) شته، هغه اووے، ماسره هيڅ نشته. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړ شه، او ګوره، که د اوسپنے ګوته وي (نو هم بنه ده) هغه لاړ، دوباره راغے، او، ونيلے، يا رسول الله په الله م دے قسم وي، ماته هيڅ په لاس رانغلل، د، اوسپنے ګوته هم راکره نشته، البته خما دا (رنګ) دے. نيم دے له ور کړے، سهل وائي، هغه سره دونم څادر هم نه وو، حضور صلي الله عليه وسلّم جواب ور که، ستا څادر په څه کار راتلے شي، که ته ئے استعمالوے، نو هغه بربنډه کيږي، او که هغه ئے استعمالوي نو ته بربنډ پاتے کيږے. هغه ډير ساعت پورے نااُميده ناست وو، کوم وخت چه تلو نو حضور صلي الله عليه وسلّم راوبلو، ورته ئے اوفرمائيل، تاته د قرآن کوم کوم سورتونه ياد دي، هغه د څو سورتونو نوم واخست، چه فلاني فلاني سورتونه راته ياد دي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ته د قرآن شريف د فضيلت په سبب ددے ښځے مالک کړے شوے.

باب۶۳: عَرْضِ الْاِنْسَانِ ابْنَتَهُ اَوْ اُخْتَهُ عَلٰى اَهْلِ الْخَيْرِ.

باب ۶۳: لور يا خور، يو بزرګ سره د، واده کولو د، خواست کولو بيان.

۱۰۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ ابْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه يُحَدِّثُ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حِيْنَ تَاَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَ مِنْ خُنَيْسِ

۱۰۸: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح بن کيسان. ابن شهاب. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، چه حفصه بنت عمر د، خنيس بن حذافه سهمي خپل خاوند د مرګ نه پس کُنډه (بيوه) شوه، او هغه د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم د، دوستانو، نه وو، او مدينه

بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَكَانَ مِنْ
أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَتُوُفِّيَ بِالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ عُمَرُ
بْنُ الْخَطَّابِ أَتَيْتُ عُثْمَانَ ابْنَ عَفَّانَ
فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَفْصَةَ فَقَالَ سَأَنْظُرُ
فِيْ أَمْرِيْ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ لَقِيَنِيْ
فَقَالَ قَدْ بَدَا لِيْ أَنْ لَّا أَتَزَوَّجَ يَوْمِيْ
هٰذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيْتُ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيْقَ
فَقُلْتُ إِنْ شِئْتَ زَوَّجْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ
عُمَرَ فَصَمَتَ أَبُوْ بَكْرٍ فَلَمْ يَرْجِعْ إِلَيَّ
شَيْئًا وَكُنْتُ أَوْجَدَ عَلَيْهِ مِنِّيْ عَلٰى
عُثْمَانَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَأَنْكَحْتُهَا إِيَّاهُ فَلَقِيَنِيْ أَبُوْ بَكْرٍ فَقَالَ
لَعَلَّكَ وَجَدْتَ عَلَيَّ حِيْنَ عَرَضْتَ
عَلَيَّ حَفْصَةَ فَلَمْ أَرْجِعْ إِلَيْكَ شَيْئًا
قَالَ عُمَرُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ فَإِنَّهُ
لَمْ يَمْنَعْنِيْ أَنْ أَرْجِعَ إِلَيْكَ فِيْمَا
عَرَضْتَ عَلَيَّ إِلَّا أَنِّيْ كُنْتُ عَلِمْتُ
أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ أَكُنْ لِأُفْشِيَ
سِرَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبِلْتُهَا.

۱۰۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا
اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ

کښې وفات شوي وو، عمرؓ بن خطابؓ وائي. ما
عثمان بن عفان ته د حفصےؓ ذکر اوکه، نو هغه
اووے، زه به غور کوم. دے نه پس زه څو ورځے
ايسار ووم. بيا هغه يوه ورځ ما سره يوځائے
شو، او وئيلے، اوس لا ما ته نکاح کول مناسب
نه معلوميږي، حضرت عمر فاروقؓ فرمائي.
بيا ما حضرت ابوبکر صديقؓ ته اووے، که ته
غواړے نو زه به د خپلے لور حفصےؓ نکاح تاسره
اوکړم. ابوبکرؓ خاموش شو. او ماله ئي هيڅ جواب
رانه کړه. ما ته د حضرت عثمانؓ نه هم په هغه زياته
غصه راغله، بيا زه څو ورځے ايسار ووم، چه رسول
اللّٰه عليه وسلّم حفصےؓ د پاره پيغام راواستولو.
ما د حفصےؓ نکاح د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم
سره اوکړله. دے نه پس ماسره ابوبکرؓ يوځائے شو.
نو وئيل ئے. کوم وخت چه تا ماته د حفصےؓ ذکر
اوکه، او ما هيڅ جواب درنه کړلو، نو ته ناراضه
شوے وے. حضرت عمرؓ فرمائي، ما جواب ورکه،
او. نو حضرت ابوبکرؓ اوفرمائيل. ستا خبره قبلولو
کښې ماله انکار نه وو. ليکن زه پوهيدم چه رسول
اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغے ذکر کړے دے،
او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم راز خرگندول
خما مقصود نه وو. که رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه
وسلّم دا، اراده پريښے وے، نو ما به منظوره
کړے وے.

۱۰۹ : قتيبه. ليث. يزيد بن ابي حبيب.
عراک بن مالکؓ نه روايت کوي، ماته زينب بنت

عِرَاكِ ابْنِ مَالِكٍ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ قَالَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا قَدْ تَحَدَّثْنَا اَنَّكَ نَاكِحٌ دُرَّةَ بِنْتَ اَبِيْ سَلَمَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعَلٰى اُمِّ سَلَمَةَ لَوْ لَمْ اَنْكِحْ اُمَّ سَلَمَةَ مَا حَلَّتْ لِيْ اِنَّ اَبَاهَا اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ.

ابو سلمه بيان اوكه، ام حبيبه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته اووې. مونږ آوريدلې دي، چه ستاسو، دره، بنت ابي سلمةؓ سره د، نكاح اراده ده. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا د، ام سلمه موجودګي كښې نكاح كولې شم. كه ما ام سلمةؓ سره نكاح هم نه وې كړې، نو بيا هم هغه زما د پاره حلاله نه وه، ځكه چه د هغې پلار ځما پئې شريك ورور دې.

باب ٦٤ : قَوْلِ اللّٰهِ جَلَّ وَعَزَّ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْ اَنْفُسِكُمْ عَلِمَ اللّٰهُ الْاٰيَةَ اِلٰى قَوْلِهٖ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ اَكْنَنْتُمْ اَضْمَرْتُمْ وَكُلُّ شَيْءٍ صُنْتَهُ وَاَضْمَرْتَهُ فَهُوَ مَكْنُوْنٌ وَقَالَ لِيْ طَلْقٌ.

باب ٦٤ : د، عدّت زمانه كښې علانيه د، كويدن نه د خوف نه كولو بيان. اكننتم: معني تاسو پټ كړلو (او د كوم څيز چه حفاظت كيږي، هغې ته مكنون وئيلې شي) تاسو ته (د ښځو د، عدت زمانه كښې) د هغوي د غوښتلو نه څه خوف نشته، يا كه غواړئې نو خپلو زړونو كښې ئې اوساتئې. الله تعالي پوهيږي چه تاسو د، ذكر كولو نه بغير نه شئې پاتې كيدې، خو خفيه قول و قرار مه كوئې.

۱۱۰ : حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ يَقُوْلُ اِنِّيْ اُرِيْدُ التَّزْوِيْجَ وَلَوَدِدْتُ اَنَّهُ تَيَسَّرَ لِيْ امْرَاَةٌ صَالِحَةٌ وَقَالَ الْقَاسِمُ يَقُوْلُ اِنَّكِ عَلَيَّ كَرِيْمَةٌ وَاِنِّيْ فِيْكِ لَرَاغِبٌ وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَآئِقٌ اِلَيْكِ خَيْرًا اَوْ نَحْوَ هٰذَا وَقَالَ عَطَآءٌ يُعَرِّضُ وَلَا يَبُوْحُ يَقُوْلُ اِنَّ لِيْ حَاجَةً وَاَبْشِرِيْ وَاَنْتِ بِحَمْدِ

۱۱۰ : زائده. منصور. مجاهد. ابن عباسؓ نه روايت كوي د: فيما عرضتم: تفسير كښې فرمائي. چه (يوې ښځې سره ته چه عدت كښې وي) اووائي، ځما د واده كولو اراده ده، او زه غواړم چه څوك نيكه ښځه راته حاصله شي. قاسم وائي (د ايت مطلب دادې) چه څوك اووائي. ته ځما په نزد بزرګه ئې، او زه تا خوښوم. الله دې تاته خير دركړي يا بل څه) دا شان ووائي. عطاء وائي اشارتًا دې اووائي، ظاهراً دې نه وائي بلكه داسې دې اووائي. ماته حاجت دې، تاته دې بشارت وي، اوته د خدائې فضل سره كوته (كوئي) نه

اللّٰهِ نَافِعَةٌ وَّتَقُوْلُ هِيَ قَدْ اَسْمَعُ مَا تَقُوْلُ وَلَا تَعِدُ شَيْئًا وَلَا يُوَاعِدُ وَلِيُّهَا بِغَيْرِ عِلْمِهَا وَاِنْ وَّ اعَدَتْ رَجُلًا فِيْ عِدَّتِهَا ثُمَّ نَكَحَهَا بَعْدُ لَمْ يُفَرَّقْ بَيْنَهُمَا وَقَالَ الْحَسَنُ لَا تُوَاعِدُوْهُنَّ سَرًّا الزِّنَا وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الْكِتَابُ اَجَلَهُ تَنْقَضِي الْعِدَّةُ.

ئے. نو ښځه دے صرف دا' اووائي' زه آورم ليکن څه وعده دے نه کوي' او نه دے ولي بغير د هغه نه څه وائي' نه دے وعده کوي. او که ښځه دَ عدت زمانه کښې د سړي سره وعده اوکړي. د هغے نه پس د هغه سره نکاح اوکړي نو ښځے او سړي کښې جدائي راوستل نه دي پکار. او حسن وائي. د' پټے وعدے نه زنا مراد ده' ابن عباس نه روايت دے چه: حتى يبلغ الكتاب اجله: معني دي. چه څو پورے عدت پوره نه شي.

**ف**: عدت: شمارل' هغه موده چه ښځے ته دَ دويمے نکاح کولو اجازت په کښې نه وي. د طلاقے ښځے د پاره درے مياشتے' کونډے د پاره څلور مياشتے او' لس ورځے. او اميدوارے د پاره تر زيږون يا لنګون' دَ عدت حد مقرر دے. د خاوند نه د' بيليدو نه پس د ښځے د ناستے د' مودے شرعي حد پوره کول.

## باب ٦٥ : النَّظَرِ اِلَى الْمَرْاَةِ قَبْلَ التَّزْوِيْجِ.

## باب ٦٥ : ښځے سره د نکاح کولو نه مخکښې د هغے د' ليدو د' جائز کيدو بيان.

۱۱۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُكِ فِي الْمَنَامِ يَجِيْئُ بِكِ الْمَلَكُ فِيْ سَرَقَةٍ مِنْ حَرِيْرٍ فَقَالَ لِيْ هٰذِهٖ امْرَاَتُكَ فَكَشَفْتُ عَنْ وَجْهِكِ الثَّوْبَ فَاِذَا اَنْتِ هِيَ فَقُلْتُ اِنْ يَّكُ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهٖ.

۱۱۱ : مسدد. حماد بن زيد. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ما ته خوب کښې اوليدے' چه يو فرښتے ريښمينے کپړه کښې ستا تصوير راوړلو. او ما ته ئے اووے. دا ستا بي بي (ښځه) ده. ما ستا د مخ نه کپړه لرے کړه' نو اووم ليدل' چه هغه بعينه ته وے' ما سوچ اوکه' که دا خوب د اللّٰه د طرف نه وي' نو دغسے به کيږي (يعني ته به راته واده کيږے).

۱۱۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ امْرَاَةً جَآءَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۲ : قتيبه. يعقوب. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي. يوے ښځے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه' يا رسول اللّٰه زه خپل نفس تاسو ته هبه کولو د پاره راغلے يم. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه

وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ جِئْتُ لِأَهَبَ لَكَ نَفْسِيْ فَنَظَرَ إِلَيْهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ إِلَيْهَا وَصَوَّبَهُ ثُمَّ طَأْطَأَ رَأْسَهُ فَلَمَّا رَأَتِ الْمَرْأَةُ أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ فِيهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ أَيْ رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيهَا فَقَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ اذْهَبْ إِلَى أَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلٰكِنْ هٰذَا إِزَارِيْ قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتّٰى طَالَ مَجْلِسُهُ ثُمَّ قَامَ فَرَآهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَاذَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ مَعِيَ سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا عَدَّدَهَا قَالَ أَتَقْرَؤُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ

وسلّم هغې طرف ته لاندې باندې غور سره اوکتل بيائې خپل سر مبارک خکته کړلو. ښځې چه اوليدل چه حضورؐ څه حکم اونه فرمائيلو' کيناسته' نو يو صحابي اودريد او عرض ئې اوکه' يا رسول اللّٰه' که تاسو ته ددې ښځې حاجت نه وي' نو ماته ئې واده کړئې. حضورؐ ترې تپوس اوکه' تاسره څه (مال متاع) شته' هغه اووې' يا رسول اللّٰه' په خدائې مِ دې قسم وي' ما سره خو هيڅ نشته. خپل کورته لاړ شه' او' اوګوره' شايد څه پيدا شي' هغه لاړ' بيا واپس راغې' او وئيلې' په خدائې چه' يا رسول اللّٰه ماته هيڅ په لاس رانغلل. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' اوخو ګوره' اګر که د اُوسپنې ګوته وي' نو هغه راوړه' هغه چه لاړ' نو بيا واپس راغې' او وئيلې د' اوسپنې ګوته هم راکره نشته. او' دا څما تهبند (لنګ) دې. نيم دې له ور کړئې. سهل وائي. هغه سره روغ څادر هم نه وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ستا په تهبند به هغه څه اوکړي' که ته ئې واغندې' نو هغه به بربنډه پاتې کيږي' او که هغه ئې استعمال کړي نو ته به بربنډ پاتې شې. هغه سړې مجبوراً کيناستو. بيا څه ناستې نه پس پاسيد' تلو' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم راوبله' ورته ئې اوفرمائيل' تاته د قرآن شريف کوم کوم سورتونه ياد دي' هغه څو سورتونه په شمار اوښودل' چه ماته دا' دا سورتونه ياد دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه نه تپوس اوکه' آيا ته د هغې حافظ ئې (يعني تاته ياد' دي) هغه اووې' او. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. څه. ما' ته د قرآن شريف د' يادولو په سبب

مَلَّكْتُهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

باب ۶۶ : مَنْ قَالَ لَا نِكَاحَ اِلَّا بِوَلِيٍّ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ فَدَخَلَ فِيْهِ الثَّيِّبُ وَكَذَالِكَ الْبِكْرُ وَقَالَ لَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا وَقَالَ وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ.

۱۱۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ ح قَالَ وَحَدَّثَنَا اَحْمَدُ ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ النِّكَاحَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ كَانَ عَلٰى اَرْبَعَةِ اَنْحَاءٍ فَنِكَاحٌ مِنْهَا نِكَاحُ النَّاسِ الْيَوْمَ يَخْطُبُ الرَّجُلُ وَلِيَّتَهُ اَوْ اِبْنَتَهُ فَيُصْدِقُهَا ثُمَّ يَنْكِحُهَا وَنِكَاحٌ اٰخَرُ كَانَ الرَّجُلُ يَقُوْلُ لِاِمْرَاَتِهٖ اِذَا طَهُرَتْ مِنْ طَمْثِهَا اَرْسِلِيْ اِلٰى فُلَانٍ فَاسْتَبْضِعِيْ مِنْهُ وَيَعْتَزِلُهَا زَوْجُهَا وَلَا يَمَسُّهَا اَبَدًا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ حَمْلُهَا مِنْ ذٰلِكَ الرَّجُلِ الَّذِيْ تَسْتَبْضِعُ مِنْهُ فَاِذَا تَبَيَّنَ حَمْلُهَا اَصَابَهَا زَوْجُهَا اِذَا اَحَبَّ وَاِنَّمَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ رَغْبَةً فِيْ نَجَابَةِ الْوَلَدِ فَكَانَ هٰذَا النِّكَاحُ نِكَاحَ الْاِسْتِبْضَاعِ وَنِكَاحٌ اٰخَرُ

ددے ښځے مالک کړلے.

باب ۶۶ : بغير ولي د' نكاح نه صحيح كيدو بيان' ځكه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل' دوي منع كوئے مه' دے كښې واده شوے او پيغلے دواړه داخلے دي' او اللّٰه تعالٰي فرمائي' د مشركو نكاح بغير ايمان راوړلو' مه كوئے' او فرمان الٰهي دے' چه د' كُنډو نكاح كوئے.

۱۱۳ : يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. يونس. ح. احمد بن صالح. عنبسه. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشة نه روايت كوي' د جاهليت زمانه كښې څلور قسمه نكاح وه' يوه نكاح خو داسے وه' چه نن صبائے خلق كوي. يو سړي به بل ته د هغه د' وليه يا لور پيغام استولو. او هغے له مهر ور كولو سره به ئے هغه واده كوله. نكاح په دے طريقه هم وه' چه يو سړي به خپلے بي بي ته اووے' چه كله چه ته د' ماهوارئ نه پاكه شے' نو فلاني سړي له لاړ شه او د هغه نه فائده حاصله كړه. بيا به خاوند د هغے ښځے نه جدا شولو. او هغے ته به قريب نه ورتلو څو پورے چه د هغے سړي حمل به ظاهر نه شولو' كوم وخت چه به د هغه حمل ظاهر شو نو د هغے خاوند چه به كله زړه غوښتل' هغے له ورتلو. دا هر څه به دے سبب كيدل چه بچي د ښه نسل پيدا شي. دے نكاح ته به ئے نكاح استبضاع ويلے. دريم قسم نكاح دا وه چه څو سړي د لسو نه كم به جمع شو' يوے ښځے سره به ئے صحبت كولو. كله چه به د هغے حمل شو'

يَجْتَمِعُ الرَّهْطُ مَا دُوْنَ الْعَشَرَةِ فَيَدْخُلُوْنَ عَلَى الْمَرْاَةِ كُلُّهُمْ يُصِيْبُهَا فَاِذَا حَمَلَتْ وَوَضَعَتْ وَمَرَّ عَلَيْهَا لَيَالِيْ بَعْدَ اَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا اَرْسَلَتْ اِلَيْهِمْ فَلَمْ يَسْتَطِعْ رَجُلٌ مِّنْهُمْ اَنْ يَّمْتَنِعَ حَتّٰى يَجْتَمِعُوْا عِنْدَهَا تَقُوْلُ لَهُمْ قَدْ عَرَفْتُمُ الَّذِيْ كَانَ مِنْ اَمْرِكُمْ وَقَدْ وَلَدْتُ فَهُوَا بْنُكَ يَا فُلَانُ تُسَمِّيْ مَنْ اَحَبَّتْ بِاِسْمِهٖ فَيَلْحَقُ بِهٖ وَلَدُهَا لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَّمْتَنِعَ بِهِ الرَّجُلُ وَنِكَاحُ الرَّابِعِ يَجْتَمِعُ النَّاسُ الْكَثِيْرُ فَيَدْخُلُوْنَ عَلَى الْمَرْاَةِ لَا تَمْتَنِعُ مِمَّنْ جَآءَهَا وَهُنَّ الْبَغَايَا كُنَّ يَنْصِبْنَ عَلٰى اَبْوَابِهِنَّ رَايَاتٍ تَكُوْنُ عَلَمًا فَمَنْ اَرَادَهُنَّ دَخَلَ عَلَيْهِنَّ فَاِذَا حَمَلَتْ اِحْدَاهُنَّ وَوَضَعَتْ جُمِعُوْا لَهَا وَدَعَوْا لَهُمُ الْقَافَةَ ثُمَّ اَلْحَقُوْا وَلَدَهَا بِالَّذِيْ يُرَوْنَ فَالْتَاطَ بِهٖ وَدُعِيَ ابْنَهُ لَا يَمْتَنِعُ مِنْ ذٰلِكَ فَلَمَّا بُعِثَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ هَدَمَ نِكَاحَ الْجَاهِلِيَّةِ كُلَّهُ اِلَّا نِكَاحَ النَّاسِ الْيَوْمَ.

۱۱۴: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ فِيْ يَتَامَى النِّسَآءِ اللَّاتِيْ لَا

او د هغې بچې به پيدا شو، او د هغې به څو ورځې وشوې. نو هغې به ټول راوغبنتل هغوي كښې به د هيڅا دا طاقت نه وو، چه هغه د، راتلو نه انكار وكړي، هر كله چه به ټول جمع شو، نو هغې به وئيلې، تاسو ټولو ته خپل حال معلوم دې. څه چه وو، او څما ستاسو نه بچې پيدا شوې دې. اې فلانيه دا ستا خوئې دې، چه ستا زړه غواړي، د، ده نوم كېږده (تاته اختيار دې) نو هغه بچې به د هغه شولو. او هغه ته به د، انكار كولو څه مجال نه وو. د څلورم قسم نكاح دا وه. چه ډېرو سړو به يوې ښځې سره كوروالې (صحبت) كولو. او هغې به څوك راتلونكې نه منع كولو. اصل كښې ډمې (رنڈياں) وې. هغوي د نښې د پاره په دروازو جنډې لګولې وې. چه څوك غواړي، هغوي سره دې صحبت اوكړي، هغوي كښې به چه د، يوې خيته شوه، او بچې به ئې پيدا شو، نو هغوئ ټول به راجمع شو، په علم قيافه پوهيدونكې به ئې راوغبنتلو هغه چه به ئې د چا مشابه ليدو، هغه ته به ئې وئيلې، دا ستا خوئې دې. حضور صلي الله عليه وسلم ريښتينې نبي مبعوث شولو. نو د جاهليت د، زمانې هر قسم وډونه باطل اوګرځولې شو. صرف د نن صبا د، واده مروجه طريقه جائز اوګرځولې شوه.

۱۱۴: يحيي. وكيع. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي: وما يتلى عليكم في الكتاب: تفسير دا دې چه دې نه مراد هغه يتيمه بچې ده چه يو

تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ قَالَتْ هٰذَا فِي الْيَتِيْمَةِ الَّتِيْ تَكُوْنُ عِنْدَ الرَّجُلِ لَعَلَّهَا اَنْ تَكُوْنَ شَرِيْكَتَهُ فِيْ مَالِهٖ وَهُوَ اَوْلٰى بِهَا فَيَرْغَبُ عَنْهَا اَنْ يَنْكِحَهَا فَيَعْضُلُهَا لِمَالِهَا وَلَا يُنْكِحُهَا غَيْرَهُ كَرَاهِيَةَ اَنْ يَشْرَكَهُ اَحَدٌ فِيْ مَالِهَا.

سـري سـره وي، او هغه، د هغې ولي وي، او مال كښې د هغې شريک وي. او هغې سره خپله نكاح نه كوي، او نـه ئې بل چاته واده كوي، چه چرته هغې مال كښې زما شريک نشي. نو دې آيت كښې وليان ددې امر نه منع كړې شوې دي.

۵۱۱۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ عُمَرَ حِيْنَ تَاَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَ مِنِ ابْنِ حَذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ تُوُفِّيَ بِالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ عُمَرُ لَقِيْتُ عُثْمَانَ ابْنَ عَفَّانَ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ فَقَالَ سَاَنْظُرُ فِيْ اَمْرِيْ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ لَقِيَنِيْ فَقَالَ بَدَا لِيْ اَنْ لَا اَتَزَوَّجَ يَوْمِيْ هٰذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيْتُ اَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ.

۵۱۱۵: عبداللّٰه بن محمد. هشام. معمر. زهري. سالم. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. حضرت عمرؓ به فرمائيل، كوم وخت چه خما لور حفصهؓ د خنيس بن حذافه سهمي (يعني د خپل خاوند د مرگ نه پس) كُنډه شوه، چه بدري او صحابي وو، او هغه مدينه كښې وفات شوې وو، نو زه عثمان بن عفان سره يوځائې شوم، ورته مې اووې، كه ستا غرض وي، نو زه به د حفصهؓ نكاح تاسره اوكړم، هغه اووې زه به غور كوم، زه څو ورځې ايسار ووم، بيا چه هغه [redacted]يو ځائې شو، نو ونيلې اوس لا نكاح كول ماته مناسب نه معلوميږي. حضرت عمرؓ فرمائي. بيا ما ابوبكرؓ سره ملاقات اوكه، ورته مې اووې، كه ستا غرض وي، نو زه به تاسره د حفصهؓ نكاح اوكړم.

۵۱۱۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ ابْنُ اَبِيْ عُمَرٍ وَقَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الْحَسَنِ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَعْقِلُ ابْنُ يَسَارٍؓ اَنَّهَا نَزَلَتْ

۵۱۱۶: احمد بن ابو عمرو. حفص. ابراهيم. يونس. حسن معقل بن يسار نه روايت كوي چه: فلا تعضلوهن: آيت زما حق كښې نازل شوې دې، چه ما د خپلې خور د يو سړي سره نكاح اوكړله. هغه زما خور، له طلاق وركه، عدت چه پوره شو، نو دوباره هغه د نكاح

فِيْهِ قَالَ زَوَّجْتُ اُخْتًا لِيْ مِنْ رَجُلٍ فَطَلَّقَهَا حَتّٰى اِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهَا جَآءَ يَخْطُبُهَا فَقُلْتُ لَهٗ زَوَّجْتُكَ وَفَرَشْتُكَ وَاَكْرَمْتُكَ فَطَلَّقْتَهَا ثُمَّ جِئْتَ تَخْطُبُهَا لَا وَاللّٰهِ لَا تَعُوْدُ اِلَيْكَ اَبَدًا وَ كَانَ رَجُلًا لَا بَأْسَ بِهٖ وَكَانَتِ الْمَرْاَةُ تُرِيْدُ اَنْ تَرْجِعَ اِلَيْهِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ فَقُلْتُ الْاٰنَ اَفْعَلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَزَوَّجَهَا اِيَّاهُ.

بَابٌ ۶۷ : اِذَا كَانَ الْوَلِيُّ هُوَ الْخَاطِبُ وَخَطَبَ الْمُغِيْرَةُ ابْنُ شُعْبَةَ امْرَاَةً هُوَ اَوْلَى النَّاسِ بِهَا فَاَمَرَ رُجُلًا فَزَوَّجَهٗ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ عَوْفٍ لِاُمِّ حَكِيْمٍ بِنْتِ قَارِظٍ اَتَجْعَلِيْنَ اَمْرَكِ اِلَيَّ؟ فَقَالَتْ نَعَمْ فَقَالَ قَدْ تَزَوَّجْتُكِ وَقَالَ عَطَاءٌ لِيُشْهِدْ اَنِّيْ قَدْ نَكَحْتُكِ اَوْ لِيَأْمُرْ رَجُلًا مِّنْ عَشِيْرَتِهَا وَقَالَ سَهْلٌ قَالَتِ امْرَاَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهَبُ لَكَ نَفْسِيْ فَقَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ لَّمْ تَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيْهَا.

۷۱۱ : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ فِيْ قَوْلِهٖ وَيَسْتَفْتُوْنَكَ

پیغام راولیږلو. ما هغه له جواب ورکه، چه یو خل ما هغې نکاح تاسره کړې وه، او هغه م ستا ښځه کړه، عزت م درې اوکـه. خو تـا هغـه پـریښودو. اوس تـه بیا پیغام رالیږې. پـه الـلّٰـه م درې قسم وي، اوس هغه دوباره تا نشي حاصلیدې. هغه سړې ډیر نیک وو، زما خور هم هغـه پـلـه رجـوع کـونـکـې وه. هغه وخت اللّٰه دا حکم راولیږلو، چـه تـاسـو، ښـځـې خپل ورمبي خاوند سره نـکـاح کـولـو نـه مـه منع کوئې. ما اووې، یا رسول اللّٰه اوس بـه زه ددې نکاح هغه سره ضرور کوم. راوي وائي چه بیائې هغه ته په نکاح کړله.

باب۶۷ : ولـي کـه خپلـه د ښځې نکاح کول غـواړي، نـو جـائـز دي، مغیـره بن شعبه یوې ښځې سره کـویـدنـه اوکړه، چه د هغې قریبي ولي وو، او یو سړي ته ئـې حـکـم ورکـه، چـه هـغـه د هغـه نکاح اولوسته. او عبدالرحمٰن بن عوف اُم حکیم بنت قارظ ته اووې، ته مختار جوړوې، هغې اووې، جي، او. عبدالرحمٰن اووې بیا خو، دې حالت کښ زه تاسره نکاح کوم. عطاء وائي ګواه کولو سره دې اووائي، ما تا سره نکاح اوکړله، یا د هغـې کـورنـئ والـونـه دې چـاله اجازت ورکړي. سهل وائـي، یوې ښځې حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته اووې زه خپـل نـفـس تاسوٌ ته درکوم. یو سړي اووې، یا رسول اللّٰـه، کـه تـاسـوٌ تـه ددې ضـرورت نه وي، نو ماته ئې نکاح کړئې.

۷۱۱ : ابـن سـلام. مـعـاويـه. هشـام. عروا بـي بـي عـائشـې نـه روايـت كوي چـه: يستفتونک فـي الـنسـاءِ الخ: تـفسیـر داسـې دې چـه دې نـه هغه

فِي النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ اِلَى اٰخِرِ الْاٰيَةِ قَالَتْ هِيَ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ الرَّجُلِ قَدْ شَرِكَتْهُ فِي مَالِهِ فَيَرْغَبُ عَنْهَا اَنْ يَّتَزَوَّجَهَا وَيَكْرَهُ اَنْ يُزَوِّجَهَا غَيْرَهُ فَيَدْخُلَ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ فَيَحْبِسُهَا فَنَهَاهُمُ اللّٰهُ عَنْ ذٰلِكَ.

یتیمه بچۍ مراد ده، چه یو سړي سره وي او هغه د هغې مال کښې شریک وي، او هغې سره نکاح کول نه غواړي او نه ئې بل چاته په نکاح کوي، په دې خیال چه هغه به مال کښې ماسره شریک شي، او هغه جینۍ ایساره ساتي، نو دې تولو خبرو او، خرابو خیالاتو نه اللّٰه تعالیٰ ممانعت اوفرمائیلو.

۱۱۸ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ ابْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا اَبُو حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوسًا فَجَآءَتْهُ اِمْرَاَةٌ تَعْرِضُ نَفْسَهَا عَلَيْهِ فَخَفَّضَ فِيهَا النَّظَرَ وَرَفَعَهُ فَلَمْ يُرِدْهَا فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِهِ زَوِّجْنِيهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ اَعِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ مَا عِنْدِي مِنْ شَيْءٍ قَالَ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ قَالَ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلٰكِنْ اَشُقُّ بُرْدَتِي هٰذِهِ فَاُعْطِيهَا النِّصْفَ وَاٰخُذُ النِّصْفَ قَالَ لَا هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ شَيْءٌ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

۱۱۸ : احمد بن مقدام. فضیل بن سلیمان. ابو حازم. سهل بن سعد نه روایت کوي، زه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره ناست ووم، دې کښې یوې ښځې خپل نفس، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته پیش کړلو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته لاندې باندې اوکتل، او هیڅ جواب ئې ورنه کړلو، نو یو صحابي عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، دا ماته په نکاح راکړې. حضورٌ هغه ته اوفرمائیل تا سره څه (مال متاع) شته، هغه اووې، ماسره هیڅ نشته. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ترې تپوس اوکه، د، اوسپنې ګوته هم درسره نشته. هغه اووې، د اوسپنې ګوته هم راسره نشته. لیکن زه خپل څادر نیموم، او هغې ته ئې ورکوم. او نیم به ځان د پاره اوساتم. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، آیا تاته څه قرآن یاد دې. هغه اووې، جي، او. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، څه، د قرآن د یادولو په سبب ما د هغې نکاح تاسره اوکړله.

باب۶۸ : اِنْكَاحِ الرَّجُلِ وَلَدَهُ الصِّغَارَ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ فَجَعَلَ عِدَّتَهَا ثَلٰثَةَ اَشْهُرٍ قَبْلَ

باب۶۸ : د خپلو وړو بچو خپله د، نکاح کولو بیان. د، اللّٰه تعالیٰ دا فرمان (واللائي لم یحضن) د دې دلیل دې، ځکه چه د نابالغه عدّت (دې آیت کښې) درې

الْبُلُوْغِ.

مياشتے كړ خولے شوے دے.

۱۱۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِيْنَ وَاُدْخِلَتْ عَلَيْهِ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعٍ وَّ مَكَثَتْ عِنْدَهُ تِسْعًا.

۱۱۹ : محمد بن يوسف. سفيان. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت. حضور صلي الله عليه وسلّم چه ماسره نكاح اوكړله، نو هغه وخت زه د شپږو كالو ووم. او د نهو كالو په عمر كښ خما رخصتي اوشوه. او نهه كاله زه د حضور صلي الله عليه وسلّم په نكاح كښ پاتے شوم (بيا حضور صلي الله عليه وسلّم وفات شولو).

بَابٌ ۶۹ : تَزْوِيْجُ الْاَبِ ابْنَتَهُ مِنَ الْاِمَامِ وَقَالَ عُمَرُ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيَّ حَفْصَةَ فَاَنْكَحْتُهُ.

باب ۶۹ : د پلار، امام سره د خپلے لور د، واده كولو بيان. حضرت عمرؓ فرمائي، ماته حضور صلي الله عليه وسلّم، حفصےؓ د پاره پيغام راوليږلو، نو ما حضور صلي الله عليه وسلّم سره بلا تامل د، حفصےؓ نكاح اوكړله.

۱۲۰ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى ابْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِيْنَ وَبَنَى بِهَا وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِيْنَ قَالَ هِشَامٌ وَاُنْبِئْتُ اَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَهُ تِسْعَ سِنِيْنَ.

۱۲۰ : معلي بن اسد. وهيب. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم چه كوم وخت ما سره نكاح اوكړله، هغه وخت زه د شپږو كالو ووم. او كوم وخت چه خما رخصتي اوشوه نو زما عمر د، نهه كالو وو. هشام وائي، ماته چا بيان اوكه، چه بي بي عائشه د نهو كالو پورے د حضور صلي الله عليه وسلّم زوجيت (ښځولئے) كښ وه.

بَابٌ ۷۰ : اَلسُّلْطَانُ وَلِيٌّ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَوَّجْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

باب ۷۰ : د، بادشاه د، ولي كيدو بيان. د حضور صلي الله عليه وسلّم دا قول: زوجناكها بما معك من القران: ددے ثبوت دے.

۱۲۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ

۱۲۱ : عبدالله. يوسف. مالك. ابي حازم. سهل بن سعد نه روايت كوي. يوه ښځه حضور صلي

اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِنِّيْ وَهَبْتُ مِنْ نَفْسِيْ فَقَامَتْ طَوِيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيْهَا اِنْ لَّمْ تَكُنْ لَّكَ بِهَا حَاجَةٌ قَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا قَالَ مَا عِنْدِيْ اِلَّا اِزَارِيْ فَقَالَ اِنْ اَعْطَيْتَهَا اِيَّاهُ جَلَسْتَ لَا اِزَارَلَكَ فَالْتَمِسْ شَيْئًا فَقَالَ مَا اَجِدُ شَيْئًا فَقَالَ الْتَمِسْ شَيْئًا فَقَالَ مَا اَجِدُ مِنْ حَدِيْدٍ فَلَمْ يَجِدْ فَقَالَ اَمَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ شَيْءٌ قَالَ نَعَمْ سُوْرَةُ كَذَا وَسُوْرَةُ كَذَا لِسُوَرٍ سَمَّاهَا فَقَالَ زَوَّجْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

اللّٰه عليه وسلّم له راغله' او ونيلے ما خپل نفس تاسوَ ته اوبښلو. هغه ډير ساعته پورے ولاړه وه. يو صحابيٌ عرض اوكه' يا رسول اللّٰه كه تاسو ته ددے ضرورت نه وي' نو ماته ئے واده كړے. حضورؑ ترے تپوس اوكه. تاسره مهر وركولو د پاره څه شته. هغه جواب كښ اووے' ماسره د تهبند نه علاوه نور هيڅ نشته. حضورؑ اوفرمائيل' كه دا تهبند (يا څادر) دے له وركوے' نو ته بربنډ پاتے كيږے' څه بل څه تلاش كړه' هغه اووے ما كره هيڅ پيدا نه شو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. اوخو ګوره' خواه د' اوسپنے ګوته ولے نه وي' خو هغه هم هغه سره نه وه. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. څه قرآن دے لوستے دے' نو هغه د څو سورتونو نوم واخست چه ما دا' دا سورتونه لوستے دي. حضورؑ اوفرمائيل. د قرآن د حفظ په سبب ماته ددے (ښځے) خاوند كړلے.

بَابُ ۱۷: لَا يُنْكِحُ الْاَبُ وَغَيْرُهُ الْبِكْرَ وَالثَّيِّبَ اِلَّا بِرِضَاهَا.

باب ۱۷: د' يو سري يا پلار د پاره د' يوے بالغے يا كُنلوے ښځے بغير د هغے د مرضئ حاصلولو د نكاح نه كيدو بيان.

۱۲۲: حَدَّثَنَا مَعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُنْكَحُ الْاَيِّمُ حَتّٰى تُسْتَاْمَرَ وَلَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتّٰى تُسْتَاْذَنَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَيْفَ اِذْنُهَا قَالَ اَنْ تَسْكُتَ.

۱۲۲: معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي. ابي سلمه. ابوهريرهٌ نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' د كُنلوے ښځے نكاح دے بغير د هغے د' اجازت نه نشے كيدے' اونه دے د' باكرے (پيغلے) بغير د هغے د' اجازت نه. اصحابوٌ تپوس اوكه د' باكره اجازت څنګه معلوميدے شي' وے فرمائيل د هغے خاموشي اختيارول د هغے اجازت دے.

۱۲۳: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ الرَّبِيْعِ

۱۲۳: عمرو بن ربيع بن طارق. ليث

بْنِ طَارِقٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ ابنِ اَبِيْ عَمْرٍو مَوْلٰى عَائِشَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ الْبِكْرَ تَسْتَحْيِيْ قَالَ رِضَاهَا صُمْتُهَا.

ابـن ابـي مـلـيـكـه. ابـي عـمـر. (ذكـوان) غـلام د بـي بـي عـائـشـې نـه روايـت كـوي. هغې اووې، يا رسـول اللّٰـه، پېغلـه جينۍ خو، شرم كوي. حضورؐ ورتـه اوفـرمـائـيـل، د هـغـې خـامـوشـي د هغې رضامندي ده.

بَاب ۴۲: اِذَا زَوَّجَ ابْنَتَهُ وَهِيَ كَارِهَةٌ فَنِكَاحُهُ مَرْدُوْدٌ.

باب ۴۲: لور، كه نكاح سره ناراضه وي، نو د نكاح د، ناجائز كيدو بيان.

۱۲۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَمُجَمِّعٍ ابْنَيْ يَزِيْدَ بْنِ جَارِيَةَ عَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِذَامٍ الْاَنْصَارِيَّةِ اَنَّ اَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذٰلِكَ فَاَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ نِكَاحَهُ.

۱۲۴: اسـمـعيـل. مـالک. عبدالرحمٰن بـن قـاسـم. عبدالرحمٰن مجمع. خنساء بنت خزام انصاريه نه روايت كوي، زما پلار يو ځائې كښې زما نكاح اوكړله. او زه ثيبه ووم، او ماته هغه نكاح منظوره نه وه، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ددې ذكر اوكه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زما نكاح فسخ كړله.

ف: ثيبه: واده كړې ښځه چه خاوند، ئې مړ وي. ښځه چه كوروالې ورسره شوې وي، ښځه چه پېغله نه وي پاتې.

۱۲۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى اَنَّ الْقَاسِمَ ابْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَهُ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ يَزِيْدَ وَمُجَمِّعَ ابْنَ يَزِيْدَ حَدَّثَاهُ اَنَّ رَجُلًا يُدْعٰى خِذَامًا اَنْكَحَ ابْنَةً لَهُ نَحْوَهُ.

۱۲۵: اسحٰق يزيد. يحيٰي. قاسم بن محمد روايت كوي، عبدالرحمٰن بن يزيد او مجمع بن يزيد د، دواړو بيان دې، يو سړې چه د هغه نوم خزام وو، د خپلې لور ئې چا سره نكاح اوكړله او د مخكښې حديث پشان حديث ئې بيان كه.

بَاب ۴۳: تَزْوِيْجُ الْيَتِيْمَةِ لِقَوْلِهٖ وَاِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتَامٰى

باب ۴۳: د، يتيمې جينۍ د، نكاح كولو بيان: وَ ان خفتم اَن لا تقسطوا في اليتامٰى: د يتيمې جينۍ په نكاح دليل دې. كه يو سړې ولي ته ووائي. چه فلانې

فَأَنْكِحُوْا وَاِذَا قَالَ لِلْوَلِيِّ
زَوِّجْنِيْ فُلَانَةَ فَمَكَثَ سَاعَةً اَوْ
قَالَ مَا مَعَكَ فَقَالَ مَعِيَ كَذَا وَ كَذَا
اَوْ لَبِثَا ثُمَّ قَالَ زَوَّجْتُكَهَا فَهُوَ جَائِزٌ
فِيْهِ سَهْلٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۲۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ
اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ
اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ
شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ
سَاَلَ عَائِشَةَؓ قَالَ لَهَا يَا اُمَّتَاهُ وَاِنْ
خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامٰى اِلٰى
مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ قَالَتْ عَائِشَةُ يَا ابْنَ
اُخْتِيْ هٰذِهِ الْيَتِيْمَةُ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِ
وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِيْ جَمَالِهَا وَمَالِهَا
وَيُرِيْدُ اَنْ يَنْتَقِصَ مِنْ صَدَاقِهَا فَنُهُوْا
عَنْ نِكَاحِهِنَّ اِلَّا اَنْ يُقْسِطُوْا لَهُنَّ فِيْ
اِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَاُمِرُوْا بِنِكَاحِ مَنْ
سِوَاهُنَّ مِنَ النِّسَآءِ قَالَتْ عَائِشَةُ
اِسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ
يَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ اِلٰى وَتَرْغَبُوْنَ
فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لَهُمْ فِيْ هٰذِهِ
الْاٰيَةِ اَنَّ الْيَتِيْمَةَ اِذَا كَانَتْ ذَاتَ مَالٍ
وَّجَمَالٍ رَّغِبُوْا فِيْ نِكَاحِهَا وَنَسَبِهَا
وَالصَّدَاقِ وَاِذَا كَانَتْ مَرْغُوْبًا عَنْهَا فِيْ

ښځې سره زما نکاح اوکړه، او هغه خاموش شي يا، وواني، چه تاسره څه (مال متاع) شته. بيا هغه جواب ورکړي، دومره دومره راسره شته. يا دواړه ايسار شي. بيا ولي اووائي، ما تاسره دديے ښځې نکاح اوکړله، نو دا جائز دي. دے باب کښې د سهل حديث حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت کړے شوے دے.

۱۲۶: ابواليمان. شعيب. زهري. ليث. عقيل ابن شهاب. عروه بن زبير نه روايت کوي، ما د بي بي عائشےؓ نه تپوس اوکه. اے مور بي بي: و إن خفتم ان لا تقسطوا في اليتامى الى ما ملكت ايمانكم: مطلب څه دے، هغې جواب راکه، خوريه (بهانجے) دے نه مراد هغه يتيمه بچئ ده، چه د، ولي پرورش کښې وي، او هغه د هغے د مال و جمال د وجے نه د هغے رغبت اوکړي، او، مهر لږ ورکول غواړي، نو اللّٰه تعالٰي هغے سره د مهر د کمي په وجه د، نکاح نه منع فرمائيلے ده. دے نه ماسوا کومو ښځو سره چه غواړئے نکاح اوکړئے. بي بي عائشهؓ فرمائي. دے نه پس خلقو د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه فتويٰ غوښتلے وه، نو اللّٰه تعالٰي هغه وخت دا، آيت: يستفتونک في النسآء الى ترغبون: نازل کړلو، چه د هغے خلاصه داده، هر کله چه تاسو يتيمه بچئ د لږ مال په وجه پريږدئے، او غيرے سره واده کوئے، نو په

قِلَّةِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ تَرَكُوهَا وَاَخَذُوْا غَيْرَهَا مِنَ النِّسَآءِ قَالَتْ فَكَمَا يَتْرُكُونَهَا حِيْنَ تَرْغَبُوْنَ عَنْهَا فَلَيْسَ لَهُمْ اَنْ يَنْكِحُوْهَا اِذَا رَغِبُوْا فِيْهَا اِلَّا اَنْ يُقْسِطُوْا لَهَا وَيُعْطُوْهَا حَقَّهَا الْاَوْفٰى مِنَ الصَّدَاقِ.

تاسو لازم دي، چه څوک چه زيات مالداره او حسينه وي، هغوي سره هم نكاح مه كوئې. هغوي د پاره پوره پوره انصاف كوئې. او د هغوي تيک حق ور كوئې، نو البته دا، ادائې حق او دا نكاح جائزه ده.

بَابُ ۴۷: اِذَا قَالَ الْخَاطِبُ لِلْوَلِيِّ زَوِّجْنِيْ فُلَانَةَ فَقَالَ قَدْ زَوَّجْتُكَ بِكَذَا وَكَذَا جَازَ النِّكَاحُ وَاِنْ لَمْ يَقُلْ لِلزَّوْجِ اَرَضِيْتَ اَوْ قَبِلْتَ.

باب ۴۷: كويدن كونكې كه ولي ته وائي، چه فلانې ښځې سره خما نكاح اوكړه. او جواب كښې اووائي، چه د، دومره مهر په عوض كښې ما تاسره نكاح اوكړله، نو نكاح جائز ده، اګر كه دې نه پس خاوند نه دا دريافت اونه كړي، چه قبوله دې كړه، يا ته راضي ئې.

۱۲۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ اَنَّ امْرَاَةً اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَضَتْ عَلَيْهِ نَفْسَهَا فَقَالَ مَا لِيَ الْيَوْمَ فِي النِّسَآءِ مِنْ حَاجَةٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زَوِّجْنِيْهَا قَالَ مَا عِنْدَكَ قَالَ مَا عِنْدِيْ شَيْءٌ قَالَ اَعْطِهَا وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ قَالَ مَا عِنْدِيْ شَيْءٌ قَالَ فَمَا عِنْدَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

۱۲۷: ابو نعمان. حماد بن زيد. ابو حازم سهل نه روايت كوي، د حضور صلي الله عليه وسلّم مخكښې يوې ښځې خان حضور صلي الله عليه وسلّم ته پيش كړلو، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ما ته د ښځې حاجت نشته په دې خبره يو بل سړي (صحابي) اووې، يا رسول الله، ددې ماسره نكاح اوكړئې. حضورٌ ورته اوفرمائيل، تاسره څه شته، هغه جواب ور كه ما سره خو څه نشته. حضورٌ ورته اوفرمائيل څه خو وركړه، اګر كه د اوسپنې ګوته وي. هغه اووې، هغه هم ماسره نشته. حضورٌ ورته اوفرمائيل تا څومره قرآن لوستې دې. هغه شميرلو سره او نوم اخستو سره اووې، چه دومره سورتونه راته ياد دي. حضورٌ ورته اوفرمائيل، ښه ده، د قرآن په بركت ما، ته ددې مالك (خاوند) جوړ كړلې.

بـــاب۷۵: لَا يَـــخْـــطُـــبُ عَـلٰى خِطْبَةِ أَخِيْـهِ حَتّٰى يَنْـكِحَ أَوْ يَدَعَ.

باب۷۵: د خپـل مسلمان ورور په كويدن دے د' بلـے كـويـدن پيغام نه ليږے' څو پورے چه د' ورمبني كويدنے معامله ختمه نشي' يا هغه نكاح او كړي.

۱۲۸ : حَـدَّثَـنَـا مَـكِّيُّ بْـنُ إِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا يُحَدِّثُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَّبِيْعَ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَيْعِ بَعْضٍ وَّلَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلٰى خِطْبَةِ أَخِيْهِ حَتّٰى يَتْرُكَ الْخَاطِبُ قَبْلَهٗ أَوْ يَأْذَنَ لَهُ الْخَاطِبُ.

۱۲۸ : مـكـي بـن ابـراهيم. ابن جريج. نافع. ابـن عـمـرؓ نـه روايـت كـوي. يـو لـه د بل په نرخ د' نرخ كـولـو او يـو سـړي لـه د بـل پـه كـويـدن د خپـلـے كـويـدنـے پيـغـام ليږل. څـو پـورے چـه ورمبنے. چـنـغـول (منگيتر) خپـلــه كـويـدن پـرے نـه ږدي' يـا دوئـم تـــه د خــريـد اجـازت ورنــه كــړي. رسـول الـلّــه صـلـي الـلّــه عـلـيــه وسلّم ددے نــه مـنـع فرمائيلے ده.

۱۲۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْأَعْرَجِ قَالَ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ يَأْثُرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا تَحَسَّسُوْا وَلَا تَبَاغَضُوْا وَكُوْنُوْا إِخْوَانًا وَلَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلٰى خِطْبَةِ أَخِيْهِ حَتّٰى يَنْكِحَ أَوْ يَتْرُكَ.

۱۲۹ : يـحيٰي بـن بـكـيـر. ليث. جعفر بن ربيعه. اعـرج. ابـوهـريـرهؓ نـه روايـت كـوي' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' بدګماني نه بچ شے' ځكه چه بدګماني د ټـولـو خبرونه زياته دروغ خبره ده. او د خلكو د خبرو بيخ مه لټوئے. او خپلو كښ دشمني مه كوئے. بلكه د يو بـل ورونـړه اوسـئـے. او هيڅ سړے دے د خپل مسلمان ورور پـه كـويـدن د خپـلـے كويدنے پيغام نه استوي' څو پورے چه هغه نكاح اونه كړي' يا كويدن پرے نه ږدي.

بـــاب۷۶: تَـــفْـسِيْـــرِ تَـــرْكِ الْخِطْبَةِ.

باب۷۶: د كـويـدن د پـريـښـودو د' وضـاحت بيان.

۱۳۰ : حَـدَّثَـنَـا أَبُـوْ الْيَمَانِ أَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَـرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهٗ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ الْخَطَّابِ حِيْنَ تَأَيَّمَتْ حَـفْصَةُ قَالَ عُمَرُ لَقِيْتُ أَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ

۱۳۰ : ابـوالـيـمـان. شعيب. زهـري نـه روايت دے' مـاتـه سـالـم بـن عبدالـلّـه او هـغـه عبداللّٰه بن عمرؓ نـه واوريـدل' حـضـرت عـمـرؓ فرمائيل' كوم وخت چـه بـي بـي حـفـصـهؓ كُـنـډه شـوه' نـو مـا ابوبكرؓ تـه اووے' كـه تـه غـواړے' نـو زه بـه تـاسـره د خپلے لور' بي بي

اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَقِيَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ فَقَالَ اِنَّهٗ لَمْ يَمْنَعْنِيْ اَنْ اَرْجِعَ اِلَيْكَ فِيْمَا عَرَضْتَ اِلَّا اَنِّيْ عَلِمْتُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ اَكُنْ لِاُفْشِيَ سِرَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا لَقَبِلْتُهَا تَابَعَهٗ يُوْنُسُ وَ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ وَابْنُ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

حفصےؓ نكاح او كرم، (ليكن جواب نه كيدو سره) زه څو ورځے پورے ايسار، ووم، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے د پاره پيغام راوليږلو. دے نه پس ماسره ابوبكرؓ يوځائے شو، نو هغه اووے، ستا خبره منلو كښې څما څه انكار نه وو، ليكن زه پوهيدم، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ددے ذكر كړے وو، او د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم راز ظاهرول ما، نه غوښتل. كه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپله نكاح كښې نه اخستے، نو ما به منظوره كړے وے. يونس او موسي بن عقبه او ابن عتيق د، زهري نه ددے متابعت كښې نقل كړے دے.

## بَابٌ ۷۷: اَلْخُطْبَةُ.

## باب۷۷: د نكاح د، خطبے بيان.

۱۳۱: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ جَآءَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا.

۱۳۱: قبيصه. سفيان. زيد. حضرت عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. دوه سړي د، مشرق نه راغلل، او هغوي تقرير او كه، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. بعضے بيان كښې د جادو تاثير وي.

## بَابٌ ۷۸: ضَرْبِ الدُّفِ فِي النِّكَاحِ وَالْوَلِيْمَةِ.

## باب۷۸: وليمه او نكاح كښې د تنبل غږولو بيان.

۱۳۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ قَالَ قَالَتِ الرُّبَيِّعُ بِنْتُ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَآءَ جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ حِيْنَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلٰى فِرَاشِيْ كَمَجْلِسِكَ

۱۳۲: مسدد. بشر بن مفضل. خالد بن ذكوان. ربيع بنت معوذ بن عفرأنه روايت كوي. كوم وخت چه څما رخصتي وشوه. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څما بسترے ته راغے، او داسے كيناستلو، څنګه چه ته ماسره ناست ئے. او وړو، وړو جينكو تنبل غږولو، د، بدر، د شهيدانو

مِنِّيْ فَجَعَلَتْ جُوَيْرِيَاتٌ لَنَا يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ اٰبَائِيْ يَوْمَ بَدْرٍ اِذْ قَالَتْ اِحْدَاهُنَّ وَفِيْنَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ فَقَالَ دَعِيْ هٰذِهٖ وَقُوْلِيْ بِالَّذِيْ كُنْتِ تَقُوْلِيْنَ.

مرثيه ئي وئيلے. هغوي كښې يوے اووے' مونږ كښې يو نبي دے' چه د صبائنے ورځے حال ورته معلوم وي (چه صباله به څه كيږي) نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل. دا شعر پريږده او څه چه مو' وړمبنے وئيلے' هغه وايئے.

ف: (١) رخصتي: د مور پلار د' كور نه په وړمبني ځل د جينۍ (ناوي) رخصتيدل' يا خاوند كره تلل. هغه روپۍ چه د تلو په وخت وركولے شي. سلامي.

(٢) مرثيه: هغه نظم يا شعرونه چه په كښې د چا د مرګ يا شهادت حال او د هغه د' مصيبتونو' غمونو او تكليفونو بيان شوے وي.

(٣) شعر: نظم كښې خبرے كول. موزونه خبره يا كلام. دوه مصرعے چه د' يو وزن وي' يا په يو بحر كښې وي او يو خاص خيال ظاهروي.

بَابُ ٧٩: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً وَكَثْرَةُ الْمَهْرِ وَاَدْنٰى مَا يَجُوْزُ مِنَ الصَّدَاقِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَاٰتَيْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوْا مِنْهُ شَيْئًا وَقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ وَقَالَ سَهْلٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ.

باب ٧٩: د' الله تعالٰي حكم' چه تاسو ښځوته خندا خوشحالۍ سره مَهر وركوئے. او زيات نه زيات او كم نه كم څومره مهر جائز دے. الله تعالٰي فرمائي' كه تاسو يوے ښځے ته (مَهر كښې) بے انتها مال وركړئے' نو د هغے نه څه واپس مه اخلئے' او د' الله تعالٰي ارشاد: اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ: (وجوب مَهر باندے) دليل دے' سهل وائي' نبيً اوفرمائيل (مَهر ضرور وركوئے) اګر كه د' اوسپنے ګوته وي.

١٣٣: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ تَزَوَّجَ اِمْرَاَةً عَلٰى وَزْنِ نَوَاةٍ فَرَاَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَشَاشَةَ الْعُرْسِ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ اِنِّيْ تَزَوَّجْتُ اَمْرَاَةً عَلٰى وَزْنِ نَوَاةٍ وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ عَبْدَ

١٣٣: سليمان بن حرب. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. حضرت انسؓ نه روايت كوي. عبدالرحمٰن بن عوف د يوے غوټے (ګټهلي) وزن (سرو' زرو برابر) د مهر په عوض يوے ښځے سره نكاح اوكړله. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه په هغه د' واده اثار اوليدل' نو تپوس ئے تر ے اوكه (څه معامله ده) هغه عرض اوكه' ما د يوے غوټے برابر د سرو' زرو' په عوض كښې يوے ښځے سره واده كړے دے. د'

الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً عَلٰى وَزْنِ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ.

سرو' زرو د لفظ (صراحت) قتاده د حضرت انسؓ نه روايت كړے دے.

**بـاب ۸۰: اَلتَّزْوِيجِ عَلَى الْقُرْاٰنِ وَبِغَيْرِ صَدَاقٍ.**

**باب ۸۰: د' قرآن د تعليم په عوض' د' نكاح كولو او د مهر د' ادائيگي نه بغير' د' واده كولو بيان.**

۱۳۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ اَبَا حَازِمٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدِ السَّاعِدِيَّ يَقُوْلُ اِنِّيْ لَفِي الْقَوْمِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ قَامَتِ امْرَاَةٌ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَاْ فِيْهَا رَاْيَكَ فَلَمْ يُجِبْهَا شَيْئًا ثُمَّ قَامَتْ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَاْ فِيْهَا رَاْيَكَ فَلَمْ يُجِبْهَا شَيْئًا ثُمَّ قَامَتِ الثَّالِثَةَ فَقَالَتْ اِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَاْ فِيْهَا رَاْيَكَ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْكِحْنِيْهَا قَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا قَالَ اذْهَبْ فَاطْلُبْ وَلَوْ خَاتَمًا مِّنْ حَدِيْدٍ فَذَهَبَ فَطَلَبَ ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا وَلَا خَاتَمًا مِّنْ حَدِيْدٍ فَقَالَ هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ شَيْءٌ قَالَ مَعِيَ سُوْرَةُ كَذَا وَسُوْرَةُ كَذَا قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ اَنْكَحْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

۱۳۴ : علي بن عبدالله. سفيان. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي' زه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره د نورو خلقو ملگرتيا كښې ناست ووم' يوه ښځه راغله' اودريده' او عرض ئے اوكه' يا رسول الله' ما خپل نفس تاسوٴ ته اُوبښلو' تاسوٴ خپل زړه كښې مشوره اوكړئے. حضورؐ خاموشي اختيار كړله. هغه بيا اُودريده' عرض ئے اوكه يا رسول الله' ما خپل نفس تاسوٴ ته اُوبښلو' تاسوٴ چه څه غواړئے' هغه اوكړئے. حضورؐ بيا خاموش شولو. په دريم وار هغے ښځے بيا عرض اوكه' ما خپل نفس تاسوٴ ته دركړلو' ستاسو چه څنگه خوښه وي' هغسے اوكړئے' بيا يو سړے (صحابي) اودريدلو عرض ئے اوكه' يا رسول الله' دا ماته واده كړئے. حضورؐ ورته اوفرمائيل' تاسره څه (مال متاع) شته. هغه اووے نه. حضورؐ ورته اوفرمائيل' لاړ شه' (كور كښې كه) د' اوسپنے گوته بيامومے' نو هغه راوړه. هغه لاړ تلاش ئے اوكه' بيا راغے' وئيلے' ماته خو هيڅ په لاس رانغلل' نو م د اوسپنے گوته چرته بيامنده. بيا ترے حضورؐ تپوس اوكه' تاته قرآن څه ياد' دے' هغه اووے' ماته فلانے فلانے سورت ياد' دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل' خه' ما ددے نكاح تاسره ستا د قرآن يادولو (حفظ كولو) په سبب اوكړله.

**بـاب ۸۱: اَلْمَهْرِ بِالْعُرُوْضِ**

**بـاب ۸۱: نور اسباب او ود' اوسپنے گوته**

وَخَاتَمٍ مِنْ حَدِيْدٍ.

(ګوتمۍ) هم مهر کېښ د مقرر کیدو بیان.

۱۳۵ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ تَزَوَّجْ وَلَوْ بِخَاتَمٍ مِنْ حَدِيْدٍ.

۱۳۵ : یحیٰی. وکیع. سفیان. ابو حازم. سهل بن سعد نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یو سړي ته ارشاد اوفرمائیلو، واده اوکړه، اګر که د اوسپنے د ګوتے په عوض کښې ولے نه وي.

بَابُ ۸۲ : الشُّرُوْطِ فِي النِّكَاحِ وَقَالَ عُمَرُ مَقَاطِعُ الْحُقُوْقِ عِنْدَ الشُّرُوْطِ وَقَالَ الْمِسْوَرُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ صِهْرًا لَهُ فَأَثْنٰى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ فَأَحْسَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ فَصَدَقَنِيْ وَوَعَدَنِيْ فَوَفٰى لِيْ.

باب ۸۲ : د نکاح په وخت د شرطونو کولو بیان. حضرت عمرؓ اوفرمائیل، د حقوقو ختمیدلو وخت کښې به هم د شرائطو لحاظ ساتلے کیږي. مسور وائي ما د حضورؐ نه واوریدل. حضورؐ د خپل زوم (داماد) ذکر اوکه او د زوم توب د حقوقو په آدا کولو، ئے د هغه تعریف اوکه او وے فرمائیل، کومه خبره چه هغه ماسره کړے وه، هغه ئے ریښتینے اوښودله، او کومه وعده چه ئے کړے وه هغه ئے پوره کړے اوښودله.

۱۳۶ : حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَحَقُّ مَا أَوْفَيْتُمْ مِنَ الشُّرُوْطِ أَنْ تُوْفُوْا بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوْجَ.

۱۳۶ : ابوالولید. هشام بن عبدالملک. یزید بن حبیب. ابوالخیر. عقبهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم به فرمائیل، په تاسو د ټولو شرطونو نه زیات د، نکاح د، شرطونو د پوره کولو حق دے، چه د هغے په وجه تاسو د پاره د هغوئ شرمګاهونه حلال شول.

بَابُ ۸۳ : الشُّرُوْطِ الَّتِيْ لَا تَحِلُّ فِي النِّكَاحِ وَقَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ لَا تَشْتَرِطُ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ أُخْتِهَا.

باب ۸۳ : د نکاح په وخت شرطونه عاید کول درست نه دي ابن مسعود وائي، ښځه دے د خپلے مسلمانے خور د، طلاق شرط نه لږوي.

۱۳۷ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ زَكَرِيَّاءَ هُوَ ابْنُ أَبِيْ زَائِدَةَ

۱۳۷ : عبیداللّٰه بن موسٰي. ذکریا بن ابي زائده. سعد بن ابراهیم. ابو سلمه. ابوهریرهؓ نه روایت کوي،

عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تَسَالُ طَلَاقَ اُخْتِهَا لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا فَاِنَّمَا لَهَا مَا قُدِّرَ لَهَا.

رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ښځے له دا جائز نه دي چه د نكاح په وخت د خپلے مسلمانے خور د' طلاق مطالبه اوكړي' چه د هغے ركيبئ خان د پاره حاصله كړي' ځكه چه د هغے تقدير كښ څه وي' هغه به ورته رسي.

## بـاب ۸۴: الصُّفْرَةُ لِلْمُتَزَوِّجِ

وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۸۴: د' واده د' خلمي د' رنگ استعمالولو بيان. عبدالرحمٰن بن عوف د نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت كه.

۱۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ جَآءَ اِلَى الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبِهِ اَثَرُ صُفْرَةٍ فَسَاَلَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ اَنَّهُ تَزَوَّجَ امْرَاَةً مِنَ الْاَنْصَارِ قَالَ كَمْ سُقْتَ اِلَيْهَا قَالَ زِنَةَ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ لِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

۱۳۸: عبدالله بن يوسف. مالك. حميد طويل. انس بن مالك نه روايت كوي. عبدالرحمٰن بن عوف' رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغے' نو د هغه په كپړو د' زيړ رنگ نښنه وه' نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ترے تپوس اوكه دا (زردي) څنگه ده. هغه اووے' ما يو انصارے ښځے سره واده كړے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل مهر دے څومره وركړے دے. ما اووے' د يو كټكي برابر سره زر (سونا). حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' وليمه اوكه اگر كه يوه چيلئے وي.

## باب ۸۵:

باب ۸۵: (ددے باب څه سُرخي نشته).

۱۳۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اَوْ لَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ فَاَوْسَعَ الْمُسْلِمِيْنَ خَيْرًا فَخَرَجَ كَمَا يَصْنَعُ اِذَا تَزَوَّجَ

۱۳۹: مسدد. يحيي. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلّم د بي بي زينب وليمه اوكړله' نو ډيرو مسلمانانو اوخوړله' بيائے بهرته تشريف راوړلو' ځنگه چه د حضور صلي الله عليه وسلّم د' نكاح نه پس عادت وو. د' اُمهات المومنين حجرو كښ خپلو كښ سلام او دُعا كيدله. دے نه پس ئے

فَأَتَى حُجَرَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ يَدْعُوْ وَيَدْعُوْنَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَرَأَى رَجُلَيْنِ فَرَجَعَ لَا أَدْرِيْ أَخْبَرْتُهُ أَوْ أُخْبِرَ بِخُرُوْجِهِمَا.

واپس تشريف راوړلو، نو وې ليدل چه دوه سړي لا اوس هم ناست دي. نو حضور صلي الله عليه وسلم واپس لاړلو. بيا ياد نه دي، چه د هغوي د تلو خبر ما حضور صلي الله عليه وسلم ته ورکړلو. يا بل چا.

باب ۸۶: كَيْفَ يُدْعَى لِلْمُتَزَوِّجِ.

باب ۸۶: د، واده خلمي ته د، دُعا کولو بيان.

۱۴۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍؓ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ قَالَ مَا هٰذَا قَالَ إِنِّيْ تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

۱۴۰: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په عبدالرحمٰن بن عوف زيړه نښه اوليده، نو تپوس ئے اوکه، دا څه دي، هغه اووے. ما د يو کټکي سرو زرو برابر د يوے ښځے سره نکاح کړے ده، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه جل جلاله دے برکت درکړي. وليمه اوکړه اګر که يوه چيلئے وي.

ف: وليمه: د واده روټي يا، دعوت، خو چه ورومبنے شپه تيره شي. د نکاح ضيافت.

باب ۸۷: الدُّعَاءِ لِلنِّسَاءِ اللَّاتِيْ يُهْدِيْنَ الْعُرُوْسَ وَلِلْعُرُوْسِ.

باب ۸۷: د، ناوے جوړونکو ښځو د، ناوے په حق کښې د، دُعا کولو بيان.

۱۴۱: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ تَزَوَّجَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْنِيْ أُمِّيْ فَأَدْخَلَتْنِي الدَّارَ فَإِذَا نِسْوَةٌ مِّنَ الْأَنْصَارِ فِي الْبَيْتِ فَقُلْنَ عَلَى الْخَيْرِ وَالْبَرَكَةِ وَعَلَى خَيْرِ طَائِرٍ.

۱۴۱: فروه علي بن مسهر. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ماسره نکاح اوکړله، او زه ئے خپل کور ته بوتلم، ما اوليدل چه څنے انصارے ښځے کور کښې موجود دي. هغوي چه زه اوليدم، نو وئيلے، اللّٰه دے خير و برکت درکړي، نيک نصيبے، ژوندے اوسئے.

باب ۸۸: مَنْ أَحَبَّ الْبِنَاءَ قَبْلَ الْغَزْوِ.

باب ۸۸: جنګ کښې د شريکيدونه مخکښې د، زفاف کولو (د واده د شپے تيرولو) بيان.

۱۴۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ فَقَالَ لِقَوْمِهِ لَا يَتْبَعْنِي رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمْ يَبْنِ بِهَا.

۱۴۲ : محمد بن علاء. ابن مبارک. معمر. همام. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل. نبيانو کښې يو نبي جهاد او کړه او خپل قوم ته ئې اوويے، ما سره دې هغه سړے نه خي. چه هغه اوس اوس نکاح کړے وي، او خپلے بي بي سره نکاح کول غواړي، او اوسه پورې هغه خلوت (صحبت) نه وي کړے.

## باب ۸۹ : مَنْ بَنَى بِامْرَأَةٍ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ.

## باب ۸۹ : د نهه کالو عمر جينۍ سره د خلوت کولو بيان.

۱۴۳ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِشَةَ وَهِيَ ابْنَةُ سِتٍّ وَبَنَى بِهَا وَهِيَ ابْنَةُ تِسْعٍ وَمَكَثَتْ عِنْدَهُ تِسْعًا.

۱۴۳ : قبيصه بن عقبه. سفيان. هشام بن عروه. حضرت عروه نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم بي بي عائشےؓ سره هغه وخت نکاح کړے وه، چه د هغے عمر شپږ کاله وو. او د نهه کالو په عمر کښې ئې ورسره خلوت او کړه او نهه کاله د حضور صلي الله عليه وسلّم په نکاح کښې وه[۱].

۱. دا حديث ددے نه مخکښے هم په ګنړو طريقو سره راغلے دے او په يوه موقعه په نوټ کښے ددے وضاحت هم کړے شوے دے چه د عربو غوندے ګرمه علاقه کښے به ښځے عموماً د نهو کالو په عمر کښے بالغے کيدلے او په دے عمر کښے به د هغوئ وادهٔ کيدلو او خپلو خاوندانو کره به رخصت کيدلے. د بلوغ د ابتدا تعلق موسم او آب و هوا سره هم تر ډيره حده پورے دے. په ډيرو زياتو ګرمو علاقو کښے ښځے او سړي زر بالغيږي، ددے په عکس زياتو يخو علاقو کښے بالغ والے اوسطاً په اتلسو، شلو کالو کښے کيږي.

## باب ۹۰ : الْبِنَاءِ فِي السَّفَرِ.

## باب ۹۰ : سفر کښې نوے ناوے سره د، يوځائے کيدو بيان.

۱۴۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى

۱۴۴ : محمد بن سلام. اسمٰعيل بن جعفر. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم درے ورځے پورے د مدينے او خيبر مينځ کښې قيام او کړه، هلته حضورؐ بي بي صفيةؓ بنت حيي سره

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثًا يُبْنٰى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلٰى وَلِيمَتِهِ فَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَأُلْقِيَ فِيهَا مِنَ التَّمْرِ وَالْأَقِطِ وَالسَّمْنِ فَكَانَتْ وَلِيمَتَهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ إِحْدٰى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَإِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّأَ لَهَا خَلْفَهُ وَمَدَّ الْحِجَابَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّاسِ.

خلوت (صحبت) اوکه. د حضور صلي الله علیه وسلّم د ولیمے د پاره ما خلقوته دعوت ورکه، هغے کښې نه غوښه وه، نه روټئي، حضور صلي الله علیه وسلّم چه حکم اوکړلو، نو په دسترخوان باندے قجورے، پنیر او چربي کیښودے شوه او دغه د حضور صلي الله علیه وسلّم ولیمه وه، مسلمانانو سوچ اوکه، چه دا، د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بي بي ده یا، وینزه. بیا ئے خیال اوکه، که حضور صلي الله علیه وسلّم پرے پرده اوکړي نو پوهه شے چه د حضور صلي الله علیه وسلّم ښځه ده او که پټه ئے نه کړي، نو وینزه ده، بیا چه نبي صلي الله علیه وسلّم روان شولو، نو د هغے د ناستے ځائے ئے خپل ورستو جوړ که، او د هغے او د خلقو مینځ کښې ئے پرده اوکړله.

## بَابٌ ١٩١ : الْبِنَاءِ فِي النَّهَارِ بِغَيْرِ مَرْكَبٍ وَلَا نِيرَانٍ.

باب ۱۹۱ : د، ورځے د خلوت کولو او بغیر سورلي او رڼا د، برات (د واده د جنج) بوتلو حکم.

١٣٥ : حَدَّثَنِي فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تَزَوَّجَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْنِي أُمِّي فَأَدْخَلَتْنِي الدَّارَ فَلَمْ يَرُعْنِي إِلَّا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ ضُحًى.

۱۳۵ : فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام. عروه. بي بي عائشے نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم چه ما سره نکاح اوکړله، نو خما مور راغله، زه ئے یو کورته بوتلم. نو زۀ هیڅ څیز په ویره کښې وانه چولم مګر دَ څاښت وخت کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلّم راتللو.

## بَابٌ ١٩٢ : اَلْأَنْمَاطِ وَنَحْوِهَا لِلنِّسَاءِ.

باب ۱۹۲ : ښځو د پاره د، پردو یا، د، نورو غوړلو د، څیزونو استعمال.

١٣٦ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۱۳۶ : قتیبه بن سعید. سفیان. محمد بن منکدر. جابر بن عبداللّٰه نه روایت

الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلِ اتَّخَذْتُمْ اَنْمَاطًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاَنّٰى لَنَا اَنْمَاطٌ قَالَ اِنَّهَا سَتَكُوْنُ.

كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو انماط جوړ كړل، ما عرض اوكه. انماط به كوم خائے حاصل شي، نو حضورؐ اوفرمائيل، عنقريب به حاصل شي.

ف: انماط: پردے وغيره.

**باب۹۳: اَلنِّسْوَةِ اللَّاتِيْ يُهْدِيْنَ الْمَرْاَةَ اِلٰى زَوْجِهَا.**

**باب۹۳:** د، نوے ناوے، د هغے د خاوند كورته (سنگار سره) د، رخصتولو بيان.

۱۴۷: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا زَفَّتِ امْرَاَةً اِلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ نَبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ مَا كَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ فَاِنَّ الْاَنْصَارَ يُعْجِبُهُمُ اللَّهْوُ.

۱۴۷: فضل بن يعقوب. محمد بن سابق. اسرائيل. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ما يوه (يتيمه جينۍ) يو انصاري ته واده كړله، نو نبي صلي الله عليه وسلّم تپوس اوكه، اے عائشےؓ. تاسره تنبل وهونكے نه وو؟ ځكه چه انصاروته سرود ښه معلوميږي (يا دا چه سرود خوښوي).

**باب۹۴: اَلْهَدِيَّةُ لِلْعَرُوْسِ**

وَقَالَ اِبْرٰهِيْمُ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ وَاسْمُهُ الْجَعْدُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ مَرَّبِنَا فِيْ مَسْجِدِ بَنِيْ رِفَاعَةَ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَرَّ بِجَنَبَاتِ اُمِّ سُلَيْمٍ دَخَلَ عَلَيْهَا فَسَلَّمَ عَلَيْهَا ثُمَّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرُسًا بِزَيْنَبَ فَقَالَتْ لِيْ اُمُّ سُلَيْمٍ لَوْ اَهْدَيْنَا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**باب۹۴:** تازه ناوے ته د، تحفے وركولو بيان. او ابراهيم. ابي عثمان. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم د، اُم سليم طرف ته تيريدلو نو حضور صلي الله عليه وسلّم به ورته سلام كولو. او انسؓ دا هم وائي. حضور صلي الله عليه وسلّم چه بي بي زينبؓ سره نوے واده اوكه نو ماته اُم سليم اووے، څه ښه به وے، كه مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم ته تحفه ليږلے وے. ما هغه ته اووے، تا ته اختيار دے، بيا هغه قجورے، چربي او پنير واخستل. ديگچي كښې ئے ماليده

وَسَلَّمَ هَدِيَّةً فَقُلْتُ لَهَا افْعَلِيْ فَعَمَدَتْ اِلَى تَمْرٍ وَسَمْنٍ وَاَقِطٍ فَاتَّخَذَتْ حَيْسَةً فِيْ بُرْمَةٍ فَاَرْسَلَتْ بِهَا مَعِيَ اِلَيْهِ فَقَالَ لِيْ ضَعْهَا ثُمَّ اَمَرَنِيْ فَقَالَ ادْعُ لِيْ رِجَالًا سَمَّاهُمْ وَادْعُ لِيْ مَنْ لَقِيْتَ قَالَ فَفَعَلْتُ الَّذِيْ اَمَرَنِيْ فَرَجَعْتُ فَاِذَا الْبَيْتُ غَاصٌّ بِاَهْلِهٖ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى تِلْكَ الْحَيْسَةِ وَتَكَلَّمَ بِهَا مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ جَعَلَ يَدْعُوْ عَشَرَةً عَشَرَةً يَاْكُلُوْنَ مِنْهُ وَيَقُوْلُ لَهُمْ اذْكُرُوْا اسْمَ اللّٰهِ وَلْيَاْكُلْ كُلُّ رَجُلٍ مِمَّا يَلِيْهِ قَالَ حَتّٰى تَصَدَّعُوْا كُلُّهُمْ عَنْهَا فَخَرَجَ مِنْهُمْ مَنْ خَرَجَ وَبَقِيَ نَفَرٌ يَتَحَدَّثُوْنَ قَالَ وَجَعَلْتُ اَغْتَمُّ ثُمَّ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ الْحُجُرَاتِ وَخَرَجْتُ فِيْ اَثَرِهٖ فَقُلْتُ اِنَّهُمْ قَدْ ذَهَبُوْا فَرَجَعَ فَدَخَلَ الْبَيْتَ وَاَرْخَى السِّتْرَ وَاِنِّيْ لَفِي الْحُجْرَةِ وَهُوَ يَقُوْلُ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّا اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰهُ وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِى النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ

(چوری) جوړه کړه، ما سره ئې حضور صلي الله عليه وسلّم ته اوليږله. ما واخستل او حضورَ ته اورسېدم. نو حضورَ اوفرمائيل: دا کېږده، بيائې ماته د يو څو سړو نومونه واخستل وې فرمائيل: دوئ راغواړه، او چا سره چه ته يو ځائې شې، هغه راوله، ما د حضورَ د حکم تعميل اوکه. واپس راغلم، نو څه گورم، چه کور د خلقو نه ډک دے، حضورَ مِ اوليدلو چه په هغه ماليده (چوري) ئې لاس مبارک ايښے دے. او څه کلام، کوم چه خدائې غوښتلو هغه ئې لوستلو. بيا لس لس سړي ئې طعام د پاره راغښتل، او هغوي ته ئې فرمائيل، بسم الله وائې او د خپلے مخے نه خورئې. بيا ټولو اوخوړه، او خواره شول. او ډير رخصت هم شول. او څو سړو خبرے کولے، چه هغے سره ماته تکليف محسوس کيدلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم د خپلے بي بي مبارکے حجرے طرف ته لاړلو. حضورٌ پسے زه هم لاړم. کوم وخت چه ما اطلاع ورکړه، چه هغه خلق هم لاړل. نو حضورٌ کورته تشريف يوړلو، او پرده ئې واچوله. زه حجره کښ موجود ووم، حضور صلي الله عليه وسلّم دا ايت لوستلو: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ الخ: اے ايمان والو، د خپل نبي کورونوته بغير د هغوي د، اجازت نه مه ورځئې او د خوراک نه پس واپس کيږئې. او هلته ناسته او خبرو کښ مه مشغوليږئې دے خبرے سره نبي ته تکليف رسي او د شرم او لحاظ د وجے نه هغه تاسوته څه نه وائ

مِنْكُمْ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ قَالَ اَبُوْ عُثْمَانَ قَالَ اَنَسٌ اِنَّهُ خَدَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَ سِنِيْنَ.

(يعني چه ځي خپلو كورونو ته واپس شي) او الله تعالىٰ د حق خبرے نه، نه شرميږے. ابو عثمان وائي چه انسؓ وائي، ما لس كاله پورے د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت كړے دے.

**باب ۹۵: اسْتِعَارَةِ الثِّيَابِ لِلْعَرُوْسِ وَغَيْرِهَا.**

**باب ۹۵: ناوے د، پاره عارية د، كپړو او زيوراتو (كالو) وغيره د، غوښتلو بيان.**

۱۴۸: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا اسْتَعَارَتْ مِنْ اَسْمَآءَ قِلَادَةً فَهَلَكَتْ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسًا مِنْ اَصْحَابِهٖ فِيْ طَلَبِهَا فَاَدْرَكَتْهُمُ الصَّلٰوةُ فَصَلَّوْا بِغَيْرِ وُضُوْءٍ فَلَمَّا اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَكَوْا ذٰلِكَ اِلَيْهِ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ التَّيَمُّمِ فَقَالَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ جَزَاكِ اللّٰهُ خَيْرًا فَوَاللّٰهِ مَا نَزَلَ بِكِ اَمْرٌ قَطُّ اِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ لَكِ مِنْهُ مَخْرَجًا وَجَعَلَ لِلْمُسْلِمِيْنَ فِيْهِ بَرَكَةً.

۱۴۸: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ما چه د اسماء نه كوم هار غوښتلے وو، هغه ورک شوے وو، نو د هغے د تلاش د پاره رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خلق اوليږل. په لاره په هغوي د، مانځه وخت راغے. اوبه نه وے، په دے وجه هغوي بے اودسه مونځ اوكه. هر كله چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته راغلل، دا شكايت ئے ورته اوكه، نو د تيمم آيت نازل شولو. اُسيد بن حضير اووے. اے بي بي عائشےؓ اللّٰه تعالىٰ دے جزائے خير دركړي، قسم په خدائے، كله چه تاسو ته څه حادثه پيښه شوه، نو خدائے تعالىٰ يوازے تاسو له نجات (خلاصي) درنه كه، بلكه نورو مسلمانانو ته هم ددے نه بركت او سهولت نصيب شو.

**باب ۹۶: مَا يَقُوْلُ الرَّجُلُ اِذَا اَتٰى اَهْلَهٗ.**

**باب ۹۶: خپلے ښځے ته د، راتلو په وخت د، دُعا لوستلو بيان.**

۱۴۹: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا لَوْ اَنَّ اَحَدَهُمْ يَقُوْلُ

۱۴۹: سعد بن حفص. شيبان. منصور. سالم بن ابي الجعد. كريب. ابن عباسؓ نه روايت كوي، د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد دے، كه څوک خپلے ښځے سره بسم اللّٰه اووائي، او دا دُعا اوكړي اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنِي الشَّيْطٰنَ الخ: اے اللّٰه

حِيْنَ يَأْتِيْ اَهْلَهٗ بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنِيْ الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا ثُمَّ قُدِّرَ بَيْنَهُمَا فِيْ ذٰلِكَ اَوْ قُضِيَ وَلَدٌ لَمْ يَضُرَّهٗ شَيْطَانٌ اَبَدًا.

ما د شيطان نه لرے اوساتے' او كوم اولاد چه ته مونږ ته عنايت كړے' هغه د شيطان نه لرے اوساتے' نو د هغوي چه كوم بچي پيدا شي هغه ته شيطان نقصان نه شي رسولے.

ف: يا اللّٰه' دا' دُعا خمونږ او خمونږ د ال اولاد په حقله هم قبوله كړے. اللّٰهم آمين.

## باب۷۹: اَلْوَلِيْمَةُ حَقٌّ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

باب۷۹: د' وليمه كولو بيان عبدالرحمٰن بن عوف وائي' ماته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. وليمه اوكړه. اگر كه يوه چيلئے وي.

۰ ۱۵ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ اَنَّهٗ كَانَ ابْنَ عَشْرَ سِنِيْنَ مَقْدَمَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَكَانَ اُمَّهَاتِيْ يُوَا اظِبْنَنِيْ عَلٰى خِدْمَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ فَخَدَمْتُهٗ عَشْرَ سِنِيْنَ وَتُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا ابْنُ عِشْرِيْنَ سَنَةً فَكُنْتُ اَعْلَمَ النَّاسِ بِشَانِ الْحِجَابِ حِيْنَ اُنْزِلَ وَكَانَ اَوَّلَ مَا اُنْزِلَ فِيْ مُبْتَنٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ اَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَا عَرُوْسًا فَدَعَا الْقَوْمَ

۰ ۱۵ : يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب نه روايت كوي' انس بن مالكؓ ماته اطلاع راكړه' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه كوم وخت مدينے ته تشريف راوړلو' نو هغه وخت خما عمر لس كاله وو' خما مور به ماته هميشه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د خدمت د پاره حكم راكولو ما لس كاله د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت اوكه. او كوم وخت چه حضورؐ وفات شولو' نو زه (انسؓ) د' شلو كالو ووم. د حجاب (پردے) باره كښ چه كوم آيت نازل شو' د هغے نه زه ښه واقف يم. او اول شان نزول د زينب بنت جحش ذ شب زفاف ذ حجاب ايت دے په كوم سحر چه رسول اللّٰهؐ زينب بنت جحش ناوے جوړه شوه' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل قوم راوغښتلو' طعام ئے ورے اوخوړلو. طعام نه پس خو اكثر خلق لاړل' خو څنے په كښ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو' او هغوي ډير وخت واخستلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پاسيدلو' بهرته لاړلو. زه هم حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم

فَأَصَابُوا مِنَ الطَّعَامِ ثُمَّ خَرَجُوا وَبَقِيَ رَهْطٌ مِنْهُمْ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَطَالُوا الْمُكْثَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَشَيْتُ حَتَّى جَآءَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ ظَنَّ أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ حَتَّى إِذَا دَخَلَ عَلَى زَيْنَبَ فَإِذَا هُمْ جُلُوسٌ لَمْ يَقُومُوا فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ حَتَّى إِذَا بَلَغَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ وَظَنَّ أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ فَإِذَاهُمْ قَدْ خَرَجُوا فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ بِالسِّتْرِ وَأُنْزِلَ الْحِجَابُ.

سره په دے خیال بهرته لاړم. چه شاید دا خلق هم پاسي؛ حضورؐ او زه کرخیدو راګرځیدو، او کوم وخت چه د بي بي عائشےؓ حجرے پورے راغلو، نو خیال مو اوکړ، چه هغه خلق به تلے وي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بیا واپس راغے، او زه هم ورسره راغلم، کوم وخت چه زینب له ورغے، نو، وے لیدل، چه هغه سرې ناست دي، تلے نه دي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بیا واپس شو او، زه هم ورسره راغلم. کوم وخت چه مونږ د بي بي عائشےؓ د حجرے د چوکټ پورے راغلو او ګمان مو اوکه چه هغه خلق به تلے وي، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بیا تشریف راوړلو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره زه هم ووم. اوس معلومه شوه چه هغه خلق تلے دي، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خما او د، خپل خان مینځ کښ پرده واچوله، او (دغه وخت) د پردے آیت نازل شولو.

باب۹۸ : الْوَلِيمَةِ وَلَوْ بِشَاةٍ.

باب۹۸ : د، یوے چیلے د، ولیمے کولو بیان.

۱۵۱ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا قَالَ سَأَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَّتَزَوَّجَ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ كَمْ أَصْدَقْتَهَا قَالَ وَزْنَ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ.

۱۵۱ : علي. سفیان. حمید. حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، کوم وخت چه عبدالرحمٰن بن عوف یو انصارے ښځے سره واده اوکه نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ترے تپوس اوکه څومره مهر دے ورکړلو. هغه ورته اووے، د قجورے د هډوکي د، وزن برابر سر زر (سونا) م ورکړے وو.

۱۵۲ : حَدَّثَنَا وَعَنْ حُمَيْدٍ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ نَزَلَ الْمُهَاجِرُوْنَ عَلَى الْأَنْصَارِ فَنَزَلَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ عَلَى سَعْدِ

۱۵۲ : حمید. حضرت انس نه روایت کوي، کوم وخت چه مهاجر مدینے ته راغلل، نو د انصارو کورونو کښ کوز شولو، عبدالرحمٰن بن عوف سعد بن ربیع کره کوز شولو. هغه ورته اووے، اے وروره

بْنِ الرَّبِيْعِ فَقَالَ اُقَاسِمُكَ مَالِيْ وَاَنْزِلُ لَكَ عَنْ اِحْدَى امْرَاَتِيَّ قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِيْ اَهْلِكَ وَمَالِكَ فَخَرَجَ اِلَى السُّوْقِ فَبَاعَ وَاشْتَرٰى فَاَصَابَ شَيْئًا مِنْ اَقِطٍ وَسَمْنٍ فَتَزَوَّجَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

عبدالرحمانه، زه تاته خپل مال درکوم. او يوې ښځې له طلاق ورکوم او تاته ئې واده کوم. عبدالرحمٰن ورته اووې، ستا مال او بيبيانې دې الله تعالٰي تاته مبارک کړي. دې نه پس عبدالرحمٰن بازار ته لاړلو. او خريد و فروخت ئې شروع کړلو څه غوړي او پنير ئې حاصل کړل، بيائې واده اوکه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، وليمه اوکه اګر که يوه چيلۍ وي.

۱۵۳ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَا اَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى شَيْءٍ مِنْ نِسَآئِهٖ مَآ اَوْلَمَ عَلٰى زَيْنَبَ اَوْلَمَ بِشَاةٍ.

۱۵۳ : سليمان بن حرب. حماد بن ثابت. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ بي بي زينبؓ برابر د هيڅ بلې بي بي وليمه نه وه کړې، ځکه چه د، يوې چيلۍ وليمه ئې کړې وه.

۱۵۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ عَبْدِ الْوَارِثِ عَنْ شُعَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَتَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا وَاَوْلَمَ عَلَيْهَا بِحَيْسٍ.

۱۵۴ : مسدد. عبدالوارث. شعيب. حضرت انسؓ نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم چه بي بي صفيهؓ آزاده کړه، نو نکاح ئې ورسره اوکړله، او د هغې آزادي ئې د هغې مهر اوګرځولو. او د هغې وليمه کښ ئې په خلقو ماليده (چوري) اوخوروله.

۱۵۵ : حَدَّثَنَا مَالِكُ ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ بَيَانٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ بَنَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَاَةٍ فَاَرْسَلَنِيْ فَدَعَوْتُ رِجَالًا اِلَى الطَّعَامِ.

۱۵۵ : مالک بن اسماعيل. زهير. بيان. حضرت انسؓ نه روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه بي بي زينبؓ سره خلوت اوکه، زه ئې اوليږلم، نو خلق م (د وليمې) د طعام د پاره راوغوښتل.

## بَاب ۹۹ : مَنْ اَوْلَمَ عَلٰى بَعْضِ نِسَآئِهٖ اَكْثَرَ مِنْ بَعْضٍ.

## باب ۹۹ : د، يوې بي بي د، بلې بي بي نه د زياتې وليمې کولو بيان.

۱۵۶ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ ذُكِرَ

۱۵۶ : مسدد. حماد بن زيد. ثابت نه روايت کوي. د، بي بي زينب بنت جحش د، نکاح واقعه د هغه

تَزْوِيجُ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ عِنْدَ اَنَسٍ فَقَالَ مَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلَمَ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْ نِسَآئِهٖ مَآ اَوْلَمَ عَلَيْهَا اَوْلَمَ بِشَاةٍ.

مخکښې راغله، وې فرمائيل، څومره چه د بي بي زينبؓ وليمه کښې حضور صلي الله عليه وسلّم خرچ اوکړ دومره م د بلې هيڅ بي بي په وليمه کښې نه دي لېدلې. د يوې چيلۍ وليمه ئې کړې وه.

**باب ۱۰۰ : مَنْ اَوْلَمَ بِاَقَلَّ مِنْ شَاةٍ.**

**باب ۱۰۰ :** د يوې چيلۍ نه د کمې وليمې کولو بيان.

**۱۵۷ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرِ بْنِ صَفِيَّةَ عَنْ اُمِّهٖ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ اَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَعْضِ نِسَآئِهٖ بِمُدَّيْنِ مِنْ شَعِيْرٍ.

**۱۵۷ :** محمد بن يوسف. سفيان. منصور بن صفيه. صفيه بنت شيبه نه روايت کوي، د هغې بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د خپلو بعضو بيبيانو وليمه د، څلوروو سيرو، وربشو کړې وه.

**باب ۱۰۱ : حَقِّ اِجَابَةِ الْوَلِيْمَةِ وَالدَّعْوَةِ وَمَنْ اَوْلَمَ سَبْعَةَ اَيَّامٍ وَّنَحْوَهٗ وَلَمْ يُوَقِّتِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَّلَا يَوْمَيْنِ.**

**باب ۱۰۱ :** د، وليمې د، دعوت د قبلولو بيان. او اوو ورځو پورې که څوک وليمه اوخوري (نو جائز دي) ځکه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو يا په دوو ورځو پورې منحصر کړې نه ده.

**۱۵۸ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دُعِيَ اَحَدُكُمْ اِلَى الْوَلِيْمَةِ فَلْيَأْتِهَا.

**۱۵۸ :** عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې. د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد دې، که تاسو څوک د وليمې د، دعوت د پاره اوبلي. نو ضرور ورځئ.

**۱۵۹ :** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُكُّوا الْعَانِيَ

**۱۵۹ :** مسدد. يحيٰي. سفيان. منصور. ابي وائل. حضرت ابو موسٰي نه روايت کوي، د هغه بيان دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې دي. قيديان د قيد نه خلاص کړئ. د، خلقو دعوت قبلوئ. او د، ناروغ

وَاَجِيْبُوْاالدَّاعِيَ وَعُوْدُوْا الْمَرِيْضِ.

۱۶۰ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا اَبُوْ الْاَحْوَصِ عَنِ الْاَشْعَثِ عَنْ مُعٰوِيَةَ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍؓ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَّنَهَا عَنْ سَبْعٍ اَمَرَنَا بِعَبَادَةِ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعِ الْجِنَازَةِ وَّتَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَاِبْرَارِ الْقَسَمِ وَنَصْرِ الْمَظْلُوْمِ وَاِفْشَاءِ السَّلَامِ وَاِجَابَةِ الدَّاعِي وَنَهَانَا عَنْ خَوَاتِيْمِ الذَّهَبِ وَعَنْ اٰنِيَةِ الْفِضَّةِ وَعَنِ الْمَيَاثِرِ وَالْقَسِيَّةِ وَالْاِسْتَبْرَقِ وَالدِّيْبَاجِ تَابَعَهُ اَبُوْ عَوَانَةَ وَالشَّيْبَانِيُّ عَنْ اَشْعَثَ فِيْ اَفْشَآءِ السَّلَامِ.

۱۶۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ دَعَآ اَبُوْ اُسَيْدِ السَّاعِدِيُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عُرْسِهٖ وَ كَانَتِ امْرَاَتُهٗ يَوْمَئِذٍ خَادِمُهُمْ وَهِيَ الْعَرُوْسُ قَالَ سَهْلٌ تَدْرُوْنَ مَا سَقَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْقَعَتْ لَهٗ تَمَرَاتٍ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا اَكَلَ سَقَتْهُ اِيَّاهُ.

باب ۱۰۲ : مَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ

تپوس کوے.

۱۶۰ : حسن بن ربیع. ابوالاحوص. اشعث. معاویه بن سوید. براء بن عازب نه روایت کوي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د اوو خبرو حکم اوکړلو. او د، اوو نه ئے منع اوفرمائیله، د ناروغ پښتنه، جنازے سره تلل، انتهوش کونکي له جواب ورکول، قسم پوره کول، د مظلوم مدد کول، سلام علیک کول، او دعوت قبلول، ددے تولو څیزونو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم حکم اوکه. او ددے څیزونو نه ئے منع اوفرمائیله. د سرو زرو ګوته. د چاندي لوښي، ریښمینه ګدیے چه سواره ئے په اس اچوي، ریښمین او پارچه جات کتان، اتبرق، ښے ریښمینے کپړے. د ابو الاحوص، ابو عوانه او شیباني لفظ افشاء سلام کښ د اشعث متابعت اوکه.

۱۶۱ : قتیبه بن سعید. عبدالعزیز. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روایت کوي، چه ابو سعید خپل واده کښ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته د، راتلو دعوت ورکه، د، ابو اسید تازه ناوے د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کولو. سهل اووے، تاسو ته معلومه ده، هغے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم باندے څه اوخورول، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د پاره هغے قجورے خوشتے کړے وے. کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خوراک اوکه نو هغه ئے په رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوڅکولے.

باب ۱۰۲ : د، دعوت قبلولونه پس که یو سړے دعوت له لاړ نشي، نو هغه د، اللّٰه او رسول نافرماني

وَرَسُوْلَهُ.

۱۶۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيْمَةِ يُدْعٰى لَهَا الْاَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَآءُ وَمَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب۱۰۳ : مَنْ اَجَابَ اِلٰى كُرَاعٍ.

۱۶۳ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ دُعِيْتُ اِلٰى كُرَاعٍ لَاَجَبْتُ وَلَوْ اُهْدِيَ اِلَيَّ كُرَاعٌ لَقَبِلْتُ.

باب۱۰۴ : اَجَابَةِ الدَّاعِيْ فِي الْعُرْسِ وَغَيْرِهَا.

۱۶۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ مُوْسٰى ابْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجِيْبُوْا هٰذِهِ الدَّعْوَةَ اِذَا دُعِيْتُمْ لَهَا قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَاْتِي الدَّعْوَةَ فِيْ

او كړه.

۱۶۲ : عبدالله بن يوسف. مالک ابن شهاب. اعرج ابوهريرةؓ نه روايت كوي، كومه وليمه چه د اميرانو دعوت وي او غريبان اونه غوښتلے شي، نو هغه طعام د ټولونه زيات خراب دے. او كوم سړے چه د وليمے دعوت پريږدي نو ګويا هغه د الله او د هغه د رسول نافرماني او كړه.

باب۱۰۳ : د سر، پښو د خوړولو د دعوت بيان.

۱۶۳ : عبدان. ابو حمزه. اعمش. ابي حازم. ابوهريرةؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، كه د سر پښو د خوراک هم دعوت ماته راكړے شي، نو زه به ئے قبول كړم، اوكه دا ټول څيزونه ماته هدية راوليږلے شي نو زه به ئے واخلم.

باب۱۰۴ : واده وغيره كښې د دعوت قبلولو بيان.

۱۶۴ : علي بن عبدالله بن ابراهيم. حجاج بن محمد. ابن جريج. موسي بن عقبه. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، د وليمے، وغيره دعوت د پاره چه تاسو څوک اوبلي، نو قبول ئے كړئے. نافع وائي حضرت عبدالله بن عمرؓ به د واده وغيره دعوتونو كښې د روژے ساتلو

الْعُرُسِ وَغَيْرِ الْعُرُسِ وَهُوَ صَائِمٌ.

باوجود ورتللو.

بَابُ ۱۰۵ : ذَهَابِ النِّسَآءِ وَالصِّبْيَانِ اِلَى الْعُرُسِ.

باب ۱۰۵ : د ولیمے دعوت کښ د ښځو او د بچو بوتلو بيان.

۱۶۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مُبَارَكٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ اَبْصَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَآءً وَّصِبْيَانًا مُقْبِلِيْنَ مِنْ عُرُسٍ فَقَامَ مُمْتَنًّا فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَنْتُمْ مِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ.

۱۶۵ : عبدالرحمٰن بن مبارک. عبدالوارث. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، يو خل د انصارو ښځے او بچي د وليمے د دعوت نه راتلو بانديے ليدو سره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د خوشحالي نه اودريدلو، او وے فرمائيل. تاسو خلق ماته د ټولو خلقو نه زيات محبوب ئے.

بَابُ ۱۰۶ : هَلْ يَرْجِعُ اِذَا رَاٰى مُنْكَرًا فِي الدَّعْوَةِ وَرَاٰى ابْنُ مَسْعُوْدٍ صُوْرَةً فِي الْبَيْتِ فَرَجَعَ وَدَعَا ابْنُ عُمَرَ اَبَا اَيُّوْبَ فَرَاٰى فِي الْبَيْتِ سِتْرًا عَلَى الْجِدَارِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ غَلَبَنَا عَلَيْهِ النِّسَآءُ فَقَالَ مَنْ كُنْتُ اَخْشٰى عَلَيْهِ فَلَمْ اَكُنْ اَخْشٰى عَلَيْكَ وَاللّٰهِ لَا اَطْعَمُ لَكُمْ طَعَامًا فَرَجَعَ.

باب ۱۰۶ : دعوت کښ که څه خرابه خبره اوويني نو د واپس راتلو بيان. ابن مسعود، يو مکان کښ تصوير ليدلو سره واپس راغے، ابن عمرؓ ابو ايوب رابللے وو، هغه په ديوار تصوير اوليد ابن عمرؓ اووے، دے کښ په مونږ ښځے غالبے راغلے دي. ابو ايوب اووے. په کومو خلقو چه خما ددے خوف وو، هغه ډير کم دي، خو په تاسو خما دا انديښنه نه وه. په خدائے چه، زه به ډوډي اونه خورم، بيا واپس لاړلو.

۱۶۶ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيْهَا تَصَاوِيْرُ فَلَمَّا رَاٰهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَعَرَفْتُ فِيْ وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ فَقُلْتُ يَا

۱۶۶ : اسماعيل. مالک. نافع. قاسم بن محمد. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، ما تکيے اخستے وے چه هغے کښ تصويرونه وو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چه دا تصويرونه اوليدل: نو په دروازه اودريدلو. او دننه رانغے. نو زه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په مخ په کراهت پوهه شولم. ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه زه اللّٰه او رسول طرف ته توبه کوم (تاسو اوفرمائے) که مانه څه گناه شوي

رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ مَا ذَا اَذْنَبْتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَالُ هٰذِهِ النُّمْرُقَةِ قَالَتْ فَقُلْتُ اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ وَقَالَ اِنَّ الْبَيْتَ الَّذِيْ فِيْهِ الصُّوَرُ لَا يَدْخُلُهُ الْمَلٰئِكَةُ.

وي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل: دا تکيے څنګه دي. بي بي عائشهؓ وائي، ما عرض او کړه، ما دا تکيے ددے د پاره اخستے دي، چه تاسو په دے ناسته کوئے او ډډه ورته وهئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تصوير والو ته به د قيامت په ورځ عذاب وي، او د سزا په طور به ورته وئيلے شي، دا تاسو چه څه کړے دي، دا ژوندي کړئے. دے نه پس نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه کوم کور کښې تصويرونه وي، هلته د رحمت فريښتے نه راځي.

بَاب١٠٧ : قِيَامِ الْمَرْاَةِ عَلَى الرِّجَالِ فِى الْعُرُسِ وَخِدْمَتِهِمْ بِالنَّفْسِ.

باب١٠٧ : د تازه ناوے، وليمه کښې د سړو، خدمت کولو بيان.

١٦٧ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ لَمَّا عَرَّسَ اَبُوْا اُسَيْدٍ السَّاعِدِيُّ دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَصْحَابَهٗ فَمَا صَنَعَ لَهُمْ طَعَامًا وَلَا قَرَّبَهٗ اِلَيْهِمْ اِلَّا امْرَاَتُهٗ اُمُّ اُسَيْدٍ بَلَّتْ تَمَرَاتٍ فِيْ تَوْرٍ مِّنْ حِجَارَةٍ مِّنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا فَرَغَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الطَّعَامِ اَمَاثَتْهُ لَهٗ فَسَقَتْهُ تُتْحِفُهٗ بِذٰلِكَ.

١٦٧ : سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. ابو حازم. سهل نه روايت کوي، کوم وخت چه د ابو اسيد ساعدي د واده ډوډي اوخورولے شوه، نو د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او د هغوي د صحابه ؤ ئے هم دعوت اوکړ، ډوډي پخول يا، راوړل دے کښې هيڅ کار هم هغه خپله اونه کړلو، بلکه د هغه ښځے سرته اورسولو، او هغے د کانړي په پيالے کښې د شپے نه قجورے خوشتے اينښے وے. کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خوراک اوکړلو، نو هغے، هغه لوښے کښې واچولے، د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې ئے پيش کړلے.

بَاب١٠٨ : النَّقِيْعِ وَالشَّرَابِ الَّذِيْ لَا يُسْكِرُ فِيْ الْعُرُسِ.

باب١٠٨ : واده کښې د قجورو د شيرے، او هغه شربت چه نشه نه راولي د څکولو بيان.

١٦٨ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

١٦٨ : يحيي بن بکير. يعقوب بن

حدثنا يعقوب بن عبد الرحمٰن القارئ عن ابي حازم قال سمعت سهل بن سعد ان ابا اسيد الساعدي دعا النبي صلى الله عليه وسلم لعرسه فكانت امراته خادمهم يومئذ وهي العروس فقالت او قال اتدرون ما انقعت لرسول الله صلى الله عليه وسلم انقعت له تمرات من الليل في تور.

عبدالرحمن. ابو حازم نه روايت كوي' ما د سهل بن سعد نه واوريدل چه ابو اُسيد ساعدي خپل واده كښې د نبي صلي الله عليه وسلم دعوت اوكه. د هغه ښځې په هغه ورځ د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كولو' حالانكه هغه تازه ناوې وه. هغې ښځې يا سهل اووې' تاسوته معلومه ده' چه ما هغې ښځې (ناوې) حضور صلي الله عليه وسلم بانديے څه اوڅكول. يو پيالې كښې م په حضورؐ د قجورو شيره څكولے ده.

باب ۱۰۹: المداراة مع النساء وقول النبي صلى الله عليه وسلم انما المراة كالضلع.

باب ۱۰۹: ښځو سره د' نرمي كولو بيان. د حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد دے' چه ښځه د' پښتئ (پسلي) په شان ده.

۱۶۹: حدثنا عبد العزيز بن عبد الله قال حدثني مالك عن ابي الزناد عن الاعرج عن ابي هريرة ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال المراة كالضلع ان اقمتها كسرتها وان استمتعت بها استمتعت بها وفيها عوج.

۱۶۹: عبدالعزيز بن عبدالله. مالك. ابي الزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي' چه ښځه د پښتئ په شان ده' كه ته ئے نيغول غوارې' نو ماته به شي او كه فائده ترې اوچتول غوارې' نو د كوږ والي سره ترې فائده اخستے شې.

باب ۱۱۰: الوصاة بالنساء

باب ۱۱۰: ښځو سره د' ښه سلوك بيان.

۱۷۰: حدثنا اسحٰق بن نصر حدثنا حسين الجعفي عن زائدة عن ميسرة عن ابي حازم عن ابي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من يؤمن بالله واليوم الاخر فلا يؤذي جاره واستوصوا بالنساء خيرا فانهن خلقن من ضلع وان اعوج

۱۷۰: اسحٰق بن نصر. حسين جعفي. زائده. ميسره ابي حازم. ابوهريرهؓ نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' د چا چه په الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان وي' هغه له نه دي په كار' چه خپل گاونډي ته تكليف اورسوي. او د ښځو په حق كښې د نيكي كولو څما وصيت قبول كړئې' ځكه چه هغه د' پښتئ (پسلي) نه پيدا شوې ده' او د ټولونه كگه پښتئ

شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ اَعْلَاهُ فَاِنْ ذَهَبْتَ تُقِيْمُهُ كَسَرْتَهُ وَاِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ اَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوْا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا.

برخه ده که دا نیغول غواړې نو ماته به شي' او که دغسې نې پریږدې' نو همیشه به کږه وي' نو ښځو وصیت د ښځو په حق قبول کړې.

۱۷۱ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّ نَتَّقِيْ الْكَلَامَ وَالْاِنْبِسَاطَ اِلٰى نِسَآئِنَا عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَيْبَةَ اَنْ يَنْزِلَ فِيْنَا شَيْءٌ فَلَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكَلَّمْنَا وَانْبَسَطْنَا.

۱۷۱ : ابو نعيم. سفيان. عبدالله بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي' د حضور صلي الله عليه وسلّم زمانه كښې به ښځو سره ددې خوف نه د خبرو اترو كولو او مزاج كولو نه مونږ بچ كيدلو' چه چيرته خمونږ حق كښې څه حكم نازل نه شي' ليكن څه وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم وفات شولو' نو مونږ ورسره كلام او دل لګي شروع كړله.

بَابُ ۱۱۱ : قُوْا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا.

باب ۱۱۱ : خپل نفس او بال بچ د اور نه د بچ كولو بيان.

۱۷۲ : حَدَّثَنَا اَبُوْ النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ فَالْاِمَامُ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلٰى اَهْلِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ وَالْمَرْاَةُ رَاعِيَةٌ عَلٰى بَيْتِ زَوْجِهَا وَهِيَ مَسْئُوْلَةٌ وَالْعَبْدُ رَاعٍ عَلٰى مَالِ سَيِّدِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ اَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ.

۱۷۲ : ابو نعمان. حماد بن زيد. ايوب. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلې دي' تاسو ټول خلق نګهبانان ئې او تاسو ټولو خلقونه به تپوس كيږي. امام هم نګهبان دې' د هغه نه به هم سوال كيږي. چه تا (رعيت سره) څه سلوك او كه' سړې په خپل كور والو نګهبان دې' او هغه نه به هم تپوس كيږې' ښځه د خپل خاوند د كور نګهبانه ده. د هغې نه به هم تپوس كيږې' او غلام هم د خپل آقا د مال نګهبان (ساتندونكې) دې. هغه نه به هم تپوس كيږې. خبردار تاسو نګهبانان ئې. او تاسو نه به تپوس كيږي.

بَابُ ۱۱۲ : حُسْنِ الْمُعَاشَرَةِ مَعَ الْاَهْلِ.

باب ۱۱۲ : خپلې ښځې سره ده ښه ژوند تيرولو بيان.

۱۷۴۳ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ قَالَا أَخْبَرَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَلَسَ إِحْدٰى عَشَرَ امْرَأَةً فَتَعَاهَدْنَ وَتَعَاقَدْنَ أَنْ لَّا يَكْتُمْنَ مِنْ أَخْبَارِ أَزْوَاجِهِنَّ شَيْئًا قَالَتِ الْأُوْلٰى زَوْجِيْ لَحْمُ جَمَلٍ غَثٍّ عَلٰى رَأْسِ جَبَلٍ لَّا سَهْلٍ فَيُرْتَقٰى وَلَا سَمِيْنٍ فَيُنْتَقَلُ قَالَتِ الثَّانِيَةُ زَوْجِيْ لَا أَبُثُّ خَبَرَهُ إِنِّيْ أَخَافُ أَنْ لَّا أَذَرَهُ إِنْ أَذْكُرْهُ أَذْكُرْ عُجَرَهُ وَبُجَرَهُ قَالَتِ الثَّالِثَةُ زَوْجِيَ الْعَشَنَّقُ إِنْ أَنْطِقْ أُطَلَّقْ وَإِنْ أَسْكُتْ أُعَلَّقْ قَالَتِ الرَّابِعَةُ زَوْجِيْ كَلَيْلِ تِهَامَةَ لَا حَرٌّ وَلَا قَرٌّ وَلَا مَخَافَةَ وَلَا سَآمَةَ قَالَتِ الْخَامِسَةُ زَوْجِيْ إِنْ دَخَلَ فَهِدَ وَإِنْ خَرَجَ أَسِدَ وَلَا يَسْأَلُ عَمَّا عَهِدَ قَالَتِ السَّادِسَةُ زَوْجِيْ إِنْ أَكَلَ لَفَّ وَإِنْ شَرِبَ

۱۷۴۳ : سلیمان بن عبدالرحمن علي بن حجر عیسي بن یونس. هشام بن عروه عبدالله بن عروه عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي: یوولس ښځې یوځائې جمع شوې او خپلو کښې ئې دا قول و اقرار اوکړلو، چه د خپلو خپلو خاوندانو حال رښتیا بیان کړئې، ورمبنئې ښځې اووې، ځما خاوند کمزورې او د اوښ غوښه ده، چه د غر په څوکه پرته ده. لاره ډیره مشکله ده چه نه څوکې ته ختل کیدې شي، او نه غوښه ښه ده، چه د هغې د، راوړلو د پاره دې مصیبت تیر کړې شي. دوئمې ښځې اووې، زه د هغه (یعني د خپل خاوند) حالت ظاهرولو سره ویریږم، چه ددې تذکرې نه پس چرته زه هغه پرې نه ږدم. که ذکر کوم، نو او، به ښائم، چه هغه کښې کوم عیب او هنر دې. د ضعیفي په وجه د هغه جسم کښې ځائې په ځائې غوټې (گانٹھے) پیدا شوې دي. او دغسې په شلګونو خرابي ئې په کښې. دریمې ښځې اووې، ځما خاوند داسې بې رونقه اوږود دې، که د هغه کیفیت بیان کړم، نو طلاق راکوي. او که خاموشي اختیاروم، نو زه ئې معلقه (آویزانده) ساتلې یم. څلورمې اووې، ځما خاوند د تهامه د شپې په شان متوسط دې، نه زیات ګرم دې نه زیات یخ. هغه همیشه یکسان وي نه زیات ویرې واله، نه زیات پښیمانۍ والا دې. پنځمې ښځې اووې، ځما خاوند که کورته راشي، نو شرمخ دې او که بهرته لاړ شي نو امزرې دې (شریف دومره) که کور کښې څه کیږي، نو هغه ئې تپوس نه کوي. شپږمې ښځې اووې، ځما خاوند خوراکي دې، که خوراک ته کیني نو هر څه ختم کړي او که څه څکي، نو هر څه

اَشْعَثْ وَاِنِ اضْطَجَعَ الْتَفَّ
وَلَا يُوْلِجُ الْكَفَّ لِيَعْلَمَ الْبَثَّ
قَالَتِ السَّابِعَةُ زَوْجِيْ غَيَايَاءُ
اَوْ عَيَايَاءُ طَبَاقَاءُ كُلُّ دَآءٍ
لَهُ دَآءٌ شَجَّكِ اَوْ فَلَّكِ اَوْ
جَمَعَ كُلًّا لَكِ قَالَتِ الثَّامِنَةُ
زَوْجِيَ الْمَسُّ مَسُّ اَرْنَبٍ.
وَالرِّيْحُ رِيْحُ زَرْنَبٍ قَالَتِ
التَّاسِعَةُ زَوْجِيْ رَفِيْعُ
الْعِمَادِ طَوِيْلُ النِّجَادِ
عَظِيْمُ الرَّمَادِ قَرِيْبُ
الْبَيْتِ مِنَ النَّارِ قَالَتِ الْعَاشِرَةُ زَوْجِيْ
مَالِكٌ وَمَا مَالِكٌ مَالِكٌ
خَيْرٌ مِّنْ ذٰلِكِ لَهُ اِبِلٌ
كَثِيْرَاتُ الْمَبَارِكِ قَلِيْلَاتُ
الْمَسَارِحِ وَاِذَا سَمِعْنَ
صَوْتَ الْمِزْهَرِ اَيْقَنَّ اَنَّهُنَّ
هَوَالِكُ قَالَتِ الْحَادِيَةَ عَشْرَةَ زَوْجِيْ اَبُوْ
زَرْعٍ فَمَا اَبُوْ زَرْعٍ اَنَاسَ
مِنْ حُلِيٍّ اُذُنَيَّ وَمَلَأَ مِنْ
شَحْمٍ عَضُدَيَّ وَبَجَّحَنِيْ
فَبَجِحَتْ اِلَيَّ نَفْسِيْ
وَوَجَدَنِيْ فِيْ اَهْلِ
غُنَيْمَةٍ بِشِقٍّ فَجَعَلَنِيْ فِيْ
اَهْلِ صَهِيْلٍ وَّاَطِيْطٍ وَدَائِسٍ
وَمُنَقٍّ فَعِنْدَهُ اَقُوْلُ فَلَا

صاف کړي (یعني د خوراک څکاک څه څیز ترې نه پاتې کیږي) کوم وخت چه اوده کیږي نو ځان له پروت وي، او ما طرف ته لاس هم نه رامخکښ کوي، چه د تکلیف او ارام تپوس او کړي. اوومې ښځې اووې، خما خاوند لار خطا او عاجزه دې، هغه سینې سره دباؤ کونکې، او د ښځې هر عیب د هغه د پاره عیب دې. هغه کښې ټولې خرابئې راجمع دي (که خبره کوي) نو سر، ماتوي او زخمي کوي یا دواړه کوي، او ژور زخم لګوي. اتمې ښځې اووې، خما د خاوند مَس کول داسې دي، لکه د، سوې (خرګوش) مس کول. هغه نازک دې. د هغه خوشبوي داسې ده لکه د، زرنب (د، یو خوشبوداره وابنو نوم) خوشبوئ، هغه ډیر نازک دې. نهمې ښځې اووې. خما خاوند اوچت تعمیرونو واله، اوږود پرتلې (د ځرمنې کمربند یا پټئ چه توره په کښې اویزانده وي) واله، او ډیر سخي. د هغه کور مجلس شورې ته قریب دې. هغه باتدبیر او د پوهې خاوند دې. لسمې اووې خما د خاوند نوم مالک دې. او د مالک به څه تعریف او کړم، کوم تعریف چه ذهن کښې راتلې شي بس هغه د هغه تعریف دې. هغه میلمنو د پاره همیشه اُوښ ذبح کوي. د، ورشو (چراګاه) نه زیات په کور اوښان جمع ساتي او د ګنټو (گھنٹیوں) آواز چه آوري، نو ښائي، چه دومره اوښان ذبح کیدونکې دي. او دومره میلمانه موجود دي. یوولسمې ښځې اووې. خما خاوند ابو زرع. واه واه، څه به نې وائې. خما غوږونه نې په کالو (زیور) ډرانه کړل. خما بازوګان نې په چربئ ډُر کړل. او زه نې دومره خوشحاله ساتلې یم چه د هغې داد

أَقْبَحُ وَأَرْقُدُ فَأَتَصَبَّحُ وَأَشْرَبُ فَأَتَقَنَّحُ اِمُّ أَبِي زَرْعٍ فَمَا أُمُّ أَبِي زَرْعٍ عُكُومُهَا رَدَاحٌ وَبَيْتُهَا فَسَاحٌ اِبْنُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا ابْنُ أَبِي زَرْعٍ مَضْجَعُهُ كَمَسَلِّ شَطْبَةٍ وَتُشْبِعُهُ ذِرَاعُ الْجَفْرَةِ بِنْتُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا بِنْتُ أَبِي زَرْعٍ طَوْعُ أَبِيهَا وَطَوْعُ أُمِّهَا وَمِلْءُ كِسَائِهَا وَغَيْظُ جَارَتِهَا جَارِيَةُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا جَارِيَةُ أَبِي زَرْعٍ لَا تَبُثُّ حَدِيثَنَا تَبْثِيثًا وَلَا تُنَقِّثُ مِيرَتَنَا تَنْقِيثًا وَلَا تَمْلَأُ بَيْتَنَا تَعْشِيشًا قَالَتْ خَرَجَ أَبُو زَرْعٍ وَّ الْأَوْطَابُ تُمْخَضُ فَلَقِيَ امْرَأَةً مَعَهَا وَلَدَانِ لَهَا كَالْفَهْدَيْنِ يَلْعَبَانِ مِنْ تَحْتِ خَصْرِهَا بِرُمَّانَتَيْنِ فَطَلَّقَنِي وَنَكَحَهَا فَنَكَحْتُ بَعْدَهُ رَجُلًا سَرِيًّا رَكِبَ شَرِيًّا وَأَخَذَ خَطِّيًّا وَأَرَاحَ عَلَيَّ نَعَمًا ثَرِيًّا وَأَعْطَانِي مِنْ كُلِّ رَائِحَةٍ زَوْجًا قَالَ كُلِي أُمَّ زَرْعٍ

ور كول په كار دي. خما خاندان هغه داسې بيامد. چه په مشكله خو چيلنې ورسرې وې. ره يوه غريبه جينۍ ووم هغه زه داسې خوشحاله خاندان ته راوستم، چه د هنرېدونكو آسونو او د كجاوو، آواز واله دي. دوئ سره آسونه، اوښان هر څه موجود دي. د كارغوايان او غله پالونكي سړي هر څه ورسره حاضر دي. كه هغوى سره زه خبرې كوم، نو هيڅوك خما عيب نه راوكاږي. اوچه اوده شم، نو سحر راپاسم. چه او به څكم، نو ډير اطمينان سره څكم. د ابو زرعطور، خما، خواښې (ساس) هم ډيره لائقه ښځه ده، د هغې صندوقونه ډك وي. د هغې كور كشاده او د هغې خونې ابو زرع ډير ښه (خوب تر) د هغه د خوب د ځائې به ئې څه وائې، هغه د سپک او يو ستوې وجود خاوند دې. خوراك ئې دومره كم دې، چه د څلورو مياشتو د چيلې د بچي يو پتون د هغه كيډه ډكوي. خما ښې (سوكن) د پاره د غيض و غضب باعث دې، د هغه ملازمه هم قابل تعريف ده. نورو خلقو كښې خبرې خوروونكې او خمونږ ذخيره كښې نقصان كونكې نه ده. خمونږ كور د خځلونه پاكونكې ده، يوه ورځ داسې اوشو، چه ابو زرع بهرته اووتلو په هغې ئې پنې شاربل او د هغې نه د كچو (مكهن) اوښكلو تياري كيدله. زه چه بهر اووتم، نو اووم ليدل، چه يوه ښځه چه هغې سره د شرمخ شان داسې دوه بچي دي. چه د هغې زير بغل دوه انارو (پستانو) سره لوبې كوې. هغې دواړو ښې ځكل. د، دغې ښځې ليدو سره ابو زرعه ماله طلاق راكه. او هغې ښځې سره ئې واده اوكه. هغې نه پس ما مجبوراً يو داسې سړي سره

شَيْءٍ أَعْطَاهُ مَا بَلَغَ أَصْغَرَ آنِيَةِ أَبِي زَرْعٍ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنْتُ لَكِ كَأَبِي زَرْعٍ لِأُمِّ زَرْعٍ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَعِيدُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ هِشَامٍ وَلَا تُعَشِّشُ بَيْتَنَا تَعْشِيشًا قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ فَأَتَقَمَّحُ بِالْمِيمِ وَهَذَا أَصَحُّ.

نکاح اوکړله، چه تیز رفتاره آس باندې سور، وو. خطي نیزه (د کوربنې په شان نیغه. یو قسم نیزه) ورسره وه. هغه ډیر نعمتونه راکړل او د هر قسم څاروو نه یو یو جوړه څاروي ئې ماته راکړل. او، ونیلې، اُم زرع خپله خوره، او خپلو خپلوانو ته هم ذخیره رسوه. او د صدقې خیرات کولو ئې هم اجازت راکړلو. او ډیر څه ئې راکړل. خو دا، هر څه داد، و، دهش، د، ابو زرع یو ورو کي لوښي ته هم نه رسي. بي بي عائشهؓ فرمائي. دې تولې قیصې اوریدو سره حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، زه هم ستا د پاره داسې یم، څنګه چه به د، ابو زرع، اُم زرع سره سلوک وو. فرق صرف دومره دې، چه هغه ښځې له طلاق ورکه، او ما طلاق ورنه که، یعني ښځې سره دغسې په ښه شان ژوند تیرول پکار دي.

۱۷۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ الْحَبَشُ يَلْعَبُونَ بِحِرَابِهِمْ فَسَتَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَنْظُرُ فَمَا زِلْتُ أَنْظُرُ حَتَّى كُنْتُ أَنَا أَنْصَرِفُ فَاقْدُرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ تَسْمَعُ اللَّهْوَ.

۱۷۴ : عبدالله بن محمد. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشېؓ نه روایت کوي، یو ځل داسې اوشو، چه څو حبشیانو چړې ګتکې (چھری گتکا) سره لوبې کولې. او خپلې خپلې ګتلې ئې ښودلې. حضور صلي الله علیه وسلّم هم د هغې تماشه کوله. او زه ئې شا ته کړې وومه، څو پورې چه ما غوښتل، ما د هغې تماشه کوله. بیا خپله ستړې شوم، یعني حضور صلي الله علیه وسلّم منع اونه کړله، اوس ددې نه اندازه واخلئې، چه یوه کم عمره (کمسن) جینۍ څومره وخته پورې لوبه (کھیل کود) لیدې شي.

## بَابُ ۱۱۳ : مَوْعِظَةِ الرَّجُلِ ابْنَتَهُ لِحَالِ زَوْجِهَا.

## باب ۱۱۳ : د پلار خپلې لور ته د خاوند په معامله کښې د نصیحت کولو بیان.

۱۷۵ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ

۱۷۵ : ابوالیمان. شعیب. زهري. عبیدالله.

أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ
قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ
اللّٰهِ ابْنِ أَبِي ثَوْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ
بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمْ أَزَلْ حَرِيصًا
عَلَى أَنْ أَسْأَلَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ
عَنِ الْمَرْأَتَيْنِ مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّتَيْنِ
قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ
فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا حَتَّى حَجَّ
وَحَجَجْتُ مَعَهُ وَعَدَلَ وَعَدَلْتُ
مَعَهُ بِإِدَاوَةٍ فَتَبَرَّزَ ثُمَّ جَاءَ فَسَكَبْتُ
عَلَى يَدَيْهِ مِنْهَا فَتَوَضَّأَ فَقُلْتُ لَهُ
يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مَنِ الْمَرْأَتَانِ
مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّتَانِ قَالَ اللّٰهُ
تَعَالَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ فَقَدْ
صَغَتْ قُلُوبُكُمَا قَالَ وَاعَجَبًا لَكَ
يَا ابْنَ عَبَّاسٍ هُمَا عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ
ثُمَّ اسْتَقْبَلَ عُمَرُ الْحَدِيثَ يَسُوقُهُ
قَالَ كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنَ
الْأَنْصَارِ فِي بَنِي أُمَيَّةَ ابْنِ زَيْدٍ
وَهُمْ مِنْ عَوَالِي الْمَدِينَةِ وَكُنَّا
نَتَنَاوَبُ النُّزُولَ عَلَى النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْزِلُ
يَوْمًا وَأَنْزِلُ يَوْمًا فَإِذَا أَنْزَلْتُ جِئْتُهُ
بِمَا حَدَثَ مِنْ خَبَرِ ذَالِكَ الْيَوْمِ

عبدالله بن عباسؓ نه روايت کوي: څما د همېشه نه دا خواهش وو چه حضرت عمرؓ نه تپوس او کړم: چه هغه دواړه کومې بيبيانې دي چه د هغوي باره کښ الله تعالیٰ فرمائيلې دي "ستاسو زړونه کږخيدلي دي، تاسو الله ته توبه او کاږئ" يو ځل حضرت عمرؓ حج او که، او، ما هم ورسره حج او که (قضائې حاجت د پاره) هغه د لارې نه بل خوا شو، ما هم لوټه (لوټا) اخستې هغه سره او کرخيدم. کوم وخت چه هغه د قضائې حاجت نه فارغ شو، او واپس شو، نو ما د هغه په لاسونو د لوټې نه اوبه واچولې. هغه اودس او که، ما ورته اووې، اې امير المؤمنين. د حضور صلي الله عليه وسلّم هغه کومې دوه بيبيانې دي چه د هغوي متعلق الله تعالیٰ فرمائي: إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا: حضرت عمرؓ اوفرمائيل. اې ابن عباسؓ ماته په تا تعجب راځئ. واوره، هغه دواړه بي بي عائشهؓ او بي بي حفصهؓ دي، بيا حضرت عمرؓ بقيه حديث بيان کړلو، چه زه او زما يو انصاري ګاونډي (محله) بني اُميه کښ اوسيدلو، چه د مدينې د اطرافو اوسيدونکې وو، مونږ دواړه به وار په وار د حضور صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښ حاضريدلو، په کومه ورځ چه به زه تلم، نو خپل ملګري (ګاونډي) ته به م د هغې ورځې د، وحې وغيره ټول خبرونه آورول. او هر کله چه به هغه تلو نو هغه به هم داسې کول. مونږ د قريشو جماعت په ښځو غالب وو. خو کوم وخت چه مدينې ته راغلو، نو څه ګورو، چه انصاري ښځې په سړو غالبې دي. خمونږ ښځو هم د انصاري ښځو خبرې زده کړې. په خپلې ښځې ما آواز راوښکلو، هغې هم ماله

مِنَ الْوَحْيِ اَوْ غَيْرِهٖ وَاِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ وَكُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ نَغْلِبُ النِّسَآءَ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى الْاَنْصَارِ اِذَا قَوْمٌ تَغْلِبُهُمْ نِسَآءُهُمْ فَطَفِقَ نِسَآءُنَا يَاْخُذْنَ مِنْ اَدَبِ نِسَآءِ الْاَنْصَارِ فَصَخَبْتُ عَلٰى امْرَاَتِيْ فَرَاجَعَتْنِيْ قَالَتْ وَلِمَ تُنْكِرُ اَنْ اُرَاجِعُكَ فَوَ اللّٰهِ اِنَّ اَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُرَاجِعْنَهُ وَاِنَّ اِحْدٰهُنَّ لِتَهْجُرُهُ الْيَوْمَ حَتَّى اللَّيْلِ فَاَفْزَعَنِيْ وَقُلْتُ لَهَا قَدْ خَابَ مَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ مِنْهُنَّ ثُمَّ جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِيْ فَنَزَلْتُ فَدَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَهَا اَيْ حَفْصَةُ اَتُغَاضِبُ اِحْدٰكُنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَوْمَ حَتَّى اللَّيْلِ قَالَتْ نَعَمْ فَقُلْتُ قَدْ خِبْتِ وَخَسِرْتِ اَفَتَاْمَنِيْنَ اَنْ يَّغْضِبَ اللّٰهُ لِغَضَبِ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَهْلِكِيْ لَا تَسْتَكْثِرِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تُرَاجِعِيْهِ فِيْ شَيْءٍ وَّلَا تَهْجُرِيْهِ وَسَلِيْنِيْ مَا بَدَالَكِ وَلَا يَغُرَّنَّكِ اَنْ كَانَتْ جَارَتُكِ اَوْضَاَ مِنْكِ وَاَحَبَّ اِلَى النَّبِيِّ

جواب راکړلو. د هغې آړولې جواب راکول، ما ناخوښه کړل، نو هغې اووې، خما جواب دربانديې ولې بد لږي، د حضور صلي الله عليه وسلّم بيبيانې هم حضور صلي الله عليه وسلّم له جواب ورکوي. او څنې په کښې د ورځې شپې پورې هم د حضورؐ نه مرووره وي. په دې خبره ماسره سخته ويره پيدا شوه. ما اووې، چا چه داسې اوکړل، نو بيړئ ئې غرقه شوه. بيا زه تيار شوم، لاړم حفصېؓ له ورغلم، تپوس مِ ترې اوکه، ايا تاسو کښې څوک رسول الله صلي الله عليه وسلّم د شپې پورې خفه کوي. هغې اووې، او. ما ورته اووې هغه نامراده او خساره کښې ده. ايا تاسو ددې خبرې نه نه ويريږئ، چه د حضور صلي الله عليه وسلّم د غصې سره الله تعالٰي له غصه ورشي او هغه ښځه هلاکه شي. ته د حضور صلي الله عليه وسلّم نه زياتې غوښتنې مه کوه، مه جواب ورکوه، او، مه ورسره خبرې کول پريږده. تاته چه د څه ضرورت وي، نو ما نه غواړه. او د خپلې ګوانډې نقل کولو سره فخر، مه کوه، څکه چه هغه ستا نه زياته خوبصورته او د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم په زړه پورې ده. د ګوانډې نه مراد بي بي عائشهؓ وه. حضرت عمرؓ فرمائي. څمونږ غوږونو ته خبر راته چه غسان (د، شام بادشاه) مونږ سره جنګ کولو د پاره د آسونو نعلونه وهي، يو ځل خما انصاري دوست د، خپل وار په ورځ د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او ماښام ته واپس راغې. نو خما دروازه ئې زور سره اوټکوله. تپوس ئې اوکه، عمرؓ شته. زه د ويرې سره هغه له ورغلم، نو هغه وئيلې، نن يوه لويه حادثه شوه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ عَائِشَةَ قَالَ عُمَرُ وَكُنَّا قَدْ تَحَدَّثْنَا اَنَّ غَسَّانَ تُنْعِلُ الْخَيْلَ لِغَزْوِنَا فَنَزَلَ صَاحِبِيُ الْاَنْصَارِيُّ يَوْمَ نَوْبَتِهٖ فَرَجَعَ اِلَيْنَا عِشَآءً فَضَرَبَ بَابِيُ ضَرْبًا شَدِيْدًا وَّ قَالَ اَثَمَّ هُوَ فَفَزِعْتُ فَخَرَجْتُ اِلَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَدَثَ الْيَوْمَ اَمْرٌ عَظِيْمٌ قُلْتُ مَا هُوَ اَجَآءَ غَسَّانُ قَالَ لَابَلْ اَعْظَمُ مِنْ ذٰلِكَ وَاَهْوَلُ طَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَآءَهٗ فَقُلْتُ خَابَتْ حَفْصَةُ وَخَسِرَتْ قَدْ كُنْتُ اَظُنُّ هٰذَا يُوْشِكُ اَنْ يَكُوْنَ فَجَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِيُ فَصَلَّيْتُ صَلٰوةَ الْفَجْرِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَشْرُبَةً لَهٗ فَاعْتَزَلَ فِيْهَا وَدَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَ فَاِذَا هِيَ تَبْكِيْ فَقُلْتُ مَا يُبْكِيْكِ اَلَمْ اَكُنْ حَذَّرْتُكِ هٰذَا اَطَلَّقَكُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَا اَدْرِيُ هَا هُوَذَا مُعْتَزِلٌ فِي الْمَشْرُبَةِ فَخَرَجْتُ فَجِئْتُ اِلَى الْمِنْبَرِ فَاِذَا حَوْلَهٗ رَهْطٌ يَبْكِيْ بَعْضُهُمْ

شوے ده، ما اووے، هغه څه. آيا غسان بادشاه (حملے كولو د پاره) راغے. هغه اووے، دا خبره نه ده. ددے نه هم لويه خبره ده، يوه خوفناكه خبره ده. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو بيبيانو ته طلاق وركه. ما خپل زړه كښې اووے بس حفصهؓ خو نامراده او نقصان كښې شوه. خما گمان وو چه عنقريب به دا، واقعه كيږي. نو ما كپړے واغستے او د سحر مونځ مې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ادا كړلو (د مونځ نه چه فارغ شو، نو) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلے يوے بالائي كمرے ته لاړلو، او د هغے يو گټ كښې كيناستلو. او زه حفصےؓ له ورغلم، نو څه گورم. چه حفصهؓ ژاړي. ما تپوس اوكه، ولے ژاړے، آيا ته به مانه ويرولے (چه داسے مه كوه) آيا تاته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم طلاق دركړے دے. هغے جواب اوكه، ماته نه ده معلومه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے گټ كښې ناست دے. بيا زه راووتم، منبر طرف ته راغلم، نو څه گورم چه د هغے څلور طرف ته خلق ناست دے. او بعضے ژاړي. زه لږ ساعت هغوي سره كيناستم. بيا خما زړه صبر نه شو. زه هغے بالائي كوټے ته كوم خائے چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ناست وو، راغلم. او د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حبشي غلام ته مې اووے، ما د پاره د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه اجازت وغواړه. غلام ورغے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے عرض اوكه، او واپس راغے، وئيلے، ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكه، او ستا ذكر مې ورته اوكه. ليكن حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چپ پاتے شو، زه واپس راغلم، بيا هغے خلقو سره كيناستم

فَجَلَسْتُ مَعَهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَجِدُ فَجِئْتُ الْمَشْرُبَةَ الَّتِيْ فِيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِغُلَامٍ لَهُ اَسْوَدَ اِسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ الْغُلَامُ فَكَلَّمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ كَلَّمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَانْصَرَفْتُ حَتّٰى جَلَسْتُ مَعَ الرَّهْطِ الَّذِيْنَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَجِدُ فَجِئْتُ فَقُلْتُ لِلْغُلَامِ اسْتَاْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ قَدْ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَرَجَعْتُ فَجَلَسْتُ مَعَ الرَّهْطِ الَّذِيْنَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَجِدُ فَجِئْتُ الْغُلَامَ فَقُلْتُ اسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ ثُمَّ رَجَعَ اِلَيَّ فَقَالَ قَدْ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَلَمَّا وَلَّيْتُ مُنْصَرِفًا قَالَ اِذَا الْغُلَامُ يَدْعُوْنِيْ فَقَالَ قَدْ اَذِنَ لَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلٰى رِمَالِ حَصِيْرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فِرَاشٌ قَدْ اَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهِ مُتَّكِئًا عَلٰى وِسَادَةٍ مِنْ اَدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ قُلْتُ وَاَنَا قَائِمٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَطَلَّقْتَ نِسَآءَكَ فَرَفَعَ اِلَيَّ بَصَرَهُ فَقَالَ لَا

کوم چه منبر سره ناست وو، بیا زړه بے قراره کړم. ورغلم غلام ته م اووے، ما د پاره اجازت وغواړه، هغه لاړ، بیا واپس راغے. او، ونیلے ما حضور صلي الله علیه وسلّم ته ستا ذکر اوکه. خو حضور صلي الله علیه وسلّم خاموش پاتے شو. بیا زه لاړم، هغے خلقو کښ کیناستم، بیا په ما هغه خبره غالبه شوه، چه زما زړه کښ موجزن وه. زه بیا ورغلم، غلام ته م اووے، خما د پاره یو ځل بیا ورشه، د حضور صلي الله علیه وسلّم نه راله اجازت واخله، غلام دننه ورغے، ما ته نے اووے، ما حضور صلي الله علیه وسلّم ته ستا ذکر اوکه. خو حضور صلي الله علیه وسلّم خاموش پاتے شو. بیا زه واپس راتلم، نو ناساپه غلام اووے، چه تاسو ته نبي صلي الله علیه وسلّم اجازت درکړلو. څه وخت چه زه دننه ورغلم، نو څه گورم. چه حضور صلي الله علیه وسلّم د پوستکونه ډکه تکیه اینښے په یو خالي پوړ (یا پزي) ملاست دے. چه د هغے په وجه د حضور صلي الله علیه وسلّم په جسم مبارک نښے (خاپونه) لگیدلے وو. زه چه ورغلم، السلام علیکم م اوکه او په ولاړه ولاړه م اووے، یا رسول الله، آیا تاسو خپلو بیبیانو له طلاق ورکړے دے. حضور صلي الله علیه وسلّم ما ته وکتل، وے فرمائیل نه، ما تعجب سره اووے، الله اکبر. بیا ما په ولاړه ولاړه، زړه غلولو د پاره عرض اوکه، کاش چه تاسو ماته متوجه شئے، مونږ قریش، په ښځو غالب وو، لیکن څه وخت چه مونږ مدینے ته راغلو، نو دلته مو، داسے قوم ولید، چه د دوي ښځے په سړو غالبے وے. حضور صلي الله علیه وسلّم مُسکے شولو. بیا ما عرض اوکه، یا رسول الله، که

فَقُلْتُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ ثُمَّ قُلْتُ وَ اَنَا قَائِمٌ اَسْتَأْنِسُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ رَاَيْتَنِيْ وَكُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ نَغْلِبُ النِّسَآءَ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ اِذَا قَوْمٌ تَغْلِبُهُمْ نِسَآءُ هُمْ فَتَبَسَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ لَوْ رَاَيْتَنِيْ وَدَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَهَا لَا يَغُرَّنَّكِ اَنْ كَانَتْ جَارَتُكِ اَوْضَأَ مِنْكِ وَاَحَبَّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ عَائِشَةَ فَتَبَسَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَسُّمَةً اُخْرٰى فَجَلَسْتُ حِيْنَ رَاَيْتُهُ تَبَسَّمَ رَفَعْتُ بَصَرِيْ فِيْ بَيْتِهٖ فَوَ اللّٰهِ مَا رَاَيْتُ فِيْ بَيْتِهٖ شَيْئًا يَّرُدُّ الْبَصَرَ غَيْرَ اَهَبَةٍ ثَلٰثَةٍ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ادْعُ اللّٰهَ فَلْيُوَسِّعْ عَلٰى اُمَّتِكَ فَاِنَّ فَارِسًا وَالرُّوْمَ قَدْ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَاُعْطُوا الدُّنْيَا وَهُمْ لَا يَعْبُدُوْنَ اللّٰهَ فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَقَالَ اَوَفِيْ هٰذَا اَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ اِنَّ اُولٰٓئِكَ قَوْمٌ عُجِّلُوْا طَيِّبَاتِهِمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اسْتَغْفِرْلِيْ فَاعْتَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَآءَهٗ مِنْ اَجْلِ ذَالِكَ الْحَدِيْثِ حِيْنَ اَفْشَتْهُ حَفْصَةُ اِلٰى عَائِشَةَ تِسْعًا

تاسو خـما حال واورے (چه زه مې نې درته بيان كړم) زه حفصې له ورغلم. ورته مې اوويے نه ددے حرے مغل مه كوه. ستا گوانډنۍ بحسې بي بي عائشهٔ ستانه زياته خوبصورته او د رسول الله صلي الله عليه وسلّم خوږه ده. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم دوباره مسكے شولو. ما چه حضور صلي الله عليه وسلّم په خندا اوليدلو نو كيناستم. د حضور صلي الله عليه وسلّم د مكان كهړكي طرف ته م اوكتل، نو په خدايے چه هلته د درے څرمنو نه علاوه بل هيڅ څيز ماته په نظر رانغے. ما عرض اوكه، يا رسول الله، تاسو د الله جل جلاله نه ذعا اوغواړئے چه ستاسو په امت كشادگي راولي، ځكه چه فارس (ايران) او روم كښې وسعت او كشادگي او د هر څيز فراواني ده. او د، دنيا سازوسامان ورسره بے حده دے. هغوي د خدايے جل جلاله عبادت هم نه كوي. اول حضور صلي الله عليه وسلّم ډډه وهلے ناست ؤ. دے آوريدلے سره نيغ كيناستلو. او، وے فرمائيل، اے د خطاب ځويه، ايا ته په دے خيال كښې ئے. دے خلكوته د نيكو بدله پوره تيزئ سره دے دنيا كښې حاصله شوے ده. ما عرض اوكه يا رسول الله، ما د پاره د ببښنے دُعا اوفرمائے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم د څه خبرے په وجه چه هغه حفصې، عائشې ته ظاهره كړے وه. د خپلو بيبيانو نه يو كم ديرش ورځو پورے جدا شوے وو. او ډيرے غصے نه حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زه به يو مياشت پورے تاسوله نه درځم. كوم وخت چه يو كم ديرش ورځے پوره شوے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم اول بي بي عائشې له ورغے، بي بي

وَعِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَكَانَ قَالَ مَا أَنَا بِدَاخِلٍ عَلَيْهِنَّ شَهْرًا مِنْ شِدَّةِ مَوْجِدَتِهِ عَلَيْهِنَّ حِيْنَ عَاتَبَهُ اللّٰهُ فَلَمَّا مَضَتْ تِسْعٌ وَعِشْرُوْنَ لَيْلَةً دَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ فَبَدَأَ بِهَا فَقَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّكَ كُنْتَ قَدْ أَقْسَمْتَ أَنْ لَا تَدْخُلَ عَلَيْنَا شَهْرًا وَإِنَّمَا أَصْبَحْتَ مِنْ تِسْعٍ وَعِشْرِيْنَ لَيْلَةً أَعُدُّهَا عَدًّا فَقَالَ الشَّهْرُ تِسْعًا وَعِشْرِيْنَ لَيْلَةً قَالَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ أَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى آيَةَ التَّخَيُّرِ فَبَدَأَ بِيْ أَوَّلَ امْرَأَةٍ مِنْ نِسَآءِهٖ فَاخْتَرْتُهُ ثُمَّ خَيَّرَ نِسَاءَهٗ كُلَّهُنَّ فَقُلْنَ مِثْلَ مَا قَالَتْ عَائِشَةُ.

عائشې اوفرمائيل، يا رسول الله، تاسو د، يو مياشت پورې مونږ ته د نه راتلو قسم خوړلې وو، اوس خو يو کم ديرش ورځې اوشوې، زه ئې برابر شمارم. نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. مياشت د يو کم ديرشو ورځو هم وي، نو هغه مياشت د يو کم ديرشو ورځو شوه. بي بي عائشې اووې. بيا الله پاک ايت تخيير نازل کړلو. د ټولو بيبيانو نه مخکښې حضور صلي الله عليه وسلّم مانه تپوس او که، نو ما حضور صلي الله عليه وسلّم اختيار کړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم خپلو ټولو بيبيانوله اختيار ورکه. هغوي ټولو زما په شان جواب ورکه (يعني مونږ د دنيا مال متاع او زيب و زينت نه غواړو بلکه د هغې مقابله کښې حضور صلي الله عليه وسلّم له ترجيح کوو).

## بَاب ۱۱۴ : صَوْمِ الْمَرْأَةِ بِإِذْنِ زَوْجِهَا تَطَوُّعًا.

باب ۱۱۴ : د خپل خاوند اجازت سره د ښځې د نفل روژې نيولو بيان.

۱۷۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصُوْمُ الْمَرْأَةُ وَبَعْلُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهٖ.

۱۷۶ : محمد بن مقاتل. عبدالله. معمر. حمام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. هر کله چه د ښځې خاوند کور کښې موجود وي، نو (نفلي) روژه د هغه د اجازت نه بغير ښځې له نيول نه دي پکار.

## بَاب ۱۱۵ : إِذَا بَاتَتِ الْمَرْأَةُ مُهَاجِرَةً فِرَاشَ زَوْجِهَا.

باب ۱۱۵ : د ښځې خفه کيدل او د، خاوند د، بسترې نه جدا د شپې د، اوده کيدلو بيان.

۱۷۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا بْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۷۷ : محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. سليمان. ابي حازم. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلې دي، هر کله چه سړې خپله

وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَاَتَهُ اِلٰى فِرَاشِهِ فَاَبَتْ اَنْ تَجِيْءَ لَعَنَتْهَا الْمَلٰٓئِكَةُ حَتّٰى تُصْبِحَ.

بي بي' خپلے بسترے طرف ته اوبلي'او هغه د ورتلو نه انکار اوکړي' نو صبا پورے فرښتے به هغے ښځے لعنت وائي.

۱۷۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زُرَارَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا بَاتَتِ الْمَرْاَةُ مُهَاجِرَةً فِرَاشَ زَوْجِهَا لَعَنَتْهَا الْمَلٰٓئِكَةُ حَتّٰى تَرْجِعَ.

۱۷۸ : محمد بن عرعره. شعبه. قتاده. زراره. ابوهريرةؓ نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل هر کله چه ښځه د خپل خاوند بستره پريږدي او جدا اُوده شي' نو د هغه د' راضي کيدو پورے فرښتے به هغے لعنت وائي.

باب ۱۱۶ : لَا تَاْذَنُ الْمَرْاَةُ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا لِاَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِهِ .

باب ۱۱۶ : د ښځے د خاوند د مرضي نه بغير' څوک کورته د نه راوستو بيان.

۱۷۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِلْمَرْاَةِ اَنْ تَصُوْمَ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ اِلَّا بِاِذْنِهِ وَلَا تَاْذَنُ فِيْ بَيْتِهِ اِلَّا بِاِذْنِهِ وَمَا اَنْفَقَتْ مِنْ نَفَقَةٍ عَنْ غَيْرِ اَمْرِهِ فَاِنَّهُ يُؤَدّٰى اِلَيْهِ شَطْرُهُ وَرَوَاهُ اَبُو الزِّنَادِ اَيْضًا عَنْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ فِي الصَّوْمِ.

۱۷۹ : ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرةؓ نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي' ښځے له د خاوند د' اجازت نه بغير روژه نيول جائز نه دي' هر کله چه خاوند ئے کور کښې حاضر وي' اونه دے د خاوند د مرضي نه بغير څوک کورته پريږدي. اوکه ښځه د خاوند د حکم نه بغير د هغه د مال نه خرچ اوکړي' نو د' مال د يوے حصے د پاره به ذمه واره وي¹ او دا حديث د' روژے بيان کښې ابوالزناد هم روايت کړے دے.

۱. شريعت په هره هره معامله کښے بيل بيل اجازت ضروري نه دے ګرځولے بلکه عام اجازت کافي دے. په صحيح بخاري کتاب الزکٰوة کښے دَ عائشے رضي اللّٰه عنها دا حديث تير شوے دے چه که چرے ښځه د خپل خاوند دَ مال نه حسب دستور خرچ کوي نو هغه ته به د هغے د خرچ کولو ثواب ملاويږي او د هغے خاوند ته به ددے ثواب ملاويږي چه هغه دغه مال ګټلے وو. په دے حديث کښے د آخري ټکړے نه همدا مراد دے.

باب ۱۱۷ :

باب ۱۱۷ : (دا باب بے سرخي دے).

۱۸۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَخْبَرَنَا التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُمْتُ عَلٰى بَابِ الْجَنَّةِ فَكَانَ عَامَّةَ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينُ وَأَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوسُونَ غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ قَدْ أُمِرَ بِهِمْ إِلَى النَّارِ وَقُمْتُ عَلٰى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ.

بَاب ۱۱۸ : كُفْرَانِ الْعَشِيرِ وَهُوَ الزَّوْجُ وَهُوَ الْخَلِيطُ مِنَ الْمُعَاشَرَةِ فِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۸۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مَعَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَامَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا

۱۸۰ : مسدد. اسمٰعيل. تيمي. ابو عثمان. اسامه (بن زيد) نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ما د جنت په دروازه اوليدل، هغې كښې زيات مسكينان وو، او مالدار خلق په دروازه ايسار كړې شوې وو، ماسيوا د هغې نه چه دوزخيان ته دوزخ ته د، ليږلو حكم وركړې شو. بيا ما د، دوزخ په دروازه اوليدل، نو هغې كښې عمومًا ښځې وې.

باب ۱۱۸ : د خاوند د ناشكرۍ كولو بيان.

عشير په معنٰي د خاوند او خليط په معنٰي د ملګرې دې. عشير معاشرت نه مشتق دې دې باب كښې ابو سعيد د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړې دې.

۱۸۱ : عبدالله بن يوسف. مالك. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. عبدالله بن عباس نه روايت كوي، د رسول الله صلي الله عليه وسلم زمانه كښې نمر (سورج) تندر اونيولو. حضور صلي الله عليه وسلم د تندر نيولو مونځ اوكه. حضور صلي الله عليه وسلم سره خلقو هم مونځ اوكه، حضور صلي الله عليه وسلم د ډير طويل سورت (بقره) د لوستلو قريب قيام اوكه. ركوع ئې اوكړله. بيائې سر اوچت كه، ډير وخته پورې ولاړ وو. او دا قيام د مخكښې نه كم وو. بيائې ډيره اوږده ركوع اوكړله. او دا د، وړومبنې ركوع نه كمه وه. بيا اودريدلو، اوږود قيام ئې اوكړلو چه د وړمبني قيام نه كم وو. بيائې اوږده ركوع اوكړله چه د وړمبنې ركوع نه كمه وه. بيائې سر اوچت كه، سجدې ته لاړلو، بيائې

وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَقَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ رَاَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِيْ مَقَامِكَ هٰذَا ثُمَّ رَاَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ فَقَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُ الْجَنَّةَ اَوْ اُرِيْتُ الْجَنَّةَ فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُوْدًا وَّلَوْ اَخَذْتُهٗ لَاَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا وَرَاَيْتُ النَّارَ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ مَنْظَرًا قَطُّ وَرَاَيْتُ اَكْثَرَ اَهْلِهَا النِّسَآءَ قَالُوْا لِمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ بِكُفْرِهِنَّ قِيْلَ يَكْفُرْنَ بِاللّٰهِ قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ وَيَكْفُرْنَ الْاِحْسَانَ لَوْ اَحْسَنْتَ اِلٰى اِحْدٰهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَاَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ مَا رَاَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ.

سلام اوګرځولو. دغه وخت بيا نمر روښانه شوي وو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' سپوږمۍ او نمر د الله جل جلاله د. نښونه دوه نښے دي' دا' د' مرګ او ژوند سره تندر نه نيسي. هر کله چه دا حالت اووينئے' نو' د' الله جل جلاله ذکر کوئے. خلقو اوويے' يا رسول الله' مونږ عجيبه معامله اوليده. حضور صلي الله عليه وسلّم هغه خائے ته د څه د پاره لاس وروړاندے که. بيا مونږ اوليدل چه حضور صلي الله عليه وسلّم په ورستو شو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ما جنت اوليدلو' يا ماته جنت اوښودلے شو. ما د هغے نه د انګورو غونچک شوکولو د پاره لاس ورمخکښ که. که ما شوکولے وے' نو ترڅو پورے چه دنيا باقي وے نو تاسو به د هغے نه خوړلے. بيا ما د' دوزخ اُور اوليد. ما د نن ورځے نه خرابه موقعه هيڅ کله نه ده ليدلے. او اکثر دوزخ کښ م اوسيدونکے ښځے اوليدے. خلقو تپوس اوکه' يا رسول الله' دا' ولے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' د هغوے د ناشکري په سبب' چا تپوس اوکه' ايا الله سره کفر کوي (ناشکري کوي) حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' نه' دوئ د خپلو خاوندانو ناشکري کوي. او احسان فراموشي کوي' که تول عمر ورسره نيکي اوکړے' بيا ستاسو څه تکليف اووينيٰ' نو وائي به چه ما تاسو هيڅ نيکي نه ده ليدلي.

۱۸۲ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ اَبِيْ رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ

۱۸۲ : عثمان بن هيثم. عوف. ابو رجا د عمران نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ما جنت کښ اوکتل. نو د هغے اوسيدونکي اکثر فقيران وو. او' ما

فَرَاَيْتُ اَكْثَرَ اَهْلِهَا الْفُقَرَآءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَاَيْتُ اَكْثَرَ اَهْلِهَا النِّسَآءَ تَابَعَهُ اَيُّوبُ وَمُسْلِمُ بْنُ زَرِيْرٍ.

دوزخ كښې اوكتل، نو هغې كښې مې اكثر ښځې اوليدې. ايوب او مسلم بن زبير د هغه متابع روايت كړے دے.

بَابُ ۱۱۹ : لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقٌّ قَوْلُهُ اَبُوْ جُحَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۱۹ : په خاوند د ښځې د حق بيان. ابو جحيفة، د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت كړے دے.

۱۸۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَلَمَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَلَمْ اُخْبَرْ اَنَّكَ تَصُوْمُ النَّهَارَ وَتَقُوْمُ اللَّيْلَ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ صُمْ وَاَفْطِرْ وَقُمْ وَنَمْ فَاِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَاِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَاِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا.

۱۸۳ : محمد بن مقاتل. عبدالله. اوزاعي. يحيي بن ابي كثير. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. عبدالله بن عمرو بن عاص نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل آيا ماته دا خبر نه دے رارسيدلے. چه ته د ورځے روژه نيسے. او ټوله شپه قيام كوے. ما عرض اوكه، جي. او (همدغسے ده) بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. داسے (روژه) هيڅ كله مه نيسه، ته افطار هم كوه. د شپے قيام هم كوه. اوده كيږه هم، ځكه چه په تا ستا د جسم حق دے، ستا د نفس هم درباندے حق دے او ستا د ښځے هم درباندے حق دے.

بَاب ۱۲۰ : اَلْمَرْاَةُ رَاعِيَةٌ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا.

باب ۱۲۰ : د ښځے د خپل خاوند د كور د محافظ كيدو بيان.

۱۸۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ فَالْاَمِيْرُ رَاعٍ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلٰى اَهْلِ

۱۸۴ : عبدان. عبدالله. موسٰي بن عقبه. نافع بن عمر نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. تاسو ټول نگهبانان يئ، او تاسو ټولونه به د خپل رعيت متعلق تپوس كيږي. او امير نگهبان دے. او سړے د خپل كور والو نگهبان دے. ښځه د خپل خاوند د كور او د هغه د بچو نگهبانه ده (مختصر دا چه) تاسو

بَيْتِهٖ وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا وَوَلَدِهٖ فَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ.

تـول نـګهـبـانـان يـې. او د ټـولو نـه بـه د رعيـت تپوس کيږي.

بـاب ۱۲۱: قَـوْلِ اللّٰـهِ تَـعَـالٰـى اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا.

باب ۱۲۱: د اللّٰه تعالیٰ فرمان چه نارينه په زنانه ؤ قائم پاتې کيدونکې دي (يعني د پاسه درجه لري) په دې وجه چه اللّٰه تعالیٰ بعضو له په بعضو فضيلت ورکړې دې: الیٰ قوله: بيشکه اللّٰه تعالیٰ بلند او لوئې دې.

۱۸۵: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اٰلٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِّسَآئِهٖ شَهْرًا وَّقَعَدَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَّهٗ فَنَزَلَ لِتِسْعٍ وَّعِشْرِيْنَ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ اٰلَيْتَ عَلٰى شَهْرٍ قَالَ اِنَّ الشَّهْرَ تِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ.

۱۸۵: خالد بن مخلد. سليمان. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د خپلو بيبيانو نه يو مياشت پورې د جدائي قسم خوړلې وو. او يوې کوټکې (کوٹھڑی) کښې کيناستلو. په يو کم ديرشمه ورځ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو بيبيانو له تشريف يوړلو. چا اووې يا رسول اللّٰه، تاسوّ خو، د يو مياشت قسم خوړلې وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، مياشت د يو کم ديرشو ورځو هم وي.

باب ۱۲۲: هِجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَآءَهٗ فِيْ غَيْرِ بُيُوْتِهِنَّ. وَيُذْكَرُ عَنْ مُعٰوِيَةَ بْنِ عَبْدَةَ رَفَعَهٗ غَيْرَ اَنْ لَّا تُهْجَرَ اِلَّا فِي الْبَيْتِ وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ.

باب ۱۲۲: د، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د خپلو بيبيانو نه، داسې د جدا کيدو بيان چه خپله د هغوي د کورونو نه علاوه بل ځاي کښې وي. معاويه بن عبده نه دا مرفوعًا روايت دې. اګر که دې کښې دا زايد دي چه د هغې نه جدائي سره به د کور نه بهر نه اوځي او ورمبنې حديث زيات معتبر دې.

۱۸۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ وَحَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ صَيْفِيٍّ اَنَّ عِكْرِمَةَ ابْنَ عَبْدِ

۱۸۶: ابو عاصم. ابن جريج. محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. ابن جريج. يحيي بن عبداللّٰه بن صيفي. عکرمه بن عبدالرحمٰن بن حارث. ام سلمه نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو بيبيانوله د، يو مياشت نهٔ ورتلو قسم

الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْحٰرِثِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ عَلٰى بَعْضِ اَهْلِهٖ شَهْرًا فَلَمَّا مَضٰى تِسْعَةٌ وَّعِشْرُوْنَ يَوْمًا غَدَا عَلَيْهِنَّ اَوْرَاحَ فَقِيْلَ لَهٗ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ حَلَفْتَ اَنْ لَّا تَدْخُلَ عَلَيْهِنَّ شَهْرًا قَالَ اِنَّ الشَّهْرَ يَكُوْنُ تِسْعَةً وَّعِشْرِيْنَ يَوْمًا.

۱۸۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ يَعْفُوْرٍ قَالَ تَذَاكَرْنَا عِنْدَ اَبِي الضُّحٰى فَقَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَصْبَحْنَا يَوْمًا وَّنِسَآءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْكِيْنَ عِنْدَ كُلِّ امْرَاَةٍ مِّنْهُنَّ اَهْلُهَا فَخَرَجْتُ اِلَى الْمَسْجِدِ فَاِذَا هُوَ مَلْاٰنُ مِنَ النَّاسِ فَجَآءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَصَعِدَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ غُرْفَةٍ لَّهٗ فَسَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ اَحَدٌ ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ اَحَدٌ فَنَادَاهُ فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَطَلَّقْتَ نِسَآءَكَ فَقَالَ لَا وَلٰكِنْ اٰلَيْتُ مِنْهُنَّ شَهْرًا فَمَكَثَ تِسْعًا وَّعِشْرِيْنَ ثُمَّ دَخَلَ عَلٰى نِسَآئِهٖ.

**باب ۱۲۳: مَا يُكْرَهُ مِنْ ضَرْبِ النِّسَآءِ وَقَوْلِهٖ وَاضْرِبُوْهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ**

خوړلے وو. کوم وخت چه يو کم ديرش ورځے پوره شوے، نو د سحر وخت کښ يا مابنام وخت کښ حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي له ورغے. چا اووے، يا رسول الله، تاسو خو قسم خوړلے وو، چه خپلو بيبيانوله به يو مياشت پورے نه ورځے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم جواب ورکه. مياشت د يو کم ديرشو ورځو هم وي.

۱۸۷: علي بن عبدالله. مروان بن معاويه. ابو يعفور. ابي الضحي. ابن عباسؓ نه روايت کوي، د رسول الله صلي الله عليه وسلّم بيبيانو او ټول کور والو يوه ورځ سحر صبا ژړا، زاري کوله. زه جمات ته لاړم څه گورم چه جمات د خلقو نه ډک دے. دے کښ عمر بن خطابؓ راغے او د رسول الله صلي الله عليه وسلّم طرف ته وراوختلو. حضور صلي الله عليه وسلّم دغه وخت غرفه کښ وو، حضرت عمرؓ ته چا څه اونه وے. هغه سلام اوکه. خو چا جواب ورنه کړلو. بيائے سلام اوکه خو چا جواب ورنه کړلو. بيا دربان (څوکيدار) اواز ورکه، نو نبي صلي الله عليه وسلّم له ورغے. او تپوس ئے اوکه، آيا تاسو خپلو بيبيانوله طلاق ورکړے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل نه. ما يو مياشت پورے د هغوي نه د جدائي قسم خوړلے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم يو کم ديرش ورځے ايسار وو. بيائے خپلو بيبيانو پله تشريف يوړلو.

**باب ۱۲۳:** د ښځو د وهلو ټکولو د کراهت بيان. ښځو ته د ادب ښودلو د پاره ئے داسے وهنے چه

مُبْرِحٍ.
هغوي ته تكليف او نه رسي.

۱۸۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ زَمْعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَجْلِدُ اَحَدُكُمْ اِمْرَاَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ ثُمَّ يُجَامِعُهَا فِيْ اٰخِرِ الْيَوْمِ.

۱۸۸ : محمد بن يوسف. سفيان. هشام. عروه. عبدالله بن زمعه نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' هيڅوک دے خپله ښځه د غلام په شان نه وهي' ځکه چه دا مناسب نه دي چه اول دے هغه اووهي' بيا دے اخير ورځ كښې د هغے سره جماع (صحبت) اوكړي.

باب ۱۲۴ : لَا تُطِيْعُ الْمَرْاَةُ زَوْجَهَا فِيْ مَعْصِيَةٍ.

باب ۱۲۴ : ګناه كښې د خپل خاوند د' اطاعت نه كولو بيان.

۱۸۹ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ نَافِعٍ عَنِ الْحَسَنِ هُوَ ابْنُ مُسْلِمٍ عَنْ صَفِيَّةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ امْرَاَةً مِنَ الْاَنْصَارِ زَوَّجَتِ ابْنَتَهَا فَتَمَعَّطَ شَعْرُ رَاْسِهَا فَجَآءَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَتْ اِنَّ زَوْجَهَا اَمَرَنِيْ اَنْ اَصِلَ فِيْ شَعْرِهَا فَقَالَ لَا اِنَّهُ قَدْ لُعِنَ الْمُوْصِلَاتُ.

۱۸۹ : خالد بن يحيي. ابراهيم بن نافع. حسن بن مسلم. صفيه. بي بي عائشې نه روايت كوي. يوے انصاري ښځے خپله لور واده كړه' د هغے د سر تول ويښته غرځيدلے وو. هغه راغله' رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ئے بيان اوكه. چه زما زوم (داماد) وائي' چه د خپلے لور ويښتو سره نور ويښته يوځائے كړه (يعني مصنوعي ويښته ورسره يوځائے كړه). حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل نه. په مصنوعي ويښتو جوړولو باندے د' الله لعنت وي.

باب ۱۲۵ : وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا.

باب ۱۲۵ : د ښځے د خپل خاوند نه خوف او د' روګرداني بيان.

۱۹۰ : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعٰوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا قَالَتْ هِيَ الْمَرْاَةُ تَكُوْنُ عِنْدَ الرَّجُلِ لَا يَسْتَكْثِرُ مِنْهَا فَيُرِيْدُ طَلَاقَهَا وَيَتَزَوَّجُ غَيْرَهَا

۱۹۰ : ابن سلام. معاويه. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي. دے ايت: و ان امراة خافت من بعلها نشوزا او اعراضا: كښې د ښځے نه هغه ښځه مراد ده' چه يو سړي سره وي' او هغه سړے هغه خپل خان سره ساتل نه غواړي' بلكه هغې له طلاق وركړي او بلے ښځے سره د' نكاح كولو اراده لري' نو دا ښځه دے خپل

تَقُوْلُ لَهُ اَمْسِكْنِيْ وَلَا تُطَلِّقْنِيْ ثُمَّ تَزَوَّجْ غَيْرِيْ فَاَنْتَ فِيْ حِلٍّ مِّنَ النَّفَقَةِ عَلَيَّ فَالْقِسْمَةِ لِيْ فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ.

خاوند ته اووائي، چه ته لږ صبر او كه، او، ما، له طلاق نه راكوه، خواه كه ته بلے ښځے سره نكاح كوے، نو تاته اجازت دے. ته ماله نفقه مه راكوه، او مه خما وار شمار كښ راوله. هم دا، د، اللّه تعالىٰ قول دے: فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا الخ.

باب ۱۲٦: اَلْعَزْلِ

باب ۱۲٦: د، عزل كولو بيان.

۱۹۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۹۱: مسدد. يحيىٰ بن سعيد. ابن جريج. عطاء. جابر نه روايت كوي، د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم زمانه كښ به مونږ عزل كولو.

ف: د صُحبت (كوروالي) كولو په وخت مني بهرته اوښكل.

۱۹۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ عَمْرٌو اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ سَمِعَ جَابِرًا قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْاٰنُ يَنْزِلُ وَعَنْ عَمْرٍو وَعَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْاٰنُ يُنْزَلُ.

۱۹۲: علي بن عبداللّه. سفيان. عمرو. عطاء. جابر نه روايت كوي، چه مونږ خلقو به عزل كولو، حالانكه هغه وخت قران شريف نازليدلو، عمرو، عطاء، جابر نه روايت كوي د نبي صلي اللّه عليه وسلّم زمانه كښ به مونږ عزل كولو، داسے حال كښ چه قرآن شريف نازليدلو.

۱۹۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَآءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيْزٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ اَصَبْنَا سَبْيًا فَكُنَّا نَعْزِلُ فَسَاَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَوَ اِنَّكُمْ لَتَفْعَلُوْنَ قَالَهَا ثَلٰثًا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اِلَّا هِيَ كَائِنَةٌ.

۱۹۳: عبداللّه بن محمد. بن اسماء. جويريه. مالك بن انس. زهري. ابن محيريز. ابو سعيد خدري نه روايت كوي، چه مال غنيمت كښ به مونږ ته قيدي وينځے حاصليدے او مونږ به هغوئ سره عزل كولو، مونږ د، رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم نه تپوس اوكه، نو حضور صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، كوم روح چه دنياته راتلونكے دے، هغه به ضرور راځي، (خمونږ تدبير سره به د، قيامته پورے هيڅ نه كيږي).

باب۱۲۷: اَلْقُرْعَةِ بَيْنَ النِّسَآءِ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا.

۱۹۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ اَيْمَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا خَرَجَ اَقْرَعَ بَيْنَ نِسَآئِهٖ فَطَارَتِ الْقُرْعَةُ لِعَائِشَةَ وَحَفْصَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ بِاللَّيْلِ سَارَمَعَ عَائِشَةَ يَتَحَدَّثُ فَقَالَتْ حَفْصَةُ اَلَا تَرْكَبِيْنَ اللَّيْلَةَ بَعِيْرِيْ وَاَرْكَبُ بَعِيْرَكِ تَنْظُرِيْنَ وَاَنْظُرُ فَقَالَتْ بَلٰى فَرَكِبَتْ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى جَمَلِ عَائِشَةَ وَعَلَيْهِ حَفْصَةُ فَسَلَّمَ عَلَيْهَا ثُمَّ سَارَ حَتّٰى نَزَلُوْا وَافْتَقَدَتْهُ عَائِشَةُ فَلَمَّا نَزَلُوْا جَعَلَتْ رِجْلَيْهَا بَيْنَ الْاِذْخِرِ وَتَقُوْلُ يَا رَبِّ سَلِّطْ عَلَيَّ عَقْرَبًا اَوْ حَيَّةً تَلْدَغُنِيْ وَلَا اَسْتَطِيْعُ اَنْ اَقُوْلَ لَهٗ شَيْئًا.

باب۱۲۷: د سفر كولو په وخت د خپلو بيبيانو مينځ كښې د' قرعه اندازي كولو بيان.

۱۹۴: ابو نعيم. عبدالواحد بن ايمن. ابن ابي مليكه. قاسم. بي بي عائشۀ نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلّم چه به چرته تشريف وړلو. نو خان سره بوتلو د پاره به ئې د خپلو بيبيانو مينځ كښې قرعه (پچه) اچوله. يو سفر كښې د بي بي عائشې او بي بي حفصې نوم راوختلو' د حضور صلي الله عليه وسلّم عادت وو' چه د شپې به تلو' نو بي بي عائشې سره به ئې خبرې كولې حفصې عائشې ته اووې. لن شپه ته خما په اوښ سوره شه او زه به ستا په اوښ سوره شم ستا اوښ ته به زه گورم' او خما اوښ ته ته گوره. بي بي عائشې ورته اووې' ښه ده. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم د' عائشې اوښ طرف ته راغې حالانكه په هغې حفصۀ سوره وه. حضور صلي الله عليه وسلّم حفصې ته سلام اوكه' بيا روان شو. او كوم وخت چه په منزل كوز شولو نو بي بي عائشې حضور صلي الله عليه وسلّم بيانه مندلو نو عائشې خپلې دواړه پښې اذخر (واښو) كښې وركړې' او وئيلې' اے الله (ج) په ما څه مار يا لړم مسلط كړې' چه هغه ما او چيچي' په ما كښې دومره همت نيشته چه حضورﷺ ته (د خپلې غلطئ معذرت د پاره) څه خبره اوكړم.

باب۱۲۸: اَلْمَرْاَةُ تَهَبُ يَوْمَهَا مِنْ زَوْجِهَا لِضَرَّتِهَا وَكَيْفَ يُقْسِمُ ذٰلِكَ.

باب۱۲۸: د ښځې د خاوند د' وار په ورځ د خپلې بنې (سوكن) په حق كښې د دست برداره كيدو بيان.

۱۹۵: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ هِشَامٍ

۱۹۵: مالك بن اسماعيل. زهير. هشام. عروه نه روايت كوي. بي بي عائشۀ فرمائي. بي بي

عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ وَهَبَتْ يَوْمَهَا لِعَائِشَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ صلى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ لِعَائِشَةَ بِيَوْمِهَا وَيَوْمِ سَوْدَةَ.

سوده بنت زمعه د خپل وار ورځ ما ته راکړه، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به دوه ورځې بي بي عائشې سره وو. یو خو د هغې د وار ورځ او بله د بي بي سودهؓ د وار ورځ.

باب ۱۲۹ : اَلْعَدْلِ بَيْنَ النِّسَآءِ وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ اِلٰى قَوْلِهِ وَاسِعًا حَكِيْمًا.

باب ۱۲۹ : د ښځو (بيبيانو) مينځ کښې د عدل و انصاف د فرضيت بيان. د بيبيانو مينځ کښې برابري را کوئې، چه ستاسو د طاقت نه د بهر خبره نه ده (دې ضمن کښې څه حديث نه شته).

۱. شريعت په يو وخت کښې څلور ښځې په نکاح کښې د ساتلو اجازت خو ورکړې دې ليکن ورسره ئې په دې باندې د خپلې عدم رضا اظهار هم کړې دې، ولې چه په عامو حالاتو کښې د ګڼړو ښځو تر مينځه عدل او انصاف قائم لرل مشکل دي. پيغمبر ته د څلورونه زياتې بيبيانې په نکاح کښې ساتلو د اجازت دا هم يو راز دې چه نبي انصاف او عدل قائم لرلې شي ليکن دَ عامو خلقو د پاره د څلور تر مينځه هم انصاف قائم لرل ګران دي او دِ څلورو نه زياتو کښې خو هډو ممکن نه دې. د ګڼړو بيبيانو د موجود والي نزاکت په وجې سره شريعتددې قانون په ډير تفصيل سره بيان کړې دې، د پاره ددې چه تر ممکنه حده پورې انصاف قائم اولرلې شي.

باب ۱۳۰ : اَذَا تَزَوَّجَ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ.

باب ۱۳۰ : پيغلې جينۍ سره د واده کولو بيان.

۱۹۶ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ وَلَوْ شِئْتُ اَنْ اَقُوْلَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنْ قَالَ السُّنَّةُ اِذَا تَزَوَّجَ الْبِكْرَ اَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَّاِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ اَقَامَ عِنْدَهَا ثَلٰثًا.

۱۹۶ : مسدد. بشر. خالد. ابي قلابه. انس نه روايت کوي، که زه اوو ايم، چه دا حديث مرفوع دې، نو وئيلې شم، چه دا سنت دي، چه کوم وخت باکره سره واده اوکړي نو اوه ورځې دې هغې سره وي. او، چه کنډې سره نکاح اوکړي نو هغې سره دې درې ورځې وي.

ف : باکره: پيغله، ناواده کړې جينۍ.

باب ۱۳۱ : اِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى الْبِكْرِ.

باب ۱۳۱ : د پيغلې په موجودګۍ کښې ثيه (کُنډې ښځې) سره د نکاح کولو بيان.

۱۹۷: حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا اَيُّوبُ وَخَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ اَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَقَسَمَ وَاِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى الْبِكْرِ اَقَامَ عِنْدَهَا ثَلٰثًا ثُمَّ قَسَمَ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ وَلَوْ شِئْتُ لَقُلْتُ اِنَّ اَنَسًا رَفَعَهُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَيُّوبَ وَخَالِدٍ قَالَ خَالِدٌ وَلَوْ شِئْتُ قُلْتُ رَفَعَهُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۹۷: يوسف بن راشد. ابو اسامه. سفيان. ايو او خالد. او قلابه. حضرت انسؓ نه روايت كوي' هغه وائي چه سنت طريقه داده چه هر كله به يو سړي په كُنده ښځه پيغلې جينئ سره نكاح اوكړله. نو هغې سره به اوه ورځے وو. بيا به په وار' وار' ورتلو. ابو قلابه وائي' زه دا وئيلے شم' چه دا حديث حضرت انسؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته رسولے دے عبدالرزاق' سفيان' ايوب' خالد نه روايت كوي' زه' دا وئيلے شم. چه دا حديث مرفوع دے.

بَاب ۱۳۲: مَنْ طَافَ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِيْ غُسْلٍ وَاحِدٍ.

باب ۱۳۲: خپلو ټولو بيبيانو سره په يو غسل كښ د' مباشرت (جماع) كولو بيان.

۱۹۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوْفُ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِي اللَّيْلَةِ الْوَاحِدَةِ وَلَهٗ يَوْمَئِذٍ تِسْعُ نِسْوَةٍ.

۱۹۸: عبدالاعلي بن حماد. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. انس بن مالک نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به يوه شپه كښ خپلو ټولو بيبيانو سره يوځائے كيدلو. او هغه وخت د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نهه بيبيانے وے[1].

[1]. دا د حج واقعه ده. د احرام نه مخكښې نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم د ټولو ازواجو مطهراتو سره په شپه كښے وخت تير كړے وو.

بَاب ۱۳۳: دُخُوْلِ الرَّجُلِ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِي الْيَوْمِ.

باب ۱۳۳: يو ورځ كښ ټولو بيبيانو ته د' ورتلو بيان.

۱۹۹ : حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنَ الْعَصْرِ دَخَلَ عَلَى نِسَائِهِ فَيَدْنُو مِنْ إِحْدَاهُنَّ فَدَخَلَ عَلَى حَفْصَةَ فَاحْتَبَسَ أَكْثَرَ مَا كَانَ يَحْتَبِسُ.

۱۹۹ : فروه علي بن مسهر. هشام. عروه، بي بي عائشې نه روايت كوي، چه د مازيګر د مونځ ادا كولو نه پس به حضور صلي الله عليه وسلّم خپلو ټولو بيبيانو ته تشريف اوړلو، او هر يوې سره به ئې په د رنګ ساعت تيرولو، يو ځل بي بي حفصې ته ئې تشريف يوړلو، او هلته د معمول نه زيات ايسار شولو.

باب ۱۳۴ : إِذَا اسْتَأْذَنَ الرَّجُلُ نِسَاءَهُ فِي أَنْ يُمَرَّضَ فِي بَيْتِ بَعْضِهِنَّ فَأَذِنَّ لَهُ.

باب ۱۳۴ : د خپلې بيمارۍ زمانه كښې يوې ښځې سره د اوسيدو بيان.

۲۰۰ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْأَلُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ أَيْنَ أَنَا غَدًا أَيْنَ أَنَا غَدًا يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ يَكُونُ حَيْثُ شَاءَ فَكَانَ فِي بَيْتِ عَائِشَةَ حَتَّى مَاتَ عِنْدَهَا قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَاتَ فِي الْيَوْمِ الَّذِي كَانَ يَدُورُ عَلَيَّ فِيهِ فِي بَيْتِي فَقَبَضَهُ اللهُ وَإِنَّ رَأْسَهُ لَبَيْنَ نَحْرِي وَسَحْرِي وَخَالَطَ رِيقُهُ

۲۰۰ : اسمعيل. سليمان بن بلال. هشام بن عروه نه روايت كوي، څما نيكه (دادا) ماته اووې، بي بي عائشې فرمائيل، حضورؐ به د، وفات مرض كښې خپلو بيبيانو نه تپوس كولو چه صباله به څما قيام كوم ځائې وي، ددې نه د حضور صلي الله عليه وسلّم دا مراد وو، چه د بي بي عائشې ورځ به كله وي. په دې خبره د حضور صلي الله عليه وسلّم ټولو بيبيانو حضور صلي الله عليه وسلّم له اجازت وركړلو، چه تاسو كوم ځائې غواړئې، هلته اوسئې. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ما (عائشې) سره قيام اوكه، او ما سره د، حضور صلي الله عليه وسلّم وصال اوشو، كوم وخت چه روح ئې قبض كړې شو، نو د حضور صلي الله عليه وسلّم سر مبارک څما د سينې او غاړې په مينځ كښې وو. او د حضور صلي الله عليه وسلّم د، خولې لعاب څما د خولې سرا يوځائې شوې وو. (يعني ما چه كوم مسواک نرم كړې وو او حضور صلي الله عليه وسلّم له م وركړې

رِيْقِيْ. وو، هغه حضور صلي الله عليه وسلّم استعمال كړلو).

۱. د كمزورۍ د وجې نه حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم تازه مسواک نشو چُوپلے. حضورِ اكرم چونكه دغه وخت كښې مسواک كول غوښتل دے د پاره ام المؤمنين حضرت عائشې رضي الله عنها خپلو غاښونو سره مسواک نرم كړو او حضورؐ له ئے وركړو. همدے طرفته د حديث په آخري جمله كښې اشاره ده.

باب ۱۳۵: حُبِّ الرَّجُلِ بَعْضَ نِسَآئِهِ اَفْضَلَ مِنْ بَعْضٍ.

باب ۱۳۵: د سړي يو بے بي بي سره د، زياتے مينے بيان.

۱۰۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَؓ دَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ فَقَالَ يَا بُنَيَّةُ لَا يَغُرَّنَّكِ هٰذِهِ الَّتِىْ اَعْجَبَهَا حُسْنُهَا حُبَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاهَا يُرِيْدُ عَائِشَةَ فَقَصَصْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبَسَّمَ.

۱۰۲: عبدالعزيز بن عبدالله. سليمان. يحيٰي. عبيد بن حنين. ابن عباس. حضرت عمرؓ نه روايت كوي. هغه اووے، زه حفصےؓ له ورغلم، ورته مِ اووے، اے لورے تادے، هغه بي بي تكبر كښِ وانه چوي، چه په خپل حسن ناز كوي. چه د رسُول الله صلي الله عليه وسلّم محبوبه ده. يعني د بي بي عائشےؓ مقابله مه كوه، حضرت عمرؓ فرمائي: ما دا واقعه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته بيان كړه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم مسكے شولو.

باب ۱۳۶: اَلْمُتَشَبِّعِ بِمَا لَمْ يَنَلْ وَمَا يُنْهٰى مِنِ افْتِخَارِ الضَّرَّةِ.

باب ۱۳۶: د، بنے (سوكن) د زړه سوزولو تركيبونه كول او چه كوم څيز ورته حاصل نه وي ذ هغے د حاصليدلو اظهار كؤل.

۲۰۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ حَدَّثَنِىْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ حَدَّثَتْنِىْ فَاطِمَةُ عَنْ اَسْمَآءَ اَنَّ امْرَاَةً قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ لِىْ ضَرَّةً فَهَلْ عَلَىَّ جُنَاحٌ اِنْ تَشَبَّعْتُ مِنْ

۲۰۲: سليمان بن حرب. حماد بن يزيد. هشام. فاطمه. بي بي اسماء نه روايت كوي، يوے ښځے نبي صلي الله عليه وسلّم نه دريافت او كه، يا رسول الله صلي الله عليه وسلّم خما يو بن (سوكن) ده. كه زه هغے ته (د هغے د سوزولو د پاره) د خپل خاوند د طرف نه چه څومره هغه ماته راكوي، د هغے نه زيات اوښايم نو آيا په ما به څه ګناه وي. حضور صلي الله عليه

زَوْجِيْ غَيْرَ الَّذِيْ يُعْطِيْنِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُوْرٍ.

وسلّم ورته اوفرمائيل. د' نه ور کړے شوے څيز ظاهرونکے (په طور د' دهوکے) داسے دے' لکه چه څوک مکر دوه کپړے اغستے وي. (مطلب دا چه مکر او دهو که نه ده په کار).

باب۱۳۷: الْغَيْرَةِ وَقَالَ وَرَّادٌ عَنِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَّعَ امْرَأَتِيْ لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَعْجَبُوْنَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ وَاللّٰهُ أَغْيَرُ مِنِّيْ.

باب۱۳۷: د غيرت كولو بيان. وراد وائي' مغيره نه روايت دے سعد بن عباده اووې' که زه خپله ښخه يو سړي سره اووينم' نو هغه به په توره قتل کړم. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اے صحابه تاسو ته د سعد په غيرت تعجب درخي' زه د ده نه زيات غيرت واله يم' او اللّٰه (ج) خما نه زيات غيرت واله دے.

۲۰۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ وَمَا أَحَدٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ الْمَدْحُ مِنَ اللّٰهِ.

۲۰۳: عمر بن حفص. اعمش. شقيق. عبداللّٰه بن مسعود نه روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' تاسو کښې هيڅوک د اللّٰه (ج) نه زيات غيرت واله نه دے' په دے وجه اللّٰه (ج) خراب كارونه حرام كړل. او د اللّٰه (ج) نه زيات هيڅوک خپل تعريف خوښونکے نه دے.

۲۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ مَا أَحَدٌ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ أَنْ يَرَى عَبْدَهُ أَوْ أَمَتَهُ يَزْنِيْ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا.

۲۰۴: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. هشام. عروه. بي بي عائشے نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اے امت محمديه' كوم وخت چه تاسو كښې څوک سړے يا ښځه زنا كوي. هغه وخت د' اللّٰه تعالي نه زيات غيرت هيڅ له نه راځي. اے اُمت محمديه' په څه چه زه پوهيږم' كه تاسو پدے هم هغسے پوه شے' نو خندا به لږه' او ژړا به ډيره كوئے.

۲۰۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ

۲۰۵: موسي بن اسمعيل. همام.

اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ عَنْ اُمِّهِ اَسْمَآءَ اَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا شَيْءَ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ وَعَنْ يَحْيٰى اَنَّ اَبَا سَلَمَةَ حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

یحیٰي. ابو سلمه نه روایت کوي ماته عروه بن زبیر بیان اوکه، هغه د خپلې مور نه روایت کوي، هغې د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل چه هیڅوک د اللّٰه جل جلاله نه زیات غیرتي نه دے. یحیٰي وائي. ابو سلمه ماته بیان اوکه، ما د ابوهریرهؓ نه دا اوریدلے دي، چه دا حدیث ما د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلے دے.

۲۰۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يَغَارُ وَغَيْرَةُ اللّٰهِ اَنْ يَّاتِيَ الْمُؤْمِنُ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ.

۲۰۶: ابو نعیم. شیبان. یحیٰي. ابو سلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي نبي علیه السلام اوفرمائیل، اللّٰه تعالٰي غیرت کوي او د، اللّٰه تعالٰي غیرت دادے چه څوک مومن حرام فعل وکړي (نو اللّٰه تعالٰي ته هغه بد معلومیږي).

۲۰۷: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍؓ قَالَتْ تَزَوَّجَنِي الزُّبَيْرُ وَمَالَهُ فِي الْاَرْضِ مِنْ مَّالٍ وَّلَا مَمْلُوْكٍ وَّلَا شَيْءٍ غَيْرَ نَاضِحٍ وَّغَيْرَ فَرَسِهِ فَكُنْتُ اَعْلِفُ فَرَسَهُ وَاَسْتَسْقِي الْمَآءَ وَاَخْرِزُ غَرْبَهُ وَاَعْجِنُ وَلَمْ اَكُنْ اُحْسِنُ اَخْبِزُ وَكَانَ يَخْبِزُ جَارَاتٌ لِّيْ مِنَ الْاَنْصَارِ وَكُنَّ نِسْوَةَ صِدْقٍ وَكُنْتُ اَنْقُلُ النَّوٰى مِنْ اَرْضِ الزُّبَيْرِ الَّتِيْ اَقْطَعَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَاْسِيْ وَهِيَ

۲۰۷: محمود. ابو اسامه. هشام. اسماء بنت ابوبکر نه روایت کوي، چه کوم وخت ماسره زبیرؓ واده اوکه، نو نه، هغه سره مال وو، او نه زمکه، اونه ورسره وینزه، غلام وو، ماسوا د اُوبو راوړونکي اوښ او آس نه نور هیڅ ورسره نه وو، د زبیر اس به ما خړولو. اوبه کولو به م. د، هغوي ډول (بورقه) به م کنډله، او اُوړه به م کول. البته په روټي پخولو زه نه پوهیدم څما انصاري ګوانډو به ماله ډوډي پخوله، هغه ګوانډیانې نیک بختې ښځې وې. د، زبیرؓ د هغې زمکې نه چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورکړې وه، ما به په خپل سر، د چهوهارو، هډوکي راوړل. هغه مقام دوه میله لرې وو. یوه ورځ ما په سر هډوکي

مِنِّيْ عَلٰى ثُلُثَيْ فَرْسَخٍ فَجِئْتُ يَوْمًا وَالنَّوٰى عَلٰى رَأْسِيْ فَلَقِيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهٗ نَفَرٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَدَعَانِيْ ثُمَّ قَالَ اِخْ اِخْ لِيَحْمِلَنِيْ خَلْفَهٗ فَاسْتَحْيَيْتُ اَنْ اَسِيْرَ مَعَ الرِّجَالِ وَذَكَرْتُ الزُّبَيْرَ وَغَيْرَتَهٗ وَكَانَ اَغْيَرَ النَّاسِ فَعَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّيْ قَدِ اسْتَحْيَيْتُ فَمَضٰى فَجِئْتُ الزُّبَيْرَ فَقُلْتُ لَقِيَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلٰى رَأْسِيَ النَّوٰى وَمَعَهٗ نَفَرٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَاَنَاخَ لِاَرْكَبَ فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ وَعَرَفْتُ غَيْرَتَكَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَحَمْلُكِ النَّوٰى كَانَ اَشَدَّ عَلَيَّ مِنْ رُّكُوْبِكِ مَعَهٗ قَالَتْ حَتّٰى اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُوْ بَكْرٍ بَعْدَ ذٰلِكَ بِخَادِمٍ يَكْفِيْنِيْ سِيَاسَةَ الْفَرَسِ فَكَاَنَّمَا اَعْتَقَنِيْ.

۲۰۸: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَآئِهٖ فَاَرْسَلَتْ اِحْدٰى اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِصَحْفَةٍ فِيْهَا طَعَامٌ فَضَرَبَتِ الَّتِيْ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِهَا يَدَ الْخَادِمِ فَسَقَطَتِ الصَّحْفَةُ فَانْفَلَقَتْ فَجَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى

راوړل. ما سره (لار کښې) حضور صلي الله عليه وسلّم يوځائے شولو. حضور صلي الله عليه وسلّم سره څو صحابه کرام هم وو، حضور صلي الله عليه وسلّم ماته آواز اوکه، بيا خان پسے خما سورلو د پاره ئې اوښ ته اَخ اَخ اوکړلو. خو ماته سړو سره تلو کښې شرم راتلو د، زبيرؓ غيرت هم ماته رامخکښې شو، چه هغه ډير غيرتي دے. حضور صلي الله عليه وسلّم پوه شولو، چه اسماء شرميږي، نو روان شولو، چه راغلم، نو زبيرؓ ته مې دا حال اووے. چه لار کښې حضور صلي الله عليه وسلّم ماسره يوځائے شوے وو. خما په سر د هډوکو پنډ وو. او حضور صلي الله عليه وسلّم سره صحابه وو، خما سورولو د پاره حضور صلي الله عليه وسلّم اوښ اُدرولو خو ماته ددے نه شرم راغے. او ستا غيرت هم ماته معلوم دے. زبيرؓ اووے، په الله مې دے قسم وي، ماته ستا په سر هډوکي راوړل حضور صلي الله عليه وسلّم سره سوريدونه زيات خراب معلوم شو. دے نه پس حضرت ابوبکرؓ يو خادم راوليږلو، چه د، آس ساتنه کښې ماله لاس راکړي، ګويا هغوي زه ددے کار نه آزاده کړم.

۲۰۸: علي بن عليه. حميد طويل. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپلے يوے بي بي سره وو، چه د، حضور صلي الله عليه وسلّم بلے يوے بي بي په رکيبئ کښې طعام راوليږلو. د کومے بي بي په کور کښې چه حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف فرما وو. هغے د غلام لاس اووهلو، هغے سره رکيبي راوغورځيده ماته شوه. نبي صلي الله عليه وسلّم د هغے ټکړے راټولے کړے. بيا

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلِقَ الصَّحْفَةِ ثُمَّ جَعَلَ يَجْمَعُ فِيْهَا الطَّعَامَ الَّذِيْ كَانَ فِي الصَّحْفَةِ وَيَقُوْلُ غَارَتْ اُمُّكُمْ ثُمَّ جَلَسَ الْخَادِمُ حَتّٰى اُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ عِنْدَ الَّتِيْ هُوَ فِيْ بَيْتِهَا فَدَفَعَ الصَّحْفَةَ الصَّحِيْحَةَ اِلَى الَّتِيْ كُسِرَتْ صَحْفَتُهَا وَاَمْسَكَ الْمَكْسُوْرَةَ فِيْ بَيْتِ الَّتِيْ كَسَرَتْ.

هغې کښې چه څه طعام وو، هغه به ئې راغونډولو، او دا به ئې فرمائيل، چه ستاسو مور له غيرت ورغې بيا حضور صلي الله عليه وسلّم هغه خادم ايسار کړلو. او د هغې بي بي نه چه د هغې په کور کښې حضور صلي الله عليه وسلّم وو. بله رکيبئ اوغښتله او هغې ته ئې اوليږله، د چا چه رکيبئ ماته شوې وه او هغه ماته رکيبئ ئې د هغې کور کښې کيښوده، چا چه ماته کړې وه.

۲۰۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ اَوْ اَتَيْتُ الْجَنَّةَ فَاَبْصَرْتُ قَصْرًا فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا قَالُوْا لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَاَرَدْتُ اَنْ اَدْخُلَهُ فَلَمْ يَمْنَعْنِيْ اِلَّا عِلْمِيْ بِغَيْرَتِكَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بِاَبِيْ اَنْتَ وَاُمِّيْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اَوَ عَلَيْكَ اَغَارُ.

۲۰۹: محمد بن ابي بكر مقدمي. معتمر. عبيدالله. محمد بن منكدر. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل کوم وخت چه زه جنت ته ورغلم، نو هلته م يو محل اوليدلو، ما تپوس اوکه، دا محل د چا دے، فرښتو جواب راکه، د عمرؓ بن خطاب محل دے. ما دننه د ورتلو اراده اوکړله، خو ماته ستا غيرت معلوم وو، پدے وجه ايسار شوم حضرت عمرؓ چه دا واوريدل نو وئيلے، خما مور پلار دے د، تاسو قربان وي، آيا زه به تاسو سره غيرت کوم.

۲۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوْسٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِيْ فِيْ

۲۱۰: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. ابن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ناست وو. چه حضور صلي الله عليه وسلّم، اوفرمائيل، ما خوب ليدلے دے، چه د يو محل په يو کُنج کښې يوه ښکلے ښځه ناسته ده، او اودس کوي او زه يم، ما تپوس اوکه، دا محل د چا دے، جواب راکړے شو، د

الْجَنَّةِ فَإِذَا امْرَأَةٌ تَتَوَضَّأُ إِلَى جَانِبِ قَصْرٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا لِعُمَرَ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَهُ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا فَبَكَى عُمَرُ وَ هُوَ فِي الْمَجْلِسِ ثُمَّ قَالَ أَوَ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَغَارُ.

حضرت عمرؓ دے، نو ستا غيرت راته رامخکښې شو، نو زه واپس شوم، دې اوريدو سره حضرت عمرؓ مجلس کښې په ژړا شو او وئيلې يا رسول الله صلي الله عليه وسلّم آيا زه به تاسو سره غيرت کوم.

باب ۱۳۸ : غَيْرَةِ النِّسَآءِ وَ وَجْدِهِنَّ.

باب ۱۳۸ : د ښځو د غيرت او خفګان بيان.

۲۱۱ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً وَ إِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبٰى قَالَتْ فَقُلْتُ مِنْ أَيْنَ تَعْرِفُ ذٰلِكَ فَقَالَ أَمَّا إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً فَإِنَّكِ تَقُولِينَ لَا وَ رَبِّ مُحَمَّدٍ وَ إِذَا كُنْتِ غَضْبٰى قُلْتِ لَا وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ قَالَتْ قُلْتُ أَجَلْ وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ.

۲۱۱ : عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کله چه ته مانه خوشحاله ئې يا ناراضه، نو زه پوهيږم بي بي عائشهؓ وائي، ما تپوس اوکه، دا څنګه، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کله چه ته مانه خوشحاله ئې، نو د قسم خوړلو په وخت: لا و رب محمد: وائې. او کله چه خفه ئې، نو: لا و رب ابراهيم: وائې، بي بي عائشهؓ وائي، ما اوې درست ده، (هم دغسې ده) خو په خدائې م دې قسم وي، يا رسول الله، صرف ستا نوم پريږدم (ستاسو محبت نه پريږدم).

۲۱۲ : حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى امْرَأَةٍ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ لِكَثْرَةِ ذِكْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهَا وَ ثَنَائِهِ عَلَيْهَا وَ قَدْ أُوحِيَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ

۲۱۲ : احمد بن ابي رجاء. نضر. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، د هغې بيان دې، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم هيڅ يوې بي بي سره دومره غيرت نه دې کړې، خو مره غيرت (دلته مراد رشک) چه م بي بي خديجےؓ سره کړې دې، ځکه چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم به د هغې ذکر او تعريف زيات کولو؛ او حضور صلي الله عليه وسلّم ته د وحي په

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ لَّهَا فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ.

ذريعه ښودلے شوے وو، چه بي بي خديجےؓ ته جنت کښې د يو موتي محل بشارت ورکه.

بـاب ۱۳۹ : ذَبِّ الرَّجُلِ عَنِ ابْنَتِهٖ فِي الْغَيْرَةِ وَالْاِنْصَافِ.

بـاب ۱۳۹ : د سړي خپلے لور ته د، غيرت راوستونکے خبرے د، دفع کولو او د، انصاف د خبرے کولو بيان.

۲۱۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ اِنَّ بَنِيْ هِشَامِ بْنِ الْمُغِيْرَةِ اسْتَاْذَنُوْنِيْ اَنْ يُّنْكِحُوْا ابْنَتَهُمْ عَلِيَّ ابْنَ اَبِيْ طَالِبٍ فَلَا اٰذَنُ ثُمَّ لَا اٰذَنُ ثُمَّ لَا اٰذَنُ اِلَّا اَنْ يُّرِيْدَ ابْنُ اَبِيْ طَالِبٍ اَنْ يُّطَلِّقَ ابْنَتِيْ وَيَنْكِحَ ابْنَتَهُمْ فَاِنَّمَا هِيَ بَضْعَةٌ مِّنِّيْ يُرِيْبُنِيْ مَا اَرَابَهَا وَيُؤْذِيْنِيْ مَا اٰذَاهَا هٰكَذَا قَالَ.

۲۱۳ : قتيبه. ليث. ابن ابي مليکه. مسور بن مخرمه نه روايت کوي، ما د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه په منبر واوريدل چه بني هشام بن مغيره ما نه دا، اجازت غوښتلے دے، چه مونږ د خپلے لور عليؓ بن ابي طالب سره واده کوو، زه اجازت نه ورکوم. بيائے اوفرمائيل، زه اجازت نه ورکوم، زه اجازت نه ورکوم. او. که عليؓ خما لور له طلاق ورکړي، او د هغوي لور سره واده اوکړي، نو هغه ته اختيار دے، خکه چه فاطمهؓ خما د خيګر ټکړه ده، کوم تکليف چه هغے ته رسي، هغه ماته رسي او هغے ته ضرر ماته ضرر دے.

بـاب ۱۴۰ : يَقِلُّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرُ النِّسَاءُ. وَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُرَى الرَّجُلُ الْوَاحِدُ يَتْبَعُهُ اَرْبَعُوْنَ امْرَاَةً يَلُذْنَ بِهٖ مِنْ قِلَّةِ الرِّجَالِ وَكَثْرَةِ النِّسَاءِ.

باب ۱۴۰ : آخره زمانه کښې د سړو د کمي او د ښځو د زياتي بيان. ابو موسٰي وائي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت دے، آخره زمانه کښ به يو سړي پسے څلويښت څلويښت ښځے لګيدلے وي، چه د هغه پناه به لټوي خکه چه ښځے به زياتے وي او سړي به کم وي.

۲۱۴ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَاُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيْثًا سَمِعْتُهُ

۲۱۴ : حفص بن عمر حوضي. هشام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، هغه اووے، زه تاسو ته هغه حديث بيانوم، چه ما د رسول

مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُحَدِّثُكُمْ بِهِ أَحَدٌ غَيْرِيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَ يَكْثُرَ الْجَهْلُ وَ يَكْثُرَ الزِّنَا وَ يَكْثُرَ شُرْبُ الْخَمْرِ وَ يَقِلَّ الرِّجَالُ وَ يَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتّٰى يَكُوْنَ لِخَمْسِيْنَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ.

الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلے دے. خمان سيوا به هيڅوک تاسوته دا حديث بيان نه کړي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل' د قيامت بعضے نخښے دا دي چه علم به اوچت شي او جهالت به زيات شي' او شراب به کثرت سره څکلے شي' سړي به کم شي او ښځے به دومره زياتے شي چه د پنځوس پنځوس ښځو به يو سربراه وي.

بَابُ ۱۴۱ : لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُوْ مَحْرَمٍ وَالدُّخُوْلُ عَلَى الْمُغِيْبَةِ.

باب ۱۴۱ : ښځے ته دے تنهائي کښې سيوا محرم نه بل څوک نه ورځي' او د کومے ښځے چه خاوند موجود نه وي' د هغے کورته د تلو بيان.

۵۲۱۵ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالدُّخُوْلَ عَلَى النِّسَاءِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ قَالَ الْحَمْوُ الْمَوْتُ.

۵۲۱۵ : قتيبه بن سعيد. ليث. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل د ښځو کورته (تنهائي کښې) د تلو نه پرهيز اوکړئ. يو انصاري سړي اووے. تاسو د' ليور (ديور) متعلق اوفرمائے' څه حکم دے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ليور خو مرګ دے (يعني د هغه نه زيات بچ کيدل په کار دي).

۵۲۱۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ أَبِيْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا مَعَ ذِيْ مَحْرَمٍ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ امْرَأَتِيْ خَرَجَتْ حَاجَّةً وَاكْتُتِبْتُ فِيْ غَزْوَةِ

۵۲۱۶ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. ابو معبد. ابن عباسؓ نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هيڅ سړے دے غيرے ښځے سره تنهائي نه کوي. يو سړے اودريد' وے ويل. څما ښځه حج له ځي' او څما نوم فلاني' فلاني جنګ کښې ليکلے شوے دے. حضور صلي الله عليه

كَذَا وَ كَذَا قَالَ ارْجِعْ فَحُجَّ مَعَ امْرَأَتِكَ.

وسلّم ورته اوفرمائيل واپس لاړ شه او خپلے ښځے سره حج اوکه.

**بَاب ۱۴۲ : مَا يَجُوزُ أَنْ يَخْلُوَ الرَّجُلُ بِالْمَرْأَةِ عِنْدَ النَّاسِ.**

**باب ۱۴۲ :** آيا دا جائز دي، چه د خلقو موجودگي کښې يو سړے ښځے سره جدائي کښې خبرے اترے اوکړي.

**۲۱۷ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍؓ قَالَ جَاءَتِ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَلَا بِهَا فَقَالَ وَاللّٰهِ إِنَّكُنَّ لَأَحَبُّ النَّاسِ إِلَيَّ.

**۲۱۷ :** محمد بن بشار. غندر. شعبه. هشام. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے. يو انصاري ښځه رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغله حضور صلي الله عليه وسلّم هغے ته جدائي کښې اوويے، تاسو خلق ماته د نورو ټولو خلقونه زيات محبوب يئے.

**بَاب ۱۴۳ : مَا يُنْهَى مِنْ دُخُولِ الْمُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ عَلَى الْمَرْأَةِ.**

**باب ۱۴۳ :** د ښځو په شان د جامو اغوستونکو سړو، ښيبيانو ته د تلو راتلو د مخالفت بيان.

**۲۱۸ :** حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أُمِّ سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَ فِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ الْمُخَنَّثُ لِأَخِي أُمِّ سَلَمَةَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ إِنْ فَتَحَ اللّٰهُ لَكُمُ الطَّائِفَ غَدًا أَدُلُّكَ عَلَى ابْنَةِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَ تُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هٰذَا عَلَيْكُمْ.

**۲۱۸ :** عثمان بن ابي شيبه. عبده. هشام بن عروه. عروه. زينب بنت اُم سلمه نه روايت کوي خما کور کښې يو هيجړه وو، کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم کور کښې موجود وو نو هغه هيجړه د ام سلمه ورور عبدالله بن اميه ته اووے، که صبا له الله جل جلاله د طائف فتح درکړي، نو زه به تاته دختر غيلان (د غيلان لور) اوښايم، هغه دومره غټه ده، چه کله مخې ته راشي نو د هغے په خېټه کښې څلور وَلُونه پيدا شي، او کله چه شاکړي، نو اَته وَلُونه په کښې ښکاري، دے اورېدو سره حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے ښځو دا هيجړه چه بيا تاسوله رانشي.

**بَاب ۱۴۴ : نَظَرِ الْمَرْأَةِ إِلَى**

**باب ۱۴۴ :** د فتنے او فساد نه کيدو په صورت

الْحَبَشِ وَ نَحْوِهِمْ مِنْ غَيْرِ رِيْبَةٍ.

كښ د، حبشيانو د، ناچ وغيره كتلو بيان.

**۲۱۹**: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ عَنْ عِيْسٰى عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِيْ بِرِدَائِهٖ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَى الْحَبَشَةِ يَلْعَبُوْنَ فِي الْمَسْجِدِ حَتّٰى اَكُوْنَ اَنَا الَّذِيْ اَسْاَمُ فَاقْدُرُوْا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيْثَةِ السِّنِّ الْحَرِيْصَةِ عَلَى اللَّهْوِ.

**۲۱۹**: اسحق بن ابراهيم حنظلي. عيسٰي. اوزاعي. زهري. عروه. بي بي عائشہؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم زه څادر كښ پټه كړے ووم او ما حبشيانو ته كتل چه جماعت كښ ئے (فوجي) لوبے كولے، كله چه زه ستړے شوم نو حضور صلي الله عليه وسلّم به لرے كړم. ددے خبرے نه اوس تاسو اندازه اولږوئے چه د يوے كم عمرے جينۍ لوبو سره څومره شوق وي او څومره وخته پورے به هغه تماشه كوي.

بَابُ ۱۴۵: خُرُوْجِ النِّسَآءِ لِحَوَآئِجِهِنَّ.

**باب ۱۴۵**: د ښځو خپل (رفع) حاجت پوره كولو د پاره د بهر وتلو بيان.

**۲۲۰**: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَآءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ لَيْلًا فَرَاٰهَا عُمَرُ فَعَرَفَهَا فَقَالَ اِنَّكِ وَاللّٰهِ يَا سَوْدَةُ مَا تَخْفَيْنَ عَلَيْنَا فَرَجَعَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لَهٗ وَهُوَ فِيْ حُجْرَتِيْ يَتَعَشّٰى وَ اِنَّ فِيْ يَدِهٖ لَعَرْقًا فَاُنْزِلَ اِلَيْهِ فَرُفِعَ عَنْهُ وَ هُوَ يَقُوْلُ قَدْ اَذِنَ لَكُنَّ اَنْ تَخْرُجْنَ لِحَوَائِجِكُنَّ.

**۲۲۰**: فروه بن ابي مغراء. علي بن مسهر. هشام. عروه. بي بي عائشہؓ نه روايت كوي چه بي بي سوده بنت زمعه د شپے څه كار (يعني رفع حاجت) د پاره بهر وتلي وه. حضرت عمرؓ چه اوليده، نو، وے پيژنده، په خدائے چه، اے بي بي سودہؓ ته څمونږ نه پټيدے نه شے. بي بي سودہؓ راغله او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئے دا ذكر اوكه، هغه وخت حضورؐ زما كور كښ د، ماښام طعام خوړلو. د حضور صلي الله عليه وسلّم لاس كښ هډوكے وو، چه دے كښ په حضور صلي الله عليه وسلّم وحي نازليدل شروع شول. هغه كيفيت چه د حضور صلي الله عليه وسلّم نه لرے شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے ښځو تاسو ته د خپل ضروري كارونو د پاره بهرته د تلو اجازت دركړے شو.

**باب ۱۴۶ : اسْتِئْذَانِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا فِي الْخُرُوْجِ إِلَى الْمَسْجِدِ وَ غَيْرِهِ.**

**باب ۱۴۶ : جُمات وغيره ته د تللو د پاره د ښځې د خپل خاوند نه د اجازت غوښتلو بيان.**

۱۲۲۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ أَحَدِكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يَمْنَعُهَا.

۱۲۲۱ : علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سالم د خپل پلار نه روايت کوي' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' تاسو کښې چه د چا ښځه جُمات ته د تللو د پاره تاسونه اجازت اوغواړي نو تاسوئے مه منع کوئے (ليکن اوس د فتنې په وجه اجازت نشي ورکړے کيدے).

**باب ۱۴۷ : مَا يَحِلُّ مِنَ الدُّخُوْلِ وَالنَّظَرِ إِلَى النِّسَآءِ فِي الرَّضَاعِ.**

**باب ۱۴۷ : رضاعي (د' تي) رشته دارانو طرف ته د کتلو او هغوي ته د تللو بيان.**

۱۲۲۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّهَا قَالَتْ جَآءَ عَمِّيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيَّ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتّٰى أَسْأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ إِنَّهُ عَمُّكِ فَأْذَنِيْ لَهُ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ وَ لَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ قَالَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ عَمُّكِ فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ قَالَتْ عَائِشَةُ وَ ذٰلِكَ بَعْدَ أَنْ ضُرِبَ عَلَيْنَا الْحِجَابُ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ

۱۲۲۲ : عبدالله بن يوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت کوي' هغې اووے. يو ځل خما رضاعي تره (چچا) ماله راغے او ماته د راتللو اجازت ئے اوغوښتلو. ما اجازت ورنه که. او ورته مِ وئيلے' چه څو پورے زه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اونه کړم (اجازت نه شم درکولے) کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. ما د حضور صلي الله عليه وسلّم نه د دے خبرے پوښتنه اوکړه' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. هغه ستا تره (چچا) دے هغه به دے رادننه کړے وو. بي بي عائشه رضي الله عنها وائي. ما اووے يا رسول الله' ماته خو ښځې پئے راکړے دي' سړي خو نه دي راکړے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه خو ستا تره (چچا) دے' د هغه تاته راتللو کښې هيڅ حرج نشته' بي بي عائشې رضي الله عنها اووے. دا' د' پردے د' آيت د نازليدونه وروسته واقعه ده د بي بي

يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ.

بَاب ۱۴۸ : لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتُهَا لِزَوْجِهَا.

۲۲۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا.

۲۲۴ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا.

بَاب ۱۴۹ : قَوْلِ الرَّجُلِ لَأَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى نِسَائِهِ.

۲۲۵ : حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ لَأَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ بِمِائَةِ امْرَأَةٍ تَلِدُ كُلُّ امْرَأَةٍ غُلَامًا يُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ

عائشے رضي الله عنها قول دے، نسب سره چه كوم خلق حرام دي، هغه خلق د پيو رشتے سره هم حرام دي.

باب ۱۴۸ : د ښځے خپل خاوند ته د بلے ښځے د تعريف نه كولو بيان.

۲۲۳ : محمد بن يوسف. سفيان. منصور. ابو وائل. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، هيڅ ښځه چه بلے ښځے سره يوځائے شي، نو خپل خاوند ته دے د هغے داسے تعريف نه كوي، لكه چه هغه ښځه ظاهراً ويني.

۲۲۴ : عمر بن حفص بن غياث. حفص. اعمش. شقيق. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوي، هغه اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، هيڅ ښځه چه غيرے ښځے سره يوځائے شي، نو خپل خاوند ته دے داسے تعريف نه كوي لكه چه هغه ئے په ځرګنده ويني.

باب ۱۴۹ : د يو سړي دا وئيل، چه نن شپه به زه خپلو ټولو بيبيانوله ورځم ددے وئيلو بيان.

۲۲۵ : محمود. عبدالرزاق. معمر. ابن طاوس. طاوس. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي، حضرت سليمان عليه السلام اوفرمائيل، زه به نن شپه خپلو ټولو بيبيانو سره صحبت كوم. د هغوي ټولو نه به يو يو ځوي پيدا شي چه د الله جل جلاله په لار كښ به جهاد كوي. فرښتے اووے، انشاء الله اووايه، خو هغه نه ددے وئيل هير شول، هغه خپلو ټولو بيبيانو سره شپه تيره كړه، خو

لَهُ الْمَلَكُ قُلْ اِنْشَاءَ اللّٰهُ فَلَمْ يَقُلْ وَ نَسِيَ فَاَطَافَ بِهِنَّ وَلَمْ تَلِدْ مِنْهُنَّ اِلَّا امْرَاَةٌ نِصْفَ اِنْسَانٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَالَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ لَمْ يَحْنَثْ وَ كَانَ اَرْجٰى لِحَاجَتِهٖ.

هغوي كښې سهوا د يوې بې بې نه (چه د هغې هم نيمګړے بچے پيدا شو) د بلے هيڅ يوے بي بي نه څه پيدا نه شولو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل كه سليمان عليه السلام انشاء الله وئيلے وے، نو د هغه قسم به نه وو مات شوے او د حاجت پوره كېدو اُميد به ئے هم زيات وو.

باب ۱۵۰ : لَا يَطْرُقُ اَهْلَهٗ لَيْلًا اِذَا اَطَالَ الْغَيْبَةَ مَخَافَةَ اَنْ يُخَوِّنَهُمْ اَوْ يَلْتَمِسَ عَثَرَاتِهِمْ.

باب ۱۵۰ : د اوږود سفر نه د شپے خپل كورته نه راتلل. او په كور والو د تهمت لږولو موقعه په لاس د راتللو او د هغوي د عيب جوئي بيان.

۲۲۶ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ اَنْ يَّاْتِيَ الرَّجُلُ اَهْلَهٗ طُرُوْقًا.

۲۲۶ : آدم. شعبه. محارب بن دثار. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم به د شپے كورته د سفر نه واپس راتلل بد ګڼړل.

۲۲۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنِ الشَّعْبِيِّ اَنَّهٗ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَطَالَ اَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ فَلَا يَطْرُقْ اَهْلَهٗ لَيْلًا.

۲۲۷ : محمد بن مقاتل. عبدالله. عاصم بن سليمان. شعبي. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، د هغه بيان دے رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي هر كله چه ستاسو د كور پريښودو (يعني د كور نه د، وتلو) يوه موده تيره شوے وي، نو ناسا په د شپے كورته مه راځئ.

الحمدلله والشكر لله "صحيح بخاري شريف يوويشتمه پاره ختمه شوه"



تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲۲


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

# تاج البخاري پاره ۲۲ دمضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۵۱ | د ماشوم خواهش | ۳۳۹۶ | ۱۶۹ | د غلام په نكاح كښې د وينزے اختيار | ۳۴۲۰ | ۱۸۹ | هلك بـه د لعان كونكے ښځے وي | ۳۴۴۳ |
| ۱۵۲ | د چا خاوند چه كور كښې موجود نه وي | ۳۳۹۷ | ۱۷۰ | حضورؐ د بريرے سفارش اوفرمائيلو | ۳۴۲۱ | ۱۹۰ | اے الله معامله صفا كړے | ۳۴۴۴ |
| ۱۵۳ | د ښځې زينت خاوند د پاره دے | ۳۳۹۸ | ۱۷۱ | باب ۱۷۱ | ۳۴۲۲ | ۱۹۱ | ښځے لـه درے طلاق وركول | ۳۴۴۵ |
| ۱۵۴ | آيت | ۳۳۹۸ | ۱۷۲ | مشركو ښځو سره نكاح مه كوئ | ۳۴۲۲ | ۱۹۲ | كچرے مطلقے له حيض رانشي | ۳۴۴۵ |
| ۱۵۵ | ماشومه غصے سره وهل | ۳۳۹۹ | ۱۷۳ | اسلام قبلونكے ښځه | ۳۴۲۳ | ۱۹۳ | ذ حمل دارو ميعاد | ۳۴۴۶ |
| ۱۵۶ | د حائضې طلاق | ۳۴۰۱ | ۱۷۴ | نصرانئ يا حربي ښځه | ۳۴۲۴ | ۱۹۴ | طلاقې شوے ښځے | ۳۴۴۷ |
| ۱۵۷ | د بي بي په وړاندے طلاق | ۳۴۰۱ | ۱۷۵ | د ايلاء ذكر | ۳۴۲۶ | ۱۹۵ | د فاطمه بنت قيس واقعه | ۳۴۴۷ |
| ۱۵۸ | د مريض طلاق | ۳۴۰۴ | ۱۷۶ | د مفقود الخبر حكم | ۳۴۲۷ | ۱۹۶ | كچرے مطلقه ويره كوي | ۳۴۴۹ |
| ۱۵۹ | ښځے لـه د طلاق اختيار وركول | ۳۴۰۷ | ۱۷۷ | ظهار | ۳۴۲۸ | ۱۹۷ | كچرے مطلقه په حمل كښې وي | ۳۴۴۹ |
| ۱۶۰ | د طلاق د الفاظو په باره كښې | ۳۴۰۸ | ۱۷۸ | په طلاق كښې اشاره | ۳۴۲۹ | ۱۹۸ | كه چرے دوه طلاقه ئے وركړي وي | ۳۴۵۰ |
| ۱۶۱ | "تـه پـه مـا بـاندے حرامه ئے" | ۳۴۰۸ | ۱۷۹ | لعان | ۳۴۳۳ | ۱۹۹ | حائضې ته رجعت | ۳۴۵۲ |
| ۱۶۲ | لم تُحرّم ما اَحل الله | ۳۴۱۰ | ۱۸۰ | د لعان كونكي قسم | ۳۴۳۶ | ۲۰۰ | د كُنډوے ښځے عم كول | ۳۴۵۲ |
| ۱۶۳ | نكاح نه مخكښې طلاق نيشته | ۳۴۱۲ | ۱۸۱ | د لعان كونكي قسم خوړل | ۳۴۳۷ | ۲۰۱ | پـه عدت كښې رانجه اچول | ۳۴۵۴ |
| ۱۶۴ | ذ چا پـه جبر سره ئے ښځې تـه خور اوونيله | ۳۴۱۳ | ۱۸۲ | د لعان ابتدا | ۳۴۳۷ | ۲۰۲ | پـه عدت كښې خوشبوئي لگول | ۳۴۵۵ |
| ۱۶۵ | د زبردستئ طلاق | ۳۴۱۳ | ۱۸۳ | لعان او طلاق | ۳۴۳۷ | ۲۰۳ | پـه عدت كښې رنگدارے جامے | ۳۴۵۶ |
| ۱۶۶ | خلع | ۳۴۱۷ | ۱۸۴ | پـه جومات كښې لعان كول | ۳۴۳۹ | ۲۰۴ | د مـړ كيـدونكـو بيبيانے | ۳۴۵۶ |
| ۱۶۷ | د اختلافاتو ذكر | ۳۴۱۹ | ۱۸۵ | سنگسارول | ۳۴۴۰ | | | |
| ۱۶۸ | د وينزے خرخول | ۳۴۲۰ | ۱۸۶ | د لعان كونكے مهر | ۳۴۴۱ | | | |
| | | | ۱۸۷ | لعان كونكوته وينا كول | ۳۴۴۲ | | | |
| | | | ۱۸۸ | لعان كونكو كښې جدائي | ۳۴۴۳ | | | |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۰۵. | د زنا ګټه وته | ۳۴۵۸ |
| ۲۰۶. | مهر، کـه چرے خلوت شوے وي | ۳۴۵۹ |
| ۲۰۷. | د الله تعالي فرمان | ۳۴۶۰ |
| ۲۰۸. | د نفقے مسائل | ۳۴۶۰ |
| ۲۰۹. | پـه ښځے او بچو بـانـدے خرچ کول واجب دي | ۳۴۶۲ |
| ۲۱۰. | اهل و عيال د پاره يو کال خرچ جمع کول | ۳۴۶۳ |
| ۲۱۱. | د رضاعت موده | ۳۴۶۷ |
| ۲۱۲. | د مـفـقـود الخبـر د ښځے خرچه | ۳۴۶۸ |
| ۲۱۳. | د ښځے د کور کار | ۳۴۶۸ |
| ۲۱۴. | ښځے د پاره خادم | ۳۴۶۹ |
| ۲۱۵. | سـړي لـه د بال بچ خدمت کول | ۳۴۷۰ |
| ۲۱۶. | کـه چرے سړے خرچ نه کوي | ۳۴۷۰ |
| ۲۱۷. | د خـاونـد د مـال نه خرچه اخستل | ۳۴۷۱ |
| ۲۱۸. | د ښـځے ته دستور مطابق اغستل | ۳۴۷۱ |
| ۲۱۹. | د ښځے مدد | ۳۴۷۲ |
| ۲۲۰. | د تنګ دست خرچ کول | ۳۴۷۲ |
| ۲۲۱. | د وارث په ذمه | ۳۴۷۳ |
| ۲۲۲. | لاوارثه ماشومان | ۳۴۷۴ |
| ۲۲۳. | د داني پئ ور کول | ۳۴۷۵ |
| | کتاب الاطعمه | |
| ۲۲۴. | روټۍ شروع کولو | ۳۴۷۸ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | وخت کښېنے بسم الله | |
| ۲۲۵. | پـه لـوښـي کښـے مخـے نـه خوراک کول | ۳۴۷۸ |
| ۲۲۶. | څوک چه په جمعے روټۍ خوري | ۳۴۷۹ |
| ۲۲۷. | په روټۍ کښـے ښے لاس استعمالول | ۳۴۷۹ |
| ۲۲۸. | پـه مړه خيټه روټۍ خوړل | ۳۴۸۰ |
| ۲۲۹. | ړونـد سـره يوځائے روټۍ خوړل | ۳۴۸۳ |
| ۲۳۰. | چپاتۍ او خوان | ۳۴۸۳ |
| ۲۳۱. | ستوان | ۳۴۸۵ |
| ۲۳۲. | د روټۍ معلومتيانه پس خوړل | ۳۴۸۶ |
| ۲۳۳. | د يو خوراکه دوؤ د پاره | ۳۴۸۷ |
| ۲۳۴. | مومن پـه يوه کولمه کښـے خوراک کوي | ۳۴۸۸ |
| ۲۳۵. | د مـومـن خـوراکـه اوډے لـګـولـو سـره روټۍ خوړل | ۳۴۸۹ |
| ۲۳۶. | سره کړے غوښنه | ۳۴۹۰ |
| ۲۳۷. | خزيره | ۳۴۹۱ |
| ۲۳۸. | پنير | ۳۴۹۲ |
| ۲۳۹. | چقندر او اوربشے | ۳۴۹۳ |
| ۲۴۰. | غوښنه شوکول | ۳۴۹۳ |
| ۲۴۱. | د لاس د هـډوکـي | ۳۴۹۴ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | غوښنه | |
| ۲۴۲. | چـاړے سـره غوښنه پريکول | ۳۴۹۵ |
| ۲۴۳. | پـه روټۍ کښـے عيب نه راويستل | ۳۴۹۶ |
| ۲۴۴. | اوربشـو کښـے پوکے وهل | ۳۴۹۶ |
| ۲۴۵. | نبي کـريـم بـه څـه خوړل | ۳۴۹۶ |
| ۲۴۶. | تلبينه | ۳۴۹۹ |
| ۲۴۷. | ثريد | ۳۴۹۹ |
| ۲۴۸. | وريته چيلئے خوړل | ۳۵۰۰ |
| ۲۴۹. | د خـوراک څيـز ايښودل | ۳۵۰۱ |
| ۲۵۰. | حيس | ۵۰۲ |
| ۲۵۱. | د چاندئ لوښي کښے خوراک کول | ۵۰۳ |
| ۲۵۲. | د روټۍ ذکر | ۵۰۴ |
| ۲۵۳. | سالن | ۵۰۵ |
| ۲۵۴. | خوږ څيز او شات | ۵۰۶ |
| ۲۵۵. | کدو | ۵۰۷ |
| ۲۵۶. | د تکلف روټۍ | ۳۵۰۷ |
| ۲۵۷. | پـه نـورو بـانـدے خوروُل | ۳۵۰۸ |
| ۲۵۸. | ښوروا | ۳۵۰۸ |
| ۲۵۹. | د غـوښـے اوچے ټکړے | ۳۵۰۹ |
| ۲۶۰. | دستـرخـوان نـه راؤښـکـلـو سـره ورکول | ۳۵۱۰ |

| باب | مضامين | صفحه |
| --- | --- | --- |
| ۲۶۱. | تازه کجورے بادرنگو سره | ۳۵۱۰ |
| ۲۶۲. | باب ۲۶۲ | ۳۵۱۱ |
| ۲۶۳. | تازه او اوچے کجورے | ۳۵۱۱ |
| ۲۶۴. | د کجورے د اونے چیړ | ۳۵۱۳ |
| ۲۶۵. | عجوه کجورے | ۳۵۱۴ |
| ۲۶۶. | دوه کجورے یوځائے خوړل | ۳۵۱۴ |
| ۲۶۷. | باد رنګ | ۳۵۱۴ |
| ۲۶۸. | د کجورے د اونے برکت | ۳۵۱۵ |
| ۲۶۹. | یو وخت کښے دوه قسمه خوراکه | ۳۵۱۵ |
| ۲۷۰. | میلمانو باندے پینځے جوړولو سره خوراک کول | ۳۵۱۵ |
| ۲۷۱. | اُوګه وغیره | ۳۵۱۶ |
| ۲۷۲. | د پیلو اونه | ۳۵۱۷ |
| ۲۷۳. | روټئ خوړلو نه پس خوله کنګالول | ۳۵۱۷ |
| ۲۷۴. | ګوتے څټل | ۳۵۱۸ |
| ۲۷۵. | رومال | ۳۵۱۹ |
| ۲۷۶. | د روټئ نه پس دعا | ۳۵۱۹ |
| ۲۷۷. | خادم سره روټئ خوړل | ۳۵۲۰ |
| ۲۷۸. | د روټئ خوړلو نه پس شکریه | ۳۵۲۰ |
| ۲۷۹. | چه د یو کس دعوت وي نو د بل حکم | ۳۵۲۰ |
| ۲۸۰. | که چرے روټئ حاضره وي | ۳۵۲۱ |
| ۲۸۱. | د روټئ خوړلو نه پس | ۳۵۲۲ |
| | کتاب العقيقه | |
| ۲۸۲. | که چرے د عقیقے اراده ئے نه وي | ۳۵۲۳ |
| ۲۸۳. | په عقیقه کښے | ۳۵۲۶ |
| ۲۸۴. | فرع | ۳۵۲۷ |
| ۲۸۵. | عتیره | ۳۵۲۷ |


تمت

# دوه ويشتمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

باب ۱۵۱: طَلَبُ الْوَلَدِ.

۲۲۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ هُشَيْمٍ عَنْ سَيَّارٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةٍ فَلَمَّا قَفَلْنَا تَعَجَّلْتُ عَلٰى بَعِيْرٍ قَطُوْفٍ فَلَحِقَنِيْ رَاكِبٌ مِنْ خَلْفِيْ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا أَنَا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يُعْجِلُكَ قُلْتُ إِنِّيْ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ فَبِكْرًا تَزَوَّجْتَ أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ أَمْهِلُوْا حَتّٰى تَدْخُلُوْا لَيْلًا أَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَ تَسْتَحِدَّ الْمُغِيْبَةُ قَالَ وَ حَدَّثَنِي الثِّقَةُ أَنَّهُ قَالَ فِيْ هٰذَا الْحَدِيْثِ الْكَيْسَ الْكَيْسَ يَا جَابِرُ يَعْنِي الْوَلَدَ.

۲۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

باب ۱۵۱: دَ اولاد د خواهش بيان.

۲۲۸: مسدد. هشيم. شعبي. جابر نه روايت كوي، زه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره يو جنګ كښې شريک شوم، كوم وخت چه مونږ واپس شو، نو ما په يو، سست رفتاره اُوبښ په تادي تادي د تلو كوشش كولو. يو سور زما د ورستو راغے، ما سره يوځائے شو، ما چه اوكتل، نو هغه حضور صلي الله عليه وسلّم وو. حضور صلي الله عليه وسلّم تپوس اوكه. دومره تادي ولے كوے. ما ورته عرض اوكه. ما تازه واده كړے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، پيغلے سره يا كُنډے سره. ما اوويے. كُنډے سره. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل پيغلے سره دے ولے واده نه كولو چه هغے تاسره لوبے كولے او تا هغے سره. كوم وخت چه مونږ مدينے ته اورسيدو، او كورته داخليدل مو، اوغوښتل، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل انتظار كوه، تردے چه د ماسختن وخت راشي، نو كور كښې داخل شه، د پاره ددے چه بي بي چه خپل پريشانه ويښته كومنز كړي. او زير ناف (د نامے نه لاندے) ويښته صاف كړي. د راوي بيان دے، ماته يو ثقه سړي دے حديث كښې بيان اوكه. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے جابره، كيس كيس، يعني د بچي خواهش كوه.

۲۲۹: محمد بن وليد. محمد بن جعفر.

الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَيَّارٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دَخَلْتَ لَيْلًا فَلَا تَدْخُلْ عَلٰى اَهْلِكَ حَتّٰى تَسْتَحِدَّ الْمُغِيْبَةُ وَ تَسْتَمْشِطُ الشَّعِثَةُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَيْكَ بِالْكَيْسِ الْكَيْسِ تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ وَهْبٍ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكَيْسِ.

شعبه. سيار. شعبي. جابر بن عبدالله نه روايت كوي. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كوم وخت چه ته د شپې راشې، نو خپل كور كښې سمدستي مه داخليږه، تردې چه بي بي (ښځه) اندام نهاني (پټ اندام) صاف كړي، او خپل پريشانه ويښته كومنز كړي. او نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، ته د، اولاد خواهش كوه. ته د اولاد خواهش كوه. عبدالله بن وهب په واسطه د حضرت جابر، نبي صلي الله عليه وسلم نه ددې متابع حديث د، كيس متعلق روايت كه.

## باب ١٥٢ : تَسْتَحِدُّ الْمُغِيْبَةُ وَ تَمْتَشِطُ.

## باب ١٥٢ : ښځه دې د پټ اندام ويښته صاف كړي او (د، سر) ويښته دې كومنز كړي.

٢٣٠ : حَدَّثَنِيْ يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا سَيَّارٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةٍ فَلَمَّا قَفَلْنَا كُنَّا قَرِيْبًا مِنَ الْمَدِيْنَةِ تَعَجَّلْتُ عَلٰى بَعِيْرٍ لِّيْ قَطُوْفٍ فَلَحِقَنِيْ رَاكِبٌ مِنْ خَلْفِيْ فَنَخَسَ بَعِيْرِيْ بِعَنَزَةٍ كَانَتْ مَعَهُ فَسَارَ بَعِيْرِيْ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ مِنَ الْاِبِلِ فَالْتَفَتُّ فَاِذَا اَنَا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ

٢٣٠ : يعقوب بن ابراهيم. هشيم. سيار. شعبي. جابر بن عبدالله نه روايت كوي. مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره يو جنګ كښې شريک وو، كوم وخت چه مونږ واپس شو او مدينې ته قريب شو، نو زه چه په خپل كوم سست رفتاره اُوښ سور ووم هغه م په تادي تادي شړلو. يو سور زما د شا نه راغې، ماسره يو ځائې شو. او يوې نيزې سره ئې چه هغه سره وه خما اُوښ پرې اووهلو. نو خما اوښ داسې روان شو، ځنګه چه د ښه نه ښه اوښ ځي. ما چه وروستو اوكتل، نو هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم وو. ما اووې، يا رسول الله ما تازه واده كړې دې، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، پيغلې سره يا كنډې سره. ما اووې كنډې سره. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، پيغلې سره دې ولې واده نه كولو، ته به هغې سره مشغوليدې، او هغه به

قَالَ اَتَزَوَّجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَبِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا قَالَ قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا بِكْرًا تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ اَمْهِلُوْا حَتّٰى تَدْخُلُوْا لَيْلًا اَيْ عِشَآءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَ تَسْتَحِدَّ الْمُغِيْبَةُ.

تاسره (يعني خپلو كښې به سره لوبيدئې) كوم وخت چه مونږ مدينې ته اورسيدو او خپل كورته مو تلل اوغوښتل' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ايسار شئ' تردې چه تاسو د شپې يعني د ماسختن په وخت كور كښې داخل شئ' د پاره د دې' چه بي بي (ښځه) پريشانه ويښته ګومنز كړي او د آندام نهاني (پټ اندام) ويښته صاف كړي.

بَابُ ۱۵۳ : وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اِلٰى قَوْلِهٖ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرَاتِ النِّسَآءِ.

باب۱۵۳ : د' اللّٰه تعالٰي قول' چه ښځې د خپل ډول سنګار د' خپلو خاوندانو نه سيوا' د بل چا مخكښې نه ظاهروي: لم يظهروا على عوراتِ النسآء پورې.

۱۲۳۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ اخْتَلَفَ النَّاسُ بِاَيِّ شَيْءٍ دُوْوِيَ جُرْحُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ فَسَاَلُوْا سَهْلَ ابْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ وَ كَانَ مِنْ اٰخِرِ مَنْ بَقِيَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ وَ مَا بَقِيَ مِنَ النَّاسِ اَحَدٌ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ كَانَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ تَغْسِلُ الدَّمَ عَنْ وَّجْهِهٖ وَ عَلِيٌّ يَاْتِيْ بِالْمَآءِ عَلٰى تُرْسِهٖ فَاُخِذَ حَصِيْرٌ فَحُرِّقَ فَحُشِيَ بِهٖ جُرْحُهٗ.

۱۲۳۱ : قتيبه بن سعيد. سفيان. ابو حازم نه روايت كوي. هغه اووې. خلقو كښې اختلاف شو' چه د' احد په ورځ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د زخم علاج څه څيز سره اوشولو. خلقو د سهل بن سعد ساعدي نه چه مدينه كښې اخري صحابي پاتې شوې وو' ددې متعلق تپوس اوكه' نو هغه اووې. په دې خما نه زيات پوهيدونكې اوس هيڅوك نه دې پاتې شوې. بي بي فاطمې به د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د مخ مبارك نه وينه وينزله. او حضرت عليؓ به خپل ډهال كښې اوبه راوړلې په هغې به ئې اچولې. يوه چټائي راوړې شوه' او سوزولې شوه او هغې سره د حضور صلي الله عليه وسلّم زخم ډك كړې شو.

ف: چټائي: پُوزې. د' وښو' يا د' قجورو د څانګو د پاڼو فرش.

بَابُ ۱۵۴ : وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ.

باب۱۵۴ : د' ايت: والذين لم يبلغوا الحلم تفسير.

۲۳۲ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَابِسٍ سَمِعْتُ بْنَ عَبَّاسٍ سَأَلَهُ رَجُلٌ شَهِدْتُّ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيْدَ اَضْحٰى اَوْ فِطْرًا قَالَ نَعَمْ وَ لَوْ لَا مَكَانِيْ مِنْهُ مَا شَهِدْتُّهُ يَعْنِيْ مِنْ صِغَرِهٖ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى ثُمَّ خَطَبَ وَلَمْ يَذْكُرْ اَذَانًا وَلَا اِقَامَةً ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ فَوَعَظَهُنَّ وَ ذَكَّرَهُنَّ وَ اَمَرَهُنَّ بِصَدَقَةٍ فَرَاَيْتُهُنَّ يَهْوِيْنَ اِلٰى اٰذَانِهِنَّ وَ حُلُوْقِهِنَّ يَدْفَعْنَ اِلٰى بِلَالٍ ثُمَّ ارْتَفَعَ هُوَ وَ بِلَالٌ اِلٰى بَيْتِهٖ.

۲۳۲ : احمد بن محمد. عبدالله. سفيان. عبدالرحمٰن بن عابس. ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه نه يو سړي تپوس اوكه. آيا ته نبي صلي الله عليه وسلّم سره د وړوكي يا لوئے اختر په ورځ مانځه كښې شريک شوے ئے. هغه اووے، او. كه ماته د قرابت مرتبه حاصله نه وے، نو د خپلے كم عمرئ په وجه به ما حضور صلي الله عليه وسلّم نه وو، ليدلے. حضور صلي الله عليه وسلّم ممبر ته تشريف راوړلو. مونځ ئے اوكړلو. بيائے خطبه وركړه. د، اذان او اقامت ذكر، ئے اونه كه. بيا د ښځو طرف ته ئے تشريف راوړلو. هغوي ته ئے نصيحت اوكه، آخرت ئے ورياد كړلو. او د صدقے حكم ئے وركړلو. ما اوليدل چه ښځو به خپلو غوږونو او غاړوته لاس كولو، او بلالؓ طرف ته به ئے كالي (زيورات) ورغورځول. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم او بلالؓ دواړه كور طرف ته روان شو.

بَابٌ ۱۵۵ : قَوْلِ الرَّجُلِ لِصَاحِبِهٖ هَلْ اَعْرَسْتُمُ اللَّيْلَةَ وَ طَعْنِ الرَّجُلِ ابْنَتَهٗ فِي الْخَاصِرَةِ عِنْدَ الْعِتَابِ.

باب ۱۵۵ : د، يو سړي خپل ملګري ته دا وئيل، چه آيا نن تا، شب زفاف تيره كړله (يعني د، واده شپه دے تيره كړه) او د خپلے لور تشے (كوكھ) د غصے په وخت د ځكنډلو بيان.

۲۳۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ عَاتَبَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ وَ جَعَلَ يَطْعُنُنِيْ بِيَدِهٖ فِيْ خَاصِرَتِيْ فَلَا يَمْنَعُنِيْ مِنَ التَّحَرُّكِ اِلَّا مَكَانُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَاْسُهٗ

۲۳۳ : عبدالله بن يوسف. مالک. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ماته حضرت ابوبكرؓ (خما پلار) غصه شولو. او خپل لاس سره ئے خما تشے ځكنډلو زه صرف ددے وجے نه خوځيدے نه شوم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم موجود وو، داسے حال كښې چه د حضور صلي الله عليه وسلّم سر مبارک خما

عَلٰى فَخِذِىْ.

په پتون پروت وو.

# كتاب الطلاق

# (د طلاق بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا النَّبِىُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَ اَحْصُوا الْعِدَّةَ اَحْصَيْنَاهُ حَفِظْنَاهُ وَعَدَدْنَاهُ وَ طَلَاقُ السُّنَّةِ اَنْ يُطَلِّقَهَا طَاهِرًا مِنْ غَيْرِ جِمَاعٍ وَ يُشْهِدُ شَاهِدَيْنِ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

د' اللّٰه تعالىٰ قول' اے نبيؐ' كله چه ته خپلو ببيبانوله طلاق وركول غواړے' نو هغه وخت وركوه' چه د هغوي د' عدت وخت شروع شي. او عدّت شمار كوه. احصيناه: يعني دي مونږ ياد كړلو' او شمار كړلو. او د سنت مطابق طلاق دادے چه داسے طهر (پاكي) كښ هغے له طلاق وركړي' چه هغے كښ ئے ورسره صحبت نه وي كړے او دوه ګواهان مقرر كړي.

۴۳۴ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِىْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ طَلَّقَ امْرَاَتَهُ وَ هِىَ حَائِضٌ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتّٰى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيْضَ ثُمَّ تَطْهُرَ ثُمَّ اِنْ شَآءَ اَمْسَكَ بَعْدُ وَ اِنْ شَآءَ طَلَّقَ قَبْلَ اَنْ يَمَسَّ فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِىْ اَمَرَ اللّٰهُ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَآءُ.

۴۳۴ : اسماعيل بن عبداللّٰه. مالك. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي' هغه خپلے ښځے له د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښ د حيض په حالت كښ طلاق وركه' حضرت عمرؓ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ددے متعلق تپوس اوكه' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه ته د' رجوع كولو حكم وركړه' بيا دے هغه ايساره كړي' تردے چه پاكه شي. بيا ورته حيض راشي. بيا پاكه شي. بيا كه غواړي' نو دے نه پس دے خان سره اوساتي. اوكه غواړي نو د صحبت كولو نه مخكښ دے طلاق وركړي. دا هغه عدّت دے چه هغے د پاره ښځو ته د طلاق وركولو حكم اللّٰه تعالىٰ وركړے دے.

ف: حيض: مياشت په مياشت وينه جاري كيدل. د' زنانه ؤ نه هره مياشت وينه تلل. جامے كيدل. ورځے' بليتي' ماهواري.

بـاب ۱۵۶ : اِذَا طُـلِّـقَـتِ الْحَآئِضُ يُعْتَدُّ بِذٰلِكَ الطَّلَاقُ.

۲۳۵ : حَـدَّثَـنَـا سُلَيْمَـانُ بْـنُ حَرْبٍ حَـدَّثَـنَـا شُعْبَةُ عَنْ اَنَـسِ بْـنِ سِيْرِيْـنَ قَـالَ سَـمِعْتُ بْنَ عُمَرَ قَـالَ طَـلَّـقَ ابْـنُ عُـمَـرَ امْـرَاَتَـهٗ وَ هِـيَ حَـائِـضٌ فَـذَكَـرِ عُـمَـرُ لِلنَّبِـيِّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَقَـالَ لِيُـرَاجِـعْهَا قُـلْتُ تُحْتَسَبُ قَالَ فَمَه وَ عَـنْ قَتَـادَةَ عَنْ يُوْنُـسَ ابْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْـنِ عُـمَـرَؓ قَـالَ مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا قُلْتُ تُـحْتَسَـبُ قَـالَ اَرَاَيْـتَ اِنْ عَـجَـزَ وَاسْتَـحْـمَـقَ وَ قَـالَ اَبُـوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْـدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ سَعِيْدِ بْـنِ جُبَيْـرٍؓ عَـنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ حُسِبَتْ عَلَيَّ بِتَطْلِيْقَةٍ.

باب ۱۵۶ : کـه حیض والـه ښـځـې لـه طلاق ورکړې شي، نو دا به طلاق شمیرلې شي.

۲۳۵ : سلیمان بن حرب. شعبه. انس بن سیرین. ابـن عمرؓ نه روایت کوي، هغه خپلې ښځې له د حیض په حالت کښ طلاق ورکه. حضرت عمرؓ حضور صلي الله علیه وسلّم ته دد ې تذکره اوکړه. حضور صلي الله علیه وسـلّـم ورتـه اوفـرمائیل، هغه دې خپلې ښځې ته رجوع وکـړي. مـا اووې، ایا هغه به طلاق شمارلې شي. حضور صـلـي الـلّـه عـلیـه وسـلّـم اوفرمائیل ولې نه. او قتاده په واسـطـه د، یـونـس، ابـن جبیـر، ابن عمرؓ نه روایت اوکه. حـضـور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. هغه ته د رجوع کـولـو حـکـم ورکه. ما اووې، دا، به طلاق شمارلې شي حـضـور صـلـي الـلّـه علیه وسلّم اوفرمائیل، که یو سړې عاجز وي. او احمق شوې وي (نو آیا طلاق به نه کیږي) ابـو مـعمر، عبدالوارث، ایوب، سعید بن جبیر ابن عمرؓ نه روایت کوي، په ما یو طلاق شمار کړې شو.

بـــاب ۱۵۷ : مَـــنْ طَـلَّـــقَ وَ هَـلْ يُـوَاجِـــهُ الـرَّجُـلُ امْـرَاَتَـهٗ بِالطَّلَاقِ.

۲۳۶ : حَـدَّثَـنَـا الْـحُـمَـيْـدِيُّ حَـدَّثَـنَـا الْـوَلِيْـدُ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِـيُّ قَـــالَ سَـاَلْـتُ الـزُّهْـرِيَّ اَيُّ اَزْوَاجِ النَّبِـيِّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعَاذَتْ مِنْهُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ عَنْ عَـائِشَةَ اَنَّ ابْـنَـةَ الْجَوْنِ لَـمَّا اُدْخِلَتْ عَـلٰـى رَسُـوْلِ الـلّٰـهِ صَـلَّـى اللّٰـهُ

باب ۱۵۷ : د هغې سړي بیان چه طلاق ورکړي او آیا دا ضـروري ده، چه سړې خپلې ښځې طرف ته د طلاق ورکولو په وخت متوجه شي.

۲۳۶ : حـمیـدي. ولیـد. اوزاعـي بیـان کوي ما زهـري نـه تپوس اوکه، د نبي صلي الله علیه وسلّم کومې بي بي د حضور صلي الله علیه وسلّم نه پناه غوښتلې وه. هـغـه اووې، مـاتـه عـروه، هغه د بي بي عائشېؓ نه روایت اوکـه، چـه د، جـون لـور کوم وخت رسـول الله صلي الله عـلیـه وسـلّـم تـه راوستې شوه، او حضـور صلي الله علیه وسـلّم ورته ورنزدې شو، نو هغې اووې، زه ستا نه د، الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدَنَا مِنْهَا قَالَتْ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ فَقَالَ لَهَا قَدْ عُذْتِ بِعَظِيْمٍ اَلْحَقِيْ بِاَهْلِكِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ رَوَاهُ حَجَّاجُ بْنُ اَبِيْ مَنِيْعٍ عَنْ جَدِّهٖ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّ عُرْوَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ.

پناه غوارم، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغې ته اوفرمائيل. تا د ډير لوئي (ذات) پناه اوغوښتله، په دې وجه ته خپلو رشته دارو ته لاړه شه[1]. امام بخاريؒ اووې، دا، حجاج بن ابي منيع د خپل نيكه (دادا) نه، هغه د زهري نه، زهري د، عروه نه روايت او كه، چه بي بي عائشېؓ اوفرمائيل.

۱. دا الفاظ د هغې د ژبې نه په ناپوهۍ او غلط فهمۍ كښې وتلي وو. غالبًا هغه پوئې نشوه چه پخپله حضور اكرمؐ تشريف راوړې دې. په دې خبره هغه ټول عمر خپيمانه وه او دا به ئې وئيل چه زه ډيره بدبخته اوم په روايتونو كښې راځي چه د مرګ نه مخكښې د هغې په عقل كښې فرق راغلې وو.

۲۳۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ غَسِيْلٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنَ اَبِيْ اُسَيْدٍ عَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى انْطَلَقْنَا اِلٰى حَائِطٍ يُّقَالُ لَهَا الشَّوْطُ حَتّٰى انْتَهَيْنَا اِلٰى حَائِطَيْنِ فَجَلَسْنَا بَيْنَهُمَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْلِسُوْا هٰهُنَا وَ دَخَلَ وَ قَدْ اُوْتِيَ بِالْجَوْنِيَّةِ فَاُنْزِلَتْ فِيْ بَيْتٍ فِيْ نَخْلٍ فِيْ بَيْتِ اُمَيْمَةَ بِنْتِ النُّعْمَانِ بْنِ شَرَاحِيْلَ وَ مَعَهَا دَايَتُهَا حَاضِنَةٌ لَهَا فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَبِيْ نَفْسَكِ لِيْ قَالَتْ وَ هَلْ تَهَبُ الْمَلِكَةُ نَفْسَهَا لِلسُّوْقَةِ قَالَ فَاَهْوٰى بِيَدِهٖ

۲۳۷ : ابو نعيم. عبدالرحمٰن بن غسيل. حمزه بن ابي اسيدؓ نه روايت كوي، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره اووتلو او يو باغ ته ورسيدو، چه هغې ته شوط وئيلې شو، كوم وخت چه مونږ د هغې د، دوو ديوالونو مينځ ته اورسيدو، نو مونږ هلته كيناستو. حضورؐ اوفرمائيل دلته كينه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دننه تشريف يوړلو. هلته جونيه راوستې شوه. او د اُميمه بنت نعمان بن شراحيل د قجورې كور كښې كوزه كړې شوه. او هغې سره يوه نګراني كونكي دئ (دايه) وه. كوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغې ته قريب شو، نو وې فرمائيل، ته خپل ځان ماته حواله كړه. هغې اووې، آيا يوه شهزادګي خپل ځان يو بازاري ته حواله كولې شي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لاس ورمخكښې كړلو، چه د هغې په سر ئې كيږدي، او تسلي ور كړي. هغې اووې، زه تانه د اللّٰه پناه غوارم، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تا د داسې ذات پناه اوغوښتله، چه د هغه پناه غوښتلې شي. بيا حضور صلي

يَضَعُ يَدَهُ عَلَيْهَا لِتَسْكُنَ فَقَالَتْ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ فَقَالَ قَدْ عُذْتِ بِمَعَاذٍ ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ يَا أَبَا أُسَيْدٍ أَكْسُهَا رَازِقِيَّيْنِ وَأَلْحِقْهَا بِأَهْلِهَا وَقَالَ الْحُسَيْنُ بْنُ الْوَلِيدِ النَّيْسَابُورِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ أَبِيهِ وَأَبِي أُسَيْدٍ قَالَا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَيْمَةَ بِنْتَ شَرَاحِيلَ فَلَمَّا أُدْخِلَتْ عَلَيْهِ بَسَطَ يَدَهُ إِلَيْهَا فَكَأَنَّهَا كَرِهَتْ ذٰلِكَ فَأَمَرَ أَبَا أُسَيْدٍ أَنْ يُجَهِّزَهَا وَيَكْسُوَهَا ثَوْبَيْنِ رَازِقِيَّيْنِ.

۲۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَمْزَةَ عَنْ أَبِيهِ وَعَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ بِهٰذَا.

۲۳۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي غَلَّابٍ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ قَالَ تَعْرِفُ ابْنَ عُمَرَ إِنَّ ابْنَ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَأَتَى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ

الله علیه وسلّم مونږ پله تشریف راوړلو. او' وې فرمایل اې اسیده' دې ته دوه رازقي کپړې واغندوه' او د هغې کوروالو ته یې اورسوه. حسین بن ولید نیشاپوري په واسطه د عبدالرحمٰن' عباس بن سهل' هغه د خپل پلار او ابو اسید نه روایت کوي' ددې دواړو بیان دې' چه نبي صلي الله علیه وسلّم امیمه بنت شراحیل سره نکاح اوکړه' کوم وخت چه هغة حضور صلي الله علیه وسلّم ته راوستې شوه. حضور صلي الله علیه وسلّم خپل لاس هغې ته ورمخکښې کړلو. خو هغې دا خبره خوښه نه کړه' نو حضور صلي الله علیه وسلّم ابو اسید ته حکم ورکه' چه دې له سامان ورکړه' او دوه رازقي کپړې ورته واغندوه.

۲۳۸: عبدالله بن محمد. ابراهیم بن ابي الوزیر. عبدالرحمٰن. حمزه. د خپل پلار او عباس بن سهل بن سعد د خپل پلار نه دا حدیث روایت کړې دې (کوم چه مخکښې ذکر شو).

۲۳۹: حجاج بن منهال. همام بن یحیٰي. قتاده. ابو غلاب. یونس بن جبیر نه روایت کوي' ما د ابن عمرؓ نه تپوس اوکه' یو سړي د حیض په حالت کښې خپلې ښځې له طلاق ورکه (ددې څه حکم دې) هغه اووې ته ابن عمرؓ پیژنې. ابن عمرؓ خپلې ښځې له د حیض حالت کښې طلاق ورکه. حضرت عمرؓ د حضور صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو' او حضورؐ ته یې دا بیان اوکه. نو حضور صلي الله علیه وسلّم ورته حکم ورکه' چه هغې ته دې رجوع اوکړي. کوم وخت چه هغه پاکه

فَـأَمَـرَهُ أَنْ يُـرَاجِـعَهَـا فَـإِذَا طَهُـرَتْ فَـأَرَادَ أَنْ يُـطَـلِّـقَهَـا فَـلْيُطَلِّقْهَا قُلْتُ فَهَـلْ عَـدَّ ذٰلِكَ طَلَاقًـا قَـالَ أَرَأَيْـتَ إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ.

شي' او طـلاق ورکول غواړي' نو طلاق دې ورکړي. ما تپـوس اوکه. آيا دا به طلاق شميرلي شي. هغوئ اووې. اووايه' که يو سړے عـاجـز او احمق شي (نو د هغه څه علاج دے).

**بـاب ۱۵۸ : مَـنْ أَجَـازَ طَلَاقَ الثَّـلٰـثِ. لِـقَـوْلِ الـلّٰـهِ تَـعَـالٰـى اَلـطَّلَاقُ مَـرَّتَـانِ فَـإِمْسَاكٌ بِـمَـعْـرُوْفٍ أَوْ تَسْرِيْـحٌ بِـإِحْسَـانٍ.** وَ قَـالَ ابْـنُ الـزُّبَيْـرِ فِـيْ مَـرِيْـضٍ طَـلَّـقَ لَا أَرٰى أَنْ تَـرِثَ مَبْتُـوْتَتُـهُ وَ قَـالَ الشَّـعْبِـيُّ تَـرِثُـهُ وَ قَـالَ ابْنُ شُبْـرُمَةَ تَـزَوَّجَ إِذَا انْـقَـضَـتِ الْـعِـدَّةُ قَـالَ نَـعَـمْ قَـالَ أَرَأَيْـتَ إِنْ مَـاتَ الـزَّوْجُ الْآخَـرُ فَـرَجَـعَ عَنْ ذٰلِكَ.

**باب ۱۵۸ : د هغے سړي دليل چه هغه درے طلاقه جائز کړل.** خکه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل' طلاق دوه خـلـه دے' بيـا د قـاعدے مطابق ئے ايساره کړه' يا په ښـه شـان ئے پـريـږده او د هـغـے مريض متعلق چه هغه د مـرض پـه حـالـت کښ خپلے ښځے له طلاق ورکه. ابن زبيرؓ اووے' زه نه پوهيږم چه هغه عدت تيرونکے ښځه به د هـغـه وارثه وي. شعبي اووے' چه هغه به وارثه وي' ابن شبـرمـه تپوس اوکه. آيا هغه ښځه د عدت تيرولو نه پس نـکـاح کـولے شي هـغـه اووے' او. بيائے تپوس اوکـه. اوښايه' که دوئم خاوند مړ شي (نو څه به کيږي) شعبي د خپل قول نه رجوع اوکړه.

• ۲۴۰ : حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُـوْسُفَ أَخْبَـرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ سَهْـلَ بْـنَ سَعْـدٍ السَّاعِدِيَّ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُـوَيْمِرَ الْعَجْلَانِيَّ جَـآءَ إِلٰى عَاصِمِ بْنِ عَدِيِّ الْأَنْصَارِيِّ فَقَالَ لَهُ يَا عَاصِمُ أَرَأَيْـتَ رَجُلًا وَّ جَـدَ مَـعَ امْرَأَتِـهٖ رَجُلًا أَيَـقْـتُـلُـهُ فَتَـقْـتُـلُـوْنَهُ أَمْ كَـيْـفَ يَفْـعَـلُ سَلْ لِـيْ يَـا عَـاصِـمُ عَنْ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَسَأَلَ عَـاصِـمٌ عَـنْ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

• ۲۴۰ : عـبـدالـلّٰـه بـن يـوسف. مـالک. ابـن شهـاب. سهـل بـن سعـد. سـاعـديؓ نـه روايـت کوي' چـه عـويـمـر عـجـلانـي' عـاصـم بن عدي انصـاري لـه راغـے' او د هـغـه نـه ئے تپـوس اوکـه. اے عـاصـم اووايـه' کـه يو سـړے خپلے ښځـے سره بل سړے اووينـي او هـغـه قـتـلوي' نو تـاسو بـه قصـاص کښ هغـه قتلوئے. يـا هغـه (بے چـاره) څه اوکـړي. اے عـاصـم' ددے متعلق د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه خـمـا دَ پـاره تپوس اوکړه. عـاصـم ددے متعلق د رسول الـلّٰـه صـلي الـلّٰـه عـليـه وسـلّم نه تپوس اوکه نو حـضـورؐ هـغـه مسئلے (چـه بلا ضرورتـه پـښتلے شي)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا حَتّٰى كَبُرَ عَلٰى عَاصِمٍ مَا سَمِعَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَجَعَ عَاصِمٌ اِلٰى اَهْلِهٖ جَآءَ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا عَاصِمُ مَا ذَا قَالَ لَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمٌ لَمْ تَأْتِنِيْ بِخَيْرٍ قَدْ كَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْئَلَةَ الَّتِيْ سَاَلْتَهٗ عَنْهَا قَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللّٰهِ لَا اَنْتَهِيْ حَتّٰى اَسْاَلَهٗ عَنْهَا فَاَقْبَلَ عُوَيْمِرٌ حَتّٰى اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسْطَ النَّاسِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا اَيَقْتُلُهٗ فَتَقْتُلُوْنَهٗ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْكَ وَفِيْ صَاحِبَتِكَ فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا قَالَ سَهْلٌ فَتَلَاعَنَا وَاَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ اَنْ يَّاْمُرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتْ تِلْكَ سُنَّةُ الْمُتَلَاعِنِيْنَ.

بدے او معیوب اوګڼلے. عاصم چه د نبي صلي الله علیه وسلّم نه کومه خبره واوریده، هغه پرے ګرانه تیره شوه. کوم وخت چه عاصم خپل کورته واپس شو، نو عویمر راغے تپوس ئے اوکه، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم څه اوفرمائیل عاصم اووے تا ماله ښه څیز راونه وړلو، نبي صلي الله علیه وسلّم خما هغه سوال چه ما هغوئ ته اوکه، بد اوګڼړلو. عویمر اووے. زه ددے نه، نه منع کیږم، څو پورے چه د حضورؐ نه تپوس اونه کړم. نو عویمر خپله د حضور صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او د خلقو موجودګي کښې ئے تپوس اوکه، یا رسول الله که یو سړے خپلے ښځے سره بل سړے اووینی او هغه قتل کړي، نو تاسو به د هغه نه قصاص آخلئے. تا اووائے، چه بیا هغه څه اوکړي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ستا متعلق او ستا د ښځے متعلق د الله جل جلاله حکم نازل شوے دے. لاړ شه او هغه راوله. سهل اووے. بیا هغے دواړو لعان اوکه، او زه نبي صلي الله علیه وسلّم سره خلقو سره موجود ووم. کوم وخت چه دواړه د لعان نه فارغ شو. نو عویمر اووے، یا رسول الله، که زه هغه ایساره کړم، نو زه به دروغجن یم. بیا د رسول الله صلي الله علیه وسلّم د حکم ورکولو نه مخکښې هغے له ئے درے طلاقه ورکړل. ابن شهاب اووے، د لعان کونکو دا طریقه شوه.

ف: لعان: لعنت کول. د قاض یکښې د ښځے او د خاوند دواړو په یو بل باندے لعنت وئیل چه خاوند په

خپله ښځه د' زنا تهمت اولګوي' نو اول به څلور ځلې قسم خوري' بيا به په پنځم ځل داسې وائي' چه په ما باندې دې د خدائې لعنت وي' که زه دروغ وايم' بيا به ښځه د خپلې صفائي او خلاصي د پاره اول څلور ځله قسمونه خوري' او په پنځم ځل به داسې وائي چه په ما دې د خدائې قهر (غضب) اوشي' که په ما دا لګولې شوې تهمت تيک وي. کومه ښځه چه د لعان نه پس پريښودې شي' هغې سره بيا نکاح حرام ده.

۲۴۱: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ امْـرَاَةَ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ جَآءَ تْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ رَفَاعَةَ طَلَّقَنِيْ فَبَتَّ طَلَاقِيْ وَ اِنِّيْ نَكَحْتُ بَعْدَهٗ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ الزُّبَيْرِ الْقُرَظِيَّ وَ اِنَّمَا مَعَهٗ مِثْلُ الْهُدْبَةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّكِ تُرِيْدِيْنَ اَنْ تَرْجِعِيْ اِلٰى رِفَاعَةَ لَا حَتّٰى يَذُوْقَ عُسَيْلَتَكِ وَ تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهٗ.

۲۴۱: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشه نه روايت کوي' د هغې بيان دې' د' رفاعه قرظي ښځه د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئې اوکه' يا رسول الله' رفاعه ماله طلاق راکه. او طلاق بته ئې راکړلو. ما دې نه پس عبدالرحمٰن بن زبير قرظي سره نکاح اوکړله' ليکن د هغه سره د کپړې د' زونډي په شان دې (يعني نامرد دې) حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' شايد ته رفاعه له تلل غواړې' ليکن داسې نه شي کيدې' څو پورې چه هغه تانه او' ته د هغه نه مزه وانخلې.

۲۴۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَجُلًا طَلَّقَ امْرَاَتَهٗ ثَلَاثًا فَتَزَوَّجَتْ فَطَلَّقَ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَحِلُّ لِلْاَوَّلِ قَالَ لَا حَتّٰى يَذُوْقَ عُسَيْلَتَهَا كَمَا ذَاقَ الْاَوَّلُ.

۲۴۲: محمد بن بشار. يحيٰي. عبيد الله. قاسم بن محمد. بي بي عائشه نه روايت کوي' يو سړي خپلې ښځې له درې طلاقه ورکړل' نو هغې ښځې (دوئمه) نکاح اوکړله. بيا هغه طلاق ورکه' نو حضور صلي الله عليه وسلّم نه ئې په دې باره کښې تپوس اوکه' چه آيا هغه د' وړمبني خاوند د پاره حلاله ده' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' نه څو پورې چه ددې (دوئم) خاوند ددې نه لطف اندوز نشي' څنګه چه وړمبني خاوند ترې مزه اخستې وه.

باب ۱۵۹ : مَنْ خَيَّرَ نِسَآءَهُ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَ اُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا.

باب ۱۵۹ : خپلو بيبيانو ته د اختيار ورکولو بيان. او د اللّٰه تعالیٰ قول چه خپلو بيبيانو ته اووايه، که تاسو د دنيا ژوند او ددے زيب و زينت غواړے، نو راځئ چه زه تاسو لره سامان درکړم، اوپه ښه شان مو رخصت کړم.

۲۴۳ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ خَيَّرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرْنَا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ فَلَمْ يَعُدَّ ذٰلِكَ عَلَيْنَا شَيْئًا.

۲۴۳ : عمر بن حفص. حفص. اعمش. مسلم. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، مونږ ته رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اختيار راکه، نو مونږ اللّٰه جل جلاله او د هغه رسول اختيار کړلو، او حضور صلي الله عليه وسلّم دا، اختيار خمونږ په حق کښې هيڅ هم (يعني طلاق وغيره) شمار نه کړلو.

۲۴۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمَّا اُمِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ بِتَخْيِيْرِ اَزْوَاجِهِ بَدَاَبِيْ فَقَالَ اِنِّيْ ذَاكِرٌ لَكِ اَمْرًا فَلَا عَلَيْكِ اَنْ لَّا تَعْجَلِيْ حَتّٰى تَسْتَاْمِرِيْ اَبَوَيْكِ قَالَتْ وَ قَدْ عَلِمَ اَنَّ اَبَوَيَّ لَمْ يَكُوْنَا يَاْمُرَانِيْ بِفِرَاقِهِ قَالَتْ ثُمَّ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَالَ جَلَّ ثَنَاؤُهُ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ اِلٰى قَوْلِهِ اَجْرًا عَظِيْمًا قَالَتْ فَقُلْتُ فَفِيْ اَيِّ هٰذَا اَسْتَاْمِرُ اَبَوَيَّ فَاِنِّيْ اُرِيْدُ اللّٰهَ

۲۴۴ : ابواليمان. شعيب. زهري. (دونم سند) ليث. يونس ابن شهاب. (زهري). ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشهؓ د حضورؐ تير فرمائي څه وخت چه په رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم ته دَ خپلو بيبيانو په باره کښې د تخيير دا آيت نازل شو. يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِکَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا و زِيْنَتَهَا الخ نو هغوئ بيبيانوته د تخيير آيت واورولو اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: اے محمدؐ خپلو بيبيانوته اووايه چه که تاسو دَ دنيا ژوند او خائست غواړئ. تر آخره پورے بي بي عائشهؓ حضورؐ ماته اوفرمائيل چه زه تاته يو خبره کوم د هغے په جواب کښے تلوار مه کوه تر څو پورے چه خپل مور پلار سره مشوره اونه کړے فرمائي ما اووے په دے کښې څه تپوس اوکړم زهٔ خو بس اللّٰه او ذ هغه رسول او د آخرت

وَ رَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ قَالَتْ ثُمَّ فَعَلَ اَزْوَاجُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ مَا فَعَلْتُ.

کور غوارم. دا فرمائي چه بيا د حضور نورو بيبيانو هم دغسے اوکړل څنګه چه ما اوکړه.

۴۲۴۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَامِرٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ رضي عَنِ الْخِيَرَةِ فَقَالَتْ خَيَّرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَفَكَانَ طَلَاقًا قَالَ مَسْرُوْقٌ لَا اُبَالِيْ اَخَيَّرْتُهَا وَاحِدَةً اَوْ مِائَةً بَعْدَ اَنْ تَخْتَارَنِيْ.

۴۲۴۵ : مسدد. يحيٰي. اسماعيل. عامر. مسروق نه روايت کوي، ما د بي بي عائشے رض نه د خيار متعلق تپوس اوکه، نو هغے اووے، مونږ ته حضور صلي الله عليه وسلم اختيار راکړے وو، نو آيا دا طلاق شولو. مسروق اووے، ځما هيڅ پروا نشته چه زه هغے له يو ځل يا سل ځله اختيار ورکړم، هر کله چه هغه ما اختيار کړي.

بَابٌ ۱۶۰ : اِذَا قَالَ فَارَقْتُكِ اَوْ سَرَّحْتُكِ اَوِ الْخَلِيَّةُ اَوِ الْبَرِيَّةُ اَوْ مَا عُنِيَ بِهِ الطَّلَاقُ فَهُوَ عَلٰى نِيَّتِهٖ وَ قَوْلُ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ سَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا وَ قَالَ اُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا وَّ قَالَ فَاِمْسَاكٌ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌ بِاِحْسَانٍ وَّ قَالَ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّ قَالَتْ عَائِشَةُ قَدْ عَلِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَبَوَيَّ لَمْ يَكُوْنَا يَاْمُرَانِّيْ بِفِرَاقِهٖ.

باب ۱۶۰ : که يو سړے خپلے ښځے ته اووائي چه ته ما جدا کړلے، يا ته ما پريښودلے، يا، خليه، بريه او، داسے الفاظ اووائي که د هغے نه طلاق مراد وي، نو د هغه د نيتِ مطابق به د هغے حکم وي. د، الله جل جلاله بزرګ و برتر قول، چه، هغوئ په ښه شان پريږدئے، او زه به تا په ښه شان پريږدم، او د قاعدے مطابق ئے ايسارول دي، يا په ښه شان ئے پريښودل دي، يا هغوي د قاعدے مطابق جدا کړئے. او د بي بي عائشے رض نه دا قول، نبي صلي الله عليه وسلم ته معلومه وه چه ځما مور و پلار به ماته د جدائي (فراق) اجازت رانه کړي.

بَابٌ ۱۶۱ : مَنْ قَالَ لِاِمْرَاَتِهٖ اَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ وَ قَالَ الْحَسَنُ نِيَّتُهٗ وَ قَالَ اَهْلُ الْعِلْمِ اِذَا طَلَّقَ ثَلَاثًا فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْهِ فَسَمَّوْهُ حَرَامًا بِالطَّلَاقِ وَالْفِرَاقِ وَ لَيْسَ هٰذَا كَالَّذِيْ يُحَرِّمُ الطَّعَامَ

باب ۱۶۱ : د هغے سړي بيان چه خپلے ښځے ته اووائي، چه ته په ما حرامه ئے، حسن اووے د سړي د نيت به اعتبار وي. او اهل علمُ اووے، هر کله چه درے طلاقه ورکړي، نو په هغه حرامه ده. او، دے ته وائي د، طلاق يا فراق په باعث حراميدل. خو دا تحريم داسے نه دے لکه يو سړے چه خوراک ته حرام اووائي، ځکه چه

لِاَنَّهُ لَا. يُقَالُ لِلطَّعَامِ الْحِلِّ حَرَامٌ وَ يُقَالُ. لِلْمُطَلَّقَةِ حَرَامٌ وَ قَالَ فِي الطَّلَاقِ ثَلَاثًا لَا تَحِلُّ لَهُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ وَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا سُئِلَ عَمَّنْ طَلَّقَ ثَلَاثًا قَالَ لَوْ طَلَّقْتَ مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَنِيْ بِهٰذَا فَاِنْ طَلَّقْتَهَا ثَلٰثًا حَرُمَتْ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ.

حلال خوراک ته حرام نه شي وئيلے. او طلاقې شوې ښځې ته حرامه وئيلے شي او اللّٰه (ج) د درے طلاقو متعلق اوفرمائيل چه هغه ښځه ورته حلاله نه ده چه څو پورے چه دونـم خاوند سره نکاح اونه کړي. او ليث د نافع نه نقل کړيدے چه ابن عمرؓ نه به د هغے سړي متعلق تپوس اوشو، چه هغه درے طلاقه ور کړي وي، نو وئيل به ئے کاش، چه يو يا دوه طلاقه ئے ور کړے وے ځکه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته ددے حکم راکړلو، که هغے له درے طلاقه ور کړے شي، نو هغه حرامه شوه، څو پورے چه دويم خاوند سره نکاح اونه کړي.

۲۴۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَلَّقَ رَجُلٌ اِمْرَاَتَهٗ فَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا غَيْرَهٗ فَطَلَّقَهَا وَ كَانَتْ مَعَهٗ مِثْلُ الْهُدْبَةِ فَلَمْ تَصِلْ مِنْهُ اِلٰى شَيْءٍ تُرِيْدُهٗ فَلَمْ يَلْبَثْ اَنْ طَلَّقَهَا فَاَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ زَوْجِيْ طَلَّقَنِيْ وَ اِنِّيْ تَزَوَّجْتُ زَوْجًا غَيْرَهٗ فَدَخَلَ بِيْ وَ لَمْ يَكُنْ مَعَهٗ اِلَّا مِثْلُ الْهُدْبَةِ فَلَمْ يَقْرَبْنِيْ اِلَّا هَنَةً وَاحِدَةً وَلَمْ يَصِلْ مِنِّيْ اِلٰى شَيْءٍ اَفَاَحِلُّ لِزَوْجِيَ الْاَوَّلِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحِلِّيْنَ لِزَوْجِكِ الْاَوَّلِ حَتّٰى يَذُوْقَ الْاٰخَرُ عُسَيْلَتَكِ وَ تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهٗ.

۲۴۶ : محمد ابو معاويه. هشام بن عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، يو سړي خپلے ښځے له طلاق ورکه، هغے ښځے بل سړي سره نکاح اوکړله چه هغه سره عضوه مخصوص دے کپړے د زونډي په شان وو (يعني نامرد وو) د هغے خاوند نه ئے خپل مقصد پوره نه کړے شو. څو ورځے پس هغه خپلے ښځے له طلاق ورکه بيا هغه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښ حاضره شوه، او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه زما خاوند ماله طلاق راکړے وو. ما يو سړي سره نکاح اوکړله، هغه چه ماله راغے، نو هغه سره عضو مخصوص د کپړے د زونډي په شان وو. ما سره لږ ساعت پاتے شو او مانه ئے څه فائده اوچته نه کړے شوه. نو آيا زه د ورمبني خاوند د پاره حلاله يم. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. ته ورمبني خاوند د پاره حلاله نه ئے څو پورے چه دويم خاوند تانه او ته د هغه نه خوند وانخلے.

باب ۱۶۲ : لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ.

۲۴۷ : حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بنِ صَبَّاحٍ سَمِعَ الرَّبِيْعَ ابْنَ نَافِعٍ حَدَّثَنَا مُعٰوِيَةُ عَنْ يَحْمَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ يَعْلٰى بْنِ حَكِيْمٍ عَنْ سَعِيْدِ بنِ جُبَيْرٍ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اِذَا حَرَّمَ امْرَاَتَهُ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَ قَالَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

۲۴۸ : حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ زَعَمَ عَطَاءٌ اَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ وَ يَشْرَبُ عِنْدَهَا عَسَلًا فَتَوَاصَيْتُ اَنَا وَ حَفْصَةُ اَنَّ اَيَّتَنَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَقُلْ اِنِّيْ اَجِدُ مِنْكَ رِيْحَ مَغَافِيْرَ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ فَدَخَلَ عَلٰى اِحْدٰهُمَا فَقَالَتْ لَهُ ذٰلِكَ فَقَالَ لَا بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ وَ لَنْ اَعُوْدَ لَهُ فَنَزَلَتْ يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهِ لِقَوْلِهِ بَلْ شَرِبْتُ

باب ۱۶۲ : د آيت لِمَ تُحَرِّم ما احل الله لك شان نزول.

۲۴۷ : حسن بن صباح. ربيع بن نافع معاويه. يحيي بن ابي كثير. يعلي بن حكيم. سعيد بن جبير. د حضرت عباسؓ قول نقل كوي، چه هغه اووے، كوم وخت چه يو سړے خپله ښځه په ځان حرامه كړي، نو دا هيڅ څيز نه دے، او ونيلے چه ستاسو د پاره رسول الله صلي الله عليه وسلّم كښې ښه نمونه ده.

۲۴۸ : حسن بن محمد بن صباح. حجاج. ابن جريج. عطاء. عبيد بن عمير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، نبي عليه السلام به زينب بنت جحش سره پاتے كيدو، او هغے كره به ئے شهد (شات) څكل، نو ما (عائشےؓ) او حفصےؓ مشوره اوكړه، چه مونږ كښې چا كره حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړي، نو ورته به وايو، چه ماته ستاسو د خولے نه د مغافير بوئي راځي، آيا تاسو مغافير خوړلے دي. حضور صلي الله عليه وسلّم دوئ دواړو كښې يوے پله تشريف راوړلو، نو هغے دغه عرض اوكه، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، نه، ما، زينب بنت جحش كره شات څكلے دي. او بيا به هيڅ كله نه څكم، پدے خبره دا آيات نازل شولو، چه اے نبي عليه السلامه، ته په ځان داسے څيز ولے حراموے، چه الله (ج) تا د پاره حلال كړے دے: تتوبا الي الله: پورے. دے كښې بي بي عائشهؓ او بي بي حفصےؓ ته خطاب دے: وَ اِذَا اسر النبي الي بعض ازواجه: نه مراد، د حضور صلي الله عليه وسلّم دا قول دے، چه ما

عَسَلًا.

۲۴۹: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَآءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْعَسَلَ وَالْحَلْوَاءَ وَكَانَ اِذَا انْصَرَفَ مِنَ الْعَصْرِ دَخَلَ عَلٰى نِسَآئِهِ فَيَدْنُوا مِنْ اِحْدَاهُنَّ فَدَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ فَاحْتَبَسَ اَكْثَرَ مَا كَانَ يَحْتَبِسُ فَغِرْتُ فَسَاَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ فَقِيلَ لِيْ اَهْدَتْ لَهَا امْرَاَةٌ مِّنْ قَوْمِهَا عُكَّةً مِّنْ عَسَلٍ فَسَقَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ شَرْبَةً فَقُلْتُ اَمَا وَاللّٰهِ لَنَحْتَالَنَّ لَهُ فَقُلْتُ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ اِنَّهُ سَيَدْنُوا مِنْكِ فَاِذَا دَنَا مِنْكِ فَقُوْلِيْ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ فَاِنَّهُ سَيَقُوْلُ لَكِ لَا فَقُوْلِيْ لَهُ مَا هٰذِهِ الرِّيْحُ الَّتِيْ اَجِدُ مِنْكَ فَاِنَّهُ سَيَقُوْلُ لَكِ سَقَتْنِيْ حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ فَقُوْلِيْ لَهُ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ وَسَاَقُوْلُ ذٰلِكِ وَقُوْلِيْ اَنْتِ يَا صَفِيَّةُ ذَاكِ قَالَتْ تَقُوْلُ سَوْدَةُ فَوَاللّٰهِ مَا هُوَ اِلَّا اَنْ قَامَ عَلَى

خو، شات څکلے دي.

۲۴۹: فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشېؓ نه روایت کوي، نبي علیه السلام به شات او خوږ څیز خوښولو. او کوم وخت چه به د مازیګر د مونځ نه فارغ شو، نو خپلو بیبیانو طرف ته به ئے تشریف اوړو، او هغوي کښې به چاله ورتلو یوه ورځ بي بي حفصېؓ له ورغے، او د معمول نه زیات ایسار شولو، زه ورته اوپسخیدم، ما د، دے متعلق تپوس اوکه، ماته اُوئیلے شو، چه هغے ته د هغے د قوم یو ښځے لږ شان شات (شهد) تحفه کښې لیږلي وو، د هغے نه ئے نبي علیه السلام باندے لږ شان اوڅکول. ما اووے په خدائے چه زه به څه حیله جوړه کړم، ما، بي بي سودهؓ ته اووے، عنقریب نبي صلي الله علیه وسلّم به تا پله تشریف راوړي، کوم وخت چه تاله راشي، نو ورته اووایه، آیا تاسو مغافیر خوړلے دي، بیا به تاته وائي، چه نه، نو ته ورته اووایه، بیا د څه څیز بُوي راځي، حضور صلي الله علیه وسلّم به (یقیناً) اوفرمائي، په ما حفصېؓ لږ شان شات څکولے دي، نو ته جواب ورکه چه شاید د شاتو مچے د عرفط رس رولے دے. زه به هم دغسے وایم، او اے صفیېؓ ته هم دغسے وایه، بي بي عائشهؓ بیاز کوي، بي بي سودهؓ اووے، په خدائے (ج) چه نبي علیه السلام دروازے ته تشریف راوړے وو، چه ما ستا د ویرے د، سبب نه هغه خبره کول اوغښتل چه د هغے تا ماته حکم کړے وو، کوم وخت چه نبي صلي الله علیه وسلّم بي بي سودهؓ ته قریب اورسیدو. نو سودهؓ عرض اوکه، یا رسول الله صلي الله علیه وسلّم آیا تاسو مغافیر

الْبَـابِ فَـأَرَدْتُ اَنْ اُنَادِيَـهُ بِمَـا اَمَرْتِنِي بِهِ فَرَقًا مِّنْكِ فَلَمَّا دَنَا مِنْهَا قَالَتْ لَهُ سَوْدَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ قَالَ لَا قَالَتْ فَمَا هٰذِهِ الرِّيْحُ الَّتِيْ اَجِدُ مِنْكَ قَالَ سَقَتْنِيْ حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ فَقَالَتْ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ فَلَمَّا دَارَ اِلَيَّ قُلْتُ لَهُ نَحْوَ ذٰلِكَ فَلَمَّا دَارَ اِلٰى صَفِيَّةَ قَالَتْ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَلَمَّا دَارَ اِلٰى حَفْصَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَسْقِيْكَ مِنْهُ قَالَ لَا حَاجَةَ لِيْ فِيْهِ قَالَتْ تَقُوْلُ سَوْدَةُ وَاللّٰهِ لَقَدْ حَرَّمْنَاهُ قُلْتُ لَهَا اُسْكُتِيْ.

خوړلے دي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه سودهؓ عرض اوکه، بيا دا بُوي د څه څيز راځي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل حفصهؓ په ما لږ شان شات څکولے دي. بي بي سودهؓ ورته عرض اوکه، شايد د شاتو مچو د عرفط رس روَلے وي. کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم ماله راغے، نو ماهم هغسے اووے، او چه صفيےؓ له ورغے نو هغے هم اووے کوم وخت چه حضور صلي اللّه عليه وسلّم دوباره بي بي حفصےؓ له ورغے، نو هغے اووے، يا رسول الله صلي الله عليه وسلّم آيا زه په تاسو شات اونه څکوم، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ماته ددے ضرورت نشته، سودهؓ اووے، په خدائے (ج) چه مونږ دا په حضور صلي الله عليه وسلّم حرام کړل، ما سودهؓ ته اووے چپ شه (چرته حضور صلي الله عليه وسلّم خبرنه شي).

ف: (۱) مغافير: د جاولے په شان يو بدبودار څيز. (۲)عرفط: کيکر، ببول، يوه خنکلي آزغنه اُونه ده، د هغے نه گوند څاڅي. پلوسه چه د هغے چيږ مشهور دے.

بَـابُ ۱۶۳: لَا طَلَاقَ قَبْلَ النِّكَاحِ وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا فَمَتِّعُوْهُنَّ وَ سَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ جَعَلَ اللّٰهُ الطَّلَاقَ بَعْدَ النِّكَاحِ وَ يُرْوٰى فِيْ ذٰلِكَ عَنْ عَلِيٍّ وَ سَعْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ وَ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ

باب ۱۶۳: د نکاح نه مخکښ طلاق نه شته، او د اللّه تعالي قول، اے ايمان والو، هر کله چه تاسو مؤمنو ښځو سره نکاح اوکړئے بيا هغوي له د صحبت کولو نه مخکښ طلاق ورکړئے، نو ستاسو عدّت په هغوي ضروري نه دے، تاسو هغوي له سامان ورکړئے. او په ښه طريقه ئے پريږدئے. او ابن عباسؓ اووے، اللّه تعالي طلاق د نکاح نه پس ايښے دے، او دے باب کښ حضرت عليؓ، سعد بن مسيب، عروه بن زبير، ابوبکر بن عبدالرحمٰن. عبداللّه بن

عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بن عُتبَةَ وَ اَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ وَ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ وَ شُرَيْحٍ وَ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ وَالْقَاسِمِ وَ سَالِمٍ وَ طَاوُسٍ وَالْحَسَنِ وَ عِكْرِمَةَ وَ عَطَاءٍ وَ عَامِرِ ابْنِ سَعْدٍ وَ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ وَ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ وَ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ وَ مُجَاهِدٍ وَالْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ عَمْرِو بْنِ هَرِمٍ وَالشَّعْبِيِّ اَنَّهَا لَا تَطْلُقُ.

عبدالله بن عتبه. ابان بن عثمان. علي بن حسين. شريح. سعيد بن جُبير. قاسم. سالم. طاؤس. حسن. عكرمه. عطاء. عامر بن سعد. جابر بن زيد. نافع بن جبير. محمد بن كعب. سليمان بن يسار. مجاهد. قاسم بن عبدالرحمٰن. عمرو بن هرم او شعبي (رضي الله عنهم) نه منقول دي. چه هغې له طلاق نه كيږي.

**باب ١٦٤ : اِذَا قَالَ لِامْرَاَتِهٖ وَ هُوَ مُكْرَهٌ هٰذِهٖ اُخْتِيْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ** قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِسَارَةَ هٰذِهٖ اُخْتِيْ وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

**باب ١٦٤ :** كه يو سړے خپلې ښځې ته د جبر په بنا اووائي، چه دا خما خور' ده' نو په هغه هيڅ نشته' نبي عليه السلام اوفرمائيل' حضرت ابراهيم عليه السلام د بي بي سارهؓ متعلق وئيلے وو. چه دا خما خور ده' او داسې وئيل د اسلامي او ديني حيثيت نه وو.

**بَابُ ١٦٥ : اَلطَّلَاقُ فِي الْاِغْلَاقِ وَالْكُرْهِ وَالسَّكْرَانِ وَالْمَجْنُوْنِ وَ اَمْرِهِمَا وَالْغَلَطِ وَالنِّسْيَانِ فِي الطَّلَاقِ وَالشِّرْكِ وَ غَيْرِهٖ** وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَ لِكُلِّ امْرِئٍ مَّا نَوٰى وَ تَلَا الشَّعْبِيُّ لَا تُؤَاخِذْنَا اِنْ نَّسِيْنَا اَوْ اَخْطَاْنَا وَ مَا لَا يَجُوْزُ مِنْ اِقْرَارِ الْمُوَسْوِسِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلَّذِيْ اَقَرَّ

**باب ١٦٥ :** زبردستي' نشه' او د ليونتوب حالت كښې د طلاق وركولو او غلطي سره او په هيره طلاق وركولو او د شرك وغيره بيان' (ددې حكم په نيت دے) ځكه چه حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' د' اعمالو دار' مدار په نيت دے' او هر سړي ته به هغه رسي' د څه چه ئې نيت كړے وي. او شعبي دا' آيت تلاوت كه' كه مونږ نه هيره اوشي يا غلطي او كړو' نو خمونږ مواخذه اومه كړے. او ددے امر بيان چه' د وهمي سړي اقرار جائز نه دے' او حضور صلي الله عليه وسلّم هغے سړي ته چه هغه د زنا اقرار كړے وو' اوفرمائيل آيا ته ليونے شوے ئې' او د عليؓ بيان دے' چه حمزهؓ خما د' اوښو ارخونه اوخيرل' حضور صلي الله عليه وسلّم

عَلٰى نَفْسِهٖ اَبِكَ جُنُوْنٌ وَقَالَ عَلِيٌّ بَقَرَ حَمْزَةُ خَوَاصِرَ شَارِفَيَّ فَطَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُوْمُ حَمْزَةَ فَاِذَا حَمْزَةُ قَدْ ثَمِلَ مُحَمَّرَةٌ عَيْنَاهُ ثُمَّ قَالَ حَمْزَةُ هَلْ اَنْتُمْ اِلَّا عَبِيْدٌ لِاَبِيْ فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَدْ ثَمِلَ فَخَرَجَ وَ خَرَجْنَا مَعَهُ وَ قَالَ عُثْمَانُ لَيْسَ لِمَجْنُوْنٍ وَّلَا لِسَكْرَانَ طَلَاقٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَلَاقُ السَّكْرَانِ وَالْمُسْتَكْرَهِ لَيْسَ بِجَائِزٍ وَّ قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ لَّا يَجُوْزُ طَلَاقُ الْمُوَسْوِسِ وَ قَالَ عَطَآءٌ اِذَا بَدَاَ بِالطَّلَاقِ فَلَهُ شَرْطُهُ وَ قَالَ نَافِعٌ طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَاَتَهُ الْبَتَّةَ اِنْ خَرَجَتْ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ اِنْ خَرَجَتْ فَقَدْ بُتَّتْ مِنْهُ وَ اِنْ لَّمْ تَخْرُجْ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ وَّ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْمَنْ قَالَ اِنْ لَّمْ اَفْعَلْ كَذَا وَ كَذَا فَامْرَاَتِيْ طَالِقٌ ثَلٰثًا يُسْئَلُ عَمَّا قَالَ وَ عَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِيْنَ حَلَفَ بِتِلْكَ الْيَمِيْنِ فَاِنْ سَمّٰى اَجَلًا اَرَادَهُ وَ عَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِيْنَ حَلَفَ جُعِلَ ذٰلِكَ فِيْ دِيْنِهٖ وَ اَمَانَتِهٖ وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ اِنْ قَالَ لَا حَاجَةَ

حمزهؓ ملامت كولو، چه كوري چه د حمزهؓ ستر ګے سرے (سرخ) دي، او په نشته كښې مست دے، بيا حمزهؓ اووے. آيا تاسو خما د پلار نيكه غلامانٌ نه ئے، حضور صلي الله عليه وسلّم ته معلومه شوه، چه حمزهؓ نشه كښې دے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم د هغے خائے نه روان شولو، او مونږ هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره رارawan شولو، عثمان اووے، د مجنون او مست طلاق نه كيږي، ابن عباسؓ اووے، د مست او مجبور طلاق نه كيږي، او عقبه بن عامر اووے. د، وهمي سړي طلاق نه كيږي، د، عطاء قول دے. كه د طلاق د لفظ نه ابتدا اوكړي (او د هغے نه پس شرط بيان كړي) نو د وقوع شرط نه پس به طلاق كيږي نافع تپوس اوكه، يو سړي خپلے ښځے له طلاق بتّه وركړلو، په دے شرط كه هغه د كور نه بهر اوځي (نو ددے څه حكم دے) ابن عمرؓ جواب وركه، كه هغه ښځه د كور نه بهر اووتله نو هغے ته به طلاق بته اوشي، او كه بهرته اونه وتله، نو هيڅ نشته، او زهري اووے، كه يو سړے اووائي، كه زه داسے داسے اونه كړم، نو خما ښځے له درے طلاقه دي (دے صورت كښې) د هغه نه به تپوس كولے شي، چه د هغه ددے قول د، قائل (ويونكي) څه نيت وو. كه هغه څه موده بيان كړي. چه د قسم خوړلو په وخت زړه كښې د هغه نيت دا، وو، نو د، دينداري او امانت د، وجے نه به د هغے اعتبار كولے شي ابراهيم اووے، كه يو سړے خپلے ښځے ته اووائي، چه ماته ستا ضرورت نشته، نو د هغه نيت له به اعتبار، وي. او د هر قوم طلاق د هغوئے په ژبه كښې جائز دے، كه يو سړے خپلے ښځے ته اووائي. كه ته حامله

لِــيْ فِيْكِ نِيَّتُـــــهٗ وَ طَلَاقُ كُـــلِّ قَوْمٍ بِلِسَانِهِمْ وَ قَالَ قَتَادَةُ اِذَا قَالَ اِذَا حَمَلْتِ فَاَنْتِ طَالِقٌ ثَلٰثًا يُغْشَاهَا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ مَرَّةً فَاِنِ اسْتَبَانَ حَمْلُهَا فَقَدْ بَانَتْ مِنْهُ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِذَا قَالَ الْحَقِيْ بِاَهْلِكِ نِيَّتُهٗ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ اَلطَّلَاقُ عَنْ وَطَرٍ وَّالْعِتَاقُ مَا اُرِيْدَ بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ اِنْ قَالَ مَا اَنْتِ بِامْرَاَتِيْ نِيَّتُهٗ وان نَوٰى طَلَاقًا فَهُوَ مَا نَوٰى وَ قَالَ عَلِيٌّ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ الْقَلَمَ رُفِعَ عَنْ ثَلٰثَةٍ عَنِ الْمَجْنُوْنِ حَتّٰى يُفِيْقَ وَ عَنِ الصَّبِيِّ حَتّٰى يُدْرِكَ وَ عَنِ النَّائِمِ حَتّٰى يَسْتَيْقِظَ وَ قَالَ عَلِيٌّ وَ كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ اِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوْهِ.

شي، نو تاله درې طلاقه دي، دې صورت كښې قتاده اووې، هغې ته به هر طهر (پاكي) كښې يو طلاق پريوځي. او كوم وخت چه د هغې حمل ظاهر شي: نو هغه نه به جدا شي، او كه يو سړې خپلې ښځې ته اووائي. چه خپل كورووالو كره ځه، لاړه شه، نو حسن دې صورت كښې اووې، چه د هغه نيت له به اعتبار وي، او ابن عباسؓ اووې، طلاق د ضرورت په وخت جائز دې. او ازادول ئې دې صورت كښې بهتر دي. هر كله چه د اللّٰه تعالٰي خوشنودي پيش نظر، وي، زهري وائي، كه يو سړې خپلې ښځې ته اووائي چه ته ځما ښځه نه ئې. نو د هغه د، نيت به اعتبار، وي، كه هغه د طلاق نيت كړې وي، نو طلاق به وي كنې نو طلاق به نه وي، حضرت عليؓ اوفرمائيل آيا تاسونه پوهيږئې چه درې قسمه سړي مرفوع القلم دي (يعني په هغوي مواخذه نشته). (۱) مجنون، ځو پورې چه هوش كښې رانه شي. (۲) بچې، ځو پورې چه بالغ نه شي. (۳) او، اوده ځو پورې چه د خوب نه بيدار نه شي. او حضرت عليؓ اووې چه ټول طلاقونه سيوا، د مجنون د طلاق نه جائز دي.

**۲۵۰** : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ زُرَارَةَ بْنِ اَوْفٰى عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ عَنْ اُمَّتِيْ مَا حَدَّثَتْ بِهٖ اَنْفُسَهَا مَا لَمْ تَعْمَلْ اَوْ تَتَكَلَّمْ قَالَ قَتَادَةُ اِذَا طَلَّقَ فِيْ نَفْسِهٖ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ.

**۲۵۰** : مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. زراره بن اوفي. ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي ځما د، اُمت د پاره هغه خيالات معاف كړل، چه د، هغوئې زړونو كښې پيدا كيږي. ځو پورې چه د هغې مطابق عمل اونه كړي. يا خبرې اونه كړي او قتاده اووې كه يو سړې خپل زړه كښې طلاق ور كړي، نو هغه هيڅ څيز نه دې.

۲۵۱ : حَدَّثَنَا أَصْبَغُ أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَسْلَمَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ زَنَى فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لِشِقِّهِ الَّذِي أَعْرَضَ فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ فَدَعَاهُ فَقَالَ هَلْ بِكَ جُنُونٌ هَلْ أَحْصَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ بِالْمُصَلَّى فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ جَمَزَ حَتَّى أُدْرِكَ بِالْحَرَّةِ فَقُتِلَ.

۲۵۱ : اصبغ. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه. جابر نه روايت كوي، د بني اسلم يو سړے د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ، كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جمات كښ وو، حاضر شولو. او عرض ئے اوكه، چه ما زنا كړے ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه نه مخ واړولو، هغه، هغے طرف ته ورته اودريدلو. كوم طرف ته چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخ كړے وو. او هغه په خپل ځان څلور ځله ګواهي اوكړله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل آيا ته ليونے شوے ئے (هغه اووے، نه) آيا ته واده شوے ئے. هغه اووے او. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حكم اوكه، چه دے عيدګاه كښ سنګسار كړے. كوم وخت چه هغه په كانړو اوويشتلے شو. نو اوتښتيدلو. بيا، حره كښ اونيولے شو او قتل كړے شو.

۲۵۲ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَى رَجُلٌ مِنْ أَسْلَمَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ الْأَخِرَ قَدْ زَنَى يَعْنِي نَفْسَهُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِي أَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ الْأَخِرَ

۲۵۲ : ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. او سعيد بن مسيب. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. د قبيلۀ بني اسلم يو سړے، كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جمات كښ تشريف فرما وو، د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو، او په زوره ئے عرض اوكه، يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، ما زنا كړے ده، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه نه مخ واړولو، بيا هغے طرف ته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته مخے ته راغے، كوم طرف ته چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخكړے وو، او، وئيلے يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ما زنا كړے ده، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ترے مخ واړولو نو هغه ورته هغے طرف ته

قَدْ زَنٰى فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحّٰى بِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِيْ اَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ لَهُ ذٰلِكَ فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحّٰى لَهُ الرَّابِعَةَ فَلَمَّا شَهِدَ عَلٰى نَفْسِهِ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ فَقَالَ هَلْ بِكَ جُنُوْنٌ قَالَ لَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْهَبُوْا بِهِ فَارْجُمُوْهُ وَ كَانَ قَدْ اُحْصِنَ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ كُنْتُ فِيْمَنْ رَجَمَهُ فَرَجَمْنَاهُ بِالْمُصَلّٰى بِالْمَدِيْنَةِ فَلَمَّا اَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ جَمَزَ حَتّٰى اَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ فَرَجَمْنَاهُ حَتّٰى مَاتَ.

مخې ته راغې، کوم طرف ته چه حضورﷺ مخ کړے وو، او وئيلے يا رسول اللّٰهؐ دے کمبخت (يعني ما) زنا کړے ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه نه مخ واړولو. په څلورم ځل د حضورﷺ مخې ته راغے. او هر کله چه هغه څلور ځله په ځان ګواهي اوکړه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا ته ليونے شوے ئې، هغه جواب ورکه، نه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خلقوته اووے، دے بوځئ او سنګسار ئې کړئ، هغه واده شوے وو. او زهري نه منقول دي، د هغه بيان دے، ما ته داسے سړي بيان اوکه، چه هغه د جابر بن عبداللّٰه انصاري نه آوريدلے دي، د هغه بيان دے، زه د سنګسار کوونکو نه ووم، مونږ هغه د مدينے عيدګاه کښې سنګسار کړلو. کوم وخت چه هغه په کاڼو اولګيدلو. نو هغه اوتښتيدلو خو مونږ هغه حره کښې اونيولو، او سنګسار مو کړلو. تردے چه مړ شولو.

بَابٌ ١٦٦ : اَلْخُلْعِ وَ كَيْفَ الطَّلَاقُ فِيْهِ. وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَأْخُذُوْا مِمَّا اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا اِلٰى قَوْلِهِ الظّٰلِمُوْنَ وَ اَجَازَ عُمَرُ الْخُلْعَ دُوْنَ السُّلْطَانِ وَ اَجَازَهُ عُثْمَانُ الْخُلْعَ دُوْنَ عِقَاصِ رَاْسِهَا وَ قَالَ طَاؤُسٌ اِلَّا اَنْ يَّخَافَا اَنْ لَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ فِيْمَا افْتَرَضَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلٰى صَاحِبِهِ فِي الْعِشْرَةِ وَالصُّحْبَةِ وَلَمْ يَقُلْ قَوْلَ السُّفَهَاءِ لَا

باب ۱۶۶: خُلع او ددے خبرے بيان، چه خلع کښې طلاق څنګه وي، او د اللّٰه تعالٰي قول چه څه تاسو دے خلقو له ورکړے دي، د هغې آخستل تاسو له حلال نه دي. آخر آيت: ظالمون: پورے. او حضرت عمر خُلع ته جائز وئيلے دي، اګر که د سلطان مخکښې نه وي، او حضرت عثمانؓ د سر، د کالي نه د قيمت د څيز په عوض کښې خُلع ته جائز اووے، او آيت: اِلّا ان يّخافا ان لا يقيما حدود اللّٰه: متعلق طاؤس فرمائي، دا د هغې حدودو متعلق دے، چه اللّٰه جل جلاله. دے دواړو کښې هر يو د پاره مقرر کړے دي، يعني صحبت او يوځائے اوسيدل. او طاؤس د نادانو په شان خبره نه ده کړے چه

يَحِلُّ حَتّٰى تَقُوْلَ لَا اَغْتَسِلُ لَكَ مِنْ جَنَابَةٍ.

خُلع جائز نه ده څو پورې چه هغه دا' اووائي' چه زه به تانه د جنابت غسل اونه کړم.

ف: (۱) خُلع: د ښځې خاوند له مال ورکول يعني معاوضه ورکولو سره ترې جدا کيدل. (۲) عقاص: (چتلې) د سرو' يا' د سپينو زرو يو' کالې چه د' غتې کونځي د پاسه لګولې شي.

۲۵۳: حَدَّثَنَا اَزْهَرُ بْنُ جَمِيْلٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَابِ الثَّقَفِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ امْرَاَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ مَّا اَعْتِبُ عَلَيْهِ فِيْ خُلُقٍ وَّلَا دِيْنٍ وَّ لٰكِنِّيْ اَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَرُدِّيْنَ عَلَيْهِ حَدِيْقَتَهُ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِلِ الْحَدِيْقَةَ وَ طَلِّقْهَا تَطْلِيْقَةً.

۲۵۳: ازهر بن جميل. عبدالوهاب ثقفي. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي' چه د ثابت بن قيس ښځه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکه' يا رسول اللّٰهؐ زه د ثابت بن قيس نه د څه بد عادت يا ديندارئ په باعث ناراضه نه يم' ليکن زه د اسلام حالت کښې ناشکري کول نه غواړم' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا ته د هغه باغ هغه ته واپس کولو ته تياره ئې' هغې اووې' او' حضورؐ ثابت بن قيس ته اوفرمائيل ددې باغ واخله' او طلاق ورکړه.

۲۵۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدِ الْحَذَّاءِ عَنْ عِكْرَمَةَ اَنَّ اُخْتَ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ اُبَيِّ بِهٰذَا وَ قَالَ تَرُدِّيْنَ حَدِيْقَتَهُ قَالَتْ نَعَمْ فَرَدَّتْهَا وَ اَمَرَهُ يُطَلِّقُهَا وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ طَلِّقْهَا وَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ تَمِيْمَةَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةُ ثَابِتِ ابْنِ قَيْسٍ

۲۵۴: اسحٰق او. اسلمي. خالد. خذاء. عکرمه نه روايت کوي' د عبداللّٰه بن ابي خور' دا روايت او' بيان اوکه' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا ته به دا باغ واپس کړې' هغې اووې' او نو هغه ته ئې باغ واپس کړلو. او هغې ته ئې يو طلاق ورکړلو' ابراهيم بن طهمان په واسطه د' خالد' عکرمه' د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د: طلقها (هغې ته ئې طلاق ورکه) لفظ بيان کړلو' او د' ابن تميمه په واسطه د' عکرمه' ابن عباسؓ نه منقول دې هغه اووې' د ثابت بن قيس ښځه د'

اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَا اَعْتِبُ عَلٰى ثَابِتٍ فِيْ دِيْنٍ وَّلَا خُلُقٍ وَّلٰكِنِّيْ لَا اُطِيْقُهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَرُدِّيْنَ عَلَيْهِ حَدِيْقَتَهٗ قَالَتْ نَعَمْ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضره شوه، او عرض ئے اوکه يا رسول اللّٰه ثابت نه د هغه د ديندارۍ او اخلاقو په باعث ناراضه نه يم، ليکن زه هغه سره نه شم اوسيدے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا ته به د، هغه باغ واپس کړے، هغے جواب کښ اوويے چه هاؤ".

۲۵۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْمُبَارَكِ الْمُخَرِّمِيُّ حَدَّثَنَا قُرَادٌ اَبُوْ نُوْحٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةُ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا اَنْقِمُ عَلٰى ثَابِتٍ فِيْ دِيْنٍ وَّلَا خُلُقٍ اِلَّآ اَنِّيْٓ اَخَافُ الْكُفْرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَرُدِّيْنَ عَلَيْهِ حَدِيْقَتَهٗ فَقَالَتْ نَعَمْ فَرَدَّتْ عَلَيْهِ وَ اَمَرَهٗ فَفَارَقَهَا.

۲۵۵ : محمد بن عبداللّٰه بن مبارک مخرمي. قراد ابو نوح. جرير بن حازم. ايوب. عکرمه. ابن عباس نه روايت کوي، د ثابت بن قيس ښځه د حضورؐ خدمت کښ حاضره شوه، او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه ثابت بن قيس سره د، اوسيدو نه د، هغه د، ديندارۍ يا عادت په سبب انکار نه کوم بلکه پدے سبب چه ماته د کفران نعمت (د نعمت د ناشکرۍ) خطره ده، نبيؐ ورته اوفرمائيل، آيا ته به د هغه باغ واپس کړے. هغے اوويے او. نو هغے، هغه باغ واپس کړلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغے دجدائۍ حکم ورکړلو. نو ثابت بن قيس هغه جدا کړله (يعني طلاق ئے ورکړلو).

۲۵۶ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرَمَةَ اَنَّ جَمِيْلَةَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

۲۵۶ : سليمان. حماد. ايوب. عکرمه. جميله نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے عرض اوکه، بيائے دا حديث بيان که.

## بَابُ ۱۶۷ : الشِّقَاقِ وَ هَلْ يُشِيْرُ بِالْخُلْعِ عِنْدَ الضَّرُوْرَةِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ اِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ اِلٰى قَوْلِهٖ خَبِيْرًا.

باب۱۶۷ : د اختلاف بيان. آيا د، ضرورت په بنا د، خلع اشاره کيدے شي او د اللّٰه تعالٰي قول که تاسوته د هغوي مينځ کښ دَ، اختلاف انديښنه وي، نو د هغه د کور والونه يو ثالث مقرر کړئے آخر ايت: خَبِيْرًا: پورے.

۲۵۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ بَنِى الْمُغِيْرَةِ اسْتَأْذَنُوْا فِيْ اَنْ يَّنْكِحَ عَلِيٌّ ابْنَتَهُمْ فَلَا اٰذَنُ.

۲۵۷ : ابوالوليد. ليث. ابن ابي مليكه. مسور بن مخرمه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، بني مغيره ما نه اجازت غواړي، چه خپله لور دِ عليؓ ته نكاح كښې وركړي، ليكن زه اجازت نشم وركولې.

بَاب ۱۶۸ : لَا يَكُوْنَ بَيْعُ الْاَمَةِ طَلَاقًا.

بـاب ۱۶۸ : د وينزې بيع سره طلاق نه كيږي.

۲۵۸ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ فِيْ بَرِيْرَةَ ثَلٰثُ سُنَنٍ اِحْدَى السُّنَنِ اَنَّهَا اُعْتِقَتْ فَخُيِّرَتْ فِيْ زَوْجِهَا وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَلَاءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْبُرْمَةُ تَفُوْرُ بِلَحْمٍ فَقُرِّبَ اِلَيْهِ خُبْزٌ وَّ اُدْمٌ مِّنْ اُدْمِ الْبَيْتِ فَقَالَ اَلَمْ اَرَ الْبُرْمَةَ فِيْهَا لَحْمٌ قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنْ ذٰلِكَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهٖ عَلٰى بَرِيْرَةَ وَ اَنْتَ لَا تَاْكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَ لَنَا هَدِيَّةٌ.

۲۵۸ : اسماعيل بن عبداللّٰه. مالك. ربيعه بن ابي عبدالرحمٰن. قاسم بن محمد. د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د ټبر بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، د بريرےؓ په وجه درے احكام معلوم شو. اول دا چه كوم وخت هغه ازاده كړے شوه. نو هغے ته د هغے د خاوند متعلق اختيار وركړے شو. دويم دا چه د، ولاء حق د هغې چا دے، چه ازاده ئے كړي. دريم دا چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو، نو د، غوښے كټوئے جوش وهلو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته روټے د كور خوروا (شوربه) سره راوړلے شوه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل څه خبره ده، دے كټوئے كښې هم غوښه ده، چه زه ئے نه وينم. كوروالو جواب وركه. او، دغسے ده، ليكن دا د صدقے غوښه ده، چه بريرهؓ ته وركړے شوے ده، او تاسوَ د صدقے غوښه نه خورئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغے د پاره صدقه ده، او مونږ د پاره هديه ده.

ف: ولاء: د ازادے وينزے يا غلام ميراث.

بَاب ۱۶۹ : خِيَارِ الْاَمَةِ تَحْتَ

باب ۱۶۹ : وينزه كه د غلام په نكاح كښې وي

الْعَبْدِ.

نو د' آزادي په وخت هغې ته د اختيار ورکولو بيان.

۲۵۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ وَ هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ رَأَيْتُهُ عَبْدًا يَعْنِي زَوْجَ بَرِيْرَةَ.

۲۵۹ : ابوالوليد. شعبه او. همام. قتاده. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي د هغه بيان دے' ما هغه يعني د' بريرےؓ خاوند غلام اوليد.

۲۶۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ذَاكَ مُغِيْثٌ عَبْدُ بَنِيْ فُلَانٍ يَعْنِيْ زَوْجَ بَرِيْرَةَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ يَتْبَعُهَا فِيْ سِكَكِ الْمَدِيْنَةِ يَبْكِيْ عَلَيْهَا.

۲۶۰ : عبدالاعلي بن حماد. وهيب. ايوب. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي. هغه اووے' چه مُغيث يعني د بريرےؓ خاوند د' بني فلان غلام وو. او ګويا زه هغه وينم' چه د مدينے په کوڅو کښ هغې پسے په ژړا ګرځي.

۲۶۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ زَوْجُ بَرِيْرَةَ عَبْدًا اَسْوَدَ يُقَالُ لَهُ مُغِيْثٌ عَبْدًا لِّبَنِيْ فُلَانٍ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ يَطُوْفُ وَرَآءَهَا فِيْ سِكَكِ الْمَدِيْنَةِ.

۲۶۱ : قتيبه بن سعيد. عبدالوهاب. ايوب. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي' د هغه بيان دے' د' بريرےؓ خاوند يو' تور غلام وو' د هغه نوم مغيث وو' او د بني فلان غلام وو' ګويا زه وينم چه د مدينے کوڅو کښ هغې پسے پسے ګرځي.

## بَابٌ ۱۷۰ : شَفَاعَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ زَوْجِ بَرِيْرَةَ.

## باب ۱۷۰ : د بريرهؓ خاوند متعلق د نبي صلي الله عليه وسلم سفارش کول.

۲۶۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ زَوْجَ بَرِيْرَةَ كَانَ عَبْدًا يُقَالُ لَهُ مُغِيْثٌ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ يَطُوْفُ خَلْفَهَا يَبْكِيْ وَ دُمُوْعُهُ يَسِيْلُ عَلٰى لِحْيَتِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۲۶۲ : محمد. عبدالوهاب. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي د بريرهؓ خاوند مغيث نومے يو غلام وو. ګويا زه هغه وينم' چه بريرهؓ پسے په ژړا ګرځي' اوښکے د هغه په ږيره راڅاخي حضور صلي الله عليه وسلم حضرت عباسؓ ته اوفرمائيل اے عباسؓ آيا تاته بريرےؓ سره د مغيث په محبت او د' بريرےؓ مغيث سره په

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَبَّاسٍ يَا عَبَّاسُ اَلَا تَعْجَبُ مِنْ حُبِّ مُغِيْثٍ بَرِيْرَةَ وَمِنْ بُغْضِ بَرِيْرَةَ مُغِيْثًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَاجَعْتِهٖ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَأْمُرُنِيْ قَالَ اِنَّمَا اَشْفَعُ قَالَتْ لَا حَاجَةَ لِيْ فِيْهِ.

عداوت تعجب نه درځي' بیا حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' کاش چه ته هغه ته واپس شوې وې هغې اووې' یا رسول الله صلي الله علیه وسلّم آیا تاسو ماته حکم راکوئې. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل (نه' بلکه) زه خو صرف (تاته) سفارش کوم. نو بریرې اووې' بیا ماته د هغه ضرورت نشته.

باب ۱۷۱ :

باب ۱۷۱ : (دَدې څه سُرخي نشته).

۲۶۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ اَنَّ عَائِشَةَ اَرَادَتْ اَنْ تَشْتَرِيَ بَرِيْرَةَ فَاَبٰى مَوَالِيْهَا اِلَّا اَنْ يَّشْتَرِطُوا الْوَلَاءَ فَذَكَرَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اشْتَرِيْهَا وَاَعْتِقِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَقِيْلَ اِنَّ هٰذَا مَا تُصُدِّقَ بِهٖ عَلٰى بَرِيْرَةَ فَقَالَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَ لَنَا هَدِيَّةٌ.

۲۶۳ : عبدالله بن رجاء. شعبه. حکم. ابراهیم. اسود نه روایت کوي' بي بي عائشې د بریرې' اخستل او غوښتل' نو د هغې مالکانو انکار اوکه. خو په دې شرط راضي شو' چه د' ولاء حق به هغوي ته حاصل وي. بي بي عائشې نبي صلي الله علیه وسلّم ته بیان اوکه' نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' دا' واخله او آزاده ئې کړه' ځکه چه ولاء د هغې چا ده' چه آزاده ئې کړي. او حضورﷺ ته غوښه راوړې شوه' او ورته اووئیلې شو' دا هغه غوښه ده' چه بریرهؓ ته صدقه کښې ورکړې شوې وه. نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' دا ددې د پاره صدقه ده لیکن مونږ د پاره هدیه ده.

۲۶۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ وَزَادَ فُخَيِّرَتْ مِنْ زَوْجِهَا.

۲۶۴ : د' آدم حدیث کښې په روایت د شعبه دومره زیات بیان شوې دې چه بریرهؓ ته د هغې د خاوند باره کښې اختیار ورکړې شوې وو.

باب ۱۷۲ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكَةٍ وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ.

باب ۱۷۲ : د الله تعالیٰ قول چه د مشرکو ښځو سره نکاح مه کوئې تردې چه هغوي ایمان راوړي او مؤمنه وینزه د مشرکې ښځې نه بهتره ده اګر که تاسو ته مشرکه خوښه ولې نه وي.

۲۶۵ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۲۶۵ : قتیبه. لیث. نافع د' ابن عمرؓ متعلق بیان

لَيۡثٌ عَنۡ نَافِعٍ اَنَّ ابۡنَ عُمَرَ كَانَ اِذَا سُئِلَ عَنۡ نِكَاحِ النَّصۡرَانِيَّةِ وَالۡيَهُوۡدِيَّةِ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ الۡمُشۡرِكَاتِ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَلَا اَعۡلَمُ مِنَ الۡاِشۡرَاكِ شَيۡئًا اَكۡبَرَ مِنۡ اَنۡ تَقُوۡلَ الۡمَرۡاَةُ رَبُّهَا عِيۡسٰى وَهُوَ عَبۡدٌ مِنۡ عِبَادِ اللّٰهِ.

کوي، کوم وخت چه د هغه نه د نصراني او یهودي ښځې سره د نکاح متعلق تپوس اوشو نو وئیل به ئې چه الله (ج) په مسلمانانو، مشرکې ښځې حرام کړې دي، او د شرک خبره ددې نه زیاته بله زه نه پیژنم، چه یوه ښځه حضرت عیسٰي علیه السلام ته خپل رب اووائي، حالانکه هغه د خدائې جل جلاله یو بنده دې.

**باب ۱۷۴۳ : نِكَاحِ مَنۡ اَسۡلَمَ مِنَ الۡمُشۡرِكَاتِ وَ عِدَّتِهِنَّ.**

**باب ۱۷۴۳ :** مشرکه ښځه که مسلمانه شي، نو د هغې د نکاح او عدّت بیان.

۲۶۶ : حَدَّثَنَا اِبۡرَاهِيۡمُ بۡنُ مُوۡسٰى اَخۡبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابۡنِ جُرَيۡجٍ وَقَالَ عَطَآءٌ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ كَانَ الۡمُشۡرِكُوۡنَ عَلٰى مَنۡزِلَتَيۡنِ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَالۡمُؤۡمِنِيۡنَ كَانُوۡا مُشۡرِكِيۡ اَهۡلِ حَرۡبٍ يُقَاتِلُهُمۡ وَ يُقَاتِلُوۡنَهٗ وَ مُشۡرِكِيۡ اَهۡلِ عَهۡدٍ لَا يُقَاتِلُهُمۡ وَلَا يُقَاتِلُوۡنَهٗ وَ كَانَ اِذَا هَاجَرَتِ امۡرَاَةٌ مِنۡ اَهۡلِ الۡحَرۡبِ لَمۡ يُخۡطَبۡ حَتّٰى تَحِيۡضَ وَ تَطۡهُرَ فَاِذَا طَهُرَتۡ حَلَّ لَهَا النِّكَاحُ فَاِنۡ هَاجَرَ زَوۡجُهَا قَبۡلَ اَنۡ تَنۡكِحَ رُدَّتۡ اِلَيۡهِ وَ اِنۡ هَاجَرَ عَبۡدٌ مِنۡهُمۡ اَوۡ اَمَةٌ فَهُمَا حُرَّانِ وَلَهُمَا مَا لِلۡمُهَاجِرِيۡنَ ثُمَّ ذَكَرَ مِنۡ اَهۡلِ الۡعَهۡدِ مِثۡلَ حَدِيۡثِ مُجَاهِدٍ وَّ اِنۡ هَاجَرَ عَبۡدٌ اَوۡ اَمَةٌ لِلۡمُشۡرِكِيۡنَ اَهۡلِ الۡعَهۡدِ لَمۡ يُرَدُّ اَوۡ رُدَّ اَثۡمَانُهُمۡ وَ قَالَ عَطَآءٌ عَنِ ابۡنِ

۲۶۶ : ابراهیم بن موسٰي. هشام. ابن جریج. عطاء. ابن عباسؓ نه روایت کوي. نبي صلي الله علیه وسلّم او مؤمنانو سره د مشرکینو دوه جماعتونه وو. اول حربي مشرک چه حضور صلي الله علیه وسلّم به هغوي سره جنګ کولو او هغوي به حضور صلي الله علیه وسلّم سره جنګ کولو. دویم معاهد مشرک چه نه به حضور صلي الله علیه وسلّم هغوي سره اونه به هغوئ حضور صلي الله علیه وسلّم سره جنګ کولو. او حربي ته به که یوه ښځه په هجرت راغله، نو هغې ته به ئې د نکاح پیغام نه شو، لیږلې، څو پورې چه هغې ته حیض رانشي او د هغې نه پاکه نشي، کوم وخت چه به هغه پاکه شوه، نو هغې د پاره به نکاح جائز شوله، او که خاوند به د هغې د نکاح نه مخکښ هجرت کړې وو، نو هغه به خپل خاوند ته واپس کولې شوه. او که هغوي څوک غلام یا وینزه به په هجرت راغله، نو هغوي دواړه به آزاد شو او د هغوي به هم هغه حق وو، کوم چه به د مهاجرینو وو. بیا د معاهد ذکر ئې د مجاهد د حدیث په شان اوکه. که د معاهد وینزه یا غلام به په هجرت راغې،

عَبَّاسٍ كَانَتْ قُرَيْبَةُ بِنْتُ اَبِيْ اُمَيَّةَ عِنْدَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَطَلَّقَهَا فَتَزَوَّجَهَا مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ وَ كَانَتْ اُمُّ الْحَكَمِ ابْنَةُ اَبِيْ سُفْيَانَ تَحْتَ عِيَاضِ بْنِ غَنْمٍ الْفِهْرِيِّ فَطَلَّقَهَا فَتَزَوَّجَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ الثَّقَفِيُّ.

نو هغوي به واپس كولے نه شو. بلكه د هغوي قيمتونه به وركولے شو. او عطاء د ابن عباسؓ نه نقل او كه چه قريبه بنت ابي اُميه د حضرت عمرؓ په نكاح كښ وه. هغے له ئے طلاق وركه. نو هغے سره معاويه بن ابي سفيان نكاح اوكړله. او، ام حكم بنت ابي سفيان د، عياض بن غنم فهري په نكاح كښ وه هغے له ئے طلاق وركه، نو عبدالله بن عثمان ثقفي هغے سره نكاح اوكړله.

بَابُ ١٧۴ : اِذَا اَسْلَمَتِ الْمُشْرِكَةُ اَوِ النَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الذِّمِّيِّ اَوِ الْحَرْبِيِّ وَ قَالَ عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِذَا اَسْلَمَتِ النَّصْرَانِيَّةُ قَبْلَ زَوْجِهَا بِسَاعَةٍ حَرُمَتْ عَلَيْهِ وَ قَالَ دَاوُدُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ الصَّائِغِ سُئِلَ عَطَاءٌ عَنِ امْرَاَةٍ مِنْ اَهْلِ الْعَهْدِ اَسْلَمَتْ ثُمَّ اَسْلَمَ زَوْجُهَا فِي الْعِدَّةِ اَهِيَ امْرَاَتُهُ قَالَ لَا اِلَّا اَنْ تَشَاءَ هِيَ بِنِكَاحٍ جَدِيْدٍ وَّ صَدَاقٍ وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ اِذَا اَسْلَمَ فِي الْعِدَّةِ يَتَزَوَّجُهَا وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لَاهُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَاهُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ قَتَادَةُ فِيْ مَجُوْسِيَّيْنِ اَسْلَمَا هُمَا عَلٰى نِكَاحِهِمَا وَ اِذَا سَبَقَ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ وَ اَبَى الْاٰخَرُ بَانَتْ لَا سَبِيْلَ لَهُ عَلَيْهَا وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ امْرَاَةٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ جَاءَتْ اِلَى

باب ١٧۴ : مشركه يا نصراني ښځه كه د، ذمي يا، حربي په نكاح كښ وي، او هغه مسلمانه شي. عبدالوارث په واسطه د، خالد، عكرمه، د ابن عباسؓ قول نقل كه، چه كومه ښځه د خپل خاوند نه يوه گينټه مخكښ مسلمانه شي، نو هغه په هغه حرامه ده. او داؤد د، ابراهيم صائغ نه نقل اوكه، چه عطاء نه د معاهد د ښځے متعلق تپوس اوشو، چه مسلمانه شي، او د هغے نه پس د هغے خاوند مسلمان شي، نو آيا هغه د هغه ښځه پاتے شوه، كه نه. هغه اووے، نه. خو دا چه هغه ښځه اوغواړي، نو د، نوے (جديد) نكاح او مهر په عوض (هغه سره اوسيدے شي) او مجاهد اووے. كه هغه د ښځے په عدت كښ مسلمان شي، نو هغے سره دے نكاح اوكړي. او الله تعالٰي اوفرمائيل، چه نه هغه ښځے دے سړو، د پاره او نه دا سړي هغے ښځو د پاره حلال دي. او حسن او قتاده د مجوسيانو متعلق اووے، كه هغوي دواړه مسلمانان شي، نو هغوي دواړه به په خپله نكاح قائم وي. او كه هغوي دواړو كښ يو كښ مخكښ مسلمان شي، او دوئم كس انكار اوكه. نو هغه ښځه به بائنه شي. د خاوند په هغے هيڅ حق نه شته. او د ابن

الْمُسْلِمِيْنَ اَيُعَاوَضُ زَوْجُهَا مِنْهَا لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَ اٰتُوْهُمْ مَا اَنْفَقُوْا قَالَ لَا اِنَّمَا كَانَ ذٰلِكَ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ اَهْلِ الْعَهْدِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ هٰذَا كُلُّهُ فِيْ صُلْحٍ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ قُرَيْشٍ.

جريج بيان دے. ما د عطاء نه تپوس اوکه، که مشرکينو نه يوه ښځه مسلمانانو له راشي نو ايا د هغے خاوند ته به څه معاوضه ورکولے شي، ځکه چه الله تعالي اوفرمائيل: هغوي له ورکړئ، څه چه هغے خلقو خرچ کړے دي، عطاء اووے، نه دا خو صرف د نبيﷺ او معاهدينو مينځ کښ وو. مجاهد وائي دا ټولے خبرے هغے صلح کښ وے، چه د حضورﷺ او قريشو مينځ کښ شوے وه.

ف: بائنه: طلاق بائن: طلاق بائنه: هغه طلاق چه د، هغے د، رو، نه خاوند، ښځه بغير نکاح کړے ښځه (بي بي) نه شي جوړولے.

۲۶۷: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ وَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَتِ الْمُؤْمِنَاتُ اِذَا هَاجَرْنَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْتَحِنُهُنَّ بِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ اِلَى الْاٰيَتِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَنْ اَقَرَّ بِهٰذَا الشَّرْطِ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ فَقَدْ اَقَرَّ بِالْمِحْنَةِ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَقْرَرْنَ بِذٰلِكَ مِنْ قَوْلِهِنَّ قَالَ لَهُنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلِقْنَ فَقَدْ

۲۶۷: ابن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب (دويم سند) ابراهيم بن منذر. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير (نبي صلي الله عليه وسلم تبر بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت كوي، هغے اووے. مؤمنے ښځے چه به د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت كښ په هجرت راتلے، نو د الله تعالي ددے قول په بناء به د هغوي امتحان اخستلے شو، چه كوم وخت مومنے ښځے تاسوله راشي، نو د هغوي امتحان اخلئے (يعني ازميښت پرے كوے) اخر ايت پورے. د بي بي عائشے رضي الله عنها بيان دے، چه مومنو ښځو كښ به كومے يوے ددے اقرار اوكړلو، او هغه به دے ازمايش كښ پوره ګڼړلے شوه، هر كله چه به هغوي قول سره اقرار اوكړلو، نو حضور صلي الله عليه وسلم به ورته فرمائيل، چه ځئ، ما تاسونه بيعت واخستلو، په خدائے (ج) م دے قسم وي، هيڅ كله د، رسول الله صلي الله عليه وسلم لاس يوے ښځے سره نه دے مس شوے، بغير

بَايَعَكُنَّ لَا وَاللّٰهِ مَا مَسَّتْ يَدُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ غَيْرَ أَنَّهُ بَايَعَهُنَّ بِالْكَلَامِ وَاللّٰهِ مَا أَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النِّسَاءِ إِلَّا بِمَا أَمَرَهُ اللّٰهُ يَقُوْلُ لَهُنَّ إِذَا أَخَذَ عَلَيْهِنَّ قَدْ بَايَعْتُكُنَّ كَلَامًا.

ددے نه چه هغوي نه صرف د' خبرو اترو په ذريعه بيعت واخلي. په خدائے (ج) م دے قسم وي' حضور صلي الله عليه وسلّم هيڅ کله د يوے ښځے لاس نه دے نيولے' خو' د هغے چه الله تعالي حضور صلي الله عليه وسلّم ته حکم ورکړلو. کوم وخت چه به حضور صلي الله عليه وسلّم د هغوي نه بيعت اخستلو' نو فرمائيل به لے' ما تانه بيعت واخستلو.

باب ۱۷۵ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ إِلٰى قَوْلِهٖ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ فَإِنْ فَاؤُوْا رَجَعُوْا.

باب ۱۷۵ : د الله تعالي قول' هغے خلقو د پاره چه خپلو بيبيانو سره ايلاء کوي' څلور مياشتے انتظار کول دي' سميع عليم پورے : فان فاؤا: معني دي' که هغوي رجوع اوکړي.

۲۶۸ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ بْنُ أَبِيْ أُوَيْسٍ عَنْ أَخِيْهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلِ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ آلٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِّسَآئِهٖ وَكَانَتْ انْفَكَّتْ رِجْلُهُ فَأَقَامَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَّهُ تِسْعًا وَّعِشْرِيْنَ ثُمَّ نَزَلَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آلَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ.

۲۶۸ : اسماعيل بن ابي اويس. برادر اسماعيل. سليمان. حميد طويل. انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي' د هغه قول نقل کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپلو بيبيانو ته د نه ورتلو قسم اوخوړلو. دغه وخت د حضور صلي الله عليه وسلّم ښپو مبارکو کښې درد (يا' پړسوب) راغلے وو. حضور صلي الله عليه وسلّم يو کم ديرشو ورځو پورے خپله بالاخانه کښې مقيم وو. بيا راکوز شولو' نو خلقو عرض اوکه' چه تاسوّ خو يو مياشت پورے قسم خوړلے وو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' مياشت د يو کم ديرش ورځو هم وي.

۲۶۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَّافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَقُوْلُ فِي الْإِيْلَاءِ الَّذِيْ سَمَّى اللّٰهُ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ بَعْدَ الْأَجَلِ

۲۶۹ : قتيبه. ليث. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي' هغه به وئيل' ايلاء' چه د هغے الله تعالي ذکر کړے دے' د هغے د' مودے د تيريدو نه پس هيڅ د پاره حلال نه دے. خو' دا چه د

لَا أَنْ يُمْسِكَ بِالْمَعْرُوْفِ أَوْ يَعْزِمَ بِالطَّلَاقِ كَمَا أَمَرَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ قَالَ لِيْ إِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ إِذَا مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ يُوْقَفُ حَتّٰى يُطَلِّقَ وَلَا يَقَعُ عَلَيْهَا الطَّلَاقُ حَتّٰى يُطَلِّقَ وَ يُذْكَرُ ذٰلِكَ عَنْ عُثْمَانَ وَ عَلِيٍّ وَ أَبِي الدَّرْدَاءِ وَ عَائِشَةَ وَاثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

قاعدے مطابق ئے ایساره کړي' یا د طلاق اراده وکړي' څنګه چه اللّٰه تعالي حکم کړے دے. او ماته اسماعیل په واسطه د' مالک' نافع' ابن عمر رضي اللّٰه عنه قول نقل که. چه کوم وخت څلور میاشتے تیرے شي' نو انتظار به کولے شي' تردے چه هغه دے له طلاق ورکړي. او څو پورے چه هغه دے له طلاق ورنه کړي' طلاق نه کیږي. او د عثمانؓ' عليؓ' ابو درداءؓ' بي بي عائشےؓ او د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د' دولس صحابه ؤ نه دغسے منقول دي.

**بَابٌ ١٧٦ : حُكْمِ الْمَفْقُوْدِ فِيْ أَهْلِهٖ وَ مَالِهٖ** وَ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ إِذَا فُقِدَ فِي الصَّفِّ عِنْدَ الْقِتَالِ تَرَبَّصُ امْرَأَتُهُ سَنَةً وَاشْتَرٰى ابْنُ مَسْعُوْدٍ جَارِيَةً وَالْتَمَسَ صَاحِبَهَا سَنَةً فَلَمْ يَجِدْهُ وَفُقِدَ فَأَخَذَ يُعْطِي الدِّرْهَمَ وَالدِّرْهَمَيْنِ وَ قَالَ اللّٰهُمَّ عَنْ فُلَانٍ فَإِنْ أَتٰى فَلِيْ وَ عَلَيَّ وَ قَالَ هٰكَذَا فَافْعَلُوْا بِاللُّقَطِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِي الْأَسِيْرِ يُعْلَمُ مَكَانُهُ لَا تَتَزَوَّجُ امْرَأَتُهُ وَلَا يُقْسَمُ مَالُهُ فَإِذَا انْقَطَعَ خَبَرُهُ فَسُنَّتُهُ سُنَّةُ الْمَفْقُوْدِ.

**باب ١٧٦ :** د مفقود الخبر د مال و دولت او د هغه د اهل و عیال حکم. او ابن مسیب اووے. که یو سړے میدان جنګ کښ ورک شي (گم ہو جائے) نو د هغه ښځه دے یو کال پورے انتظار او کړي. ابن مسعود رضي اللّٰه عنه یوه وینزه واخسته' او د هغے مالک ئے تلاش که' خو هغه ئے بیانه مندلو' او د هغه پته او نه لګیده' نو یو درهم یا دوه درهمه به ئے واخستل' او وئیل به ئے یا اللّٰه' دا زه د فلاني سړے د طرف نه ورکوم' که هغه راشي' نو د هغے قیمت څمونږ په ذمه واجب دے. او وئیلے چه داسے لقطه کښ څه اوکړم. او د هغے قیدي متعلق' چه د هغه ځائے معلوم وي' زهري اووے' چه د هغه ښځه په نکاح نه کوي' او نه به د هغه مال تقسیمیږي. او هر کله چه د هغه خبر بیانه مومي' نو هغه د پاره به هغه طریقه کار اختیارولے شي' چه مفقود الخبر کښ اختیارولے شي.

**ف:** مفقود الخبر: چه پته ئے نه لګي.

**٢٧٠ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ**

**٢٧٠ :** علي بن عبداللّٰه. سفیان. یحيٰي بن سعید.

عَبۡدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ عَنۡ يَحۡيَى بۡنِ سَعِيۡدٍ عَنۡ يَزِيۡدَ مَوۡلَى الۡمُنۡبَعِثِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنۡ ضَالَّةِ الۡغَنَمِ فَقَالَ خُذۡهَا فَاِنَّمَا هِيَ لَكَ اَوۡ لِاَخِيۡكَ اَوۡ لِلذِّئۡبِ وَ سُئِلَ عَنۡ ضَالَّةِ الۡاِبِلِ فَغَضِبَ وَاحۡمَرَّتۡ وَاجۡنَتَاهُ وَ قَالَ مَالَكَ وَ لَهَا مَعَهَا الۡحِذَآءُ وَالسِّقَآءُ تَشۡرَبُ الۡمَآءَ وَ تَاۡكُلُ الشَّجَرَ حَتّٰى يَلۡقُهَا رَبُّهَا وَ سُئِلَ عَنِ اللُّقۡطَةِ فَقَالَ اَعۡرِفۡ وِكَآءَ هَا وَ عِفَاصَهَا وَ عَرِّفۡهَا سَنَةً فَاِنۡ جَآءَ مَنۡ يَّعۡرِفُهَا وَ اِلَّا فَاَخۡلِطۡهَا بِمَالِكَ قَالَ سُفۡيَانُ فَلَقِيۡتُ رَبِيۡعَةَ بۡنَ اَبِيۡ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ قَالَ سُفۡيَانُ وَلَمۡ اَحۡفَظۡ عَنۡهُ شَيۡئًا غَيۡرَ هٰذَا فَقُلۡتُ اَرَاَيۡتَ حَدِيۡثَ يَزِيۡدَ مَوۡلَى الۡمُنۡبَعِثِ فِيۡ اَمۡرِ الضَّآلَّةِ هُوَ عَنۡ زَيۡدِ بۡنِ خَالِدٍ قَالَ نَعَمۡ قَالَ يَحۡيٰى وَ يَقُوۡلُ رَبِيۡعَةُ عَنۡ يَزِيۡدَ مَوۡلَى الۡمُنۡبَعِثِ عَنۡ زَيۡدِ بۡنِ خَالِدٍ قَالَ سُفۡيٰنُ فَلَقِيۡتُ رَبِيۡعَةَ فَقُلۡتُ لَهٗ.

يزيد (د' منبعث غلام) نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلّم نه د وركے شوے چيلئے متعلق تپوس اوشو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه راونيسئے' ځكه چه هغه ستاسو ده. يا ستاسو د ورور' يا د شرمخ ده. د ورک شوي اوښ متعلق د حضور صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوشو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم غضبناک شولو' او دواړه انګي (رخسار) ئے سره (سرخ) شولو. اووے فرمائيل' دے سره ستاسو څه سروكار دے' د اوښ سره خو د' هغه دانه' اوبه موجود دي. هغه به اوبه څكي' او د' اونے نه به خوري' تردے چه مالک ئے ورسره يوځائے شي. او د لقطه متعلق د حضور صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوشو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' د هغے تهيلئ او سر تړونے اوپيژنئے. او هغه يو كال پورے مشتهر كوئے. كه څوک سرے راشي' او دا' اوپيژني' نو ډيره ښه ده' كني دا دے خپل مال سره يوځائے كړي. د سفيان بيان دے' زه ربيعه بن عبدالرحمٰن سره يوځائے شوم' او ما د هغه نه' ددے نه سِوا هيڅ زده نه كړل. ما تپوس اوكه' ايا د يزيد (د منبعث د' غلام) حديث د' ورک شوے څناور باره كښ زيد بن خالد نه روايت دے' هغه اووے' او. د يحيٰي بيان دے. ربيعه وئيلے' يزيد (د منبعث د' غلام) نه روايت كوي' سفيان بيان اوكه' زه ربيعه سره يو ځائے شوے ووم' او هغه نه ما تپوس كړے وو.

## باب۱۷۷ : الظِّهَارِ. وَ قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قَدۡ سَمِعَ اللّٰهُ قَوۡلَ الَّتِيۡ تُجَادِلُكَ فِيۡ زَوۡجِهَا اِلٰى قَوۡلِهٖ فَمَنۡ لَّمۡ

باب۱۷۷ : د ظهار بيانء. او د الله تعالي قول' چه الله تعالي د هغے ښځے خبره واوريده' چه تاسره ئے د خپل خاوند متعلق جګړه كوله' ايت: فمن لم يستطع

يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا وَ قَالَ لِي إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ شِهَابٍ عَنْ ظِهَارِ الْعَبْدِ فَقَالَ نَحْوَ ظِهَارِ الْحُرِّ قَالَ مَالِكٌ وَ صِيَامُ الْعَبْدِ شَهْرَانِ وَ قَالَ الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ الْعَبْدُ وَالْحُرُّ مِنَ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ سَوَاءٌ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ إِنْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ إِنَّمَا الظِّهَارُ مِنَ النِّسَاءِ وَ فِي الْعَرَبِيَّةِ لِمَا قَالُوا أَيْ فِيمَا قَالُوا وَ فِي بَعْضِ مَا قَالُوا وَ هٰذَا أَوْلَى لِأَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَدُلَّ عَلَى الْمُنْكَرِ وَ قَوْلِ الزُّورِ.

فاطعام ستين مسكينًا: پورے او ماته اسماعيل بيان اوکړ، چه مالک د ابن شهاب نه د غلام د' ظهار متعلق تپوس اوکړ، نو هغه اووے' چه د' ازاد' د' ظهار په شان دے. مالک اووے' چه غلام به دوه مياشتے روژے نيسي. او حسن بن حر' اووے' د' ازاد سړي او غلام د' ازادے ښځے او' وينځے سره ظهار کولو کښې حکم يو' دے. عکرمه اووے' که يو سړے خپلے وينځے نه ظهار اوکړي' نو هيڅ نه دے' ځکه چه ظهار' د ښځے نه وي' او عربي ژبه کښې: لِمَا قَالوا: معني' في ما قالوا' او' في بعض ما قالوا دي' او دا زيات مناسب دي. ځکه الله تعالىٰ هيڅ بده خبره او د' دروغ حکم نه کوي.

ف: ظهار: د خاوند خپلے ښځے ته دا ويل' چه ته په ما خما د مور په شان حرامه يے. داسے صورت کښې چه څو پورے سړے کفاره ورله کړي. هغه ښځه په هغه حرامه وي. او کفاره داده چه يا خو يو غلام ازاد کړي' يا دوه مياشتے پرله پسے روژے اونيسي. يا شپيتو مسکينانو باندے طعام اوخوروي' او کفاره د جماع (صحبت) نه مخکښې ده.

۱. چه خاوند خپلے ښځے ته د خپلے يو ذي رحم محرم ښځے يو داسے اندام سره تشبيه ورکړي کوم ته چه کتل هغه د پاره حرام وي لو دے ته "ظهار" وائي. که چرے څوک سړے خپلے ښځے سره ظهار اوکړي نو تر هغه وخته پورے هغه له خپلے ښځے سره قربت يا د قربت د دواعي ؤ معامله حرامه ده تر څو پورے چه هغه د هغے کفاره ورله کړي' ددے د کفارے ذکر' په پورته ذکر شوي آيت کښے راغلے دے.

## بَابٌ ۱۷۸ : الْإِشَارَةِ فِي الطَّلَاقِ وَالْأُمُورِ

وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُعَذِّبُ اللّٰهُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلٰكِنْ يُعَذِّبُ بِهٰذَا فَأَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ وَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ أَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيَّ أَيْ خُذِ النِّصْفَ وَ قَالَتْ أَسْمَاءُ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

باب ۱۷۸ : طلاق او نورو امورو کښې د اشارے کولو بيان. او ابن عمر رضي الله عنه اووے' نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' الله تعالىٰ د سترګے په اوښکو عذاب نه ورکوي. ليکن خپلے ژبے طرف ته ئے اشاره اوکړه' وے فرمائيل چه ددے په سبب به عذاب کيږي. او کعب بن مالک اووے' نبي صلي الله عليه وسلم ما طرف ته اشارے سره اوفرمائيل' چه نيم واخله. او اسماء بيان اوکه. نبي صلي الله عليه وسلم لمر تندر نيولو کښې مونځ اوکړلو. ما د' بي بي عائشے رضي الله عنها نه کوم

وَسَلَّمَ فِي الْكُسُوفِ فَقُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا مَا شَأْنُ النَّاسِ وَ هِيَ تُصَلِّيْ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا إِلَى الشَّمْسِ فَقُلْتُ آيَةٌ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا أَنْ نَعَمْ وَ قَالَ أَنَسٌ أَوْمَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ إِلَى أَبِيْ بَكْرٍ أَنْ يَتَقَدَّمَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَوْمَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ لَا حَرَجَ وَ قَالَ أَبُوْ قَتَادَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ أَحَدٌ مِنْكُمْ أَمَرَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا وَ أَشَارَ إِلَيْهَا قَالُوْا لَا قَالَ فَكُلُوْا.

وخت چه هغې مونځ کولو، تپوس او کړ، څه خبره ده؟ (چه خلق مونځ کوي). بي بي عائشې رضي الله عنها سر سره اسمان طرف ته اشاره او کړله. ما تپوس او کړ، ایا څه نښه شته، نو هغې خپل سر سره اشارې کولو سره اوښودل، او. او د انس رضي الله عنه بیان دے، چه نبي صلي الله علیه وسلّم حضرت ابوبکرؓ ته اشارې کولو سره د مخکښې کیدلو حکم ورکړلو، او د ابن عباسؓ بیان دے، نبي صلي الله علیه وسلّم خپل لاس سره اشاره او کړله، چه هیڅ حرج نه شته. او ابو قتاده اووے، نبي صلي الله علیه وسلّم د محرم د ښکار متعلق تپوس او کړ، ایا تاسو کښې دا ښکاري چا په ښکار کولو اماده کړے وو، یا هغې طرف ته ئې اشاره کړې وه، خلقو اووے، نه، نو حضورؐ اوفرمائیل، خورئې (کماؤ).

۲۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ رَسُوْلُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَعِيْرِهِ وَ كَانَ كُلَّمَا أَتَى عَلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ وَقَالَتْ زَيْنَبُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُتِحَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوْجَ وَ مَأْجُوْجَ مِثْلُ هٰذِهِ وَ عَقَدَ تِسْعِيْنَ.

۲۷۱: عبدالله بن محمد. ابو عامر. عبدالملک بن عمرو. ابراهیم. خالد. عکرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے، نبي صلي الله علیه وسلّم په اوښ سور شو، طواف ئې او کړ. او کله چه به رکن له راتلو، نو هغې طرف ته به ئې اشاره کوله، او تکبیر به ئې کولو. او د زینب بیان دے، چه نبي صلي الله علیه وسلّم عقد الانامل (د ګوتو حلقه) کښې د لوے (۹۰) شکل په شان خپله ګوته راتاو کړه، وے ښودل، چه د یاجوج ماجوج دروازے هم دومره پرانستې شوے دي.

۲۷۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ عَنْ مُحَمَّدٍ

۲۷۲: مسدد. بشر بن مفضل. سلمه بن علقمه. محمد بن سیرین. ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، ابو القاسم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د

بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجُمُعَةِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ قَائِمٌ يُصَلِّيْ فَسَأَلَ اللّٰهَ خَيْرًا اِلَّا اَعْطَاهُ وَقَالَ بِيَدِهٖ وَوَضَعَ اَنْمُلَتَهُ عَلٰى بَطْنِ الْوُسْطٰى وَالْخِنْصَرِ قُلْنَا يُزَهِّدُهَا وَقَالَ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ شُعْبَةَ ابْنِ الْحَجَّاجِ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ عَدَا يَهُوْدِيٌّ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى جَارِيَةٍ فَاَخَذَ اَوْضَاحًا كَانَتْ عَلَيْهَا وَرَضَخَ رَاْسَهَا فَاَتٰى بِهَا اَهْلُهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ فِيْ اٰخِرِ رَمَقٍ وَقَدْ اُصْمِتَتْ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَتَلَكِ فُلَانٌ لِغَيْرِ الَّذِيْ قَتَلَهَا فَاَشَارَتْ بِرَاْسِهَا اَنْ لَا قَالَ فَقَالَ لِرَجُلٍ اٰخَرَ غَيْرِ الَّذِيْ قَتَلَهَا فَاَشَارَتْ اَنْ لَا فَقَالَ فَفُلَانٌ لِقَاتِلِهَا فَاَشَارَتْ اَنْ نَعَمْ فَاَمَرَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضِخَ رَاْسُهُ بَيْنَ حَجَرَيْنِ.

۲۷۳ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا

جمعې په ورځ يو داسې ساعت وي، كه مسلمان دغه وخت مونځ كوي، او د، الله تعالىٰ نه د خير دعا غواړي، نو الله (ج) ئې هغه ته عطاء كوي (يا الله ج)، دديې نيک ساعت په خاطر څمونږ د ټولو هم دواړه جهانه خايسته كړې. اللّٰهم اٰمين). او خپل لاس سره ئې اشاره اوكړه. او د ځلو ګوتو بند، (پور) ئې مينځنۍ ګوتې، او ووړې ګوتې باندې كيښودو، يعني د، داسې خلقو قلت ئې ظاهر كړلو. او، اويس بيان اوكړلو، ماته ابراهيم بن سعد په واسطه د شعبه بن حجاج، هشام بن زيد، انس بن مالک رض نه روايت كوي. د هغه بيان دې. يو يهودي د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې يوې ماشومې جينۍ باندې ظلم اوكه، او د هغې زيور (كالي) وغيره ئې ترې واخستل. او د هغې سر ئې چيخنړې (ميده) كړلو. د هغې كوروالو هغه راواخسته، او د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، داسې حال كښې چه هغې آخري د ژوند سلګئې اخستله، او خاموشه وه. هغې نه حضور صلي الله عليه وسلّم تپوس اوكه، ته چا قتل كړې. حضور صلي الله عليه وسلّم د قاتلنه علاوه د بل چا نوم واخست، تپوس ئې اوكه، هغې د خپل اشارې سره جواب وركه، چه نه. بيا د بل چا نوم ئې واخست، تپوس ئې ترې اوكه، نو هغې اشارې سره اووې چه نه. بيا د قاتل نوم ئې واخست، تپوس ئې ترې اوكه، نو هغې اشارې سره اووې، چه او. نبي صلي الله عليه وسلّم حكم اوكړلو، نو د هغې قاتل سر د، دوو كاڼړو مينځ كښې كيښودې شو، او چيخنړې كړې شو.

۲۷۳ : قبيصه. سفيـ ن. عبداللّٰه بن

سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلْفِتْنَةُ مِنْ هُنَاوَ اَشَارَ اِلَى الْمَشْرِقِ.

دينار. ابن عمر رضي الله عنهما روايت كوي، د هغه بيان دے. ما د نبي صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، چه فتنه به ددے طرف نه راځي. او مشرق طرف ته ئے اشاره اوكړله.

۲۷۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِالْحَمِيْدِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَّعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ لِرَجُلٍ انْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَمْسَيْتَ ثُمَّ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَمْسَيْتَ اِنَّ عَلَيْكَ نَهَارًا ثُمَّ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ فَنَزَلَ فَجَدَحَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ فَشَرِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَوْمَاَ بِيَدِهٖ اِلَى الْمَشْرِقِ فَقَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ اللَّيْلَ قَدْ اَقْبَلَ مِنْ هٰهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّائِمُ.

۲۷۴ : علي بن عبدالله. جرير بن عبدالحميد. ابو اسحاق شيباني. عبدالله بن ابي اوفي نه روايت كوي. مونږ يو سفر كښ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره وو. چه نمر پريوتلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم يو سړي ته حكم وركړلو، كوز شه، څما د پاره ستوان ګس (خوشت) كړه. هغه اووے، كاش چه تاسو ماښام پورے صبر كړے وے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، كوز شه، او ما د پاره ستوان ګس كړه. هغه اووے، كاش چه تاسو لږ صبر كړے وے. چه اوس لا ورځ باقي ده. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته بيا اوفرمائيل، كوز شه، او ما د پاره ستوان تيار كړه، نو په دريم ځل د حكم وركولو نه پس هغه راكوز شولو. او ستوان ئے تيار كړل. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم مشرق طرف ته خپل لاس سره اشاره اوكړله، اووے فرمائيل، هر كله چه تاسو شپه ددے طرف نه راتلونكے اووينئے، نو د روژے ماتولو وخت شو.

۲۷۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ ذُرَيْعٍ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۷۵ : عبدالله بن مسلمه. يزيد بن زريع. سليمان تيمي. ابو عثمان. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د بلال رضي الله عنه اذان دے. تاسو كښ څوك د پيشمني (سحرى) كولو نه منع نه كړي، ځكه چه هغه اذان

وَسَلَّمَ لَا يَمْنَعَنَّ اَحَدًا مِّنْكُمْ بِدَاءُ بِلَالٍ اَوْ قَالَ اَذَانُهُ مِنْ سَحُوْرِهٖ فَاِنَّمَا يُنَادِيْ اَوْ قَالَ يُؤَذِّنُ لِيَرْجِعَ قَائِمُكُمْ وَ لَيْسَ اَنْ يَّقُوْلَ كَاَنَّهُ يَعْنِي الصُّبْحَ اَوِ الْفَجْرَ وَ اَظْهَرَ يَزِيْدُ يَدَيْهِ ثُمَّ مَدَّ اِحْدٰهُمَا مِنَ الْاُخْرٰى وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْبَخِيْلِ وَالْمُنْفِقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيْدٍ مِّنْ لَّدُنْ ثَدْيَيْهِمَا اِلٰى تَرَاقِيْهِمَا فَاَمَّا الْمُنْفِقُ فَلَا يُنْفِقُ شَيْئًا اِلَّا مَادَّتْ عَلٰى جِلْدِهٖ حَتّٰى تُجِنَّ بَنَانَهُ وَتَعْفُوَ اَثَرَهُ وَ اَمَّا الْبَخِيْلُ فَلَا يُرِيْدُ يُنْفِقُ اِلَّا لَزِمَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ مَوْضِعَهَا فَهُوَ يُوْسِعُهَا فَلَا تَتَّسِعُ وَ يُشِيْرُ بِاِصْبَعِهٖ اِلٰى حَلْقِهٖ.

کوي، يا، دائے اوفرمائيل، چه اواز کوي، چه تاسو کښې شب بيداري کونکي فارغ شي (او، ارام اوکړي) دا مقصد ئے نه، وي، چه صبا شولو. او يزيد بن زريع خپل دواړه لاسونه اوږده کړل، او دواړه طرف ته ئے خواره کړل، ورے ښودل، د، صبح صادق رڼړا داسے وي. او د ليث بيان دے. ماته جعفر بن ربيعه په واسطه د، عبدالرحمٰن بن هرمز، ابوهريره رضي الله عنه، د حضور صلي الله عليه وسلّم قول نقل که. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د خرچ کونکي او بخيل مثال د هغه دوو سړو په شان دے. چه د اوسپنے دوه زغرے ئے داسے اغستے وے، چه د سينے نه د ښنتيو پورے وي. سخي چه کوم وخت خرچ کوي، نو د هغه زغره سُسته شي، او اوږديږي. او دے حده پورے کشاده شي، چه د ګوتو بند پټ کړي. ليکن بخيل چه کله هم د خرچ اراده کوي، نو د، هغه د زغرے هره حلقه (کړئ) په خپل ځائے اونښلي. هغه دا کشاده غواړي، ليکن هغه نه کشاده کيږي. او خپلے ګوتے سره ئے خپل حلق ته اشاره اوکړله.

## بَابُ ۱۷۹ : اللِّعَانِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَاءُ اِلَّا اَنْفُسُهُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ فَاِذَا قَذَفَ الْاَخْرَسُ امْرَاَتَهُ بِكِتَابٍ اَوْ اِشَارَةٍ اَوْ بِاِيْمَاءٍ مَعْرُوْفٍ فَهُوَ كَالْمُتَكَلِّمِ لِاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَجَازَ الْاِشَارَةَ

## باب ۱۷۹ : د، لعان کولو بيان، او د، الله تعالي

قول: والذين يرمون ازواجهم ولم يكن لهم شهداء الا انفسهم: آخر ايت صادقين پورے (کوم چه خپلو بيبيانو باندے تهمت لږوي، او هغوي سره ماسوا د هغوي د ذات نه ګواه نه وي). که ګونګا، په خپله بي بي، ليکلو سره يا اشارے سره يا څه خاص اشارے سره تهمت او لږوي، نو هغه د خبرے اترے کونکي په شان دے. ځکه چه نبي صلي الله عليه وسلّم فرائضو کښې اشاره جائز ګرځولے

فِيْ الْفَرَائِضِ وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْحِجَازِ وَ أَهْلِ الْعِلْمِ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ قَالُوْا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا وَ قَالَ الضَّحَّاكُ إِلَّا رَمْزًا إِشَارَةً وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَا حَدَّ وَلَا لِعَانَ ثُمَّ زَعَمَ أَنَّ الطَّلَاقَ بِكِتَابٍ أَوْ إِشَارَةٍ أَوْ إِيْمَاءٍ جَائِزٌ وَ لَيْسَ بَيْنَ الطَّلَاقِ وَالْقَذْفِ فَرْقٌ فَإِنْ قَالَ الْقَذْفُ لَا يَكُوْنُ إِلَّا بِكَلَامٍ قِيْلَ لَهُ كَذٰلِكَ الطَّلَاقُ لَا يَجُوْزُ إِلَّا بِكَلَامٍ وَ إِلَّا بَطَلَ الطَّلَاقُ وَالْقَذْفُ وَ كَذٰلِكَ الْعِتْقُ وَ كَذٰلِكَ الْأَصَمُّ يُلَاعِنُ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ وَ قَتَادَةُ إِذَا قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ فَأَشَارَ بِأَصَابِعِهِ تَبِيْنُ مِنْهُ بِإِشَارَتِهِ وَ قَالَ إِبْرَاهِيْمُ الْأَخْرَسُ إِذَا كَتَبَ الطَّلَاقَ بِيَدِهِ لَزِمَهُ وَ قَالَ حَمَّادُ الْأَخْرَسُ وَالْأَصَمُّ إِنْ قَالَ بِرَأْسِهِ جَازَ.

دہ. او د بعضے اهل حجاز او اهل علم دا مسلک دے. او الله تعالي اوفرمائيل' چه بي بي مريم هغه ته اشاره او کړه' نو هغے خلقو اووے' مونږ دے ماشوم بچي سره څنګه خبرے کولے شو' چه اوس لا ځانګو کښې دے. او ضحاک وائي: الا رمزا: نه مراد اشاره ده. بعضے اووے' دے صورت کښې نه حد شته' نه لعان شته' بيائے اووے' چه ليکلو سره يا اشارے سره يا څه مخصوص اشارے سره طلاق ورکول جائز دي. حالانکه د طلاق او قذف مينځ کښې هيڅ فرق نه شته. که څوک سړے اووائي' چه قذف خو صرف خبره سره کيږي'نو د' دے جواب دا دے چه دا شان طلاق هم د خبرو په ذريعه واقع کيږي. کني طلاق او قذف به بالکل باطل شي. دغه شان د کونږ (بهره) لعان کول جائز دي. شعبي او قتاده اووے. که يو سړے اووائي' چه تاته طلاق دے' او خپلو ګوتو سره اشاره او کړي' نو ښځه به بائنه شي. او ابراهيم اووے چه ګونګا په خپل لاس سره طلاق اوليکي نو واقع به شي او حماد اووے' چه ګونګا او کونږ' خپل سر' سره اشاره او کړي' نو جائز دي' يعني طلاق وغيره هر څيز سره ثابتيږي.

۲۷۶ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ دُوْرِ الْأَنْصَارِ قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ بَنُوا النَّجَّارِ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ بَنُوْ عَبْدِ

۲۷۶ : قتيبه. ليث. يحيٰي بن سعيد انصاري. انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا زه د' انصارو کورونو کښې د ټولونه ښه کور اونه ښايم. خلقو عرض او که' ولے نه' يا رسول اللّٰه' حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' د بنو نجار کور' بيا هغه خلق چه د هغوي قريب دي. يعني بنو عبد الاشهل. بيا هغه خلق چه دوي ته قريب دي' يعني بنو حارث بن خزرج. بيا هغه خلق چه

الْاَشْهَلِ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ بَنُوْ سَاعِدَةَ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهٖ فَقَبَضَ اَصَابِعَهٗ ثُمَّ بَسَطَهُنَّ كَالرَّامِيْ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَالَ وَ فِيْ كُلِّ دُوَرِ الْاَنْصَارِ خَيْرٌ.

دوي ته قريب دي' يعني بنو ساعده. بيائے خپل لاس مبارک سره اشاره اوکړه' خپلے ګوتے مبارکے ئے راغونډے کړلے. بيا خپل لاس مبارک سره ئے د تير ويشتونکي په شان هغه خورے کړلے (پھيلاديا). بيائے اوفرمائيل' د انصارو ټولو کورونو کښې خير دے. (يا الله' خموږ کورونه هم د خير نه ډک کړے. اللّٰهم آمين).

۲۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ اَبُوْ حَازِمٍ سَمِعْتُهٗ مِنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ صَاحِبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهٰذِهٖ مِنْ هٰذِهٖ اَوْ كَهَاتَيْنِ وَ قَرَنَ بَيْنَ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى.

۲۷۷: علي بن عبدالله. سفيان. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي د حضور صلي الله عليه وسلّم د صحابي نه روايت کوي' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زه داسے وخت کښې راليږلے شوے يم' چه ځما او د قيامت مينځ کښې دومره فاصله ده. او حضور صلي الله عليه وسلّم د' کلمے او مينځنے ګوته يوځائے کړله' اشارے سره ئے اوښودل.

۲۷۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّهْرُ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا يَعْنِيْ ثَلٰثِيْنَ ثُمَّ قَالَ وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا يَعْنِيْ تِسْعًا وَّ عِشْرِيْنَ يَقُوْلُ مَرَّةً ثَلٰثِيْنَ وَ مَرَّةً تِسْعًا وَّ عِشْرِيْنَ.

۲۷۸: آدم. شعبه. جبله بن سحيم. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. مياشت د' دومره دومره او دومره ورځو وي. يعني د' ديرشو ورځو وي. بيائے اوفرمائيل' د' دومره دومره او دومره ورځو يعني د يو کم ديرشو ورځے وي. يو ځل ئے (۳۰) فرمائيلے' او بل وارئے يو کم ديرش فرمائيلے.

۲۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ وَ اَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۷۹: محمد بن مثني. يحيي بن سعيد. اسماعيل. قيس. ابو مسعود نه روايت کوي. نبي صلي الله عليه وسلّم يمن طرف ته اشاره اوکړله' او دوباره ئے اوفرمائيل. ايمان دے ځائے کښې دے. او

وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ نَحْوَ الْيَمَنِ الْاِيْمَانُ هٰهُنَا مَرَّتَيْنِ اَلَا وَ اِنَّ الْقَسْوَةَ وَ غِلَظَ الْقُلُوْبِ فِى الْفَدَّادِيْنَ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ رَبِيْعَةَ وَ مُضَرَ.

قساوت قلبي (د زړه سختوالے) او د قوم سختي دے خلقو کښې ده. چه په اوښانو چغے اوکاږي. او د کوم طرف نه چه نمر راخيژي، هلته اوسيږي، يعني ربيعه او مضر کښې ده.

۲۸۰ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ اَبِىْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا وَ كَافِلُ الْيَتِيْمِ فِى الْجَنَّةِ هٰكَذَا وَ اَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى وَ فَرَّجَ بَيْنَهُمَا شَيْئًا.

۲۸۰ : عمرو بن زراره. عبدالعزيز بن ابي حازم. ابو حازم. سهل نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زه او د يتيم پرورش کونکے دواړه به جنت کښې داسے يو. او سبا به (د شهادت ګوته) او مينځ ګوتے سره ئے اشاره اوکړه، ليکن د هغوي مينځ کښې ئے څه کشادګي ساتلے وه.

باب ۱۸۰ : اِذَا عَرَّضَ بِنَفْيِ الْوَلَدِ.

باب ۱۸۰ : کنايةً د خپل بچي د نفي کولو بيان.

۲۸۱ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وُلِدَ لِىْ غُلَامٌ اَسْوَدُ فَقَالَ هَلْ لَكَ مِنْ اِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ مَا اَلْوَانُهَا قَالَ حُمْرٌ قَالَ هَلْ فِيْهَا مِنْ اَوْرَقَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاَنّٰى ذٰلِكَ قَالَ لَعَلَّ نَزَعَهُ عِرْقٌ قَالَ فَلَعَلَّ ابْنَكَ هٰذَا نَزَعَهُ.

۲۸۱ : يحيٰي بن قزعه. مالک ابن شهاب. سعيد بن مسيب. ابوهريره رضي الله عنه نه روايت کوي. يو سړے د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، ځما يو تور بچے پيدا شوے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ايا تا کره څه اوښان شته. هغه اووے، او. حضور صلي الله عليه وسلّم ترے تپوس اوکه، هغه د کوم رنګ دي. هغه اووے، سره (سرخ) حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ايا هغوي کښې سپين توروالي ته مائل هم شته. هغه اووے، او. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، داسے ولے اوشو، هغه اووے، شايد څه رګ هغه راښکلے دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دا شان ممکنه ده، چه ستا ځوئے سره هم داسے شوے وي.

باب ۱۸۱ : اِحْلَافِ الْمُلَاعِنِ.

۲۸۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ قَذَفَ امْرَاَتَهُ فَاَحْلَفَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا.

باب ۱۸۱ : لعان كونكوته د قسم وركولو بيان.

۲۸۲ : موسٰي بن اسماعيل. جويريه. نافع. عبداللّٰه نه روايت كوي. د' انصارو نه يو سړي په خپله ښځه تهمت اولږولو' نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دهغے دواړو نه حلف (قسم) واخستو. بيا د هغے دواړو مينځ كښې ئے جدائي راوسته.

باب ۱۸۲ : يَبْدَأُ الرَّجُلُ بِالتَّلَاعُنِ.

باب ۱۸۲ : لعان كښې به ابتداء د' سړي د جانب نه كولے شي.

۲۸۳ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ هِشَامِ ابْنِ حَسَّانٍ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ هِلَالَ ابْنَ اُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَاَتَهُ فَجَآءَ فَشَهِدَ وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثُمَّ قَامَتْ فَشَهِدَتْ.

۲۸۳ : محمد بن بشار. ابن ابي عدي. هشام بن حسان. عكرمه. حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' چه هلال بن اميه په خپله ښځه تهمت اولږولو. هغه راغے. او ګواهي ئے اوكړه. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' خدائے (ج) پوهيږي' چه تاسو كښې يو كس دروغجن دے. نو تاسو كښې څوک توبه كوي. بيا هغه ښځه اودريده' او هغے ګواهي وركړه.

باب ۱۸۳ : اللِّعَانِ وَمَنْ طَلَّقَ بَعْدَ اللِّعَانِ.

باب ۱۸۳ : د' لعان بيان' او د هغے سړي بيان' چه لعان نه پس طلاق وركړي.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدِ السَّاعِدِيَّ اَخْبَرَهُ اَنَّ عُوَيْمِرًا الْعِجْلَانِيَّ جَآءَ اِلٰى عَاصِمِ ابْنِ عَدِيٍّ الْاَنْصَارِيِّ فَقَالَ لَهُ يَا عَاصِمُ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاَتِهِ رَجُلًا اَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُوْنَهُ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ سَلْ لِّيْ يَا عَاصِمُ عَنْ ذٰلِكَ فَكَرِهَ

۲۸۴ : اسماعيل. مالک. ابن شهاب. سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي' د هغه بيان دے. چه عويمر عجلاني' عاصم بن عدي انصاري له راغے' او هغه ته ئے اووے' اے عاصم' اوښايه' كه يو سړے خپلے ښځے سره بل سړے اووينې' او هغه قتل كړي' نو تاسو به هغه قتلوئے. يا هغه بيچاره څه اوكړي. اے عاصم' ددے متعلق ته د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكه. عاصم ددے متعلق د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا حَتّٰى كَبُرَ عَلٰى عَاصِمٍ مَا سَمِعَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَجَعَ عَاصِمٌ اِلٰى اَهْلِهٖ جَآءَهٗ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا عَاصِمُ مَاذَا قَالَ لَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمٌ لِعُوَيْمِرٍ لَمْ تَأْتِنِيْ بِخَيْرٍ قَدْ كَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْئَلَةَ الَّتِيْ سَاَلْتُهٗ عَنْهَا فَقَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللّٰهِ لَا اَنْتَهِيْ حَتّٰى اَسْاَلَهٗ عَنْهَا فَاَقْبَلَ عُوَيْمِرٌ حَتّٰى جَآءَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَطَ النَّاسِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَّجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا اَيَقْتُلُهٗ فَتَقْتُلُوْنَهٗ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ فِيْكَ وَ فِيْ صَاحِبَتِكَ فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا قَالَ سَهْلٌ فَتَلَاعَنَا وَ اَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ تَلَاعُنِهِمَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلٰثًا قَبْلَ اَنْ يَّاْمُرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتْ سُنَّةَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ.

اوكه، نو حضور صلي الله عليه وسلم دې مسئلې ته چه بلا ضرورته پېښتلې شي، د ناخوښي په نظر اوكتل. او د عيب خبره ئې اوګنړله. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه كومه خبره د عاصم نه واوريدله، هغه پرې بنه اونه لـبريده. كوم وخت چه عاصم خپل كوروالو له راغې، نو عويمر هغه له راغې، او تپوس ئې اوكه. اې عاصم رسول الله صلي الله عليه وسلم څه اوفرمائيل. عاصم ورته اووې، تا خه ښيز نه دې راوړلې. حضور صلي الله عليه وسلم هغه تپوس چه ما، د حضور صلي الله عليه وسلم نه اوپښتلو، بد ګنړلې دې. عويمر اووې، په خدائې (ج) چه زه ددې نه منع كيدې نه شم، څو پورې چه زه ددې متعلق د حضور صلي الله عليه وسلم نه تپوس اونه كړم. عويمر روان شو تردې چه د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښ د خلقو مينځ ته راغې. او عرض ئې اوكه، يا رسول الله، دا راته اووائې، كه يو سړې خپلې ښځې سره پردې سړې بيامومي، او هغه قتل كړي، نو ايا تاسو به هغه قتلوې، نو بيا هغه بيچاره څه اوكړي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، ستا او، ستا د ښځې متعلق آيت نازل شوې دې. لاړ شه او خپله ښځه راوله. د، سهل بيان دې، چه دواړو لعان اوكه، او زه خلقو كښ حضور صلي الله عليه وسلم سره ووم. كوم وخت چه دواړه د، لعان نه فارغ شو، نو عويمر عرض اوكه، يا رسول الله، كه زه دا خپل خان سره ساتم، نو زه به دروغجن يم، نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم د حكم وركولو نه مخكښ هغه درې طلاقه وركړل. ابن شهاب اووې، چه د، لعان كونكو دا سنت شولو.

## بـاب ۱۸۴ : اَلتَّلَاعُنِ فِي الْمَسْجِدِ.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنِ الْمَلَاعَنَةِ وَ عَنِ السُّنَّةِ فِيْهَا عَنْ حَدِيْثِ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ اَخِيْ بَنِيْ سَاعِدَةَ اَنَّ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ جَآءَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَّجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا اَيَقْتُلُهٗ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْ شَاْنِهٖ مَا ذُكِرَ فِي الْقُرْاٰنِ مِنْ اَمْرِ الْمُتَلَاعِنَيْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَضَى اللّٰهُ فِيْكَ وَ فِيْ امْرَاَتِكَ قَالَ فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَ اَنَا شَاهِدٌ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلٰثًا قَبْلَ اَنْ يَّاْمُرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ فَرَغَا مِنَ التَّلَاعُنِ فَفَارَقَهَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ذَاكَ تَفْرِيْقٌ بَيْنَ كُلِّ مُتَلَاعِنَيْنِ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتِ السُّنَّةُ بَعْدَهُمَا اَنْ يُّفَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَ كَانَتْ حَامِلًا وَّ كَانَ ابْنُهَا يُدْعٰى لِاُمِّهٖ قَالَ ثُمَّ جَرَتِ السُّنَّةُ فِيْ مِيْرَاثِهَا اَنَّهَا

## بـاب ۱۸۴ : جماعت کښې د لعان کولو بيان.

۲۸۵ : يحيٰي. عبدالرزاق. ابن جريج. ابن شهاب ماته د لعان او ددې د مسنون طريقې متعلق د بني ساعده ورور سهل بن سعد د حديث نه بيان اوکه، چه يو انصاري سړے د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، که يو سړے خپلې ښځې سره بل سړے اووينې، او هغه قتلوي، نو تاسو به هغه قتلوئې. اووائے. آخر چه هغه قتل اونه کړي، نو څه به کوي. نو الله تعالٰي د هغه شان کښې هغه آيت نازل کړلو، چه هغې کښې د لعان کونکو متعلق حکم دے. نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله پاک ستا او ستا د ښځې متعلق حکم نازل کړے دے. هغې دواړو جمات کښې لعان اوکړلو. او زه هغه وخت موجود ووم. کوم وخت چه دواړه فارغ شو، نو هغې سړي اووے، که زه دا خپل خان سره ساتم، نو خلق به ما دروغجن ګنړي، نو د نبي صلي الله عليه وسلّم حکم ورکولو نه مخکښې هغه خپلې ښځې له طلاق ورکه. کوم وخت چه دواړه د لعان نه فارغ شو، او د نبي صلي الله عليه وسلّم مخکښې جدا شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. د هر لعان کونکو مينځ کښې د جدائي دغه صورت دے. ابن جريج د ابن شهاب قول نقل که، دے دواړو نه دا طريقه رائج شوه، چه لعان کونکو کښې دے جدائي راوستے شي. هغه ښځه حامله وه، او هغه بچے به د خپلې مور په نوم بللے شو (چه د فلانئے خويه) د ابن شهاب بيان دے

تُرِثُهُ وَ يَرِثُ مِنهَا مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهُ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ فِيْ هٰذَا الْحَدِيْثِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْ جَآءَ تْ بِهٖ اَحْمَرَ قَصِيْرًا كَاَنَّهُ وَ حَرَةٌ فَلَا اَرَاهَا اِلَّا قَدْ صَدَقَتْ وَ كَذَّبَ عَلَيْهَا وَ اِنْ جَآءَ تْ بِهٖ اَسْوَدَ اَعْيُنٍ ذَا الْيَتَيْنِ فَلَا اُرَاهُ اِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا فَجَاءَ تْ بِهٖ عَلَى الْمَكْرُوْهِ مِنْ ذٰلِكَ.

میراث کښې دا طریقه رائج شوه، چه هغه ښځه به د هغې بچي او، بچې به د، مور، وارث وي، څنګه چه اللّٰه تعالي دې د پاره مقرر کړې دي. ابن جريج په واسطه د ابن شهاب، سهل بن سعد ساعدي نه دې حديث کښې روايت اوکه، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، که د ښځې د سُر رنګ بچې پيدا شي، نو زه به وګنم چه هغه ښځه رښتينې ده او که د غټو غټو تورو سترګو واله او غټو غټو کوناټو واله بچې راوړي، نو زه به پوه شم چه سړې رښتينې دې. د هغې نه پس هغې ښځې ددې دويم صورت بچې راوړلو.

## باب ۱۸۵ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ رَاجِمًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ.

## باب ۱۸۵ : د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمان، که ما بغير ګواه سنګسار کولې.

۲۸۶ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ ذُكِرَ التَّلَاعُنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ عَدِيٍّ فِيْ ذٰلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ فَاَتَاهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهٖ يَشْكُوْ اِلَيْهِ اَنَّهُ قَدْ وَجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ مَّا ابْتُلِيْتُ بِهٰذَا اِلَّا لِقَوْلِيْ فَذَهَبَ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ بِالَّذِيْ وَجَدَ عَلَيْهِ امْرَاَتَهُ وَ كَانَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ مُصْفَرًّا قَلِيْلَ اللَّحْمِ سَبْطَ

۲۸۶ : سعيد بن عفير. ليث. يحيٰي بن سعيد. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره د لعان تذکره کيدله. عاصم بن عدي ددې متعلق څه غټه خبره اوکړله. بيا واپس راغې. نو هغه له د هغه د قوم يو سړې راغې او شکايت ئې اوکه، چه هغه خپلې ښځې سره يو بل سړې ليدلې دې، نو عاصم اوورې ډيره غټه خبره اوشوه او هغه سره نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له ورغې او د هغې متعلق ئې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان اوکه، چه هغه ئې خپلې ښځې سره ليدلې وو، هغه (دعويٰ کونکې) سړې زيړ رنګ، کم غوښې والا (کمزورې) او نيغ ويښتو واله وو، او د چا متعلق ئې چه دعويٰ کړې وه

الشَّعْرِ وَ كَانَ الَّذِىُ ادَّعٰى عَلَيْهِ اَنَّهُ وَجَدَهُ عِنْدَ اَهْلِهِ خَدْلًا اٰدَمَ كَثِيْرًا اللَّحْمِ فَقَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ فَجَآءَتْ شَبِيْهًا بِالرَّجُلِ الَّذِىُ ذَكَرَ زَوْجُهَا اَنَّهُ وَجَدَهُ فَلَاعَنَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا قَالَ رَجُلٌ لِّابْنِ عَبَّاسٍ فِى الْمَجْلِسِ هِىَ الَّتِىُ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَجَمْتُ اَحَدًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ رَّجَمْتُ هٰذِهٖ فَقَالَ لَا تِلْكَ امْرَاَةٌ كَانَتْ تُظْهِرُ فِى الْاِسْلَامِ السُّوْٓءَ قَالَ اَبُوْ صَالِحٍ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ خَدِلًا.

چه هغه نے خپلے ښځے سره ليدلے دے، غنم رنګے او غټو پنډو واله وو. نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يا اللّٰه، اصل حقيقت ښکاره کړے. نو هغے ښځے د هغے سړي مشابه بچے راوړلو، چه د هغه متعلق دعويٰ شوے وه، چه هغه ئے خپلے ښځے سره ليدلے وو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغے دواړو مينځ کښې لعان اوکړلو. يو سړي د ابن عباسؓ نه تپوس اوکه، آيا دا ښځه هغه وه، چه د هغے متعلق حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي وو، که ما څوک بغير ګواهئ سنګسارولے، نو هغه داده. ابن عباس رضي اللّٰه عنه جواب ورکه، نه، هغه بله ښځه وه، چه علانيه (په ښکاره ئے) اسلام کښې بدکاري کوله. ابو صالح او عبداللّٰه بن يوسف د: خَدِلًا: لفظ روايت کړے دے.

## باب ۱۸۶ : صِدَاقِ الْمُلَاعِنَةِ.

## باب ۱۸۶ : د، لعان کونکے د، مهر بيان.

۲۸۷ : حَدَّثَنِىُ عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا اِسْمَاعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ قَذَفَ امْرَاَتَهُ فَقَالَ فَرَّقَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَخَوَىْ بَنِى الْعَجْلَانِ وَ قَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَاَبَيَا فَقَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَاَبَيَا فَقَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَاَبَيَا

۲۸۷ : عمرو بن زراره. اسماعيل. ايوب. سعيد بن جبير نه روايت کوي. ما د ابن عمرؓ نه د هغے سړي متعلق تپوس اوکه، چه خپلے ښځے باندے تهمت اولږوي. نو هغه اووے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د بني عجلان يو سړے او ښځه جدا کړي وو، او فرمائيلے وو، خداي پوهيږي، چه تاسو کښې يو کس يقيناً دروغجن دے. په دے وجه تاسو کښې کوم يو توبه اوباسي. دواړو انکار اوکه، بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه ته معلومه ده، چه تاسو کښې يو کس دروغجن دے، نو تاسو کښې کوم يو د خپل قول نه رجوع کوي، بيا هم هغوي انکار اوکړلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د دواړو مينځ کښې جدائي راوسته، د،

فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا قَالَ اَيُّوْبُ فَقَالَ لِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ اِنَّ فِي الْحَدِيْثِ شَيْئًا لَا اَرَاكَ تُحَدِّثُهُ قَالَ قَالَ الرَّجُلُ مَالِيْ قَالَ قِيْلَ لَا مَالَ لَكَ اِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَقَدْ دَخَلْتَ بِهَا وَ اِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَهُوَ اَبْعَدُ مِنْكَ.

ايوب بيان دے. ماته عمرو بن دينار اووے' دے حديث كښ يو مضمون دا هم دے' چه هغے كښ تا په بيان كولو نه وينم. هغه بيان اوكه' دے سړي اووے' خما مال' نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' تاته به مال نه شي دركيدے' خكه كه ته ريښتينے ئے' نو تا هغے سره صحبت كړے دے. اوكه ته دروغجن ئے' نو بيا خو نور هم تاته د هغے حق نشته.

بَابُ ۱۸۷ : قَوْلِ الْاِمَامِ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ اِنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَآئِبٌ.

باب ۱۸۷ : د' امام دوو لعان كونكو ته ونيل' چه تاسو كښ يو ضرور دروغجن دے' په دے وجه ځوك توبه كوي.

۲۸۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ حِسَابُكُمَا عَلَى اللّٰهِ اَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَا سَبِيْلَ لَكَ عَلَيْهَا قَالَ مَالِيْ قَالَ لَا مَالَ لَكَ اِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَ اِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذٰلِكَ اَبْعَدُ لَكَ قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو قَالَ اَيُّوْبُ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ لَاعَنَ امْرَاَتَهُ فَقَالَ بِاَصْبَعَيْهِ وَ فَرَّقَ سُفْيَانُ بَيْنَ اَصْبَعَيْهِ السَّبَابَةَ

۲۸۸ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. سعيد بن جبير نه روايت كوي. ما د' ابن عمرؓ نه د' لعان كونكو متعلق تپوس اوكه' هغه جواب راكه' نبي صلي الله عليه وسلّم لعان كونكوته اوفرمائيل' الله تعالٰي به ستاسو دواړو نه حساب اخلي' تاسو دواړو كښ يو دروغجن دے' اوس تاته په دے ښځے هيڅ اختيار نشته. هغے سړي اووے' او خما مال. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. تاته مال نه شي دركيدے' ځكه كه ته ريښتينے ئے' نو تا د' دے ښځے د' شرم ګاه نه فايده اخستے ده. او كه ته دروغجن ئے' نو تاته نور هم ددے استحقاق نشته. د سفيان بيان دے' ما دا د' عمرو نه ياد كړے دے. او ايوب اووے' ما د' سعيد بن جبير نه واوريدل. د' هغه بيان دے. ما د' ابن عمرؓ نه تپوس اوكه' يو سړي خپلے ښځے سره لعان اوكه' نو هغه خپلو دواړو ګوتو سره اشاره اوكړله' او سفيان د شهادت ګوته او مينځنئ ګوته جدا كړے اوښودلے' چه حضور صلي الله

وَالْوُسْطٰى فَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ وَ قَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو وَّ اَيُّوْبَ كَمَا اَخْبَرْتُكَ.

عليه وسلّم د بني عجلان د، يو سړي او ښځے مينځ كښې جدائي اوكړله. اووے فرمائيل، اللّٰه ته معلومه ده، چه تاسو كښې يو دروغجن دے. پـه دے وجه تاسو كښې څوك توبه كوي، درے ځله حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. او سفيان اووے، څنګه چه ما تاسوته بيان اوكه، دغه شان ما د عمرو او ايوب نه ياد كړے دے.

باب ۱۸۸ : التَّفْرِيْقِ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ.

باب ۱۸۸ : د، لعان كونكو مينځ كښې د جدائي راوستو بيان.

۲۸۹ : حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عَيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَّقَ بَيْنَ رَجُلٍ وَّامْرَاَةٍ قَذَفَهَا وَ اَحْلَفَهُمَا.

۲۸۹ : ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبداللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د يو سړي او يوے ښځے مينځ كښې جدائي راوسته، چه هغه خپلے ښځے باندے تهمت لګولے وو. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دواړو له قسم وركړلو.

۲۹۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِاللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَاعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ رَجُلٍ وَّ امْرَاَةٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا.

۲۹۰ : مسدد. يحيي. عبيداللّٰه. نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د، انصارو يو سړي او يوے ښځے كښې لعان اوكړلو. او د، هغے دواړو مينځ كښې ئے جدائي اوكړله.

باب ۱۸۹ : يُلْحَقُ الْوَلَدُ بِالْمُلَاعِنَةِ.

باب ۱۸۹ : بچے بـه لعان كونكے ښځے ته وركيدے شي.

۲۹۱ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاعَنَ بَيْنَ رَجُلٍ وَّامْرَاَتِهٖ فَانْتَفٰى مِنْ وَّلَدِهَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا

۲۹۱ : يحيي بن بكير. مالک. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د يو سړي او د، يوے ښځے مينځ كښې لعان اوكړلو، د هغے د بچي د نسب د سړي نه ئے نفي اوكړله (يعني هغه طرف ته ئے منسوب نه كه) او د هغے دواړو مينځ كښې جدائي

وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ.

## باب ۱۹۰ : قَوْلِ الْإِمَامِ اللّٰهُمَّ بَيِّنْ.

۲۹۲ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْقَاسِمِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَالَ ذُكِرَ الْمُتَلَاعِنَانِ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ عَدِيٍّ فِي ذٰلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ فَأَتَاهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ فَذَكَرَ لَهُ أَنَّهُ وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ مَا ابْتُلِيتُ بِهٰذَا الْأَمْرِ إِلَّا لِقَوْلِي فَذَهَبَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِالَّذِي وَجَدَ عَلَيْهِ امْرَأَتَهُ وَ كَانَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ مُصْفَرًّا قَلِيلَ اللَّحْمِ سَبْطَ الشَّعْرِ وَ كَانَ الَّذِي وَجَدَ عِنْدَ أَهْلِهِ آدَمَ خَدِلًا كَثِيرًا اللَّحْمِ جَعْدًا قَطِطًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ بَيِّنْ فَوَضَعَتْ شَبِيهًا بِالرَّجُلِ الَّذِي ذَكَرَ زَوْجُهَا أَنَّهُ وَجَدَ عِنْدَهَا فَلَاعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا فَقَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ فِي الْمَجْلِسِ هِيَ الَّتِي قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

او کړله. او بچے ئے ښځے له ورکړلو.

## باب ۱۹۰ : د' امام دا' وئیل' چه اے الله اصل حقیقت ظاهر کړے.

۲۹۲ : اسماعیل. سلیمان بن بلال. یحیي بن سعید. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. ابن عباسؓ نه روایت کوي' د نبي صلي الله علیه وسلّم مخکښې د' لعان کونکو ذکر راغے' نو عاصم بن عدي د' هغه متعلق غټه خبره اوکړه. بیا هغه واپس کورته راغے' نو هغه له د هغه د' قوم یو سړے راغے. او هغه ته ئے بیان اوکه. چه ما خپلے ښځے سره یو سړے اولیدو. عاصم اووے' خما غټه خبره خما مخے ته راغله. او هغه م د نبي صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر که. او د هغے سړي متعلق ئے حضور صلي الله علیه وسلّم ته بیان اوکه' چه هغه ئے خپلے ښځے سره لیدلے وو. او هغه دعوي کونکے سړے زیړ مخ واله' کمے غوښے واله (کمزورے) او نیغ ویښتو واله وو. او کوم سړے چه ئے خپلے ښځے سره لیدلے وو' هغه زیاتے غوښے واله (غټ) او د هغه د سَر ویښته کولکوتے وو. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. اے الله' اصل حقیقت ظاهر کړے' نو هغے ښځے د هغے سړي مشابه بچے راوړلو' چه د هغه متعلق د هغے خاوند دعويٰ کړے وه' چه هغه ئے خپلے ښځے سره لیدلے وو. حضور صلي الله علیه وسلّم د هغے دواړو لعان اوکړلو' یو سړے چه هغے مجلس کښې ناست وو' ابن عباسؓ نه ئے تپوس اوکه' آیا دا هغه ښځه وه' چه د هغے متعلق حضور صلي الله علیه وسلّم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَجَمْتُ اَحَدًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ لَرَجَمْتُ هٰذِهٖ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا تِلْكَ امْرَاَةٌ كَانَتْ تُظْهِرُ السُّوْءَ فِي الْاِسْلَامِ.

فرمائیلي وو، که ما ځوک بغیر ګواهي سنګسارولې نو دا ښځه به مې سنګسار کړې وه، حضرت ابن عباسؓ جواب ورکه، هغه بله ښځه وه، چه اسلام کښې ئې په ښکاره بدکاري کوله.

بَاب ۱۹۱ : اِذَا طَلَّقَهَا ثَلٰثًا ثُمَّ تَزَوَّجَتْ بَعْدَ الْعِدَّةِ زَوْجًا غَيْرَهُ فَلَمْ يَمَسَّهَا.

باب ۱۹۱ : که یو سړے خپلې ښځې له درې طلاقه ورکړي، بیا هغه ښځه د عدت تیرولو نه پس بل سړي سره نکاح اوکړي او هغه دے سره صحبت کولو نه بغیر طلاق ورکړي، نو څه حکم دے.

۲۹۳ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۹۳ : عمرو بن علي. یحیٰي. هشام د خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها نه، او هغه د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي.

۲۹۴ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ اَنَّ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيَّ تَزَوَّجَ امْرَاَةً ثُمَّ طَلَّقَهَا فَتَزَوَّجَتْ اٰخَرَ فَاَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ لَهُ اَنَّهُ لَا يَاْتِيْهَا وَ اَنَّهُ لَيْسَ مَعَهُ اِلَّا مِثْلُ هُدْبَةٍ فَقَالَ لَا حَتّٰى تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهُ وَ يَذُوْقَ عُسَيْلَتَكِ.

۲۹۴ : عثمان بن ابي شیبه. عبده. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، چه رفاعه قرظي یوې ښځې سره نکاح اوکړه. بیائے هغې له طلاق ورکه، نو هغې بل سړي سره نکاح اوکړله. او د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه، عرض ئې اوکه، چه د هغې خاوند هغې له نه راځي. او هغه سره نشته، خو د کپړې د زونډې په شان (یعني نامرد دے) حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، نه، ته ورمبني خاوند له نه شې تلے، خو پورې چه ته د، ده نه او دے تانه خوند وانخلي (لطف اندوز نہ ہوجائے).

بَاب ۱۹۲ : وَاللَّائِيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَائِكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ قَالَ مُجَاهِدٌ اِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْا يَحِضْنَ اَوْ لَا يَحِضْنَ وَاللَّائِيْ قَعَدْنَ عَنِ

باب ۱۹۲ : د، اللّٰه تعالٰي قول چه کومې ښځې د حیض نه نا امیده شوې دي، د هغوي عدت درې میاشتې دے، مجاهد اووے، که تاسو نه پوهیږئے، چه هغوي ته حیض راځي، یا نه، او د کومو ښځو حیض راتلل چه

الْمَحِيضِ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ.

موقوف شوې وي. او هغه چه لا اوس حيض نه دې راغلې، نو د هغوي عدت درې مياشتې دې.

باب ۱۹۳ : وَ اُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ.

باب ۱۹۳ : د الله تعالى قول: د حامله ښځو عدت وضع حمل (يعني بچې پيدا کيدو) پورې دې.

۲۹۵ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ الْاَعْرَجِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ عَنْ اُمِّهَا اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ امْرَاَةً مِنْ اَسْلَمَ يُقَالُ لَهَا سُبَيْعَةُ كَانَتْ تَحْتَ زَوْجِهَا تُوُفِّيَ عَنْهَا وَ هِيَ حُبْلٰى فَخَطَبَهَا اَبُو السَّنَابِلِ بْنَ بَعْكَكٍ فَاَبَتْ اَنْ تَنْكِحَهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ مَا تَصْلُحُ اَنْ تَنْكِحِيْهِ حَتّٰى تَعْتَدِّيْ اٰخِرَ الْاَجَلَيْنِ فَمَكَثَتْ قَرِيْبًا مِنْ عَشْرِ لَيَالٍ ثُمَّ جَآءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْكِحِيْ.

۲۹۵ : يحيي بن بكير. ليث. جعفر بن ربيعه. عبدالرحمن بن هرمز. اعرج. ابوسلمه بن عبدالرحمن. زينب بنت ام سلمه. د خپلې مور ام سلمه (د نبي صلي الله عليه وسلّم د ښېر) نه روايت کوي، د بني اسلم يوه ښځه چه د هغې نوم سبيعه وو. د هغې خاوند هغه حامله پريښودلې وه، او مړ شوې وو. ابو السنابل بن بعكك هغې ته د نکاح پيغام اوليږلو، نو هغې، هغه سره د، نکاح کولو نه انکار اوکړلو. ابو السنابل اووې، په خدائې چه ته نکاح نه شې کولې، څو پورې چه ته د، آخر الاجلين عدت تير نه کړې. بيا هغه صرف لس ورځې ايساره شوې وه (چه د هغې بچې پيدا شو) کوم وخت چه هغه د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ته نکاح اوکړه.

۲۹۶ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ عَنِ اللَّيْثِ عَنْ يَّزِيْدَ اَنَّ ابْنَ شِهَابٍ كَتَبَ اِلَيْهِ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ كَتَبَ اِلَى ابْنِ الْاَرْقَمِ اَنْ يَّسْاَلَ سُبَيْعَةَ الْاَسْلَمِيَّةَ كَيْفَ اَفْتَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اَفْتَانِيْ اِذَا وَضَعْتُ اَنْ

۲۹۶ : يحيي بن بكير. ليث. يزيد. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. عبدالله بن مسعودؓ نه روايت کوي، هغه ابن ارقم ته اوليکل، چه سبيعه اسلميه نه تپوس اوکړي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم هغې ته څنګه فتوي ورکړې وه، هغې اووې، حضور صلي الله عليه وسلّم ما ته حکم راکړې وو، چه کوم وخت خما بچې پيدا شي، نو

اَنۡكِحَ.

نکاح دے او کړم.

۲۹۷ : حَدَّثَنَا يَحۡيٰی بۡنُ قَزۡعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنۡ هِشَامِ بۡنِ عُرۡوَةَ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنِ الۡمِسۡوَرِ بۡنِ مَخۡرَمَةَ اَنَّ سُبَيۡعَةَ الۡاَسۡلَمِيَّةَ نُفِسَتۡ بَعۡدَ وَفَاةِ زَوۡجِهَا بِلَيَالٍ فَجَآءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاسۡتَأۡذَنَتۡهُ اَنۡ تَنۡكِحَ فَاَذِنَ لَهَا فَنَكَحَتۡ.

۲۹۷ : يحيٰي بن قزعه. مالک. هشام بن عروه. عروه. مسور بن مخرمه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. چه سبيعه اسلميه ته د هغې د خاوند د مرګ نه پس حيض راغے، نو هغه د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې د، نکاح اجازت اخستو د پاره حاضره شوه، حضور صلي الله عليه وسلّم هغې له اجازت ورکه، نو هغې نکاح اوکړله.

بَابُ ۱۹۴ : قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالۡمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصۡنَ بِاَنۡفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوۡءٍ وَ قَالَ اِبۡرَاهِيۡمُ فِيۡمَنۡ تَزَوَّجَ فِي الۡعِدَّةِ فَحَاضَتۡ عِنۡدَهٗ ثَلٰثَ حِيَضٍ بَانَتۡ مِنَ الۡاَوَّلِ وَلَا تَحۡتَسِبُ بِهٖ لِمَنۡ بَعۡدَهٗ وَ قَالَ الزُّهۡرِيُّ وَ هٰذَا اَحَبُّ اِلَیَّ سُفۡيَانَ يَعۡنِيۡ قَوۡلَ الزُّهۡرِيِّ وَ قَالَ مُعۡمَرٌ يُقَالُ اَقۡرَاَتِ الۡمَرۡاَةُ اِذَا دَنَا حَيۡضُهَا وَ اَقۡرَاَتۡ اِذَا دَنَا طُهۡرُهَا وَ يُقَالُ مَا قَرَاَتۡ بِسَلًى قَطُّ اِذَا لَمۡ تَجۡمَعۡ وَلَدًا فِيۡ بَطۡنِهَا.

باب ۱۹۴ : د، الله تعالٰي قول، چه طلاقې شوے ښځے دے درے حيضه پورے ايسارے وي. او ابراهيم د هغې سړي متعلق اووے، چه هغه ښځے سره عدت کښې واده اوکه. او هغه سره هغې ته درے حيضه راشي، نو د مخکښې نه به بائنه شي. او دا عدت به د ورستو نه شميريږي. او زهري اووے، شميرلے به شي. او د سفيان هم د زهري قول ډير خوښ دے. او معمر بيان اوکه چه: اقرات المراة: هغه وخت وائي، کوم وخت چه د حيض وخت قريب راشي. و اقرأت هغه وخت، هر کله چه د، هغې د، طهر (پاکې) وخت قريب شي. او کوم وخت چه بچے خيټه کښې ايسار نشي، نو هغه وخت: ما قراءت بِسَلًی قَطُّ: ونيلے شي.

بَابُ ۱۹۵ : قِصَّةِ فَاطِمَةَ بِنۡتَ قَيۡسٍ. وَ قَوۡلِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمۡ لَا تُخۡرِجُوۡهُنَّ مِنۡ بُيُوۡتِهِنَّ وَلَا يَخۡرُجۡنَ اِلَّا اَنۡ يَّاۡتِيۡنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ وَّ تِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ وَمَنۡ يَّتَعَدَّ حُدُوۡدَ اللّٰهِ فَقَدۡ ظَلَمَ

باب ۱۹۵ : د، فاطمه بنت قيس واقعه او د، الله تعالٰي قول، د، الله نه اويريږئ، چه ستاسو پروردګار دے. ښځے د هغوي د کورونو نه مه او کاږئ. اونه دے هغوي اوځي، خو دا چه په ښکاره، د بے حيائي کار او کړي، او دا د، الله تعالٰي حدود دي. او کوم سړے چه د، الله تعالٰي حدودو کښې د حد نه واوړي، نو هغه په

نَفْسَهُ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ وَ اِنْ كُنَّ اُوْلَاتِ حَمْلٍ فَاَنْفِقُوْا عَلَيْهِنَّ حَتّٰى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ اِلٰى قَوْلِهٖ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا.

خپل ځان ظلم او که' تاته نه ده معلومه' شاید الله تعالی ددې نه پس څه نوې صورت راوکاږي. تاسو هغوي نه اوسیدو د پاره د خپل وسعت مطابق ځائے ورکړئ' ځنکه چه تاسو اوسیږئ. او هغوے ته تکلیف مه رسوئ چه په هغوي تنګي راولئ. او که هغوي حمل واله وي' نو هغوي له خرچه ورکړئ' تردے چه بچے راوړي. اخر آیت: بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا: پورے.

۲۹۸ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ اَنَّهُ سَمِعَهُمَا يَذْكُرَانِ اَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ طَلَّقَ بِنْتَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَكَمِ فَانْتَقَلَهَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَاَرْسَلَتْ عَائِشَةُ اُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ اِلٰى مَرْوَانَ وَهُوَ اَمِيْرُ الْمَدِيْنَةِ اتَّقِ اللّٰهَ وَارْدُدْهَا اِلٰى بَيْتِهَا قَالَ مَرْوَانُ فِيْ حَدِيْثِ سُلَيْمَانَ اِنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ الْحَكَمِ غَلَبَنِيْ وَ قَالَ الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَوَ مَا بَلَغَكِ شَاْنُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ لَا يَضُرُّكَ اَنْ لَّا تَذْكُرَ حَدِيْثَ فَاطِمَةَ فَقَالَ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ اِنْ كَانَ بِكِ شَرٌّ فَحَسْبُكِ مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ مِنَ الشَّرِّ.

۲۹۸ : اسمٰعیل. مالک. یحیٰي بن سعید. قاسم بن محمد او سلیمان بن یسار. دواړو نه روایت کوي' چه یحیٰي بن سعید بن عاص د عبدالرحمٰن بن حکم لور لـه طلاق ورکـه. اوهغه عبدالرحمٰن بوتله' نو بي بي عائشے ﵂ هغه ته کوم وخت چه هغه د مدینې ګورنر وو' او وئیلے' د اللّٰه تعالٰي نه اویریږه. اوهغه د هغې کورته واپس کـه. مروان د' سفیان حدیث کښ بیان اوکـه' چه عبدالرحمٰن بن حکم په ما دلیل کښ غالب راغے. او قاسم بن محمد بیان اوکه' چه آیا تاته د فاطمه بنت قیس واقعه معلومه نه وه. بي بي عائشے ﵂ اوفرمائیل' که د فاطمه بنت قیس واقعه بیان نه کړے' نو ستا د پاره څه حرج نشته (یعني هغه حجت نه شي جوړیدے) مروان بن حکم اووے' که ستا خیال کښ شر وو' نو کوم شر چه د هغوي مینځ کښ وو' دا هم کافي حجت دے.

۲۹۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

۲۹۹ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. عبدالرحمٰن بن قاسم د خپل پلار نه' هغه د بي بي عائشے ﵂ نه روایت کوي هغے اوفرمائیل' فاطمے لـه

عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ مَا لِفَاطِمَةَ أَلاَّ تَتَّقِي اللّٰهَ تَعْنِيُ فِيُ قَوْلِهَا لَا سُكْنٰى وَلَا نَفَقَةَ.

خه شوے دي، چه له خدايه نه ويريږي، چه وائي، طلاق والـه ښځـه د نفقـے، او نـه د، اوسيدو د ځائے مستحقه ده.

۳۰۰۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ لِعَائِشَةَ اَلَمْ تَرَىُ اِلٰى فُلَانَةَ بِنْتِ الْحَكَمِ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا اَلْبَتَّةَ فَخَرَجَتْ فَقَالَتْ بِئْسَ مَا صَنَعَتْ قَالَ اَلَمْ تَسْمَعِيُ فِيُ قَوْلِ فَاطِمَةَ قَالَتْ اَمَآ اِنَّهُ لَيْسَ لَهَا خَيْرٌ فِيُ ذِكْرِ هٰذَا الْحَدِيْثِ وَ زَادَ ابْنُ اَبِيُ الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَابَتْ عَائِشَةُ اَشَدَّ الْعَيْبِ وَ قَالَتْ اِنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِيُ مَكَانٍ وَحْشٍ فَخِيُفَ عَلٰى نَاحِيَتِهَا فَلِذٰلِكَ اَرْخَصَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۰۰۰: عمرو بن عباس. ابن مهدي. سفيان. عبدالرحمٰن بن قاسم د خپل پلار نه روايت كوي، چه عروه بن زبيرؓ بي بي عائشےؓ ته اووے، تا اونه ليدل. چه فلانے يعني د حكم نوسئے لـه د هغـه خاوند طلاق بته وركړے دے، او هغه د كور نه وتلے ده. بي بي عائشےؓ اووے. هغے بد اوكړل. بيا عروه اووے. آيا تا نه دي آوريدلے، چه فاطمه څه وائي. او ابن ابي الزناد، د هشام نه، هغه د خپل پلار نه دے زياتي سره روايت اوكه، چه بي بي عائشےؓ دے ته ډير بد اووے. اووے فرمائيل، چه فاطمه يو ويرے واله مكان كښ وه، او د هغے اطرافو كښ بـه هميشـه ويره وه. پـه دے سبب نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے لـه اجازت وركړلو.

باب ۱۹۶: اَلْمُطَلَّقَةِ اِذَا خُشِيَ عَلَيْهَا فِيُ مَسْكَنِ زَوْجِهَا اَنْ يُّقْتَحَمَ عَلَيْهَا اَوْ تَبْذُوَ عَلٰى اَهْلِهَا بِفَاحِشَةٍ.

باب ۱۹۶: طلاقے شوے ښځے ته كه خپل كور كښ ويره معلومه شي، چه د هغے كور كښ به څوك داخل شي، يا دا، خوف وي چه د، هغے كور والو ته به بد رد پريوځي (نو هغه د كور نه وتلے شي).

۳۰۰۱: حَدَّثَنِيُ حِبَّانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَائِشَةَ اَنْكَرَتْ ذٰلِكَ عَلٰى فَاطِمَةَ.

۳۰۰۱: حبان. عبداللّٰه. ابن جريج. ابن شهاب. عروه نه روايت كوي، بي بي عائشےؓ نه د فاطمے په حق كښ دا بد اوګڼل.

باب ۱۹۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

باب ۱۹۷: د، اللّٰه تعالي قوا چه، هغے ښځو د

وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْ اَرْحَامِهِنَّ مِنَ الْحَيْضِ وَالْحَبَلِ.

پاره حلال نه دي، چه هغه څيز پټ کړي، کوم چه الله تعالى د، هغوي رحمونو کښې پيدا کړے دي، يعني حيض او حمل.

۳۰۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا اَرَادَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّنْفِرَ اِذَا صَفِيَّةُ عَلٰى بَابِ خِبَائِهَا كَئِيْبَةٌ فَقَالَ لَهَا عَقْرٰى اَوْ حَلْقٰى اِنَّكِ لَحَابِسَتُنَا اَكُنْتِ اَفَضْتِ يَوْمَ النَّحْرِ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَانْفِرِيْ اِذًا.

۳۰۲: سليمان بن حرب. شعبه. حکم. ابراهيم. اسود. بي بي عائشہؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم چه حج اوکه، او د، واپسئ اراده ئے اوکړه، نو هغه وخت بي بي صفيہؓ د خپلے خيمے په دروازه غمګينه ولاړه وه. حضور صلي الله عليه وسلّم هغے ته اوفرمائيل، سر خريلے، ته هلاکه شے (دا خيرے نه دي، بلکه د خاوند خپلے ښځے ته يو قسم د مينے الفاظ دي) ايا ته به مونږ خلق ايسار کړے. آيا تا د، نحر (قربانئ) په ورځ ارکان ادا کړے دي. هغے اووے، او. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اوس ته ځه، هيڅ حرج نشته.

بَابُ ۱۹۸: وَ بُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِي الْعِدَّةِ وَ كَيْفَ يُرَاجِعُ الْمَرْاَةَ اِنْ طَلَّقَهَا وَاحِدَةً اَوِ اثْنَتَيْنِ.

باب ۱۹۸: د، الله تعالى قول، چه د هغوي خاوند عدت کښې د هغوي د، واپس کولو زيات مستحق دے. او څنګه به ښځے ته رجوع اوکړي، هر کله چه هغے لره يو يا دوه طلاقه ورکړي.

۳۰۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ زَوَّجَ مَعْقِلٌ اُخْتَهُ فَطَلَّقَهَا تَطْلِيْقَةً.

۳۰۳: محمد. عبدالوهاب. يونس. حسن نه روايت کوي، معقل د خپلے خور نکاح اوکړله، نو د هغے خاوند هغے له يو طلاق ورکه.

۳۰۴: وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ اَنَّ مَعْقِلَ بْنَ يَسَارٍ كَانَتْ اُخْتُهُ تَحْتَ رَجُلٍ فَطَلَّقَهَا

۳۰۴: محمد بن مثنى. عبدالاعلى. سعيد. قتاده. حسن نه روايت کوي، د، معقل بن يسار خور، د، يو سړي په نکاح کښې وه، د، هغے خاوند هغے له طلاق ورکه، بيا د هغے نه جدا شو، تردے چه د هغے عدت تير شولو، بيائے هغے ته د، نکاح پيغام اوليږلو، معقل دا بد

ثُمَّ خَلّٰى عَنْهَا حَتّٰى انْقَضَتْ عِدَّتُهَا ثُمَّ خَطَبَهَا فَحَمِيَ مَعْقِلٌ مِنْ ذٰلِكَ اَنَفًا فَقَالَ خَلّٰى عَنْهَا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهَا ثُمَّ يَخْطُبُهَا فَحَالَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ فَدَعَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَ عَلَيْهِ فَتَرَكَ الْحَمِيَّةَ وَاسْتَقَادَ لِاَمْرِ اللّٰهِ.

او کېښو، د هغه نه ئې بچ کېدل اوغوښتل. او ونيلې، کوم وخت چه هغه په دې قادر وو، نو هغه وخت خو ددې نه جدا وو. او اوس د نکاح پيغام راليږي. نو د خپلې خور او د هغه مينځ کښې حائل شولو. نو الله تعالي دا ايت نازل کړلو: کوم وخت چه تاسو ښځو له طلاق ورکړئ، او د هغوي عدت تير شي، نو هغوي مه منع کوئ، حضور صلي الله عليه وسلّم معقل راوغوښتلو. او د هغه مخکښې ئې دا ايت اولوستو، نو هغه د خپل ضد نه منع شو. او د خدائې د حکم اطاعت ئې او که.

۵۰۳۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ طَلَّقَ امْرَاَةً لَهُ وَ هِيَ حَائِضٌ تَطْلِيْقَةً وَاحِدَةً فَاَمَرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُرَاجِعَهَا ثُمَّ يُمْسِكَهَا حَتّٰى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيْضَ عِنْدَهُ حَيْضَةً اُخْرٰى ثُمَّ يُمْهِلَهَا حَتّٰى تَطْهُرَ مِنْ حَيْضِهَا فَاِنْ اَرَادَ اَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا حِيْنَ تَطْهُرُ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُجَامِعَهَا فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِيْ اَمَرَ اللّٰهُ اَنْ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَآءُ وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ اِذَا سُئِلَ عَنْ ذٰلِكَ قَالَ لِاَحَدِهِمْ اِنْ كُنْتَ طَلَّقْتَهَا ثَلٰثًا فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْكَ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ وَ زَادَ فِيْهِ غَيْرُهُ عَنِ اللَّيْثِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ لَوْ طَلَّقْتَ مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۵۰۳۰: قتيبه. ليث. نافع نه روايت کوي. د حضرت عمرؓ بن خطاب خوئ خپلې ښځې له، چه هغه د حيض حالت کښې وه، يو طلاق ورکه، چه رجوع اوکړي. بيا هغه ايساره کړي، تردې چه هغه پاکه شي. بيا هغه سره هغې له دوئم حيض راشي. بيا هغه په خائې پريږدي، تردې چه هغه د حيض نه پاکه شي. او که هغه دې له طلاق ورکول غواړي، نو طلاق دې ورکړي، هر کله چه هغه د حيض نه پاکه شي، قبل د، دې نه چه هغه دې سره صحبت اوکړي. دا هغه عدت دې، چه د هغې متعلق الله تعالي حکم کړې دې، چه دې کښې دې ښځو له طلاق ورکړې شي. او عبدالله بن عمرؓ نه چه ددې متعلق تپوس اوشو نو يو سړي ته ئې اووې، کوم وخت چه ته خپلې ښځې له درې طلاقه ورکړې، نو هغه په تا حرامه ده، تردې چه هغه بل خاوند سره نکاح اوکړي. او نورو خلقو دې زيات الفاظو سره د ليث نه په واسطه د نافع، د ابن عمرؓ قول نقل که، چه کاش، تا ښځې له يو يا دوه طلاقه ورکړې وې، ځکه چه نبي صلي الله عليه

وَسَلَّمَ اَمَرَنِىْ بِهٰذَا.

وسلّم ماته ددې حکم راکړې وو.

بـــاب۱۹۹ : مُـــرَاجَـــعَةِ الْحَائِضِ.

باب ۱۹۹ : حیض واله ښځې ته د رجوع کولو بیان.

۳۰۶: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ بْنُ جُبَيْرٍ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ طَلَّقَ ابْنُ عُمَرَ اِمْرَاتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَسَأَلَ عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَهُ اَنْ يُّرَاجِعَهَا ثُمَّ يُطَلِّقَ مِنْ قُبُلِ عِدَّتِهَا قُلْتُ فَتَعْتَدُّ بِتِلْكَ التَّطْلِيْقَةِ قَالَ اَنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ.

۳۰۶: حجاج. یزید بن ابراهیم. محمد بن سیرین. یونس بن جبیرنه روایت کوي، ما د ابن عمرؓ نه تپوس اوکه، نو هغه اووې، ما خپلې ښځې له د حیض په حالت کښې طلاق ورکه. حضرت عمرؓ دې باره کښې د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حکم ورکړلو، چه هغې ته رجوع اوکړي. بیا چه د عدت زمانه راشي، نو طلاق دې ورکړي ما تپوس اوکه چه دا طلاق به شمیرلې شي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائیل که یو سړې عاجز او احمق شي، نو اووایه، د هغه طلاق به نه کیږي.

بـاب۲۰۰ : تُحِدُّ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَ عَشْرًا وَّ قَالَ الزُّهْرِيُّ لَا اَرٰى اَنْ تَقْرَبَ الصَّبِيَّةُ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا الطِّيْبَ لِاَنَّ عَلَيْهَا الْعِدَّةَ.

باب ۲۰۰ : د، کومې ښځې خاوند چه مړ شي، هغه دې څلور میاشتې او لس ورځې ماتم کښې وي. او زهري اووې، زه مناسب نه ګنړم، چه کم عمره جینۍ چه د هغې خاوند مړ شي، هغه دې خوشبو اولږوي، ځکه چه په هغې هم عدت دې.

۳۰۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِىْ بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اَبِىْ سَلَمَةَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ هٰذِهِ الْاَحَادِيْثَ الثَّلٰثَةَ قَالَتْ زَيْنَبُ دَخَلْتُ عَلٰى اُمِّ حَبِيْبَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۳۰۷: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. عبداللّٰه بن ابي بکر بن محمد بن عمرو بن حزم. حمید بن نافع. زینب بنت ابي سلمه نه روایت کوي، هغې ماته دا، درې حدیثونه بیان کړل، د، زینب بیان دې، چه زه د، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم تبر، ام حبیبهؓ له ورغلم، کوم وخت چه د هغې پلار ابو سفیان بن حرب وفات شولو. ام حبیبهؓ خوشبوئ راوغوښتله، چه هغې کښې خلوق (یو قسم خوشبوئ) یا د څه بل څیز زردي وه، او هغې ته یوې

حين توفي ابوها ابو سفيان بن حرب فدعت ام حبيبة بطيب فيه صفرة خلوق او غيره فدهنت منه جارية ثم مست بعارضيها ثم قالت مالي بالطيب من حاجة غير اني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الاخر ان تحد على ميت فوق ثلث ليال الا على زوج اربعة اشهر و عشرا قالت زينب فدخلت على زينب ابنة جحش حين توفي اخوها فدعت بطيب فمست منه ثم قالت اما والله مالي بالطيب من حاجة غير اني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول على المنبر لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الاخر ان تحد على ميت فوق ثلث ليال الا على زوج اربعة اشهر و عشرا قالت زينب و سمعت ام سلمة تقول جاءت امرأة الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقالت يا رسول الله ان ابنتي توفي عنها زوجها وقد اشتكت عينها افنكحلها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا مرتين او ثلثا كل ذلك يقول لا ثم

جينۍ خوشبوئي اولړوله. بيائے په خپلو اننګو اولړوله بيائے بيان اوکه، په خدائے چه ماته د خوشبوئ حاجت نه وو، خو په دے سبب ما خوشبوئ اولړوله، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه م اوريدلے دي، هيڅ ښځے د پاره چه الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، حلال نه دي، چه په يو مړي د، درے ورځو نه زيات خفګان اوکړي، ماسوا د، خاوند، نه، چه په هغه دے څلور مياشتے او لس ورځے ماتم اوکړي. زينب بيان اوکه، زه زينب بنت جحش له ورغلم، د هغے ورور وفات شوے وو. هغے هم خوشبوئ راوغښتله، او استعمال ئے کړه. بيائے اوفرمائيل، په خدائے چه، ماته ددے خوشبوئ ضرورت نه وو، ماسيوا د، دے نه چه ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه په منبر اوريدلے دي چه هيڅ ښځے د پاره چه الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، حلال نه دي، چه په مړي د، درے ورځو نه زيات وير اوکړي، سوا د، خاوند نه، چه د هغه ماتم دے څلور مياشتو او لس ورځو پورے اوکړي. د زينب بيان دے. ما د، ام سلمهؓ نه واوريدل، يوه ښځه د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، څما د لور خاوند مړ شوے دے. او د، هغے سترګه کښې تکليف دے، نو آيا مونږ هغے ته رانجه (سرما) اولړوو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم دوه درے ځله اوفرمائيل، نه، نهٌ، بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل هغه دے څلور مياشتو او لس ورځو پورے انتظار اوکړي. او تاسو کښې يوے ښځے د جاهليت زمانه کښې د، يو کال نه پس، پچے (مينګني) ويشتلے (هغے نه پس به د عدت نه بهر کيدله). د حميد

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هِيَ اَرْبَعَةُ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا وَقَدْ كَانَتْ اِحْدٰكُنَّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تَرْمِيْ بِالْبَعْرَةِ عَلٰى رَاْسِ الْحَوْلِ قَالَ حُمَيْدٌ فَقُلْتُ لِزَيْنَبَ وَمَا تَرْمِيْ بِالْبَعْرَةِ عَلٰى رَاْسِ الْحَوْلِ فَقَالَتْ زَيْنَبُ كَانَتِ الْمَرْاَةُ اِذَا تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا دَخَلَتْ حِفْشًا وَ لَبِسَتْ شَرَّ ثِيَابِهَا سَنَةً ثُمَّ تُؤْتٰى بِدَابَّةٍ حِمَارٍ اَوْ شَاةٍ اَوْ طَائِرٍ فَتَفْتَضُّ بِهٖ فَقَلَّمَا تَفْتَضُّ بِشَيْءٍ اِلَّا مَاتَ ثُمَّ تَخْرُجُ فَتُعْطٰى بَعَرَةً فَتَرْمِيْ ثُمَّ تُرَاجِعُ بَعْدُ مَا شَآءَ تْ مِنْ طِيْبٍ اَوْ غَيْرِهٖ سُئِلَ مَالِكٌ مَا تَفْتَضُّ بِهٖ قَالَ تَمْسَحُ بِهٖ جِلْدَهَا.

بيان دې، ما د، زينب نه تپوس او كه، چه ددې پچو (مينګني) غرخولو نه څه مطلب دې. نو زينب اووې هر كله چه د، يوې ښځې به خاوند مړ شولو، نو يوې تنګې كوټګئي كښې به داخله شوه. او د خراب قسم جامې به ئې اغوستلې، او خوشبوئ به ئې نه لږوله، تردې چه يو كال به تير شولو، بيا به ئې هغې ته څه چوپايه، خر، چيلئې يا څه مرغئې راوستله، او هغې به په هغې لاس رابنكلو، نو ډير كم به داسې كيدله، چه په كوم به هغې لاس رابنكلو، هغه به مړ نه شولو. بيا به هغه بهرته راووتله. او هغې له به خلقو پچې راوړلې، چه هغې به هغه ويشتلې، بيا به هغه واپس شوله، او كوم كار چه به ئې كولو، مثلاً خوشبوئ وغيره لږول، نو هغه به ئې كولو. مالک نه چا تپوس او كه، چه تفتض نه څه مراد دې، نو هغه اووې، ددې دا معني دي، چه هغې به هغې سره خپله څرمن مس كوله.

باب ۲۰۱: اَلْكُحْلُ لِلْحَادَّةِ.

باب ۲۰۱: د، ماتم واله ښځې د رنجو لږولو بيان.

۳۰۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّهَا اَنَّ امْرَاَةً تُوُفِّيَ زَوْجُهَا فَخَشُوْا عَيْنَيْهَا فَاَتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَاْذَنُوْهُ فِي الْكُحْلِ فَقَالَ لَا تَكَحَّلُ قَدْ كَانَتْ اِحْدٰكُنَّ تَمْكُثُ فِيْ شَرِّ اَحْلَاسِهَا اَوْ شَرِّ بَيْتِهَا فَاِذَا كَانَ حَوْلٌ فَمَرَّ كَلْبٌ رَّمَتْ

۳۰۸: آدم بن ابي اياس. شعبه. حميد بن نافع. زينب بنت ام سلمهؓ د خپلې مور نه روايت كوي، د يوې ښځې خاوند مړ شولو. خلقو سره د هغې د سترګې متعلق خطره محسوس شوه، نو هغه خلق د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او د، رانجو لږولو اجازت ئې اوغوښتلو (د هغې كُنډې ښځې د پاره). حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، رانجه مه لږوه. (ښځې به د، جاهليت زمانه كښې) د خراب قسم كور او كپړو كښې اوسيدلې. چه يو كال به تير شولو، اوهغې به پچې ويشتلې (نو عدت به ختم

بِمَغْرَةٍ فَلَا حَتَّى تَمْضِيَ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَ عَشْرٌ وَ سَمِعْتُ زَيْنَبَ ابْنَةَ اُمِّ سَلَمَةَ تُحَدِّثُ عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ مُسْلِمَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ تُحِدَّ فَوْقَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجِهَا اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا.

شولو) نو هغه دے رانجه نه لږوي، څو پورے چه څلور مياشتے او لس ورځے تيرے نه شي. او، ما د، زينب بنت ام سلمه نه د ام حبيبهؓ روايت اوريدلے دے، چه نبي صلى الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هيڅ مسلمانے ښځے له چه په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، جائز نه دي، چه په يو مړي د دريو ورځو نه زيات ماتم او کړي، بغير د خپل خاوند نه، چه په هغه دے څلور مياشتے او لس ورځے ماتم اوکړي.

۳۰۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ نُهِيْنَا اَنْ نُحِدَّ اَكْثَرَ مِنْ ثَلٰثٍ اِلَّا بِزَوْجٍ.

۳۰۹: مسدد. بشر. سلمه بن علقمه. محمد بن سيرين نه روايت کوي، ام عطيه بيان اوکه، مونږ منع کړے شو، چه د، درے ورځو نه زيات ماتم اوکړو، ماسوا د، خاوند نه چه په هغه څلور مياشتے او لس ورځے ماتم کوئے.

## بَابٌ ۲۰۲: اَلْقُسْطِ لِلْحَادَّةِ عِنْدَ الطُّهْرِ.

## باب ۲۰۲: د، حيض نه پاکيدو په وخت د، ماتم واله ښځے د قُسط استعمالولو بيان.

۳۱۰: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ كُنَّا نُنْهٰى اَنْ نُحِدَّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا وَلَا نَكْتَحِلَ وَلَا نَطَّيَّبَ وَلَا نَلْبَسَ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا اِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَّقَدْ رُخِّصَ لَنَا عِنْدَ الطُّهْرِ اِذَا اغْتَسَلَتْ اِحْدٰنَا مِنْ مَحِيْضِهَا فِيْ نُبْذَةٍ مِنْ كُسْتِ اَظْفَارٍ وَّ كُنَّا نُنْهٰى عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَآئِزِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ

۳۱۰: عبدالله بن عبدالوهاب. حماد بن زيد. ايوب. حفصه. ام عطيه نه روايت کوي، هغے اووے، مونږ به په يو مړي د، دريو ورځو نه زيات ماتم کولو نه منع کولے شو. خو په خاوند باندے څلور مياشتے او لس ورځے ماتم دے. او مونږ به رانجه نه لږول. او نه به مو خوشبوئي مږله، او نه به مو رنګ کړے کپړه اغوستله، خو هغه کپړه چه د، رنګيدو نه به مخکښ رنګ شوے وه. او کله چه به مونږ کښې څوک د حيض نه پاکه شوه. او غسل به ئے کولو، نو لږ شان د قُسط اظفار د، استعمال اجازت به ورکيدے

اَلْقُسْطُ وَالْكُسْتُ مِثْلَ الْكَافُورِ وَالْقَافُوْرِ.

شو. او مونږ به جنازې پسې د تلو نه منع کولے شو.

ف: قُسط: د يو قسم لرګي نوم، چه دوه قسمه وي، تريخ او خوږ.

بَابُ ۲۰۳: تَلْبَسُ الْحَادَّةُ ثِيَابَ الْعَصْبِ.

باب ۲۰۳: ماتم کونکے ښځه هغه کپړے اغستلے شي، چه د جوړيدونه مخکښ رنګ شوے وي.

۱ ۱ ۳: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ تُحِدَّ فَوْقَ ثَلٰثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ فَاِنَّهَا لَا تَكْتَحِلُ وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا اِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ. وَ قَالَ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَتْنَا حَفْصَةُ حَدَّثَتْنِيْ اُمُّ عَطِيَّةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَمَسَّ طِيْبًا اِلَّا اَدْنٰى طُهْرِهَا اِذَا طَهُرَتْ نُبْذَةً مِّنْ قُسْطٍ وَّ اَظْفَارٍ.

۱ ۱ ۳: فضل بن دُکين. عبدالسلام بن حرب. هشام. حفصه. ام عطيه نه روايت کوي. هغے بيان اوکه، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هيڅ يوے ښځے د پاره چه خدائے او د قيامت په ورځ ايمان لري، دا جائز نه دي چه سوا د، خاوند نه په بل چا دے د، درے ورځو نه زيات ماتم اوکړي، نه دے هغه رانجه لږوي، نه دے رنګ شوے کپړا، اغُندي، خو هغه کپړه چه د، جوړيدونه مخکښ رنګ شوے وي. او انصاري اووے، ماته هشام په واسطه د حفصه، ام عطيه روايت اوکه، نبي صلي الله عليه وسلّم منع اوفرمائيل، اونه دے خوشبوئي لږوي. خو کوم وخت چه د هغے د طهر (پاکي) وخت قريب شي، او هغه پاکه شي، نو لږ شان قُسط اظفار استعمالولے شي، (يعني دهوني اخستے شي).

بَابُ ۲۰۴: وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا اِلٰى قَوْلِهٖ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ.

باب ۲۰۴: د اللّٰه تعالٰي قول چه تاسو کښ څوک وفات شي، او بيبيانے ترے پاتے شي: بما تعملون خبير: پورے.

۲ ۱ ۳: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا شِبْلٌ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا قَالَ كَانَتْ هٰذِهِ الْعِدَّةُ تَعْتَدُّ

۲ ۱ ۳: اسحاق بن منصور. روح بن عباده. شبل. ابن ابي نجيح. مجاهد نه: آيت: والّذين يتوفون منکم: تفسير کښ روايت کوي، چه د ښځے دغه عدت مخصوص وو. بيا اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل کړلو: والذين يتوفون منکم الاية: يعني هغه

عِنْدَ اَهْلِ زَوْجِهَا وَاجِبًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ قَالَ جَعَلَ اللّٰهُ لَهَا تَمَامَ السَّنَةِ سَبْعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَّصِيَّةً اِنْ شَآءَ تْ سَكَنَتْ فِيْ وَصِيَّتِهَا وَ اِنْ شَآءَ تْ خَرَجَتْ وَهُوَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى غَيْرَ اِخْرَاجٍ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فَالْعِدَّةُ كَمَا هِيَ وَاجِبٌ عَلَيْهَا زَعَمَ ذٰلِكَ عَنْ مُّجَاهِدٍ وَّ قَالَ عَطَآءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ قَالَ عَطَآءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَسَخَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ عِدَّتَهَا عِنْدَ اَهْلِهَا فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَآءَ تْ وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى غَيْرَ اِخْرَاجٍ وَ قَالَ عَطَآءٌ اِنْ شَآءَ تِ اعْتَدَّتْ عِنْدَ اَهْلِهَا وَ سَكَنَتْ فِيْ وَصِيَّتِهَا وَ اِنْ شَآءَ تْ خَرَجَتْ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ قَالَ عَطَآءٌ ثُمَّ جَآءَ الْمِيْرَاثُ فَنَسَخَ السُّكْنٰى فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَآءَ تْ وَلَا سُكْنٰى لَهَا.

سړي چه تاسو کښې وفات شي او خپلې بيبيانې پريږدي، نو هغوي د خپلو بيبيانو لپاره وصيت کول پکار دي، چه د يو کال خرچ ورکړي، او د خپل کور نه ئې اونه کاږي. خو که هغوي خپله اوځي، نو په تاسو دے کښې هيڅ ګناه نشته، چه هغوي خپل دانست کښې ښه او کړل. مجاهد اووې، الله تعالٰي د ښځې لپاره اوه مياشتې او شل ورځې د کال پوره کولو د پاره وصيت شمار کړے دے. که غواړي، نو په وصيت پوهيدو سره دے ايساره شي، او که غواړي، نو او،دے ځي. او د اللّٰه تعالٰي د قول: غير اخراج: دغه مطلب دے، چه عدت چه څنګه په هغې واجب دے (څلور مياشتې او لس ورځې دے) دا د، مجاهد نه منقول دے. او عطاء د حضرت ابن عباسؓ قول نقل کړے دے، چه دے آيت کور والو سره د، عدت تيرول منسوخ کړے دي. په دے وجه کوم ځائے چه غواړي عدت دے تير کړي. او د، اللّٰه تعالٰي د قول: غير اخراج: مطلب عطاء دا بيان که، که غواړي، نو عدت دے کور والو سره تير کړي. او خپل وصيت کښې دے اوسي. او که غواړي نو د اللّٰه تعالٰي د قول: فلا جناح: په بنا، دے اوځي. عطاء اووې، بيا د ميراث ايت نازل شولو، نو هغې پاتې کيدل منسوخ کړل، په دے وجه کوم ځائے چه غواړي عدت دے تير کړي، او د هغې د سکونت د پاره هيڅ ځائے ضروري نه دے.

۳۱۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيٰنَ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ

۳۱۳: محمد بن کثير. سفيان. عبداللّٰه بن ابي بکر بن عمرو بن حزم. حميد بن نافع. زينب بنت ام سلمهؓ. ام حبيبهؓ بنت ابو سفيان نه روايت کوي،

بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ ابْنَةِ اَبِيْ سُفْيَانَ لَمَّا جَآءَ هَا نَعْيُ اَبِيْهَا دَعَتْ بِطِيْبٍ فَمَسَحَتْ ذِرَاعَيْهَا وَ قَالَتْ مَالِيْ بِالطِّيْبِ مِنْ حَاجَةٍ لَّوْلَا اَنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ تُحِدُّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلٰثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا.

ام حبيبهؓ تـه د هغې د پلار د مرګ خبر راغې، نو هغې خوشبو راوغوښتله، او په دواړه لاسه ئې اوموږله. او وئيلې، ماته، د، خوشبوئي هيڅ حاجت نه وو، كه ما د، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دا نه وې آوريدلې، چه هيڅ ښځې د پاره چه اللّٰه تعالٰي او د قيامت په ورځ ايمان لري، دا جائز نه دي چه سِوا د خپل خاوند نه د، درې ورځو نه زيات ماتم اوكړي. د خاوند ماتم دې څلور مياشتې او لس ورځې اوكړي.

بَابٌ ۲۰۵: مَهْرِ الْبَغِيِّ وَالنِّكَاحِ الْفَاسِدِ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِذَا تَزَوَّجَ مُحَرَّمَةً وَّهُوَ لَا يَشْعُرُ فُرِّقَ بَيْنَهُمَا وَلَهَا مَا اَخَذَتْ وَ لَيْسَ لَهَا غَيْرُهٗ ثُمَّ قَالَ بَعْدُ لَهَا صَدَاقُهَا.

باب ۲۰۵: د زناكارې ښځې ګټه (كمائى) او د نكاح فاسد بيان. او حسن اووې، كه يو، داسې ښځې سره نادانستګي كښې نكاح اوكړي، چه هغې سره نكاح حرام ده، نو د هغې دواړو مينځ كښې به جدائي راوستلې شي، او څه چه هغې واخستل، هغه د هغې دي. د هغې نه علاوه نور هيڅ نشته. بيا ورستو د، هغوي يو قول دادې، چه هغه د، مهر مثل مستحق ده.

۳۱۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ حُلْوَانِ الْكَاهِنِ وَ مَهْرِ الْبَغِيِّ.

۳۱۴: علي بن عبداللّٰه. سفيان. زهري. ابوبكر بن عبدالرحمٰن. ابو مسعود نه روايت كوي، د هغه بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د سپي قيمت او د، كاهن اجرت، او د زناكارې ښځې د ګټې (كمائى) خوړلو نه منع فرمائيلې ده.

۳۱۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَوْنُ بْنُ اَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ

۳۱۵: آدم. شعبه. عون بن ابي جحيفه. د خپل پلار نه روايت كوي، د، هغه بيان دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خال لګرونكې (خان له يا بل له) او په سود خوړونكي او خورونكي لعنت كړې دې.

وَاٰكِلَ الرِّبَا وَ مُوْكِلَهُ وَ نَهٰى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ كَسْبِ الْبَغِيِّ وَ لَعَنَ الْمُصَوِّرِيْنَ.

او د سپي قيمت، او د زناكاري، د، گټي (كمائى) خوړلو نه ئې منع فرمائيلې ده، او په مصورانو ئې لعنت كړې دې.

۶۱۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَسْبِ الْاِمَاءِ.

۶۱۳: علي بن جعد. شعبه. محمد بن حجاده. ابو حازم. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دې. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د وينزو د گټې (كمائى) خوړلو نه منع فرمائيلې ده:

بَابُ ۲۰۶: الْمَهْرِ لِلْمَدْخُوْلِ عَلَيْهَا وَ كَيْفَ الدُّخُوْلُ اَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ وَالْمَسِيْسِ.

باب ۲۰۶: د، هغې ښځې د مهربيان، چه هغې سره صحبت شوې وي، او دخول كله متحقق كيږي، يا، دخول يا، مسيس نه مخكښ هغې له طلاق وركړي، نو څه حكم دې.

۶۱۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا اِسْمَاعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ قَذَفَ امْرَاَتَهُ فَقَالَ فَرَّقَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَخَوَىْ بَنِي الْعَجْلَانِ وَ قَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَاَبَيَا فَقَالَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَاَبَيَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا قَالَ اَيُّوْبُ فَقَالَ لِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ فِى الْحَدِيْثِ شَيْءٌ لَا اَرَاكَ تُحَدِّثُهُ قَالَ قَالَ الرَّجُلُ مَالِيْ قَالَ لَا مَالَ لَكَ اِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَقَدْ دَخَلْتَ بِهَا وَ اِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَهُوَ اَبْعَدُ

۶۱۷: عمرو بن زراره. اسماعيل. ايوب. سعيد بن جبير نه روايت كوي، ما د، ابن عمرؓ نه تپوس اوكه، كه يو سړې په خپلې ښځې تهمت اولږوي، نو هغه اووې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د بني عجلان د يو سړي او ښځې په مينځ كښ جدائي اوكړله، او وې فرمائيل، اللّٰه پوهيږي چه تاسو كښ يو كس ضرور دروغجن دې، نو تاسو كښ كوم يو توبه كوي. هغوي انكار اوكه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي دواړو كښ جدائي راوستله. د ايوب بيان دې، ماته عمرو بن دينار دې حديث كښ بعضې خبرې داسې بيان كړې دي، چه هغه تانه دي بيان كړې. هغه بيان اوكه، چه هغې سړي اووې، خما مال. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تاته مال نه شي دركيدې، كه ته رينتينې ئې، نو هغې سره دې صحبت كړې دې. اوكه دروغجن ئې.

مِنْكَ.

باب ٢٠٧: اَلْمُتْعَةِ الَّتِيْ لَمْ يُفْرَضْ لَهَا لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ وَّ قَوْلِهٖ وَ لِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ وَلَمْ يَذْكُرِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِى الْمُلَاعَنَةِ مُتْعَةً حِيْنَ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا.

٣١٨: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ حِسَابُكُمَا عَلَى اللّٰهِ اَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَّا سَبِيْلَ لَكَ عَلَيْهَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَالِيْ قَالَ لَا مَالَ لَكَ اِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَ اِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذَاكَ اَبْعَدُ وَ اَبْعَدُ لَكَ مِنْهَا.

نو بيا خو دے نور هم حق نشته.

باب ٢٠٧: د' هغے ښځے د متعه بيان' چه د' هغے مهر نه وي مقرر شوے' ځکه چه اللّٰه تعالىٰ اوفرمائيل' تاسو باندے هيڅ حرج نشته' كه تاسو ښځو له طلاق وركړے' داسے حال كښ' چه تاسو هغوي سره صحبت نه وي كړے. او د اللّٰه تعالىٰ قول چه طلاقو شوو ښځو د پاره د قاعدے مطابق فائده اوچتول دي. په متقيانو حق دے' دغه شان اللّٰه تعالىٰ ستاسو د پاره خپلے نښے بيانوي' چه شايد تاسو پوه شے. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لعان كښ د' متعه ذكر نه دے كړے' هر كله چه هغے له د هغے خاوند طلاق وركړے وو.

٣١٨: قتيبه بن سعيد. سفيان. عمرو. سعيد بن جبير. حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لعان كونكو ته اوفرمائيل' ستاسو د' دواړو حساب خو به اللّٰه اخلي' تاسو دواړو كښ يو دروغجن دے. نو اوس په دے ښځه ستا هيڅ حق نشته. هغه عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' ځما مال' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' تاته مال نه شي دركيدے. كه ته ريښتينے ئے' نو د هغے د شرم ګاه نه دے فايده اخستے ده. اوكه ته دروغجن ئے' نو بيا خو بدرجهٔ اولىٰ ته د هغے مستحق نه ئے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝

# كِتَابُ النَّفَقَاتِ

باب ٢٠٨: فَضْلِ النَّفَقَةِ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝

# (د خرچ كولو بيان)

باب ٢٠٨: په بال و بچ د خرچ كولو د فضيلت

عَلَى الْاَهْلِ وَ يَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ قُلِ الْعَفْوَ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَ قَالَ الْحَسَنُ الْعَفْوُ الْفَضْلُ.

بيان. او خلق تانه تپوس كوي' چه څه خرچ كړي' ورته اووايه' چه د' ضرورت نه زياتي مال' دغه شان الله تعالیٰ ستاسو د پاره خپلے نښے بيانوي' چه شايد' تاسو دنيا او اخرت كښ غور اوكړئے' او حسن اووے' چه عفو نه مراد زائد مال دے.

۳۱۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ الْاَنْصَارِيَّ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ الْاَنْصَارِيِّ فَقُلْتُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَنْفَقَ الْمُسْلِمُ نَفَقَةً عَلٰى اَهْلِهٖ وَهُوَ يَحْتَسِبُهَا كَانَتْ لَهٗ صَدَقَةً.

۳۱۹: ادم بن ابي اياس. شعبه. عدي بن ثابت. عبدالله بن يزيد انصاري. ابو مسعود انصاري نه روايت كوي (عبدالله بن يزيد اووے' ما د ابو مسعود نه تپوس اوكه) ايا د حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوے' هغه اووے' او. د حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوم' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هر كله چه مسلمان په خپله ښځه او بچو د ثواب په نيت خرچ كوي' نو هغه ورله صدقه شي.

۳۲۰: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ اَنْفِقْ يَا ابْنَ اٰدَمَ اُنْفِقْ عَلَيْكَ.

۳۲۰: اسماعيل. مالک. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے ابن ادم' خرچ كوه' زه به ستا په ذات خرچ كوم.

۳۲۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلسَّاعِيْ عَلَى الْاَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِيْنِ كَالْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوِ الْقَائِمِ اللَّيْلَ الصَّائِمِ النَّهَارَ.

۳۲۱: يحيي بن قزعه. مالک. ثور بن زيد. ابوالغيث. ابوهريرهؓ نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' كُنډو او مسكينانو د پاره محنت او مزدوري كونكے' د الله په لار كښ د جهاد كونكي يا' د شپے عبادت كونكي او' د' ورځے د روژے نيونكي په شان دے.

۳۲۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيمَ عَنْ عَامِرِ ابْنِ سَعْدٍ عَنْ سَعْدٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ وَ اَنَا مَرِيْضٌ بِمَكَّةَ فَقُلْتُ لِيْ مَالٌ اُوْصِيْ بِمَالِيْ كُلِّهٖ قَالَ لَا قُلْتُ فَالشَّطْرُ قَالَ لَا قُلْتُ فَالثُّلُثُ قَالَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ اَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَدَعَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ فِيْ اَيْدِيْهِمْ وَ مَهْمَا اَنْفَقْتَ فَهُوَ لَكَ صَدَقَةٌ حَتّٰى اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا فِيْ فِيْ امْرَاَتِكَ وَ لَعَلَّ اللّٰهَ يَرْفَعُكَ يَنْتَفِعُ بِكَ نَاسٌ وَ يُضَرُّ بِكَ اٰخَرُوْنَ.

۳۲۲: محمد بن كثير. سفيان. سعد بن ابراهيم. عامر بن سعد. سعد نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم به مكه كښې خما پښتنه كوله، داسې حال كښې چه زه ناروغه ووم. ما عرض اوكه، ما سره مال دې. ايا زه د خپل ټول مال وصيت اوكړم حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه. ما تپوس اوكه، نيم مال كښې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه. ما اووې، ثلث كښې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ثلث كښې كولې شې، اګر كه دا هم زيات دې. اووې فرمائيل. خپل وارثان مالدار پريښودل ستا د پاره ددې نه بهتر دي، چه ته هغوي داسې حالت كښې پريږدې چه هغوي تنګدست وي. او د خلقو مخكښې سوال كولو د پاره لاس غزولې ګرځي. او ته چه د هغوي په ذات څه خرچ كوې، هغه ستا د پاره صدقه ده، ترڅو كه كومه نوړئ (لقمه) چه ته د خپلې بي بي په خوله كښې اچوې، او شايد الله ستا عمر اوږد كړي، چه تانه يو قوم ته فايده وي، او بل قوم يعني كافرو ته نقصان.

باب ۲۰۹: وُجُوْبِ النَّفَقَةِ عَلَى الْاَهْلِ وَالْعِيَالِ.

باب ۲۰۹: اهل و عيال له خرچ وركول واجب دي.

۳۲۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَفْضَلُ الصَّدَقَةِ مَا تَرَكَ غِنًى وَّالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنَ الْيَدِ السُّفْلٰى وَابْدَاْ بِمَنْ تَعُوْلُ تَقُوْلُ

۳۲۳: عمرو بن حفص. حفص. اعمش. ابو صالح. ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د ټولو نه بهتره صدقه هغه ده، چه د صدقه وركونكي مالداري قائمه پاتې شي. او د، پاسه لاس د، لاندې لاس نه بهتر دې. او د خپلو رشته دارو نه، ابتداء كوه. او آيا دا خبره بنه

الْمَرْأَةُ إِمَّا أَنْ تُطْعِمَنِيْ وَ إِمَّا أَنْ تُطَلِّقَنِيْ وَ يَقُوْلُ الْعَبْدُ أَطْعِمْنِيْ وَاسْتَعْمِلْنِيْ وَ يَقُوْلُ الْإِبْنُ أَطْعِمْنِيْ إِلٰى مَنْ تَدَعُنِيْ فَقَالُوْا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ سَمِعْتَ هٰذَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا هٰذَا مِنْ كِيْسِ أَبِيْ هُرَيْرَةَ.

ده، چه ښځه اووائي، يا خو ماله ډوډئ راکوه، يا طلاق راکړه. غلام اووائي، ما باندې ډوډئ خوروه، او مانه کار اخله. او ځوي اووائي. ما باندې ډوډئ خوروه. ما چا ته پرېږدې. خلقو تپوس اوکه. اے ابوهريره، تا دا، د، حضور صلي الله عليه وسلم نه اوريدلے دي، هغه اووے، نه، ابوهريره رضي الله عنه د خپل طرف نه وائي.

٣٢٤: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ مُسَافِرٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَّابْدَأْ بِمَنْ تَعُوْلُ.

٣٢٤: سعيد بن عفير. ليث. عبدالرحمن بن خالد بن مسافر. ابن شهاب. ابن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بهتره صدقه هغه ده، چه هغے سره د صدقه ورکونکي مال داري قائمه پاتے شي. او شروع د هغه چا نه کوه چه ستا پرورش کښې دي.

باب ٢١٠: حَبْسِ نَفَقَةِ الرَّجُلِ قُوْتَ سَنَةٍ عَلٰى أَهْلِهِ وَ كَيْفَ نَفَقَاتُ الْعِيَالِ.

باب ٢١٠: د، خپل اهل و عيال د پاره د سړي د، يو کال خرچ جمع کول، او د، اهل و عيال خرچ څنګه دے.

٣٢٥: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ قَالَ قَالَ لِيْ مَعْمَرٌ قَالَ لِيَ الثَّوْرِيُّ هَلْ سَمِعْتَ فِي الرَّجُلِ يَجْمَعُ لِأَهْلِهِ قُوْتَ سَنَتِهِمْ أَوْ بَعْضِ السَّنَةِ قَالَ مَعْمَرٌ فَلَمْ يَحْضُرْنِيْ ثُمَّ ذَكَرْتُ حَدِيْثًا حَدَّثَنَاهُ ابْنُ شِهَابٍ الزُّهْرِيُّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ عَنْ عُمَرَ رضي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبِيْعُ نَخْلَ

٣٢٥: محمد بن سلام. وکيع. ابن عيينه. معمر بيان کوي. مانه ثوري تپوس اوکه، آيا تا د هغے سړي باره کښې څه آوريدلے دي، چه د، خپل اهل و عيال د يو کال، يا د، دے نه د، څه کم د پاره خرچ جمع کړي، معمر اووے. ماته هيڅ ياد رانغلل، بيا ما هغه حديث بيان که، چه مونږ ته ابن شهاب، زهري په واسطه د، مالک بن اوس، حضرت عمر رضي الله تعالي عنه نه روايت که، چه نبي صلي الله عليه وسلم به د بني نضير اونے خرڅولے. او د خپل

بَنِي النَّضِيرِ وَ يَحْبِسُ لِأَهْلِهِ قُوْتَ سَنَتِهِمْ.

۳۲۶: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَالِكُ بْنُ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ وَ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ذَكَرَ لِي ذِكْرًا مِنْ حَدِيثِهِ فَانْطَلَقْتُ حَتَّى دَخَلْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ مَالِكٌ انْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى عُمَرَ إِذْ أَتَاهُ حَاجِبُهُ يَرْفَأُ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِي عُثْمَانَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدٍ يَسْتَأْذِنُونَ قَالَ نَعَمْ فَأَذِنَ لَهُمْ قَالَ فَدَخَلُوا وَ سَلَّمُوا فَجَلَسُوا ثُمَّ لَبِثَ يَرْفَأُ قَلِيلًا فَقَالَ لِعُمَرَ هَلْ لَكَ فِي عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ فَأَذِنَ لَهُمَا فَلَمَّا دَخَلَا سَلَّمَا وَ جَلَسَا فَقَالَ عَبَّاسٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ بَيْنِي وَ بَيْنَ هٰذَا فَقَالَ الرَّهْطُ عُثْمَانُ وَ أَصْحَابُهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ بَيْنَهُمَا وَ أَرِحْ أَحَدَهُمَا مِنَ الْآخَرِ فَقَالَ عُمَرُ اتَّئِدُوا أَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ

اهل و عیال د پاره به ئې د یو کال خوراک ایښودلو.

۳۲۶: سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. مالک بن اوس بن حدثان نه روایت کوي. محمد جبیر ماته د یو حدیث ذکر اوکه، زه د هغې د تحقیق د پاره روان شوم. تردې چه مالک بن اوس ته اورسیدم، ما د هغه نه تپوس اوکه، نو مالک اووې زه لاړم، تردې چه حضرت عمرؓ ته اورسیدم. د هغه دربان "یرفا" هغه ته اووې. چه حضرت عثمان، عبدالرحمٰن، زبیر او سعد تاسو سره د ملاقات اجازت غواړي، آیا تاسو هغوي ته اجازت ورکوئې. حضرت عمرؓ اووې، او. (راځي دې) نو هغوي ته د ورتلو اجازت ورکړې شو. هغه خلق دننه راغلل. سلام ئې اوکه، کیناستل. یرفا، لږ ساعت ایسار وو. بیا حضرت عمرؓ ته ئې عرض اوکه، ایا تاسو حضرت عليؓ، او حضرت عباسؓ ته اجازت ورکوئې، وئیلې او. نو دې دواړو ته ئې اجازت ورکه، او دا خلق هم دننه راغلل. او سلام کولو نه پس کیناستل. حضرت عباسؓ اوفرمائیل اې امیر المؤمنین، خما او د ده مینځ کښې فیصله اوکړئې. عثمان او د هغه ملګرو هم اووې، او امیر المؤمنین، د دوي مینځ کښې فیصله اوکړئې، او د یو بل نه ئې خلاص کړې. حضرت عمرؓ اوفرمائیل، بې صبري مه کوئې، زه تاسو نه د خدائې په قسم تپوس کوم، چه د هغه حکم سره اسمان او ځمکه قائم دي، ایا رسول اللّٰه صلي الله علیه وسلّم نه دي فرمائیلي، چه زمونږ د مال به هیڅوک وارث نه وي، څه چه مونږ پریږدو، هغه صدقه ده، ځنې خلقو اووې، او، فرمائیلې دي. نو

تَـقُـوْمُ السَّمَـآءُ وَالْاَرْضُ هَـلْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهُ قَالَ الرَّهْطُ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ فَاَقْبَلَ عُمَرُ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍؓ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذٰلِكَ قَالَ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ قَالَ عُمَرُ فَاِنِّيْ اُحَدِّثُكُمْ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ خَصَّ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْمَالِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهٖ اَحَدًا غَيْرَهُ قَالَ اللّٰهُ مَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ هٰذِهٖ خَالِصَةً لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا احْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَلَا اسْتَأْثَرَ بِهَا عَلَيْكُمْ لَقَدْ اَعْطَاكُمُوْهَا وَ بَثَّهَا فِيْكُمْ حَتّٰى بَقِيَ مِنْهَا هٰذَا الْمَالُ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى اَهْلِهٖ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هٰذَا الْمَالِ ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ بِذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيَاتَهُ اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمُوْنَ ذٰلِكَ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ لِعَلِيٍّ وَّ

حضرت عمرؓ، حضرت عليؓ او عباسؓ ته متوجه شو. او وئيلے، زه تاسو دواړو ته د، الله واسطه درکوم، او تپوس درنه کوم، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم دانه وو فرمائيلے. نو دواړو اقرار اوکه، چه، او، فرمائيلے ئے وو. حضرت عمرؓ اووے، زه به تاسوته ددے حقيقت بيان کړم. الله تعالي هغے مال کښ رسول الله صلي الله عليه وسلّم مخصوص کړلو. او د، حضور صلي الله عليه وسلّم نه علاوه هيڅ نبي ته ئے دا، امتياز نه وو عطاء کړے. اللّٰه تعالي اوفرمائيل: ما افآء اللّٰه علٰى رسولهٖ منهم: الخ. دا حکم خاص د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د پاره وو، په خدائے مِ دے قسم وي، داسے ئے نه دي کړے، چه تاسو ئے پريښودلے ئے، او ځان د پاره ئے جمع که، او نه ئے دے کښ په تاسو چاله ترجيح ورکړے ده. ددے نه به ئے تاسوله درکول. اوپه تاسو به ئے خرچ کولو، تردے چه هغے کښ دا مال بچ شو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم به د،دے مال نه د خپل اهل و عيال د پاره د، يو کال خرچ اخستلو. او څه چه به باقي پاتے شو، هغه به ئے د خدائے په لار کښ خرچ کول. رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم تهول عمر په دے کار بند وو (يعني عمل ئے پرے کولو). زه تاسوته د الله واسطهٔ درکوم، او درته وائم، آيا تاسو ته دا معلومه ده. خلقو اووے، او. بيا حضرت عليؓ او عباسؓ طرف ته متوجه شو، ورته ئے اوفرمائيل، آيا تاسو دواړو ته دا معلومه ده (چه ذکر ئے اوشو) نو دواړو اووے، او. بيا الله تعالي خپل نبي واخستلو، نو ابوبکرؓ اوفرمائيل، زه د رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم ځانشين يم، او په دے هغه قبضه اوکړه،

عَبَّاسٍ اَنْشُدُ كُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ ذٰلِكَ قَالَ نَعَمْ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ اَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَهَا اَبُوْ بَكْرٍ يَعْمَلُ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ بِهٖ فِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمَا حِيْنَئِذٍ وَاَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ تَزْعُمَانِ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَذَا وَ كَذَا وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّهٗ فِيْهَا صَادِقٌ بَارٌّ رَّاشِدٌ تَابِعٌ لِّلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ اَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ اَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ فَقَبَضْتُهَا سَنَتَيْنِ اَعْمَلُ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ ثُمَّ جِئْتُمَانِيْ وَ كَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ وَّ اَمْرُكُمَا جَمِيْعٌ جِئْتَنِيْ تَسْاَلُنِيْ نَصِيْبَكَ مِنِ ابْنِ اَخِيْكَ وَ اَتٰى هٰذَا يَسْاَلُنِيْ نَصِيْبَ امْرَاَتِهٖ مِنْ اَبِيْهَا فَقُلْتُ اِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهٗ اِلَيْكُمَا عَلٰى اَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَ مِيْثَاقَهٗ لَتَعْمَلَانِ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِمَا عَمِلَ بِهٖ فِيْهَا اَبُوْ بَكْرٍ وَّ بِمَا عَمِلْتُ بِهٖ فِيْهَا مُنْذُ وَلِيْتُهَا وَ اِلَّا فَلَا تُكَلِّمَانِيْ فِيْهَا فَقُلْتُمَا ادْفَعْهَا اِلَيْنَا بِذٰلِكَ فَدَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ اَنْشُدُكُمْ

او رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم چه به څنګه د دے مصرف كولو، دغه شان به هغه هم دے مصرف كښې خرچ كولو. او تاسو دواړه هغه وخت موجود وئے. بيا حضرت عليؓ او عباسؓ ته متوجه شو. ورته ئے اوفرمائيل. تاسو دواړو ګمان اوكه، چه ابوبكرؓ داسے داسے وو، (يعني هغه مونږ ته حق رانه كه) حالانكه الله پوهيږي، چه هغه دے كښې ريښتينے او نيكوكار، وو. په حقه وو. او د حق پيروي كونكے وو. بيا الله تعالیٰ ابوبكرؓ واخستلو (يعني وفات شولو) نو ما اووے، زه د، رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم او ابوبكرؓ جانشين يم. ما دا (مال) دوه كاله خپلے قبضه كښې اوساتلو. او دا (مال) مِ هغے مصرف كښې خرچ كولو، كوم كښې چه به رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم او ابوبكرؓ خرچ كولو. بيا تاسو دواړه ماله راغلئے. او تاسو دواړه يو قسم خبره كوئے، او ستاسو د، دواړو يوه معامله ده. ته ماله د خپل ورور د خوي د مال نه د حصے اخستلو د پاره راغلے، او هغه (يعني عليؓ) د خپلے ښځے د پلار د، مال نه حصه اخستلو له راغے، ما اووے. كه تاسو غواړئے، نو زه تاسو دواړو ته دا، دركوم، په دے شرط چه تاسو به الله سره په كړے عهد او وعده قائم اوسئے. او دا (مال) به هغے مصرف كښې خرچ كوئے، چه هغے كښې د، اللّٰه رسول او حضرت ابوبكرؓ او، ما (عمرؓ) خرچ كړے دے، د، كوم وخت نه چه ما په دے قبضه كړے ده، او كه داسے نه كوئے. نو بيا ماته ددے متعلق هيڅ مه وائے. نو تاسو دواړو اووے، چه په دے شرط دا مونږ ته راكړه، زه تاسو دواړو ته د الله واسطه دركوم، او تپوس درنه كوم، آيا ما

بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا اِلَيْهِمَا بِذٰلِكَ فَقَالَ الرَّهْطُ نَعَمْ قَالَ فَاَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ قَالَا نَعَمْ قَالَ اَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّيْ قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَالَّذِيْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِيْ فِيْهِمَا قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ فَاِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَادْفَعَاهَا اِلَيَّ فَاَنَا اَكْفِيْكُمَاهَا.

تاسو ته (په دے شرط دا مال) درکړے دے' که نه. خلقو اووے' او. بيا حضرت علي رضی او عباس رض ته متوجه شو' او وے فرمائيل' آيا ما تاسو ته درکړے دے که نه. دواړو اووے. او. بيائے اوفرمائيل' (اوس) تاسو د'دے نه علاوه ما نه څه فيصله غواړئے' قسم دے په هغه ذات' چه د هغه حکم سره آسمان او ځمکه قائم دي' زه د' دے نه علاوه هيڅ فيصله کونکے نه يم' تردے چه قيامت راشي. که تاسو د'دے شرط د پوره کولو نه عاجزه ئے' نو تاسو ئے ماته (واپس) راکړئے. زه به ئے خپله نګراني کوم.

## باب ۲۰۱۱: وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى

وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ اِلٰى قَوْلِهٖ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ وَ قَالَ وَ حَمْلُهٗ وَ فِصَالُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا وَ قَالَ اِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهٗ اُخْرٰى لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ اِلٰى قَوْلِهٖ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا وَ قَالَ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ نَهَى اللّٰهُ اَنْ تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَ ذٰلِكَ اَنْ تَقُوْلَ الْوَالِدَةُ لَسْتُ مُرْضِعَتَهٗ وَ هِيَ اَمْثَلُ لَهٗ غِذَآءً وَ اَشْفَقُ عَلَيْهِ وَ اَرْفَقُ بِهٖ مِنْ غَيْرِهَا فَلَيْسَ لَهَا اَنْ تَاْبٰى بَعْدَ اَنْ يُّعْطِيَهَا مِنْ نَّفْسِهٖ مَا جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ لَيْسَ لِلْمَوْلُوْدِ لَهٗ اَنْ يُّضَارَّ بِوَلَدِهٖ وَالِدَتَهٗ فَيَمْنَعَهَا اَنْ تُرْضِعَهٗ ضِرَارًا لَهَا

## باب ۲۰۱۱: د' الله تعالٰي فرمائيل'

او ميندے دے خپلو بچو ته دوه کاله پوړے پئے ورکوي. دا هغه چا د پاره دي' چه د' رضاعت موده پوره کول غواړي. اُووے فرمائيل' د' حمل او پئے پريښودو موده ديرش مياشتے ده. او وے فرمائيل: و ان تعاسرتم فسترضع له اخرٰى لينفق ذوسعةٍ من سعته ومن قدرَ عليهِ رزقهٗ. بعد عسريُسرًا: پورے. او يونس په واسطه د زهري روايت اوکه. الله منع فرمائيلے ده' چه مورته د' هغے د' بچي په سبب تکليف اورسولے شي' د' دے صورت دا وي' چه مور دا' اونه وائي چه زه به ورله پئے نه ورکوم' حالانکه د' هغے پئے غذا د پاره ډير مناسب دي' او' هغه په بچي زياته مهربانه' او د' نورو خلقونه زياته همدرده ده. په دے وجه هغے د پاره مناسب نه دي' چه د' پيؤ ورکولونه انکار اوکړي' هر کله چه د هغے خاوند د هغے هغه حق ادا کوي' چه الله په هغه فرض کړے دے. اونه پلار ته اختيار شته چه د بچي په سبب د هغه مور ته تکليف اورسوي' په دے طور' که هغه په بلے بنځے پئے ورکول

اِلٰى غَمُرِهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيُهِمَا اَنُ يَّسُتَرُضِعَا عَنُ طِيُبِ نَفُسِ الُوَالِدِ وَالُوَالِدَةِ فَاِنُ اَرَادَا فِصَالًا عَنُ تَرَاضٍ مِنُهُمَا وَ تَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيُهِمَا بَعُدَ اَنُ يَّكُوُنَ ذٰلِكَ عَنُ تَرَاضٍ مِنُهُمَا وَ تَشَاوُرٍ فِصَالُهُ فِطَامُهُ.

غواړي، نو هغے ته تكليف رسولو د پاره د هغے نه ئے منع كړي. كه مور پلار په خوشحالي د، بلے ښځے په ذريعه پئيے وركول غواړي، نو هيڅ حرج نشته (نو الله تعالىٰ اوفرمائيل) كه دواړه خپلو كښې په رضامندي او مشوره د پيونه ئے خلاصول غواړي. او فصال نه مراد د، پيۍ نه خلاصول (جدا كول) دي.

بَاب ۲۱۲: نَفُقَةِ الُمَرُاَةِ اِذَا غَابَ عَنُهَا زَوُجُهَا وَ نَفُقَةِ الُوَلَدِ.

باب ۲۱۲: كه د، يوے ښځے خاوند غائب شي، نو د، هغے ښځے او د بچي د خرچ بيان.

۳۲۷: حَدَّثَنَا ابُنُ مُقَاتِلٍ اَخُبَرَنَا عَبُدُ اللّٰهِ اَخُبَرَنَا يُوُنُسُ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ اَخُبَرَنِىُ عُرُوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنُهَا قَالَتُ جَآءَ تُ هِنُدُ بِنُتِ عُتُبَةَ فَقَالَتُ يَا رَسُوُلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفُيٰنَ رَجُلٌ مِّسِيُكٌ فَهَلُ عَلَىَّ حَرَجٌ اَنُ اُطُعِمَ مِنَ الَّذِىُ لَهُ عِيَالَنَا قَالَ لَا اِلَّا بِالُمَعُرُوُفِ. حَدَّثَنَا يَحُيٰى حَدَّثَنَا عَبُدُ الرَّزَّاقِ عَنُ مَعُمَرٍ عَنُ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعُتُ اَبَا هُرَيُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَنُفَقَتِ الُمَرُاَةُ مِنُ كَسُبِ زَوُجِهَا مِنُ غَيُرِ اَمُرِهٖ فَلَهُ نِصُفُ اَجُرِهٖ.

۳۲۷: ابن مقاتل. عبدالله. يونس. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، د هغے بيان دے، هند بنت عتبه راغله، او عرض ئے اوكه، يا رسول الله (ځما خاوند) ابوسفيان يو بخيل سړے دے. كه زه د هغه د مال نه په خپلو بچو خوروم، نو څه حرج شته. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، نه، په شرط د، دے چه د، دستور مطابق وي. يحيٰي. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كه يوه ښځه د خپل خاوند د، اجازت نه بغير خرچ اوكړي نو هغے ته به د هغے صرف نيم ثواب رسي.

باب ۲۱۳: عَمَلِ الُمَرُاَةِ فِىُ بَيُتِ زَوُجِهَا.

باب ۲۱۳: د، ښځے د خپل خاوند په كور كښې د كار كولو بيان.

۳۲۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحُيٰى عَنُ شُعُبَةَ

۳۲۸: مسدد. يحيٰي. شعبه. حكم. ابن ابي ليلٰي. حضرت عليؓ نه روايت كوي، بي بي فاطمه رضي

قَالَ حَدَّثَنِيُ الْحَكَمُ عَنِ ابْنِ اَبِيُ لَيْلٰى حَدَّثَنَا عَلِيٌّ اَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَشْكُوُ اِلَيْهِ مَا تَلْقٰى فِيُ يَدِهَا مِنَ الرَّحٰى وَ بَلَغَهَا اَنَّهُ جَاءَهُ رَقِيُقٌ فَلَمْ تُصَادِفْهُ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِعَائِشَةَ فَلَمَّا جَآءَ اَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ قَالَ فَجَآءَنَا وَقَدُ اَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا نَقُوْمُ فَقَالَ عَلٰى مَكَانِكُمَا فَجَآءَ فَقَعَدَ بَيْنِيُ وَ بَيْنَهَا حَتّٰى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلٰى بَطْنِيُ فَقَالَ اَلَا اَدُلُّكُمَا عَلٰى خَيْرٍ مِّمَّا سَاَلْتُمَا اِذَا اَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا اَوْ اَوَيْتُمَا اِلٰى فِرَاشِكُمَا فَسَبِّحَا ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ احْمَدَا ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ كَبِّرَا اَرْبَعًا وَّ ثَلٰثِيْنَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمَا مِنْ خَادِمٍ.

اللّٰه عنها د نبي عليه السلام په خدمت کښ د ميچن کولو په وجه چه لاسونه ئې پوڅلے شوي وو، د شکايت د پاره راغله، هغې ته معلومه شوې وه، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له غلامان راغلي دي. ليکن حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ئې ملاقات اونه شولو. نو هغې بي بي عائشې ته دا بيان اوکه. کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم (کورته) تشريف راوړلو. نو بي بي عائشې ورته هغسې بيان اوکه. د حضرت عليؓ بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ له راغې، داسې حال کښ چه مونږ اوده کېدو د پاره بستره ته ورغلي وو. مونږ پاسيدل اوغوښتل، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، په ځپل ځائې اوسئې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم راغې. او ځما او د فاطمېؓ په مينځ کښ کيناستلو، تر دې چه ما په خيټه د، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د، دواړو پښو مبارکو يخوالې محسوس که. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا زه تاسو دواړو ته د، دې نه (يعني د خدمتګار غوښتلو نه) بهتر څيز اونه ښايم، چه تاسو مانه غوښتلې دې. (او هغه دا چه) کله تاسو خپلې بسترې ته ځئې، نو درې ديرش ځله سبحان اللّٰه، درې ديرش ځله الحمدللّٰه، او څلور ديرش ځله اللّٰه اکبر وائئې. دا (کلمات) ستاسو د پاره د خادم نه بهتر دي.

ف: دغسې هر ضرورتمند د، دې کلماتونه دغه فائده اخستلې شي. اللّٰه پاک دې ځمونږ هم د، دې مبارکو کلماتو فيوضات نصيب کړي. اللّٰهم امين.

## باب ۲۱۴: خَادِمِ الْمَرْاَةِ.

## باب ۲۱۴: ښځې د پاره د، خادم ساتلو بيان.

۳۲۹: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ

۳۲۹: حميدي. سفيان. عبيداللّٰه بن ابي يزيد.

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ يَزِيْدَ سَمِعَ مُجَاهِدًا سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ أَبِيْ لَيْلٰى يُحَدِّثُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَقَالَ أَلَا أُخْبِرُكِ مَا هُوَ خَيْرٌ لَكِ مِنْهُ تُسَبِّحِيْنَ اللّٰهَ عِنْدَ مَنَامِكِ ثَلَاثًا وَّ ثَلَاثِيْنَ وَ تَحْمَدِيْنَ اللّٰهَ ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ تُكَبِّرِيْنَ اللّٰهَ أَرْبَعًا وَّ ثَلٰثِيْنَ ثُمَّ قَالَ سُفْيَانُ إِحْدٰهُنَّ أَرْبَعٌ وَّ ثَلٰثُوْنَ فَمَا تَرَكْتُهَا بَعْدُ قِيْلَ وَلَا لَيْلَةَ صِفِّيْنَ قَالَ وَلَا لَيْلَةَ صِفِّيْنَ.

مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي. حضرت عليؓ بن ابي طالب نه روايت كوي' بي بي فاطمےؓ د نبي صلي الله عليه وسلّم نه يو خادم غوښتلو د پاره حضور صلي الله عليه وسلّم له راغله' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' آيا زه درته هغه څيز اونه ښايم' چه ستا د پاره د هغے نه بهتر وي (كوم چه ته غواړے يعني خادم) او هغه دا چه د اوده كيدو په وخت درے ديرش ځله سبحان اللّٰه' درے ديرش ځله الحمد للّٰه او څلور ديرش ځله الله اكبر وايه. بيا سفيان اووے. چه هغے كښ دِ يو' څلور ديرش ځله اووائي. حضرت عليؓ اوفرمائيل' ما دا هيڅ كله نه دي پريښے. چا تپوس او كه. د صفين په شپه دے هم نه دي پريښے. وئيلے' د' صفين په شپه مِ هم نه دي پريښے.

## بَاب ۵ ۲۱: خِدْمَةِ الرَّجُلِ فِيْ أَهْلِهٖ.

باب ۲۱۵: د' سړي د' خپل اهل و عيال د' خدمت كولو بيان.

۰ ۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِي الْبَيْتِ قَالَتْ كَانَ فِيْ مِهْنَةِ أَهْلِهٖ فَإِذَا سَمِعَ الْأَذَانَ خَرَجَ.

۰ ۳۳: محمد بن عرعره. شعبه. حكم بن عتيبه. ابراهيم. اسود بن يزيد نه روايت كوي' د هغه بيان دے' ما د' بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكه' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به خپل كور كښ څه كار كولو' هغے اووے' د خپل اهل و عيال' كار. بيا چه اذان به ئے واوريدلو' نو بهر ته به ئے تشريف يوړلو.

## بَاب ۲۱۶: إِذَا لَمْ يُنْفِقِ الرَّجُلُ فَلِلْمَرْأَةِ أَنْ تَأْخُذَ بِغَيْرِ عِلْمِهٖ مَا يَكْفِيْهَا وَ وَلَدَهَا بِالْمَعْرُوْفِ.

باب ۲۱۶: كه سړے خرچ ورنه كړي نو ښځے ته اختيار دے' چه د هغه په لا علمي كښ' په قدر' د ضرورت دومره واخلي' چه د هغے دبچو د پاره كافي وي.

۱۳۳۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ اَبِیْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفْيٰنَ رَجُلٌ شَحِيْحٌ وَ لَيْسَ يُعْطِيْنِیْ مَا يَكْفِيْنِیْ وَ وَلَدِیْ اِلَّا مَا اَخَذْتُ مِنْهُ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ فَقَالَ خُذِیْ مَا يَكْفِيْكِ وَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ.

۱۳۳۱: محمد بن مثني. يحيٰي. هشام د خپل پلار نه. هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. د هغے بيان دے، چه هند بنت عتبه عرض اوكه، يا رسول الله (خما خاوند) ابو سفيان يو بخيل سړے دے. او ماله دومره نه راكوي، چه خما د بچو د پاره كافي وي، خو هغه چه زه د هغے نه د هغه په لاعلمي كښ اخلم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، څومره چه ستا د بچو د پاره كافي وي، د هغے نه، په قدر د، ضرورت اخله.

باب۲۱۷: حِفْظِ الْمَرْاَةِ زَوْجَهَا فِیْ ذَاتِ يَدِهٖ وَالنَّفَقَةِ.

باب۲۱۷: د، ښځے د خپل خاوند د، مال حفاظت كول، او د نفقے بيان.

۱۳۳۲: حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوٗسٍ عَنْ اَبِيْهِ وَ اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ نِسَآءٍ رَكِبْنَ الْاِبِلَ نِسَآءُ قُرَيْشٍ وَ قَالَ الْاٰخَرُ صَالِحُ نِسَآءِ قُرَيْشٍ اَحْنَاهُ عَلٰى وَلَدٍ فِیْ صِغَرِهٖ وَ اَرْعَاهُ عَلٰى زَوْجٍ فِیْ ذَاتِ يَدِهٖ وَ يُذْكَرُ عَنْ مُعٰوِيَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۳۳۲: علي بن عبدالله. سفيان. ابي طاوس. طاوس او. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، په سورلي كونكو ښځو كښ بهترے ښځے د قريشو دي. په دويم وارئے دا هم اوفرمائيل، چه د قريشو ښځے صالحے (بهترے) دي، په خپلو بچو د هغوي ماشومتوب كښ مهربانے دي، اود خپل خاوند د مال حفاظت كونكي دي. او په واسطه د معاويهؓ او، ابن عباسؓ هم نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا منقول دي.

باب۲۱۸: كِسْوَةِ الْمَرْاَةِ بِالْمَعْرُوْفِ.

باب۲۱۸: ښځے ته د، دستور مطابق د، اغستلو بيان.

۱۳۳۳: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ

۱۳۳۳: حجاج بن منهال. شعبه. عبدالملك بن ميسره. زيد بن وهب. حضرت عليؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ

وَهْبٍ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ اَتَى اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ سِيَرَاءَ فَلَبِسْتُهَا فَرَاَيْتُ الْغَضَبَ فِيْ وَجْهِهٖ فَشَقَقْتُهَا بَيْنَ نِسَائِيْ.

**بَاب ۲۱۹: عَوْنُ الْمَرْاَةِ زَوْجَهَا فِيْ وَلَدِهٖ.**

۳۳۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ هَلَكَ اَبِيْ وَ تَرَكَ سَبْعَ بَنَاتٍ اَوْ تِسْعَ بَنَاتٍ فَتَزَوَّجْتُ امْرَاَةً ثَيِّبًا فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجْتَ يَا جَابِرُ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ بِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ وَ تُضَاحِكُهَا وَ تُضَاحِكُكَ قَالَ فَقُلْتُ لَهُ اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ هَلَكَ وَ تَرَكَ بَنَاتٍ وَ اِنِّيْ كَرِهْتُ اَنْ اَجِيْئَهُنَّ بِمِثْلِهِنَّ فَتَزَوَّجْتُ امْرَاَةً تَقُوْمُ عَلَيْهِنَّ وَ تُصْلِحُهُنَّ فَقَالَ بَارَكَ اللّٰهُ اَوْ قَالَ خَيْرًا.

**بَاب ۲۲۰: نَفَقَةِ الْمُعْسِرِ عَلٰى اَهْلِهٖ.**

۳۳۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ

څو کرښېنږې چپنې راغلې. (هغې کښې) يوه ما واغوستله' نو ما د' حضور صلي الله عليه وسلّم په مخ مبارک د غصې اثر اوليدلو. بيا ما هغه اوشلوله' او خپلو زنانه ؤ کښې م تقسيم کړله.

**باب ۲۱۹: د' بچو خدمت کښې د' ښځې د خپل خاوند' د' مدد کولو بيان.**

۳۳۴: مسدد. حماد بن يزيد. عمرو. جابر بن عبدالله نه روايت کوي' څما پلار وفات شو' او د هغه اوه يا نهه جينکۍ پاتې شوې. ما يوې ثيبې (کنډې ښځې) سره واده اوکړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم مانه تپوس اوکه' جابرهؓ' تا' نکاح اوکړله. ما عرض اوکه' جي' او. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' جينۍ سره' يا کنډې سره. ما عرض اوکه. بلکه کنډې سره. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' پيغلې سره دې ولې اونه کړله' چه تا هغې سره لوبې کولې او هغې تاسره. تا به هغه خاندوله' او هغې به ته خاندولې. ما اووې' عبدالله (څما پلار) وفات شو' او هغه نه څو لونړې پاتې شوې. ما خوښه نه کړله' چه زه په هغوي د هغوي په شان يوه بله جينۍ راولم' نو داسې ښځې سره م نکاح اوکړله' چه د هغوي نګراني او اصلاح اوکړي. حضور صلي الله عليه وسلّم راته اوفرمائيل' الله دې دربانده برکت کيږدي' يا دائې اوفرمائيل' الله دې درته خير کړي.

**باب ۲۲۰: د' تنګدست په خپل اهل و عيال د خرچ کولو بيان.**

۳۳۵: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن

بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقَالَ هَلَكْتُ قَالَ وَلِمَ قَالَ وَقَعْتُ عَلٰى أَهْلِي فِي رَمَضَانَ قَالَ فَأَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ لَيْسَ عِنْدِي قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ فَأَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا أَجِدُ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ فَقَالَ أَيْنَ السَّائِلُ قَالَ هَا أَنَا ذَا قَالَ تَصَدَّقْ بِهٰذَا قَالَ عَلٰى أَحْوَجَ مِنَّا يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَوَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَحْوَجُ مِنَّا فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ أَنْيَابُهُ قَالَ فَأَنْتُمْ إِذًا.

شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. ابوهريرهؓ نه روايت کوي يو سړے د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئے اوکه' زه خو هلاک شوم. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' څه چل اوشو' هغه اووے' ما د رمضان (روژے) مياشت کښې خپلے ښځے سره صحبت اوکړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' يو غلام آزاد کړه. عرض ئے اوکه' ما سره خو غلام نشته. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دوه مياشتے پرله پسے روژے اونيسه. هغه اووے' زه نه شم نيولے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' شپيتو مسکينانو باندے طعام اوخوروه. هغه اُووے دا هم خما د مخه نه کيږي. دے کښې حضور صلي الله عليه وسلّم ته يو ټوکرئ راوړے شوه' چه هغے کښې قجورے وے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه سائل (تپوس کونکے) کوم ځائے دے' هغه اووے' زه حاضر يم جناب' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. دا قجورے واخله' او صدقه ئے کړه. هغه عرض اوکه. د ځان نه زيات ضرورتمند له ئے ورکړم' يا رسول الله' په هغه ذات م دے قسم وي چه تاسوئے حق سره رالېږلے ئے' د مدينے د دواړو کاڼريجنو زمکو مينځ کښې هيڅ کور داسے نشته' چه خما نه زيات مستحق وي. حضور صلي الله عليه وسلّم په خندا شو' تر دے چه د حضور صلي الله عليه وسلّم غاښونه مبارک ظاهر شول. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ښه ده. بيا تاسو ددے مستحق ئے' يعني تاسوئے اوخورئے.

## بـاب ۲۲۱ : وَعَلَى الْوَارِثِ

## باب ۲۲۱ : آيت: وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ

مِثْلُ ذٰلِكَ وَ هَلُ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْهُ شَيْءٌ وَّ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَا اَبْكَمُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ.

الخ: تفسير. او' آيا په ښځه څه څيز شته' او د' الله تعالیٰ د' دے قول: وَ ضرب اللّٰه مثلاً رجلين احدهما ابكم. صراط مستقيم: ہرړے تفسير.

۳۳۶: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَلْ لِيْ مِنْ اَجْرٍ فِيْ بَنِيْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنْ اُنْفِقَ عَلَيْهِمْ وَ لَسْتُ بِتَارِكَتِهِمْ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا اِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ قَالَ نَعَمْ لَكِ اَجْرُ مَا اَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ.

۳۳۶: موسیٰ بن اسماعيل. وهيب. هشام. عروه. زينب بنت ابي سلمه. ام سلمهؓ نه روايت كوي' ما عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' آيا د ابو سلمه بچو ته خرچ وركولو كښې ما د پاره څه ثواب شته' زه دوي دے حالت (يعني فقر) كښې نه شم پريښودے. دوي هم څما بچي دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' او. تاته به ثواب رسي' څه چه ته په دوي خرچ كړے.

۳۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ هِنْدٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ اَنْ اٰخُذَ مِنْ مَّالِهِ مَا يَكْفِيْنِيْ وَ بَنِيَّ قَالَ خُذِيْ بِالْمَعْرُوفِ.

۳۳۷: محمد بن يوسف. سفيان. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ نه روايت كوي' هند عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' ابوسفيان يو بخيل سړے دے' كه زه د هغه د مال نه په قدر' د ضرورت واخلم' نو څه حرج شته' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. د' دستور مطابق اخله.

باب ۲۲۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ كَلًّا اَوْ ضِيَاعًا فَاِلَيَّ.

باب ۲۲۲: د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل' كوم سړي چه څه قرض پريښود' يا بچي ترے پاتے شو' نو څما په ذمه دي.

۳۳۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتٰى

۳۳۸: يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابو سلمه. ابوهريرهؓ نه روايت كوي' د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم طرف ته به چه د' چا جنازه راوړے شوه' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به تپوس كولو' ده د' خپل قرض ادا كولو د پاره دومره مال پريښے دے كه نه' چه د' ده

بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفّٰى عَلَيْهِ الدَّيْنُ فَيَسْأَلُ هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ فَضْلًا فَاِنْ حُدِّثَ اَنَّهُ تَرَكَ وَفَاءً صَلّٰى وَ اِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِيْنَ صَلُّوْا عَلٰى صَاحِبِكُمْ فَلَمَّا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْفُتُوْحَ قَالَ اَنَا اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهٖ.

قرض پرے ادا کرے شي' که حضور صلي الله عليه وسلّم ته به اووئيلے شو' چه دومره مال ئے پريښے دے' چه د هغه قرض به پرے ادا شي' نو حضور صلي الله عليه وسلّم به په هغه د جنازے مونځ کولو' کني حضور صلي الله عليه وسلّم به مسلمانانو ته فرمائيل' په خپل وررو د جنازے مونځ اوکړے. کوم وخت چه الله په حضور صلي الله عليه وسلّم د فتوحاتو پيرزونه اوکړه' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زه د' مؤمنانو د هغوي د' ذات نه هم زيات خيرخواه يم' که يو مسلمان مړ شي' او په هغه قرض پاتے شي' نو زه د هغے ذمه وار يم. او که مال پريږدي' نو هغه د هغه د' وارثانو دے.

باب ۲۲۳: اَلْمَرَاضِعِ مِنَ الْمَوَالِيَاتِ وَ غَيْرِهِنَّ.

باب ۲۲۳: دائي (دايه) وغيره نه د' پئے ښکولو بيان.

۳۳۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ انْكِحْ اُخْتِيَ ابْنَةَ اَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ وَ تُحِبِّيْنَ ذٰلِكَ قُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَ اَحَبُّ مَنْ شَارَكَنِيْ فِي الْخَيْرِ اُخْتِيْ فَقَالَ اِنَّ ذٰلِكَ لَا يَحِلُّ لِيْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَوَاللّٰهِ اِنَّا نَتَحَدَّثُ اَنَّكَ تُرِيْدُ اَنْ تَنْكِحَ دُرَّةَ ابْنَةَ اُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَوَاللّٰهِ لَوْ

۳۳۹: يحيٰي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. زينب. بنت ابي سلمه. ام حبيبهؓ د نبي صلي الله عليه وسلّم د' ښځه نه روايت کوي' هغے اووے' ما عرض اوکه' يا رسول الله' خما خور' بنت ابو سفيان سره تاسو نکاح اوکړئے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا ته دا خوښوے. ما عرض اوکه' جي. او. زه تاسو د پاره يوازے اوسيدل نه غوارم. بلکه غوارم' چه دے خير کښې خما خور هم شريکه شي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' هغه ما د پاره حلاله نه ده. ما عرض اوکه' يا رسول الله' په خدائے چه مونږ کښې خپلو کښې دا تذکره کيدله' چه تاسو د ابوسلمه لور "دره" سره نکاح کول غوارئے' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' د أم سلمه لور سره. ما اووے' جي. او. حضور

لَمْ تَكُنْ رَبِيْبَتِيْ فِيْ حِجْرِيْ مَا حَلَّتْ لِيْ اِنَّهَا ابْنَةُ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ اَرْضَعَتْنِيْ وَ اَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا اَخَوَاتِكُنَّ وَ قَالَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ ثُوَيْبَةُ اَعْتَقَهَا اَبُوْ لَهَبٍ.

صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. په خدائے که څما ربيبه هم نه وے، بيا هم ما د پاره حلاله نه وه. ځکه چه هغه څما رضاعي وريره ده. ماته او ابوسلمه ته ثويبه ﺗﻴﻨﮯ راکړي دي. په دے وجه ماته خپلے لونړه اوخويندے مه پيش کوئے، او شعيب د زهري نه نقل کړے دے. عروه بيان کړے دے. چه ثويبه وينزه ابولهب آزاده کړے وه.

ف: ربيبه: پرکتئے. د ښځے د بل خاوند نه لور، چه دوئم خاوند ته ئے خان سره راوستے وي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

# كتاب الاطعمة

# (د، خوراک بيان)

وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى كُلُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَ قَوْلِهٖ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَ قَوْلِهٖ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ.

د، اللّٰه تعالٰي قول چه مونږ تاسوته کوم حلال رزق درکړے دے د هغے نه خورئے، او د اللّٰه تعالٰي قول، چه د خپلے پاکے ګټے (کمائی) نه خرچ کوئے او د اللّٰه تعالٰي قول چه د، پاکو څيزونو نه خورئے. او نيک کار کوئے، زه ستاسو په کارونو پوه يم.

۵۳۴۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَ عُوْدُوا الْمَرِيْضَ وَ فُكُّوا الْعَانِيَ قَالَ سُفْيٰنُ وَالْعَانِيْ الْاَسِيْرُ.

۵۳۴۰: محمد بن كثير. سفيان. منصور. ابو وائل. حضرت ابو موسٰي اشعريؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، په اوږو (بھوکوں) ډوډۍ خوروئے، او د، مريضانو پښتنه کوئے، او قيديان ازادوئے سفيان اووے، چه د، عاني معنٰي د قيدي دي.

۵۳۴۱: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَا شَبِعَ اٰلُ مُحَمَّدٍ

۵۳۴۱: يوسف بن عيسٰي. محمد بن فضيل. ابو حازم. ابوهريرهؓ نه روايت کوي د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم کوروالو درے ورځے هم په مړه خيټه ډوډۍ نه ده خوړلے، تردے چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ طَعَامٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ حَتّٰى قُبِضَ وَعَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَصَابَنِيْ جُهْدٌ شَدِيْدٌ فَلَقِيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَاسْتَقْرَأْتُهُ آيَةً مِّنْ كِتَابِ اللّٰهِ فَدَخَلَ دَارَهُ وَفَتَحَهَا عَلَيَّ فَمَشَيْتُ غَيْرَ بَعِيْدٍ فَخَرَرْتُ لِوَجْهِيْ مِنَ الْجُهْدِ وَالْجُوْعِ فَإِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ عَلٰى رَأْسِيْ فَقَالَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَسَعْدَيْكَ فَأَخَذَ بِيَدِيْ فَأَقَامَنِيْ وَعَرَفَ الَّذِيْ بِيْ فَانْطَلَقَ بِيْ إِلٰى رَحْلِهٖ فَأَمَرَ لِيْ بِعُسٍّ مِّنْ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ ثُمَّ قَالَ عُدْ يَا أَبَا هِرٍّ فَعُدْتُ فَشَرِبْتُ ثُمَّ قَالَ عُدْ فَعُدْتُ فَشَرِبْتُ حَتّٰى اسْتَوٰى بَطْنِيْ فَصَارَ كَالْقِدْحِ قَالَ فَلَقِيْتُ عُمَرَ وَذَكَرْتُ لَهُ الَّذِيْ كَانَ مِنْ أَمْرِيْ وَقُلْتُ لَهُ تَوَلَّى اللّٰهُ ذٰلِكَ مَنْ كَانَ أَحَقَّ بِهٖ مِنْكَ يَا عُمَرُ وَاللّٰهِ لَقَدِ اسْتَقْرَأْتُكَ الْآيَةَ وَلَأَنَا أَقْرَأُ لَهَا مِنْكَ قَالَ عُمَرُ وَاللّٰهِ لَأَنْ أَكُوْنَ أَدْخَلْتُكَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُوْنَ لِيْ مِثْلُ حُمْرِ النَّعَمِ.

وفات شولو' او ابو حازم' ابوهریرهؓ نه. نقل کوي. چه زه سخت اوږې شوم' نو زه (ابوهریرهؓ) حضرت عمرؓ بن خطاب له ورغلم او د قرآن د آیتونو اوررولو خواهش' م ظاهر که' هغه خپل کورته داخل شو' او ما د پاره ئې دروازه پرانسته. زه لږ لرې تلے ووم' چه د لوږې نه پرمخے راپریوتم نو څه ګورم چه زما سر' سره رسول الله صلي الله علیه وسلّم ولاړ دے حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' اے ابو هریرهؓ ما اووے لبیک و سعدیک یا رسول اللهؐ حضور صلي الله علیه وسلّم زما لاس اونیولو' او زه ئې اودرولم' او حضور صلي الله علیه وسلّم زما حالت معلوم کړو' نو زه ئې خپل کورته بوتلم' او ماته ئې د' یوې پیالئې پئې څکلو حکم راکړلو' ما د' هغې نه اوڅکل' بیائې اوفرمائیل' نور' اوڅکه نو ما اوڅکل تردې چه زما خیټه د پیالې په شان ډکه شوه. بیا زه عمرؓ ۰۰۰ره یوځائې شوم. او هغه ته م خپل حالت بیان که' او ما اووے اے عمرؓ الله جل جلاله د هغې کار هغه مالک کړلو' چه د هغې زیات مستحق وو (یعني رسول الله صلي الله علیه وسلّم خما د' لوږې تکلیف دفع کړلو) په خدائې' چه' ما تاسوته د' آیت لوستو وئیلے وو' حالانکه زه ستاسونه زیات ددې آیتونو لوستونکے ووم' حضرت عمرؓ ورته اووے زه پوه شوے نه ووم کنې په خدائے (ج) چه ته به م خپل کور کښې داخل کړے وے (یعني میلمه کړے به م وے) او دا خبره خما ددې نه زیاته خوښه وه چه خما کور کښې سره (سرخ) اوښان وې (یعني ستا میلمستیا ما ته د' سرو' اوښانو د ملکیت نه زیاته عزیزه وه).

باب ۲۲۴: التَّسْمِيَةِ عَلَى الطَّعَامِ وَالْاَكْلِ بِالْيَمِيْنِ.

۳۴۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ قَالَ الْوَلِيْدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ سَمِعَ وَهَبَ ابْنَ كَيْسَانَ اَنَّهُ سَمِعَ عُمَرَ ابْنَ اَبِيْ سَلَمَةَ يَقُوْلُ كُنْتُ غُلَامًا فِيْ حِجْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتْ يَدِيْ تَطِيْشُ فِي الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا غُلَامُ سَمِّ اللّٰهَ وَ كُلْ بِيَمِيْنِكَ وَ كُلْ مِمَّا يَلِيْكَ فَمَا زَالَتْ تِلْكَ طُعْمَتِيْ بَعْدُ.

باب ۲۲۴: په خوراک بِسْمِ اللّٰه وئيل او' ښي لاس سره د خوراک کولو بيان.

۳۴۲: علي بن عبدالله. سفيان. وليد بن کثير. وهب بن کيسان. عمرو بن ابي سلمه نه روايت کوي' د هغه بيان دے زه بچے ووم' او د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نګراني کښې ووم' او خما لاس به د' پيالے څلور واړه طرفه ته پريوته' نو ما ته حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے هلکه' د' الله (ج) نوم واخله (بسم الله اووايه) او خپل ښي لاس سره خوره او څه چه ستا قريب وي' د' هغے نه خوره (يعني خپلے مخے ته خوره) دے نه پس به ما دغسے کول.

باب ۲۲۵: اَلْاَكْلِ مِمَّا يَلِيْهِ.

وَ قَالَ اَنَسٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ وَلْيَاْكُلْ كُلُّ رَجُلٍ مِمَّا يَلِيْهِ.

۳۴۳: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ الدِّيْلِيِّ عَنْ وَهَبِ بْنِ كَيْسَانَ اَبِيْ نَعِيْمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ وَهُوَ ابْنُ اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَكَلْتُ يَوْمًا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا فَجَعَلْتُ اٰكُلُ مِنْ

باب ۲۲۵: خپلے مخے نه د خوراک کولو بيان. او' انس اووے' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' د' الله نوم واخلئ او هر سړي له د خپلے مخے نه خوړل په کار دي.

۳۴۳: عبدالعزيز بن عبدالله. محمد بن جعفر. محمد بن عمرو بن حلحلة ديلي. وهب بن کيسان. ابو نعيم. عمرو بن ابي سلمهؓ (چه د اُم سلمهؓ د' نبي عليه السلام د تبر د مخکني خاوند خوئے وو) نه روايت کوي' ما يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره يو ځائے ډوډي اوخوړله نو ما د پيالے د څلور طرف نه خوراک کول شروع کړل'

نَوَاحِيْ الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلْ مِمَّا يَلِيْكَ.

نو ماته حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل د خپلے مخے نه خوره.

۳۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ اَبِيْ نُعَيْمٍ قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِطَعَامٍ وَّ مَعَهُ رَبِيْبُهُ عُمَرُ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ فَقَالَ سَمِّ اللّٰهَ وَ كُلْ مِمَّا يَلِيْكَ.

۳۴۴: عبدالله بن يوسف. مالک. وهب بن كيسان. ابو نعيم نه روايت كوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته طعام راوړے شو، او حضور صلي الله عليه وسلّم سره د حضور صلي الله عليه وسلّم ربيب (پركتے) عمر بن ابي سلمه وو، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، د الله (ج) نوم واخله (بسم الله اووايه) او د خپلے مخے نه خوره.

ف: دے حديث كښې مونږ د پاره دوه سبقونه دي، يو دا چه هر خوراک څښاک باندے بسم الله وئيل په كار دي، او دويم دا چه د خپلے مخے نه خوړل پكار دي ځكه چه د بل د مخے نه خوړلو سره سړے حريص ښكاري، او اسلام مونږ ته په خپله حصه د صبر كولو سبق راكوي.

## باب ۲۲۶: مَنْ تَتَبَّعَ حَوَالِي الْقَصْعَةِ مَعَ صَاحِبِهٖ اِذَا لَمْ يَعْرِفْ كَرَاهِيَةً.

## باب ۲۲۶: د هغے سړي بيان چه پيالئے كښې د څلور طرفونه خوري هر كله چه د هغه د ملګري ناخوښي نه وي.

۳۴۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ اِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهٗ قَالَ اَنَسٌ فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَاَيْتُهٗ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالِي الْقَصْعَةِ قَالَ فَلَمْ اَزَلْ اُحِبُّ الدُّبَّاءَ مِنْ يَوْمَئِذٍ.

۳۴۵: قتيبه. مالک. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالک نه روايت كوي د هغه بيان دے يو درزي نبي صلي الله عليه وسلّم د پاره طعام تيار كړلو، او حضور صلي الله عليه وسلّم له ئے دعوت وركه، د انس بيان دے چه زه هم حضورؐ سره ورغلم، ما اوليدل چه حضور صلي الله عليه وسلّم د پيالے په څلور طرفه كدو تلاش كولو، د هغے ورځے نه زما هم كدو سره مينه پيدا شوه.

## باب ۲۲۷: التَّيَمُّنِ فِي الْاَكْلِ

## باب ۲۲۷: خوراک وغيره كښې ښي لاس

وَغَيْرِهِ. وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ أَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلْ بِيَمِيْنِكَ.

سره د كار كولو بيان. عمر بن ابي سلمه اووے ما ته نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' خپل ښي لاس سره خوره.

۶ ۳۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَشْعَثَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِيْ طُهُوْرِهِ وَ تَنَعُّلِهِ وَ تَرَجُّلِهِ وَ كَانَ قَالَ بِوَاسِطَ قَبْلَ هٰذَا فِيْ شَأْنِهِ كُلِّهِ.

۶ ۳۴: عبدان. عبدالله. شعبه. اشعث. خپل پلار نه' هغه مسروق نه' هغه بي بي عائشےؓ نه روايت كوي نبي صلي الله عليه وسلّم به اودس كولو' پيزار په پښو كولو او (سر) گومنز كولو كښې تر خپله و' سه د' ښي طرف نه شروع كول خوښول او ددے نه مخكښې واسط كښې هم بيان كړے "چه خپل ټول كارونو كښې ئے د' ښي طرف نه ابتداء كول خوښول".

بَابٌ ۲۲۸: مَنْ أَكَلَ حَتّٰى شَبِعَ.

باب ۲۲۸: د هغے سړي بيان' چه په مړه ډوډۍ اوخوري.

۷ ۳۴: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ إِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ أَبُوْ طَلْحَةَ لِأُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَعِيْفًا أَعْرِفُ فِيْهِ الْجُوْعَ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيْرٍ ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهِ ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ ثَوْبِيْ وَ رَدَّتْنِيْ بِبَعْضِهِ ثُمَّ أَرْسَلَتْنِيْ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَذَهَبْتُ

۷ ۳۴: اسماعيل. مالک. اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالک نه روايت كوي' ابو طلحه' اُم سليم ته اووے ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم كمزورے آواز اوريدلے دے' چه د هغے نه ماته معلومه شوه چه حضور صلي الله عليه وسلّم اوږے دے' تاسره د خوراک څه شته. هغے د' وربشو څو روټئ راوبنكلے' بيائے خپله لوپټه راوبنكله. د هغے په يوه حصه كښې ئے روټئ اونغښتے. بيائے ځما د كپړے لاندے پټے كړے' او زه ئے دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې اوليږلم' ما هغه روټئ واخستے ورغلم' ما اوليدل چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم جمات كښې دے' او حضور صلي الله عليه وسلّم سره نور سړي هم دي' زه ورته مخامخ اودريدم نوماته رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ته ابو طلحه راليږلے ئے ما اووے. جي

بِهٖ فَوَجَدْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَمَعَهُ النَّاسُ فَقُمْتُ عَلَيْهِمْ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَكَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِطَعَامٍ قَالَ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَنْ مَّعَهُ قُوْمُوْا فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ حَتّٰى جِئْتُ اَبَا طَلْحَةَ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ يَا اُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ وَلَيْسَ عِنْدَنَا مِنَ الطَّعَامِ مَا نُطْعِمُهُمْ فَقَالَتِ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ فَانْطَلَقَ اَبُوْ طَلْحَةَ حَتّٰى لَقِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى دَخَلَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمِّيْ يَا اُمَّ سُلَيْمٍ مَا عِنْدَكِ فَاَتَتْ بِذٰلِكَ الْخُبْزِ فَاَمَرَ بِهٖ فَفُتَّ وَعَصَرَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً لَّهَا فَاَدَمَتْهُ ثُمَّ قَالَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَاَذِنَ لَهُمْ فَاَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا

او' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ايا طعام ئے درکړے دے ما اووے' او. نو حضور صلي الله عليه وسلّم خپلو ملګرو ته اوفرمائيل' ځئے چه ځو. او دے فرمائيلو سره حضور صلي الله عليه وسلّم روان شولو. او زه هم روان شوم او مخکښې مخکښې تلم' حتٰي چه زه ابو طلحه له راغلم' نو ابو طلحه اووے. اے ام سليم رسول الله صلي الله عليه وسلّم نور خلق هم راوستے دي او مونږ کره دومره طعام نه شته چه په دے ټولوئے اوخورو. اُم سليم اووے' اللّٰه (ج) او د هغه رسولؐ ښه پوهيږي ابو طلحه ورمخکښې شو' تردے چه رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يو ځائے شولو ابو طلحه او رسول الله صلي الله عليه وسلّم دواړه روان شو' تردے چه دواړه دننه راغلل بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اے ام سليم' تا سره چه څه دي. هغه راوړه' ام سليمؓ هغه روټے راوړلے حضور صلي الله عليه وسلّم د هغے روټو د ماتولو حکم اوکه' او ام سليمؓ پرے غوړي واچول' هغه ئے چورے کړے بيا په هغے رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم اولوستل' څه چه د خدائے جل جلاله ښوخه وه (يعني د' برکت دُعائے پرے اوکړله) بيائے اوفرمائيل لس سړي راوله' هغوي ته د راتلو اجازت ورکړے شو. هغے خلکو اوخوړه. تردے چه ماړه شو. بيا هغوي بهر ته لاړل نو وے فرمائيل' لس سړو ته د' راتلو اجازت ورکړئے هغوے راوبللے شو. نو هغوے هم په مړه خيټه ډوډی اوخوړله' دا خلک چه بهرته اووتل. نو بيائے اوفرمائيل. چه لس سړي راوبلئے' هغوي دننه راغلل' اوښه ځانونه ئے ماړه کړل' چه هغوي هم بهرته

ثُمَّ خَرَجُوْا ثُمَّ اَذِنَ لِعَشَرَةٍ فَاَكَلَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ وَ شَبِعُوْا وَالْقَوْمُ ثَمَانُوْنَ رَجُلًا.

اووتل' نو د نورو لس سړو د' راتللو حکم ئې ورکړلو' نو (دهسې) ټولو خلقو ډوډۍ اوخوړله' او په مړه خيټه ئې اوخوړله' او ټول اتيا کسان وو.

ف: يعني د لس لس کسانو پينډوې به ډوډۍ خوړله' بيا به بهرته وتل' بيا به نور راتلل.

۳۴۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ وَ حَدَّثَ اَبُوْ عُثْمَانَ اَيْضًا عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثِيْنَ وَ مِائَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ مَعَ اَحَدٍ مِّنْكُمْ طَعَامٌ فَاِذَا مَعَ رَجُلٍ صَاعٌ مِّنْ طَعَامٍ اَوْ نَحْوُهٗ فَعُجِنَ ثُمَّ جَآءَ رَجُلٌ مُّشْرِكٌ مُّشْعَانٌّ طَوِيْلٌ بِغَنَمٍ يَّسُوْقُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَيْعٌ اَمْ عَطِيَّةٌ اَوْ قَالَ هِبَةٌ قَالَ لَا بَلْ بَيْعٌ قَالَ فَاشْتَرٰى مِنْهُ شَاةً فَصُنِعَتْ فَاَمَرَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَوَادِ الْبَطْنِ يُشْوٰى وَ اَيْمُ اللّٰهِ مَا مِنَ الثَّلٰثِيْنَ وَ مِائَةٍ اِلَّا قَدْ حَزَّلَهٗ حُزَّةً مِّنْ سَوَادِ بَطْنِهَا اِنْ كَانَ شَاهِدًا اَعْطَاهَا اِيَّاهُ وَ اِنْ كَانَ غَائِبًا خَبَأَهَا لَهٗ ثُمَّ جَعَلَ فِيْهَا قَصْعَتَيْنِ فَاَكَلْنَا اَجْمَعُوْنَ وَ شَبِعْنَا وَ فَضَلَ فِيْ الْقَصْعَتَيْنِ فَحَمَلْتُهٗ عَلَى الْبَعِيْرِ اَوْ كَمَا قَالَ.

۳۴۸: موسٰي. معتمر د خپل پلار نه روايت کوي' مونږ خلق حضور صلي الله عليه وسلّم سره يو سفر کښې وو. او مونږ شپږ نيمې شلې کسان وو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' تاسو کښې چا سره د خوراک څه څيز شته يو سړي سره يو صاع يا' د دې لږ بگ خوراک (اوړه) راووتل هغه واغږلې شو' يو لوړ دنگ مشرک سړي چيلې شړلې' روان وو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغه ته اوفرمائيل' آيا ته خرڅوې يا' هبه کوې هغه اووې' نه بلکه خرڅوم' نو حضور صلي الله عليه وسلّم د هغه نه يو چيلئې واخيسته بيا هغه ذبح کړې شوه. حضور صلي الله عليه وسلّم د هغې د' اينې د ورتولو حکم اوکړلو قسم په خدائې (ج) شپږ نيمې شلې کسانو کښې يو کس هم داسې نه وو' چه هغه ته ددينه حصه نه وي رسيدلې' کوم چه حاضر وو هغوي له ورکړې شوه. کوم چه هغه وخت موجود نه وو' هغوې له ئې حصه کيښوده. بيا د هغې د' غوښې دوه پيالې جوړې شوې' نو مونږ د هغې نه اوخوړلو او په مړه خيټه بلکه د واړو پيالو کښې غوښه بچ هم شوله. نو هغه ئې په اوښ خان سره يوړله' يا دا شان روايت دې' څنگه چه ئې اوفرمائيل.

۳۴۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا

۳۴۹: مسلم. وهيب. منصور د خپل مور نه'

وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ أُمِّهِ عَنْ عَائِشَةَ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ شَبِعْنَا مِنَ الْأَسْوَدَيْنِ التَّمْرِ وَالْمَاءِ.

همه د' بي بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دې د حضور صلي الله عليه وسلّم د وفات نه پس مونږ خلقو ته په مړه خيټه قجورې او اوبه حاصلې شوې.

بَابٌ ۲۲۹: لَيْسَ عَلَى الْأَعْمٰى حَرَجٌ إِلٰى قَوْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ. وَالنِّهْدُ وَالْاِجْتِمَاعُ فِي الطَّعَامِ.

باب ۲۲۹: د' الله تعالي قول' چه نه روند باندې نه ګډ باندې او نه مريض باندې څه حرج شته' آخر آيت: لعلكم تعقلون: پورې.

۳۵۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ بُشَيْرَ بْنَ يَسَارٍ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ النُّعْمٰنِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى خَيْبَرَ فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ قَالَ يَحْيٰى وَهِيَ مِنْ خَيْبَرَ عَلٰى رَوْحَةٍ دَعَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِطَعَامٍ فَمَا أُتِيَ إِلَّا بِسَوِيْقٍ فَلُكْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا فَصَلّٰى بِنَا الْمَغْرِبَ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ قَالَ سُفْيَانُ سَمِعْتُهُ مِنْهُ عَوْدًا وَبَدْءًا.

۳۵۰: علي بن عبدالله. سفيان. يحيٰي بن سعيد. بشير بن يسار. سويد بن نعمان نه روايت كوي' مونږ خلق رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره خيبر طرف ته روان شو كوم وخت چه مونږ مقام صهباء ته اورسيلو (د' يحيٰي د بيان مطابق صهباء د خيبر نه په نيم منزل واقع دې) نو حضور صلي الله عليه وسلّم طعام طلب كه. صرف ستوان د' حضور صلي الله عليه وسلّم مخكښې پيش كړې شو. مونږ هغه كس (خوشته) كړل. او د هغې نه مو' اوخوړل بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوبه اوغښتلې او خوله ئې كنګال كړه نو مونږ هم خوله كنګال كړه. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ ته د ماښام مونځ راكړلو. خو حضور صلي الله عليه وسلّم اودس اونه كړلو. د سفيان بيان دې ما د يحيٰي نه واوريدل. چه حضور صلي الله عليه وسلّم نه خو' ابتدا كښې لاس اووينځل. او نه آخر كښې.

بَابٌ ۲۳۰: الْخُبْزِ الْمُرَقَّقِ وَالْأَكْلِ عَلَى الْخِوَانِ وَالسُّفْرَةِ.

باب ۲۳۰: نرئې روټي (چپاتې) او دسترخوان باندې د خوراک بيان.

۳۵۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ

۳۵۱: محمد بن سنان. همام. قتاده نه

حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ اَنَسٍ وَّ عِنْدَهٗ خَبَّازٌ لَّهٗ فَقَالَ مَآ اَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُبْزًا مُّرَقَّقًا وَّلَا شَاةً مَّسْمُوْطَةً حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ.

روايت كوي، مونږ انسؓ سره وو. او هغه سره د هغه روټۍ پخونكې هم وو نو هغه بيان اوكه، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نرئ روټئ اونه خوړله، او نه ئې وريته چيلئ اوخوړله، تردې چه اللّٰه تعالىٰ سره يوځائې شولو.

۳۵۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ قَالَ عَلِيٌّ هُوَ الْاِسْكَافُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَا عَلِمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكَلَ عَلٰى سُكُرُّجَةٍ قَطُّ وَلَا خُبِزَ لَهٗ مُرَقَّقٌ قَطُّ وَلَا اَكَلَ عَلٰى خِوَانٍ قِيْلَ لِقَتَادَةَ فَعَلٰى مَا كَانُوْا يَاْكُلُوْنَ قَالَ عَلَى السُّفَرِ.

۳۵۲: علي بن عبداللّٰه. معاذ بن هشام. هشام. يونس. اسكاف. قتاده. انس نه روايت كوي، ماته نه ده معلومه چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم كله په وړو، وړو ركيبو كښې خوراك كړے وي اونه چرته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چپاتې خوړلې ده، اونه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په دسترخوان خوراك كړے دے. قتاده نه تپوس اوشو. چه آخر خلقوبه په څه شيز خوراك كولو، نو هغه جواب وركه دسترخوان باندے (دلته دسترخوان نه مراد داسے شيز دے، چه په هغې طعام كيښودے شي او هغه د ځمكې نه اوچت وي).

۳۵۳: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدٌ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسًا يَّقُوْلُ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْنِيْ بِصَفِيَّةَ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِيْنَ اِلٰى وَلِيْمَتِهٖ اَمَرَ بِالْاَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَاُلْقِيَ عَلَيْهَا التَّمْرُ وَالْاَقِطُ وَالسَّمْنُ وَ قَالَ عَمْرٌو عَنْ اَنَسٍ بَنٰى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِيْ نِطَعٍ.

۳۵۳: ابن ابي مريم. محمد بن جعفر. حميد. انسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم بي بي صفيهؓ سره زفاف (خلوت) اوكه. نو مسلمانانوته ئې د، وليمې دعوت وركه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د دسترخوان د غوړولو حكم اوكه، نو اوغوړولې شو. او په هغې غوړې، قجورې او پنير وغيره كيښودې شو. او عمرو په واسطه د، انسؓ، روايت اوكه، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم، هغې (صفيې) سره زفاف اوكه. بيا حيس په دسترخوان كيښودے شو.

۳۵۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا

۳۵۴: محمد. ابو معاويه. هشام د خپل

اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ وَ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ قَالَ كَانَ اَهْلُ الشَّامِ يُعَيِّرُوْنَ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُوْلُوْنَ يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ فَقَالَتْ لَهُ اَسْمَاءُ يَا بُنَيَّ اِنَّهُمْ يُعَيِّرُوْنَكَ بِالنِّطَاقَيْنِ هَلْ تَدْرِيْ مَا كَانَ النِّطَاقَانِ اِنَّمَا كَانَ نِطَاقِيْ شَقَقْتُهُ نِصْفَيْنِ فَاَوْكَيْتُ قِرْبَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَحَدِهِمَا وَ جَعَلْتُ فِيْ سُفْرَتِهِ اٰخَرَ قَالَ فَكَانَ اَهْلُ الشَّامِ اِذَا عَيَّرُوْهُ بِالنِّطَاقَيْنِ يَقُوْلُ اِيْهًا وَّالْاِلٰهِ تِلْكَ شِكَاةٌ ظَاهِرٌ عَنْكَ عَارُهَا.

ف: نيغه' بډه. د' پرتوغابښ خائے.

پلار نه او وهب بن كيسان نه روايت كوي' د هغه بيان دے اهل شام ابن زبيرؓ ته د' ذات النطاقين خوئے وئيلو سره عار وركولو. هغه ته د هغه مور بي بي اسماءؓ اووے اے ځويه' تاته خلق نطاقين وئيلو سره عار' دركوي. تا ته معلومه ده' چه نطاقين څه وو. څما يو كمر بند وو. چه هغه ما دوه ټكړے كړے وو. يو ټكړے سره ما د حضورؐ د تهيلو' خوله بنده كړه او دوئمه ټكړه م په نيغه كښې واچوله اهل شام چه هغه ته د نطاقين عار وركولو' نو هغه به ورته وئيلے. بيا داسے اووائے' په ما خو دا لفظ بنه لږي.

۳۵۵: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمٰنِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ اُمَّ حُفَيْدٍ بِنْتَ الْحَارِثِ بْنِ حَزْنٍ خَالَةَ ابْنِ عَبَّاسٍ اَهْدَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمْنًا وَ اَقِطًا وَ اَضُبًّا فَدَعَا بِهِنَّ فَاُكِلْنَ عَلٰى مَائِدَتِهٖ وَ تَرَكَهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَالْمُتَقَذِّرِ لَهُنَّ وَلَوْ كُنَّ حَرَامًا مَّآ اُكِلْنَ عَلٰى مَائِدَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَآ اَمَرَ بِاَكْلِهِنَّ.

۳۵۵: ابوالنعمان. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي' اُم حفيد بنت حراث بن حزن (د' ابن عباسؓ' خاله يعني ترور) نبي صلي الله عليه وسلّم ته غوړي' پنير او سوسي (سمسره' غاروندني) د' هديے په طور اوليږل' حضور صلي الله عليه وسلّم زنانه راوغښتلے. او د' حضور صلي الله عليه وسلّم په دسترخوان هغوي خوراک اوکه' ليكن حضور صلي الله عليه وسلّم مكروه كنړلو سره ئے سمسره اونه خوړله. كه هغه حرام وے. نو هغے ښځو به د حضور صلي الله عليه وسلّم په دسترخوان هغه نه خوړلے' اونه به حضور صلي الله عليه وسلّم هغوے ته د هغے د خوړلو حكم وركولو.

## باب ۱ ۲۳: السَّوِيْقِ.

## باب ۱ ۲۳: دستوانو بيان.

۳۵۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّهْبَاءِ وَ هِيَ عَلَى رَوْحَةٍ مِنْ خَيْبَرَ فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَدَعَا بِطَعَامٍ فَلَمْ يَجِدْهُ إِلَّا سَوِيقًا فَلَاكَ مِنْهُ فَلُكْنَا مَعَهُ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ ثُمَّ صَلَّى وَ صَلَّيْنَا وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۳۵۶: سليمان بن حرب. حماد. يحيٰي. بشير بن يسار. سويد بن نعمان نه روايت كوي. مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره مقام صهباء كښې وو' او هغه د خيبر نه د' يو منزل (پړاؤ) په فاصله دے. د' مونځ وخت راغے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم طعام طلب كه. نو سيوا' د' ستوانو نه بل څه پيدا نه شو. حضور صلي الله عليه وسلّم بغير اوبو هغه اوخوړل. مونږ هم ورسره بغير اوبو اوخوړل. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوبه اوغښتلے .او خوله ئے كنګال كړه. بيائے مونځ اوكه' خلكو هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره مونځ اوكه. ليكن حضور صلي الله عليه وسلّم اودس اونه كړلو.

بَابُ ۲۳۲: مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَأْكُلُ حَتَّى يُسَمَّى لَهُ فَيُعْلَمُ مَا هُوَ.

باب ۲۳۲: نبي عليه السلام به هغه وخته پورے يو څيز نه خوړلو' څو پورے چه به حضور صلي الله عليه وسلّم ته بيان اونه شو' او حضور صلي الله عليه وسلّم ته به معلومه نه شوه' چه څه دي.

۳۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو أُمَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ الْأَنْصَارِيُّ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ الَّذِي يُقَالُ لَهُ سَيْفُ اللَّهِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَيْمُونَةَ وَ هِيَ خَالَتُهُ وَ خَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ فَوَجَدَ عِنْدَهَا ضَبًّا مَحْنُوذًا قَدِمَتْ بِهِ أُخْتُهَا حُفَيْدَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ

۳۵۷: محمد بن مقاتل. ابوالحسن. عبدالله. يونس. زهري. ابو امامه بن سهل بن حنيف انصاري. ابن عباس. حضرت خالد بن وليد نه چه هغه ته سيف الله (د الله (ج) توره) وئيلے شوه' روايت كوي هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ميمونه رض له چه د هغوي او ابن عباس رض ترور (خاله) وه' ورغلل' هغے سره ئے وريته سمسره (ګوه) اوليده' چه د هغے خور' هفيده بن حرث د نجد نه راوړے وه او هغے ته ئے ليږلے وه. بي بي ميمونه رض د حضور صلي الله عليه وسلّم مخكښې سمسره پيش كړله او ډير كم به داسے وو. چه حضور صلي الله عليه وسلّم به خپل لاس څه

مِنْ نَّجْدٍ فَقَدَّمَتِ الضَّبَّ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ قَلَّمَا يُقَدِّمُ يَدَهُ لِطَعَامٍ حَتّٰى يُحَدَّثُ بِهٖ وَ يُسَمّٰى لَهُ فَاَهْوٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ اِلَى الضَّبِّ فَقَالَتِ امْرَاَةٌ مِّنَ النِّسْوَةِ الْحُضُوْرِ اَخْبِرْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَدَّمْتُنَّ لَهُ هُوَ الضَّبُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَنِ الضَّبِّ فَقَالَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ اَحَرَامٌ الضَّبُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا وَلٰكِنْ لَمْ يَكُنْ بِاَرْضِ قَوْمِيْ فَاَجِدُنِيْ اَعَافُهُ قَالَ خَالِدٌ فَاجْتَرَرْتُهُ فَاَكَلْتُهُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ اِلَيَّ.

خوراک طرف تـه ورمخکښې کولو، څو پورې چه حضور صلي الله عليه وسلّم ته به بيان اونه کړے شو، يا ورته بـه نه اوښودلے شو (چه دا څه دي) نو حضور صلي الله عليه وسلّم خپل لاس سمسرے طرف ته وروړاندے کـه. کومے زنانه چه د حضور صلي الله عليه وسلّم مخکښې حاضرے وے هغوئے کښې يوے حضور صلي الله عليه وسلّم نه سمسره اُوښودله، چه حضور صلي الله عليه وسلّم دا خو سمسره ده. چه ستاسو مخکښې پيش کړے شوے ده. حضور صلي الله عليه وسلّم لاس مبارک د سمسرے طرف نه راښکلو. خالد بن وليد عرض اوکه، يا رسول الله صلي الله عليه وسلّم، آيا سمسره حرامه ده. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه، ليکن زما ملک کښې نه شي بيامندے په دے وجه زما طبيعت ئے نه خوښوي. د خالد بن وليد بيان دے، ما د حضور صلي الله عليه وسلّم د مخے نه راښکله. او ما خپله اوخوړله حالانکه رسول الله صلي الله عليه وسلّم کتل.

## بَابٌ ۲۳۳ : طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الْاِثْنَيْنِ.

## باب ۲۳۳ : د يو سړي خوراک دوو سړو د پاره کافي وي.

۳۵۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامُ الْاِثْنَيْنِ كَافِي الثَّلٰثَةِ وَ طَعَامُ الثَّلٰثَةِ كَافِي الْاَرْبَعَةِ.

۳۵۸: عبدالله بن يوسف. مالک. اسماعيل. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے حضور صلي الله عليهوسلّم فرمائيلے دي د، دوو سړو خوراک د درے سړو د پاره او د، درے سړو خوراک څلور سړو د پاره کافي وي.

بـــاب ۲۳۴: اَلْـمُـؤْمِـنُ يَـــأْكُــلُ فِـــيْ مِـــعًـــى وَاحِدٍ.

۳۵۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْـنِ مُـحَمَّدٍ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْـنُ عُـمَـرَ لَا يَـأْكُـلُ حَتّٰـى يُـؤْتٰـى بِمِسْكِيْنٍ يَـأْكُلُ مَعَهُ فَاَدْخَلْتُ رَجُلًا يَأْكُلُ مَعَهُ فَاَكَلَ كَثِيْرًا فَقَالَ يَا نَافِعُ لَا تُدْخِلْ هٰذَا عَلَيَّ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْمُؤْمِنُ يَـأْكُلُ فِـيْ مِعًى وَّاحِدٍ وَّالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ اَمْعَآءٍ.

۳۶۰: حَـدَّثَـنَـا مُـحَـمَّـدُ بْـنُ سَلَامٍ اَخْبَـرَنَـا عَبْـدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَـافِـعٍ عَـنِ ابْـنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَـا قَـالَ قَـالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِـي مِـعًـى وَّاحِـدٍ وَ اِنَّ الْـكَـافِـرَ اَوِ الْمُنَافِقَ فَلَا اَدْرِيْ اَيُّهُمَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ يَـأْكُلُ فِـيْ سَبْـعَةِ اَمْعَآءٍ وَّ قَـالَ ابْنُ بُـكَيْرٍ حَـدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُـمَـرَ عَـنِ الـنَّـبِـيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهٖ.

باب ۲۳۴: مؤمن يوې كولمې سره خوري دې باب كښې د ابوهريرهؓ روايت د نبي عليه السلام نه منقول دې.

۳۵۹: مـحـمـد بـن بشـار. عبـدالصمد. شعبـه. واقـد بـن مـحـمـد. نـافع نه روايت كوي، چه ابن عمرؓ به هغـه وختـه پـورې ډوډي نـه خوړلـه، خو پورې چه يـو مسكيـن بــه هغـه لـه رانـه وستې شې چـه هغـه سره ډوډي اوخـوري مـا سـړې هـغــه لـه راوستلو، چـه هغـه سـره ډوډي اوخـوري، نـو هـغه سړې راغـې او ډير زيات خـوراك ئـې اوكـه، ابـن عـمـرؓ اووې، اې نافع بياته دې مـالـه مـه راولـه. ما د رسول عليه السلام نه اوريدلې دي، چـه مؤمـن يـوې كـولـمـې سـره خوري او كـافـر اووو كولمو سره خوري.

۳۶۰: مــحـــمـــد بـــن ســلام. عبـــده. عبيـدالـلّٰــه. نـافـع. ابـن عـمـر رضي الـلّٰـه عنـه نـه روايــت كــوي، حــضــور صــلـي الـلّٰـــه عـلـيـــه وسـلّـم اوفـرمـائـيـل، مؤمـن يـوې كـولـمـې سـره خـوري او كــافـر يـا منـافـق (يـاد نـه دي چـه دې دوو لـفـظـونـو يـعـنـي كـافـر او منافق كـښ عبيداللّٰـه كـوم لـفـظ بيـان كـه) اوو كـولـمـو سـره خـوري!، او د ابــن بــكـيــر بـيـــان دې چــه مــاتـــه مـــالـك پــواسـطــه د نـــافـــع، ابــن عــمــرؓ د نبــي صـلـي الـلّٰــه عــلـيـــه وسـلّـم نــه ددې پــه مثـل روايــت اوكه.

۱. طبيبانو په خپله كښې د شپږو كولمو ذكر كړې دې او ددې ټولو جدا جدا نومونه ئې هم ليكلي دي په حديث كښې ذكر دي چه كافر په اوو كلمو كښې خوراك كوي، شپږ كولمې خو د طِب نه ثابتې

دي ليكن سوال دا دے چه په حديث كښے د اوو كولمو ذكر د كوم ځائے نه راغلو؟ محدثينو دا اشكال حل كړے دے او مختلف جوابونه ئے وركړي دي بعضو محدثينو وئيلي دي چه د اومے كولمے نه مراد پخپله معده ده. بهرحال د حديث منشا داده چه كافر ډير خوراك كوي او مومن كم خوراك كوي د ير ډيره زياته پُرخوري او د بل كم خوري بيانولو د پاره دا تعبير اختيار كړے شوے دے. دا خبره دِ هم ملحوظه وي چه د اوو عدد په عربو كښ كثرت د پاره استعماليږي.

۳۶۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ كَانَ اَبُوْ نَهِيْكٍ رَجُلًا اَكُوْلًا فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْكَافِرَ يَأْكُلُ فِيْ سَبْعَةِ اَمْعَاءٍ فَقَالَ فَاَنَا اُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

۳۶۱: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو (بن دينار) نه روايت كوي چه ابو نهيک يو ډير زيات خوراكي (خيټه ور) سړے وو. هغه ته ابن عمرؓ اوويے حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي مسلمان يوے كولمے سره خوري، او كافر اوو كولمو سره خوري هغه اوويے چه ما خو په الله (ج) او د هغه په رسول صلي الله عليه وسلّم ايمان راوړے دے.

۳۶۲: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ الْمُسْلِمُ فِيْ مِعًى وَّاحِدٍ وَّالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِيْ سَبْعَةِ اَمْعَاءٍ.

۳۶۲: اسماعيل. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت دے. د هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، چه مسلمان يوے كولمے سره او كافر اوو كولمو سره خوري.

۳۶۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْكُلُ اَكْلًا كَثِيْرًا فَاَسْلَمَ فَكَانَ يَأْكُلُ اَكْلًا قَلِيْلًا فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِيْ مِعًى وَّاحِدٍ وَّالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِيْ سَبْعَةِ اَمْعَاءٍ.

۳۶۳: سليمان بن حرب. شعبه. عدي بن ثابت. ابو حازم. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. يو سړے ډير خوراک كونكے وو بيا هغه مسلمان شو، نو ډير كم خوراک ئے راواخيست، كوم وخت چه دا خبره حضور صلي الله عليه وسلّم ته بيان كړے شوه نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مؤمن يوے كولمے سره او كافر اوو كولمو سره خوري.

## بَابٌ ۲۳۵: اَلْاَكْلِ

## باب ۲۳۵: تكيه لږولو سره، د، خوراک كولو

مُتَّكِئًا.

بيان.

۳٦۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْاَقْمَرِ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اٰكُلُ مُتَّكِئًا.

۳٦۴: ابـو نـعيـم. مسـعـر. علـي بـن اقـمـر. ابـو جـحيـفة نـه روايـت كـوي. د هغـه بيـان دے. نبـي علـيـه السلام اوفـرمـائيـل' زه تكيـه لـګـولو سـره نه خورم.

۳٦۵: حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ اَخْبَرَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْاَقْمَرِ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهٗ لَا اٰكُلُ وَ اَنَا مُتَّكِئٌ.

۳٦۵: عثمـان بـن ابي شيبـه. جـريـر. منصور. علـي بـن اقـمـر. ابـو جـحيفـه نـه روايت كـوي' د هغـه بيـان دے' زه رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عـليـه وسلّم سـره ووم. نـو حـضـور صـلـي اللّٰـه عـليـه وسلّم يـو سـړي تـه اوفـرمـائيـل' زه تـكيـه لـګـولـو سـره نـه خورم.

باب ۲۳٦: الشِّوَآءِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَجَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ مَّشْوِيٍّ.

باب ۲۳٦: د' وريـت (نُـجـفـي) څيز د' خوړلو بيان.

۳٦٦: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِضَبٍّ مَّشْوِيٍّ فَاَهْوٰى اِلَيْهِ لِيَاْكُلَ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّهٗ ضَبٌّ فَاَمْسَكَ يَدَهٗ فَقَالَ خَالِدٌ اَحَرَامٌ هُوَ قَالَ لَا وَلٰكِنَّهٗ لَا يَكُوْنُ بِاَرْضِ قَوْمِيْ فَاَجِدُنِيْ اَعَافُهٗ فَاَكَلَ خَالِدٌ وَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ قَالَ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِضَبٍّ مَحْنُوْذٍ.

۳٦٦: علي بن عبداللّٰه. هشام بن يوسف. معمر. زهـري. ابـو امـامـه بن سهل. ابن عباس. خالد بن وليد نه روايـت كـوي' حـضـور صـلـي اللّٰـه عليه وسلّم ته وريته سـمسـره راوړلے شوه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے طـرف تـه ورخـكته شو' نو ورته اووئيلے شو' دا سمسره ده' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل لاس اونيولو. نو خالدؓ بـن وليـد اووے آيـا دا حرام ده' حضور صلي اللّٰه عـليـه وسـلّم ورتـه اوفرمائيل' نه. ليكن دا خما د قوم په خـمكه كښې نه وي' په دے وجه زه خپل طبيعت ددے نه متنفر بيا مومم نو خالدؓ بن وليد هغه سمسره او خوړله' او رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰه عليه وسلّم ورته كتل. مالك په واسـطـه د' ابـن شهاب: ضب محنوذ: لفظ روايت كړے دے. (يعني په تبئ وريته كړے شوے).

**باب۲۳۷: الْخَزِيْرَةِ قَالَ النَّضْرُ الْخَزِيْرَةُ مِنَ النُّخَالَةِ وَالْحَرِيْرَةُ مِنَ اللَّبَنِ.**

۳۶۷: حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّ عُتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ وَّ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِّنَ الْاَنْصَارِ اَنَّهٗ اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَنْكَرْتُ بَصَرِيْ وَ اَنَا اُصَلِّيْ لِقَوْمِيْ فَاِذَا كَانَتِ الْاَمْطَارُ سَالَ الْوَادِي الَّذِيْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُمْ لَمْ اَسْتَطِعْ اَنْ اٰتِيَ مَسْجِدَهُمْ فَاُصَلِّيْ لَهُمْ فَوَدِدْتُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَّكَ تَأْتِيْ فَتُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ فَاَتَّخِذُهٗ مُصَلًّى فَقَالَ سَاَفْعَلُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ عُتْبَانُ فَغَدَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ حِيْنَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ فَاسْتَأْذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَذِنْتُ لَهٗ فَلَمْ يَجْلِسْ حَتّٰى دَخَلَ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ لِيْ اَيْنَ تُحِبُّ اَنْ اُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ فَاَشَرْتُ اِلٰى نَاحِيَةٍ مِّنَ الْبَيْتِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرَ فَصَفَفْنَا

**باب۲۳۷: د خزیره بیان،** نضر بیان اوکه چه خزیره د میدے نه (جدید عربي کښې سوئیان) او حریره د، پیؤ نه جوړیږي.

۳۶۷: یحیٰي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. محمود بن ربیع انصاري نه روایت کوي، عتبان بن مالک چه د نبي علیه السلام صحابي وو، او د بدر غزا کښې شریک شوے وو. د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئے اوکه، یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم زما بینائي ختمه شوے ده، او زه خپل قوم ته مونځ ورکوم، کوم. وخت چه باران شي، نو ناله چه زما او د، هغوي مینځ کښې حائله ده، په بهیدو شي، او زه د هغوے جمات ته مونځ ورکولو د پاره نه شم تلے په دے وجه، یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم زه غواړم چه تاسو تشریف راوړئے او زما کور کښې مونځ اوکړئے. چه زه هغه د مونځ ځائے جوړ کړم. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، زه به انشآء اللّٰه داسے اوکړم (یعني دربه شم) په دویمه ورځ سحر کښې چه نمر را اوچت ختلے وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او ابوبکرؓ تشریف راوړلو نبي علیه السلام دننه د، راتلو اجازت اوغوښتلو ما اجازت ورکړلو. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم کورته رانوتلو، چرته لا ناست نه وو ماته ئے اوفرمائیل، ته خپل کور کښې کوم ځائے خوښوے چه هلته زه مونځ اوکړم. ما د کور یو ګټ طرف ته اشاره اوکړله. نو نبيؐ اودریدلو او تکبیر ئے اوکړلو. مونږ ټولو هم صف بسته شو. بیا حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دوه رکعاته مونځ اوکړلو او. سلام

فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ وَ جَلَسْنَاهُ عَلٰى خَزِيْرٍ صَنَعْنَاهُ فَثَابَ فِي الْبَيْتِ رِجَالٌ مِنْ اَهْلِ الدَّارِ ذَوُوْ عَدَدٍ فَاجْتَمَعُوْا فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ اَيْنَ مَالِكُ بْنُ الدُّخْشُنِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ ذٰلِكَ مُنَافِقٌ لَا يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُلْ اَلَا تَرَاهُ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ قَالَ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ قُلْنَا فَاِنَّا نَرٰى وَجْهَهُ وَ نَصِيْحَتَهُ اِلَى الْمُنَافِقِيْنَ فَقَالَ فَاِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَى النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَاَلْتُ الْحُصَيْنَ بْنَ مُحَمَّدٍ الْاَنْصَارِيَّ اَحَدَ بَنِيْ سَالِمٍ وَّ كَانَ مِنْ سَرَاتِهِمْ عَنْ حَدِيْثِ مَحْمُوْدٍ فَصَدَّقَهُ.

لیے. او ګرخورلو. مونږ حضور صلي الله علیه وسلّم د خزیره خوړلو د پاره چه حضور صلي الله علیه وسلّم د پاره تیاره کړے شوه ایسار کړلو. کور کښې د محلے ډیر خلق راجمع شوے وو، هغوے کښې چا اووے، مالک بن دخیشن چرته دے. چا اووے هغه منافق دے، الله (ج) او د هغه رسول سره محبت نه ساتي، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، داسے مه وائے، تاسو نه ګورئے چه هغه: لا اله الا الله: وئیلے دي، او، د، دے نه د هغه مقصد رضائے الٰهي ده. خلقو اووے. الله جل جلاله او د هغه رسول الله صلي الله علیه وسلّم ښه پوهیږي. مونږ اووے، مونږ د هغه رُخ منافقانو طرف ته او د هغوے خیر خواهي کونکے وینو. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، الله (ج) د، جهنم اور په هغه حرام کړے دے. چا چه خالصًا د الله جل جلاله د پاره لا اله الا الله: اووے د ابن شهاب بیان دے. بیا ما د حصین بن محمد انصاري نه چه د بني سالم یو فرد او دهغوے سردار وو د، محمود د، حدیث متعلق تپوس اوکه. نو هغه ددے تصدیق اوکه.

بَابٌ ۲۳۸: اَلْاَقِطِ. وَ قَالَ حُمَيْدٌ سَمِعْتُ اَنَسًا بَنَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَفِيَّةَ فَاَلْقَى التَّمْرَ وَالْاَقِطَ وَالسَّمْنَ وَ قَالَ عَمْرُو بْنُ اَبِيْ عَمْرٍو عَنْ اَنَسٍ صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْسًا.

باب ۲۳۸: د، پنیر بیان. او د حمید بیان دے، ما د، انس نه واوریدل نبي علیه السلام بي بي صفیے سره زفاف (خلوت) اوکه. نو د، ولیمے دعوت کښې حضور صلي الله علیه وسلّم قجورے، پنیر او غوړي پیش کړل او عمرو بن ابي عمرو، انس نه روایت کوي چه نبي علیه السلام حیس تیار کړے وو.

ف: حیس: د قجورو، پنیر او غوړو مالیده.

۳۶۸: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ

۳۶۸: مسلم بن ابراهیم. شعبه. ابو بشر. سعد. ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے،

عَنْ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَهْدَتْ خَالَتِيْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضِبَابًا وَّ اَقِطًا وَّ لَبَنًا فَوُضِعَ الضَّبُّ عَلٰى مَائِدَتِهٖ فَلَوْ كَانَ حَرَامًا لَمْ يُوْضَعْ وَ شَرِبَ اللَّبَنَ وَ اَكَلَ الْاَقِطَ.

خما ترور (خاله) نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته سمسره (كوه) پنير او' پئے اوليږل' نو سمسره د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په دسترخوان كيښودے شوه' كه حرام وے نو ايښودے شوے به نه وه او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پئے اوڅكل او پنير' ئے اوخوړل.

باب ۲۳۹: السِّلْقِ وَالشَّعِيْرِ.

باب ۲۳۹: د چقندر او وربشو بيان.

۳۶۹: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ قَالَ اِنْ كُنَّا لَنَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ كَانَتْ لَنَا عَجُوْزٌ تَاْخُذُ اُصُوْلَ السِّلْقِ فَتَجْعَلُهٗ فِيْ قِدْرٍ لَّهَا فَتَجْعَلُ فِيْهِ حَبَّاتٍ مِّنْ شَعِيْرٍ اِذَا صَلَّيْنَا زُرْنَاهَا فَقَرَّبَتْهُ اِلَيْنَا وَ كُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ اَجَلِ ذٰلِكَ وَمَا كُنَّا نَتَغَدّٰى وَلَا نَقِيْلُ اِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ وَاللّٰهِ مَا فِيْهِ شَحْمٌ وَّلَا وَدَكٌ.

۳۶۹: يحيٰي بن بكير. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت كوي' مونږ به د جمعے په ورځ ډير خوشحاله وو' ځكه چه يوه بوډئے وه' چه مونږ د پاره به ئے چقندر جرړے راوښكلے او كټوئے كښ به ئے پخولے' او هغے كښ به ئے يو څو دانے د وربشو هم پخولے' كوم وخت چه به مونږ مونځ اوكه' نو هغے بوډئے پله به ورتلو' هغے به مونږ ته (د' چقندر پخے جرړے) پيش كولے. مونږ به د جمعے په ورځ په دے سبب خوشحاله وو. او مونږ به د جمعے د مونځ نه وروستو ډوډی خوړله او قيلوله (د غرمے ارام) به مو' كولو. او (د چقندرو) دے خوراک كښ به نه چربي وه' او نه بل څه غوړوالے.

باب ۲۴۰: النَّهْسِ وَانْتِشَالِ اللَّحْمِ.

باب ۲۴۰: غوښه' مخكښو غاښونو سره د' شوكولو او ديګچي نه راوښكلو سره د خوړلو بيان.

۳۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَعَرَّقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتِفًا ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى وَلَمْ

۳۷۰: عبداللّٰه بن عبدالوهاب. حماد. ايوب. محمد. ابن عباسؓ نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د' يو پتون غوښه په غاښونو شوكولو سره اوخوړله' او مونځ ئے اوكه' ليكن اودس ئے اونه كه: او

يَتَوَضَّأُ وَ عَنْ أَيُّوبَ وَ عَاصِمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْتَشَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرْقًا مِنْ قِدْرٍ فَأَكَلَ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

ايوب، او عاصم په واسطه د، عكرمه د حضرت ابن عباسؓ قول نقل كوي، چه حضور صلي الله عليه وسلم د كټوئي نه غوښه راوښكله اووې خوړله بيائي مونځ اوكړه، او، اودس ئي اونه كه.

## بَاب ۱۲۴۱: تَعَرُّقِ الْعَضُدِ.

باب ۱۲۴۱: د، پټون غوښه د پريكولو او خوړلو بيان.

۱۳۷۱: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ حَازِمٍ الْمَدَنِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ مَكَّةَ ح حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ قَتَادَةَ السَّلَمِيِّ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ يَوْمًا جَالِسًا مَعَ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَنْزِلٍ فِيْ طَرِيْقِ مَكَّةَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَازِلٌ أَمَامَنَا وَالْقَوْمُ مُحْرِمُوْنَ وَ أَنَا غَيْرُ مُحْرِمٍ فَأَبْصَرُوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا وَ أَنَا مَشْغُوْلٌ أَخْصِفُ نَعْلِيْ فَلَمْ يُؤْذِنُوْنِيْ وَ أَحَبُّوْا لَوْ أَنِّيْ أَبْصَرْتُهُ فَالْتَفَتُّ فَأَبْصَرْتُهُ فَقُمْتُ إِلَى الْفَرَسِ

۱۳۷۱: محمد بن مثني. عثمان بن عمر. فليح. ابو حازم. مدني. عبدالله بن ابي قتاده نه روايت كوي، مونږ نبي عليه السلام سره مكې طرف ته روان شو (دويم سند) عبدالعزيز بن عبدالله، محمد بن جعفر. ابو حازم. عبدالله بن ابي قتاده سلمي د، خپل پلار نه روايت كوي، چه زه يو ورځ د نبي صلي الله عليه وسلم څو صحابه ؤ رضي الله عنهم سره ناست ووم، كوم وخت چه مونږ مكې ته تلو، او يو منزل (پړاؤ) كښې ايسار وو. او رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ نه مخكښې قيام كړے وو. ټول خلق د احرام حالت كښې وو. خو زه د احرام په حالت كښې نه ووم. خلكو يو ځنګلي خر. (ګورخر) اوليد، هغه وخت زه د خپل پيزار ګنډلو كښې مصروف ووم خلقو زه خبرنه كړم. ليكن غوښتل ئې، چه كاش ما هغه (ځنګلي خر) ليدلے وے. ما چه اخوا او كتل نو ما هغه اوليدلو. زۀ آس طرف ته ورغلم په هغې م زين كس كړلو. بيا پرے سور شوم، خو نيزه او كوړه اخستل رانه هير شو ما خلقوته اووے ماله كوړه او نيزه راكړئے، هغې خلقو جواب راكه، چه نه قسم په خدائے (ج) مونږ ستا هيڅ مدد نه كوو ماله غصه راغله. زه د آس نه راكوز

فَأَسْرَجْتُهُ ثُمَّ رَكِبْتُ وَ نَسِيتُ السَّوْطَ وَالرُّمْحَ فَقُلْتُ لَهُمْ نَاوِلُونِيَ السَّوْطَ وَالرُّمْحَ فَقَالُوا لَا وَاللهِ لَا نُعِينُكَ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ فَغَضِبْتُ فَنَزَلْتُ فَأَخَذْتُهُمَا ثُمَّ رَكِبْتُ فَشَدَدْتُ عَلَى الْحِمَارِ فَعَقَرْتُهُ ثُمَّ جِئْتُ بِهِ وَ قَدْمَاتَ فَوَقَعُوا فِيهِ يَأْكُلُونَهُ ثُمَّ اِنَّهُمْ شَكُّوا فِي اَكْلِهِمْ إِيَّاهُ وَهُمْ حُرُمٌ فَرُحْنَا وَ خَبَأْتُ الْعَضُدَ مَعِيَ وَ اَدْرَكْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ فَنَاوَلْتُهُ الْعَضُدَ فَأَكَلَهَا حَتّٰى تَعَرَّقَهَا وَهُوَ مُحْرِمٌ قَالَ ابْنُ جَعْفَرٍ وَّ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ مِثْلَهُ.

شوم دواړه خيزونه (کوړه او نيزه) م راواخيستل بيا زه سور شوم. او په هغه (ځنګلي خر) م حمله اوکړه او، م ويشتو، پس د هغې چه د، هغه نه ساه اوخته نو راوم ړلو. خلق د، هغې په خوراک مشغول شو. بيا هغې خلقو ته د احرام حالت کښې د خوړلو متعلق شک شو. هغې نه پس مونږ روان شو. او پتون م پټ کيښودلو. کوم وخت چه مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته راورسيدو. نو مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم نه ددې متعلق تپوس اوکه. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو سره د، هغې نه څه باقي پاتې شته. نو ما پتون حضور صلي الله عليه وسلّم ته پيش کړلو. د هغې غوښه حضور صلي الله عليه وسلّم په غاښونو شوکولو سره اوخوړله. حالانکه حضور صلي الله عليه وسلّم د، احرام حالت کښ وو. محمد بن جعفر، او زيد بن اسلم په واسطه د عطآء بن يسار، ابو قتاده دا حديث بيان کړے دے.

## بَاب ۲۴۲: قَطْعِ اللَّحْمِ بِالسِّكِّيْنِ.

## باب ۲۴۲: چړے سره د غوښے پرے کولو بيان.

۳۷۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو ابْنِ اُمَيَّةَ اَنَّ اَبَاهُ عَمْرَو بْنَ اُمَيَّةَ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِيْ يَدِهٖ فَدُعِيَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَلْقَاهَا وَالسِّكِّيْنَ الَّتِيْ يَحْتَزُّ بِهَا ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۳۷۲: ابواليمان. شعيب. زهري. جعفر بن عمرو بن اميه. د خپل پلار عمرو بن اميه نه روايت کوي. هغه نبي عليه السلام اوليدو. چه د چيلې پتون د حضور صلي الله عليه وسلّم په لاس کښ وو. چه هغه حضور صلي الله عليه وسلّم چړے سره پريکولو اوخوړلو. بيا مانځه د پاره اذان اوشو، نو هغه پتون او چاړه. چه هغې سره حضور صلي الله عليه وسلّم غوښه پريکوله. يو طرف ته کښودل. او اُودريدلو. بيائے مونځ اوکه او اودس ئے اونه که.

بـاب ۲۴۳: مَـا عَـابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا.

۳۷۳: حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ اَخْبَـرَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَا عَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ اِنِ اشْتَهَـاهُ اَكَـلَـهُ وَ اِنْ كَـرِهَـهُ تَرَكَهُ.

باب ۲۴۳: نبي صلي الله عليه وسلّم هيڅكله يو خوراكې ته بد نه دي ونيلي.

۳۷۳: محمد بن كثير. سفيان. اعمش. ابو حازم. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم هيڅ كله د يو خوراك بدي نه ده بيان كړے. كه طعام به ئے خوښ وو. نو خوړلو به ئے او كه ناخوښه به ئے وو نو پرے به ئے ښودلو.

باب ۲۴۴: النَّفْخِ فِي الشَّعِيْرِ.

۳۷۴: حَـدَّثَـنَـا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ اَنَّهُ سَاَلَ سَهْلًا هَلْ رَاَيْتُمْ فِيْ زَمَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّقِيَّ قَالَ لَا فَقُلْتُ كُنْتُمْ تَنْخُلُوْنَ الشَّعِيْرَ قَالَ لَا وَلٰكِنْ كُنَّا نَنْفُخُهُ.

باب ۲۴۴: د وربشو پُوكلو بيان.

۳۷۴: سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. ابو حازم نه روايت كوي، هغه سهل نه تپوس او كه، آيا تا د حضور صلي الله عليه وسلّم په زمانه كښې ميده ليدلے وه، هغه اووے نه، بيا ما تپوس اوكه، آيا د وربشو اوړه به ئے چڼړول، هغه اووے نه، خو مونږ خلقو به هغے له پُوكے وركولو.

بـاب ۲۴۵: مَـا كَـانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ اَصْحَابُهُ يَاْكُلُوْنَ.

۳۷۵: حَـدَّثَـنَـا اَبُـو النُّعْمٰنِ حَـدَّثَـنَـا حَـمَّـادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبَّاسٍ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بَيْنَ اَصْحَابِهٖ تَمْرًا فَاَعْطٰى كُلَّ اِنْسَانٍ سَبْعَ تَمَرَاتٍ فَاَعْطَانِيْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ اِحْدٰهُنَّ حَشَفَةٌ فَلَمْ يَكُنْ فِيْهِنَّ تَمْرَةٌ اَعْجَبَ

باب ۲۴۵: نبي عليه السلام او د حضور صلي الله عليه وسلّم صحابهؓ و به څه خوړل.

۳۷۵: ابو نعمان. حماد بن زيد. عباس. جريري. ابو عثمان نهدي. ابو هريرهؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم يو ورځ خپلو صحابوؓ كښې قجورے تقسم كړلے. هر سړي ته ئے اوه قجورے وركړے، ماته ئے هم اوه قجورے راكړلے هغے كښې يوه ښه نه وه. ليكن هغې قجورو كښې ددے نه زياته هيڅ قجوره څما خوښه نه وه، ځكه چه هغه جويلو كښې سخته وه. (او ډير وخته

إِلَيَّ مِنْهَا شَدَّتْ فِيْ مَضَاغِيْ.

پوره اِخوله كښې وه).

۳۷۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ سَعْدٍ قَالَ رَاَيْتُنِيْ سَابِعَ سَبْعَةٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَنَا طَعَامٌ اِلَّا وَرَقُ الْحُبْلَةِ اَوِ الْحُبْلَةِ حَتّٰى يَضَعَ اَحَدُنَا مَا تَضَعُ الشَّاةُ ثُمَّ اَصْبَحَتْ بَنُوْ اَسَدٍ تُعَزِّرُنِيْ عَلَى الْاِسْلَامِ خَسِرْتُ اِذًا وَ ضَلَّ سَعْيِيْ.

۳۷۶: عبداللّٰه بن محمد. وهب بن جرير شعبه. اسماعيل. قيس. سعد نه روايت كوي، زه په نبي عليه السلام د، ايمان راوړونكو نه اووم سړے ووم، زمونږ خوراك د، اونېږ د، پانړوو نه سيوا نور هيڅ نه وو. تردې چه مونږ به د چيلو په شان پچے كولے اوس بني اسد، مونږ ته د اسلام تعليم راكوي كه زه د هغوے د تعليم محتاج يم نو خما كوششونه ضايع شو، او زه نقصان كښې پاتے شوم.

۱. دے خلقو د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې د دوئ دا شكايت عمر رضي الله عنه ته كړے وو چه دے ته په ښے طريقے سره مونځ كول نه ورځي.

۳۷۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَاَلْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ فَقُلْتُ هَلْ اَكَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّقِيَّ فَقَالَ سَهْلٌ مَا رَاٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّقِيَّ مِنْ حِيْنَ ابْتَعَثَهُ اللّٰهُ حَتّٰى قَبَضَهُ اللّٰهُ قَالَ فَقُلْتُ هَلْ كَانَتْ لَكُمْ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنَاخِلُ قَالَ مَا رَاٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْخُلًا مِنْ حِيْنَ ابْتَعَثَهُ اللّٰهُ حَتّٰى قَبَضَهُ قَالَ قُلْتُ كَيْفَ كُنْتُمْ تَاْكُلُوْنَ الشَّعِيْرَ غَيْرَ

۳۷۷: قتيبه بن سعيد. يعقوب. ابو حازم بيان كوي، ما د سهل بن سعد نه تپوس اوكه، چه آيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ميده خوړلے ده. سهل اووے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د كوم وخت نه چه اللّٰه (جل جلاله) مبعوث كه. په ميده خوړلو نه دے ليدلے. تردې چه وفات شولو بيا ما تپوس اوكه. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښې به تاسو چانړ (چهلني) استعمالولو هغه اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چانړ نه وو ليدلے، د كوم وخت نه چه اللّٰه (ج) مبعوث كړے وو، تردې چه اللّٰه تعالي واخستلو ما تپوس اوكه تاسو به وربشے بغير چانړ نه استعمالولے هغه اووے مونږ به هغه تولے (اوړه كړے) او پو كړے به مو

مَنْخُوْلٍ قَالَ كُنَّا نَطْحَنُهُ وَ نَنْفُخُهُ فَيَطِيْرُ مَا طَارَ وَ مَا بَقِيَ ثَرَّيْنَاهُ فَاَكَلْنَاهُ.

ورکولو خومره چه به کیدے شوه. د هغے بوسکے به آلوتل او خومره چه به باقي پاتے شوے هغه به مونږ اغوړلے او' خوړلے.

۳۷۸: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ فَدَعَوْهُ فَاَبٰى اَنْ يَّاْكُلَ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الدُّنْيَا وَلَمْ يَشْبَعْ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيْرِ.

۳۷۸: اسحق بن ابراهيم. روح بن عباده. ابن ابي ذئب. سعيد مقبري. ابوهريرهؓ نه روايت کوي' هغه په يو جماعت تير شو' هغوئے سره يوه وريته چيلئے وه. هغے خلقو هغه اوبله' خو هغه خوراک نه انکار او که اووئيلے: چه حضور صلي الله عليه وسلّم د' دُنيا نه تشريف يوړلو. داسے حال کښې' چه د' وربشو ډوډۍ ئے هم په مړه خيټه اونه خوړله.

۳۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعَاذٌ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ مَا اَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى خِوَانٍ وَّلَا فِيْ سُكُرُّجَةٍ وَّلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ قُلْتُ لِقَتَادَةَ عَلٰى مَا يَاْكُلُوْنَ قَالَ عَلَى السُّفَرِ.

۳۷۹: عبدالله بن ابي اسود. معاذ د معاذ پلار. يونس. قتاده. انس بن مالکؓ نه روايت کوي' د هغه بيان دے' نبي عليه السلام نه وړو' وړو' رکيبو کښې' نه په دسترخوان او نه نرے نرے چپاتے خوړلے دي' ما تپوس او که' بيا حضور صلي الله عليه وسلّم خوړل په څه' هغه اووے' په سُفره.

ف: سُفره: د مسافر توشه. د فقيرانو او درويشانو بوجکي يا بوځخکې توشه دان لنګر چه پوخ کړے شي او په غريبانو اوويشلے شي د تکړو لنګر (الله پاک دے دا لنګر خمونږ هم نصيب کړي. اللّٰهُمَّ امين).

۳۸۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا شَبِعَ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ مِنْ طَعَامِ الْبُرِّ ثَلٰثَ لَيَالٍ تِبَاعًا حَتّٰى قُبِضَ صَلَّى اللّٰهُ

۳۸۰: قتيبه. جرير. منصور. ابراهيم. اسود. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي' د هغے بيان دے. د محمد صلي الله عليه وسلّم کوروالو د کوم وخت نه چه مديني ته راغلل' د غنمو ډوډي درے ورځے پرله پسے په مړه خيټه نه ده خوړلے' تردے چه الله تعالٰي حضور صلي الله عليه وسلّم وفات

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

كړلو.

باب ۲۴۶: التَّلْبِيْنَةِ.

باب ۲۴۶: د تلبينه بيان.

ف: تلبينه: د غنمو اُوړو نرمه حلوا. د اُوړو ټينګه شيره.

۳۸۱: حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا كَانَتْ اِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ مِنْ اَهْلِهَا فَاجْتَمَعَ لِذٰلِكَ النِّسَآءُ ثُمَّ تَفَرَّقْنَ اِلَّا اَهْلَهَا وَ خَآصَّتَهَا اَمَرَتْ بِبُرْمَةٍ مِّنْ تَلْبِيْنَةٍ فَطُبِخَتْ ثُمَّ صُنِعَ ثَرِيْدٌ فَصُبَّتِ التَّلْبِيْنَةُ عَلَيْهَا ثُمَّ قَالَ كُلْنَ مِنْهَا فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ التَّلْبِيْنَةُ مُجَمَّةٌ لِّفُوءَ ادِ الْمَرِيْضِ تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ.

۳۸۱: يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. عروه. د نبي عليه السلام تېر بي بي عائشې نه روايت کوي، د هغې بيان دې، کله چه د هغوي څوک رشته دار به مړ شو نو ښځې به جمع شوې بيا به ټولې خپل خپل کورته لاړې. نو خاص خاص او قريبي ښځې به پاتې شوې او، د تلبينې (شيرې) جوړولو حکم به ئې اوکه. هغه به پخه کړې شوه، بيا به په ماته ډوډي هغه شيره واچولې شوه. بيا به ئې فرمائيل چه دا، خورئې، ځکه چه ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلې دي، چه تلبينه د مريضانو زړه ته ارام ورکوي. او غم لرې کوي.

ف: ثريد: خوروا کښې د لوندې شوې روټې ټکړې ماته ډوډي. (شوربا از هر غذائے بهتر است) اين حديث گفته پيغمبرؐ است.

باب ۲۴۷: الثَّرِيْدِ.

باب ۲۴۷: د ثريد بيان.

۳۸۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ الْجَمَلِيِّ عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى الْاَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَمَلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَّلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَ اٰسِيَةُ

۳۸۲: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عمرو بن مره جملي. مره. همداني. ابو موسٰي اشعري. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، نارينه ؤ کښې خو ډير سړي کامل تير شوې دي، ليکن زنانه ؤ کښې کاملې ښځې د: (۱) مريم بنت عمران او (۲) آسيه (د فرعون د، ښځې) نه علاوه بله هيڅوک کامله نه

امْرَاَةُ فِرْعَوْنَ وَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَآءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ.

ده تيره شوے. او د عائشے فضيلت په ټولو ښځو داسے دے، لکه ثريد ته چه په ټولو طعامونو فضيلت حاصل دے.

۳۸۳: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ طُوَالَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَآءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ.

۳۸۳: عمرو بن عون. خالد بن عبداللّٰه. ابو طواله. انس. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها ته په نورو ښځو داسے فضيلت دے، څنګه چه ثريد ته په ټولو طعامونو فضيلت دے.

۳۸۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ اَبَا حَاتِمٍ الْاَشْهَلَ بْنَ حَاتِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى غُلَامٍ لَهُ خَيَّاطٍ فَقَدَّمَ اِلَيْهِ قَصْعَةً فِيْهَا ثَرِيْدٌ قَالَ وَ اَقْبَلَ عَلٰى عَمَلِهِ قَلَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّآءَ قَالَ فَجَعَلْتُ اَتَتَبَّعُهُ فَاَضَعُهُ بَيْنَ يَدَيْهِ قَالَ فَمَازِلْتُ بَعْدُ اُحِبُّ الدُّبَّآءَ.

۳۸۴: عبداللّٰه بن منير. ابو حاتم اشهل بن حاتم. ابن عون. ثمامه بن انس. انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. زه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو غلام له ورغلم، چه درزي وو. هغه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته يوه پيالئ پيش کړه، چه هغے کښې ثريد وو، بيا په خپل کار شروع شو. د حضرت انس بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به کدو تلاش کولو (لټولو). ما به هم کدو لټولو. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته به مِ مخے ته ايښودولو. او د دے نه پس به ما هم کدو خوښولو.

باب۲۴۸: شَاةٍ مَسْمُوْطَةٍ وَالْكَتِفِ وَالْجَنْبِ.

باب۲۴۸: وريته چيلے، د پتون او د اړخ د غوښے خوړلو بيان.

۳۸۵: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيٰى عَنْ قَتَادَةَ قَالَ كُنَّا نَاْتِيْ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ وَّ خَبَّازُهُ قَآئِمٌ قَالَ كُلُوْا فَمَا اَعْلَمُ النَّبِيَّ

۳۸۵: هدبه بن خالد. همام بن يحيٰى. قتاده نه روايت کوي. مونږ خلق به انس بن مالک له راتلو. يوه ورځ زه راغلم، نو او، مِ ليدل، چه د هغه باورچي ولاړ وو، هغه اووے، خورئ. څکه چه ماته نه ده معلومه، چه نبي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَغِيْفًا مُرَقَّقًا حَتّٰى لَحِقَ بِاللّٰهِ وَلَا رَاٰى شَاةً سَمِيْطًا بِعَيْنِهٖ قَطُّ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم نرئ چپاتئ ليدلے وي، تردے چه اللّٰه سره يو ځائے (وفات) شولو. اونه ماته دا معلومه ده، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم وريته چيلئ خوړلے وي.

۳۸۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ جَعْفَرِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ اُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فَاَكَلَ مِنْهَا فَدُعِيَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَقَامَ فَطَرَحَ السِّكِّيْنَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّاْ.

۳۸۶: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. معمر زهري. جعفر بن عمرو بن اُميه ضمري. د خپل پلار نه روايت كوي، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو. چه د چيلئ يو پټون ئے پريكولو او خوړلو. بيا مانځه د پاره آذان اوشو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم (د، غوښے پريكولو چاړه) او غورځوله، مونځ ئے اوكه، ليكن اودس ئے اونه كه.

باب ۲۴۹: مَا كَانَ السَّلَفُ يَدَّخِرُوْنَ فِيْ بُيُوْتِهِمْ وَ اَسْفَارِهِمْ مِنَ الطَّعَامِ وَاللَّحْمِ وَ غَيْرِهٖ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ وَ اَسْمَآءُ صَنَعْنَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ سُفْرَةً.

باب ۲۴۹: مخكنو خلقو به خپلو كورونو او سفر كښې د څه قسم خوراک او غوښه وغيره ذخيره كوله. او بي بي عائشے او بي بي اسماءؓ بيان اوكه، مونږ د، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او حضرت ابوبكرؓ د پاره يو سفره (توشه دان) تيار كړے وو.

۳۸۷: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ اَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُؤْكَلَ لُحُوْمُ الْاَضَاحِيِّ فَوْقَ ثَلٰثٍ قَالَتْ مَا فَعَلَهٗ اِلَّا فِيْ عَامٍ جَاعَ النَّاسُ فِيْهِ فَاَرَادَ اَنْ يُّطْعِمَ الْغَنِيُّ الْفَقِيْرَ وَ اِنْ كُنَّا لَنَرْفَعُ الْكُرَاعَ فَنَاْكُلُهٗ بَعْدَ خَمْسَ عَشْرَةَ قِيْلَ مَا اضْطَرَّكُمْ اِلَيْهِ فَضَحِكَتْ قَالَتْ مَا

۳۸۷: خلاد بن يحيي. سفيان. عبدالرحمٰن بن عابس د خپل پلار نه روايت كوي. ما د حضرت عائشهؓ نه تپوس اوكه، آيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د قربانئ غوښه د، درے ورځو نه زياته د، خوړلو نه منع فرمائيلے ده، هغے اووے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د، دے نه صرف په هغه كال منع اوفرمائيله، په كوم كال چه خلق اوږے وو. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوغوښتل، چه غني دے په فقير خوروي، مونږ د هغے سُم ساتل، او هغه به مو د پنځلس ورځو نه پس خوړل. چا تپوس اوكه، تاسوته ددے ضرورت څنگه پيښ شو، هغے او خاندل، او

شَبِعَ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خُبْزِ بُرٍّ مَّا دُوْمٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ حَتّٰى لَحِقَ بِاللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَابِسٍ بِهٰذَا.

ونيلې چه ال محمدﷺ هيڅ کله اينګولي سره د غنمو روټئ درې ورځو پورې متواتر نه ده خوړلې. تردې چه حضور صلي الله عليه وسلّم وفات شولو. او د ابن کثير بيان دې، چه ماته سفيان پواسطه د عبدالرحمن بن عابس دا بيان اوکه.

۳۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو وَ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُوْمَ الْهَدْيِ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ تَابَعَهُ مُحَمَّدٌ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَآءٍ اَقَالَ حَتّٰى جِئْنَا الْمَدِيْنَةَ قَالَ لَا.

۳۸۸: عبدالله بن محمد. سفيان. عمرو. عطاء. جابر نه روايت کوي، مونږ به د رسول الله صلي الله عليه وسلّم زمانه کښې د قربانئ غوښه مدينې پورې راوړله. محمد په واسطه د ابن عيينه ددې متابع حديث روايت که. او ابن جريج بيان اوکه، ما د عطاء نه تپوس اوکه، آيا هغه دا بيان هم اوکه چه: حتّٰى جئنا المدينة: تر دې چه مونږ مدينې ته راغلو. هغه اووې، نه.

## باب ۲۵۰: الْحَيْسِ.

## باب ۲۵۰: د حيس بيان.

۳۸۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ ابْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَبِيْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَنْطَبٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَلْحَةَ الْتَمِسْ غُلَامًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِيْ فَخَرَجَ بِيْ اَبُوْ طَلْحَةَ يُرْدِفُنِيْ وَرَآءَهٗ فَكُنْتُ اَخْدُمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّمَا نَزَلَ فَكُنْتُ اَسْمَعُهٗ يُكْثِرُ

۳۸۹: قتيبه. اسماعيل بن جابر. عمرو بن ابي عمرو (د مطلب بن عبدالله بن حنطب د آزاد کړده غلام) نه روايت کوي، ما د انس بن مالک نه واوريدل، نبي صلي الله عليه وسلّم ابو طلحه ته اوفرمائيل، خپلو بچو کښې يو بچې راوله، چه خما خدمت کوي، نو ابو طلحه زه خپل شاته کينولم، او رائې وستم. ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کولو. چه کله به (د سورلي نه) کوزيدلو، نو ما به د حضور صلي الله عليه وسلّم دعا کول آوريدل، چه اې اللّٰه، غم، رنځ، عُجز، سُستې، بُخل، بزدلي، قرض او د خلقو د غلبې نه زه ستا پناه غواړم (اللّٰه پاک دې دا پناه خمونږ هم نصيب کړي اللّٰهم آمين) ما برابر د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کولو، تردې چه مونږ د خيبر نه

أَنْ يَقُوْلَ اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَ ضَلَعِ الدَّيْنِ وَ غَلَبَةِ الرِّجَالِ فَلَمْ أَزَلْ أَخْدُمُهُ حَتّٰى أَقْبَلْنَا مِنْ خَيْبَرَ وَ أَقْبَلَ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَدْ حَازَهَا فَكُنْتُ أَرَاهُ يُحَوِّيْ وَرَآءَهُ بِعَبَاءَةٍ أَوْ بِكَسَاءٍ ثُمَّ يُرْدِفُهَا وَرَآءَهُ حَتّٰى إِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ صَنَعَ حَيْسًا فِيْ نِطَعٍ ثُمَّ أَرْسَلَنِيْ فَدَعَوْتُ رِجَالًا فَأَكَلُوْا وَ كَانَ ذٰلِكَ بِنَاءَهُ بِهَا ثُمَّ أَقْبَلَ حَتّٰى إِذَا بَدَا لَهُ أُحُدٌ قَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ فَلَمَّا أَشْرَفَ عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ جَبَلَيْهَا مِثْلَ مَا حَرَّمَ بِهِ إِبْرَاهِيْمُ مَكَّةَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مُدِّهِمْ وَ صَاعِهِمْ.

راغلو، او حضور صلي الله عليه وسلّم، صفيهٔ بنت حيي راوسته، چه حضور صلي الله عليه وسلّم خان د پاره منتخب کړې وه. ما اوليدل، چه حضور صلي الله عليه وسلّم به خان پسې روستو هغې د پاره د څادر وغيره پرده کوله، او هغه به ئې خان پسې ورستو کينوله، ترديې چه کوم وخت مونږ مقام صهباء ته راورسيدو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم حيس تيار کړلو، او په يو چرمي (د څرمنې) دسترخوان ئې کينودلو. بيائې زه د خلقو د رابللو د پاره اوليږلم، نو ما خلق راوبلل، هغوي راغلل، او طعام ئې اوخوړلو. او دا بي بي صفيې سره د زفاف (خلوت) د وخت واقعه ده. بيا روان شو. ترديې چه کوم وخت د اُحد غر په نظر راغې، نو وې فرمائيل، چه دا غر مونږ سره محبت کوي او مونږ ده سره محبت کوو. بيا چه مدينه ښکاره شو نو وې فرمائيل يا الله، زه د دواړو غرونو، مينځ کښ دا زمکه حرام کرځوم، څنګه چه حضرت ابراهيم عليه السلام مکه حرام کرځولې وه، يا الله، د مدينې په مُد او صاع (پيمانه) کښ برکت واچوې.

ف: حيس: د، قجورو، غوړو او پنير ماليده، چوري.

## بَاب ۲۵۱: اَلْاَكْلِ فِيْ إِنَاءٍ مُفَضَّضٍ.

## باب ۲۵۱: په چاندي ملمع کړې لوښي کښ د، خوراک بيان.

ف: ملمعَ: خلولې شوې. د سپينو زرو اوبه پرې خيژولې شوې. ظاهري نمائش. قلعي کول.

۳۹۰: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفُ ابْنُ أَبِيْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُالرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِيْ لَيْلٰى أَنَّهُمْ كَانُوْا عِنْدَ حُذَيْفَةَ فَاسْتَسْقٰى فَسَقَاهُ مَجُوْسِيٌّ

۳۹۰: ابو نعيم. سيف بن ابي سليمان. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلي. نه روايت کوي، مونږ خلق حذيفهؓ سره ناست وو هغه اوبه اوغوښتلې. يو مجوسي هغه له اوبه راوړې. کوم وخت چه پيالئې ئې د هغه

فَلَمَّا وَضَعَ الْقَدَحَ فِيْ يَدِهٖ رَمَاهُ بِهٖ وَ قَالَ لَوْلَا اَنِّيْ نَهَيْتُهُ غَيْرَ مَرَّةٍ وَّلَا مَرَّتَيْنِ كَاَنَّهُ يَقُوْلُ لَمْ اَفْعَلْ هٰذَا وَلٰكِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَلْبَسُوا الْحَرِيْرَ وَلَا الدِّيْبَاجَ وَلَا تَشْرَبُوْا فِيْ اٰنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَا تَاْكُلُوْا فِيْ صِحَافِهَا فَاِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَ لَنَا فِي الْاٰخِرَةِ.

لاس کښې کېښوده، نو هغه اوويشتله او وئيلې که دې ما، يو يا دوه ځله منع کړې نه وې، نو داسې به م نه وو کړې (يعني پيالې به م نه ويشتله) ما د حضور صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي، ريښم او ديباج مه اغوندئې، اومه د، سرو سپينو په لوښي کښې اوبه څکئې، اومه د، دې رکيبو کښې، خوراک خورئې، ځکه چه دنيا کښې دا د، کفارو سامان دې. او مونږ د پاره اخرت کښې دې.

## باب ۲۵۲: ذِكْرِ الطَّعَامِ.

## باب ۲۵۲: د، خوراک ذکر.

۳۹۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الْاُتْرُجَّةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَّ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِيْ لَا يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ التَّمْرَةِ لَا رِيْحَ لَهَا وَ طَعْمُهَا حُلْوٌ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ لَا يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ لَيْسَ لَهَا رِيْحٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ.

۳۹۱: قتيبه. ابو عوانه. قتاده. انس. ابو موسي اشعريؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د قرآن لوستونکي مؤمن مثال د سنګترې په شان دې، چه د هغې بوئ هم ښه دې، او مزه ئې هم ښه ده. او د قرآن نه لوستونکي مؤمن مثال د قجورې په شان دې، چه هغه خوږه وي ليکن هغې کښې خوشبوئي نه وي، او د قرآن لوستونکي منافق مثال. د. کشمالو د ګل په شان دې، چه د، دې بوئ خو، ښه دې، خو، خوندئې تريخ دې. او قرآن نه لوستونکې منافق په شان د، کاکوړې (مرغونې) دې، چه نه ئې بوئ ښه دې، او خوند ئې هم تريخ دې. اندرائن: ترخه منړه. کاکوړه).

۳۹۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

۳۹۲: مسدد. خالد. عبدالله. عبيدالله بن عبدالرحمن. انسؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل.

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَآءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ.

د بي بي عائشےؓ فضيلت په ټولو ښځو داسے دے. څنګه چه ثريد ته په نورو طعامونو فضيلت حاصل دے.

۳۹۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِّنَ الْعَذَابِ يَمْنَعُ اَحَدَكُمْ نَوْمَهٗ وَ طَعَامَهٗ فَاِذَا قَضٰى نَهْمَتَهٗ مِنْ وَّجْهِهٖ فَلْيُعَجِّلْ اِلٰى اَهْلِهٖ.

۳۹۳: ابو نعيم. مالک. سمّي. ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: سفر د عذاب يوه ټکړه ده، چه تاسو د خوراک څکاک نه منع کوي، کوم وخت چه ذاتي ضرورت مو، پوره شي، نو زر خپل کورته واپس کيږئ.

## باب۲۵۳: اَلْاُدُمِ.

## باب۲۵۳: د، ترکارئ بيان.

۳۹۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ رَّبِيْعَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ يَقُوْلُ كَانَ فِيْ بَرِيْرَةَ ثَلٰثُ سُنَنٍ اَرَادَتْ عَائِشَةُ اَنْ تَشْتَرِيَهَا فَتُعْتِقَهَا فَقَالَ اَهْلُهَا وَ لَنَا الْوَلَآءُ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ شِئْتِ شَرَطِيْهِ لَهُمْ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ قَالَ وَ اُعْتِقَتْ فَخُيِّرَتْ فِيْ اَنْ تَقِرَّ تَحْتَ زَوْجِهَا اَوْ تُفَارِقَهٗ وَ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بَيْتَ عَائِشَةَ وَ عَلَى النَّارِ بُرْمَةٌ تَفُوْرُ

۳۹۴: قتيبه بن سعيد. اسماعيل بن جعفر. ربيعه. قاسم بن محمد نه روايت کوي، د، بريرهؓ د حديث نه درے خبرے معلومے شوے: بي بي عائشے رضي الله عنها اوغوتل، چه بريرهؓ (په بيعه) واخلي، او ازاده ئے کړي. د هغے مالکانو اووے، چه د ولاء (ميراث) حق به د هغوي وي. هغے دا خبره حضور صلي الله عليه وسلّم ته بيان کړه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: که ته ئے اخستل غواړے، نو هغوي دے شرط او کړي (حرج نشته) څکه چه د، ولاء حق خو، د هغے چا، دے، چه آزاده ئے کړي، نو بريرهؓ واخستے شوه، او آزاده کړے شوه. او هغے ته د خپل خاوند باره کښ اختيار ورکړے شو، که هغه سره اوسي، يا جدا کيږے ترے. او يو ورځ حضور صلي الله عليه وسلّم د، بي بي عائشےؓ کورته تشريف راوړلو، او هغه وخت کټوئے په نغري جوش وهلو. حضور صلي الله عليه وسلّم ته روټئے او د

فَدَعَا بِالْغَدَآءِ فَأُتِيَ بِخُبْزٍ وَّ اُدُمِ الْبَيْتِ فَقَالَ اَلَمْ اَرَ لَحْمًا قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّهُ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهٖ عَلٰى بَرِيْرَةَ فَاَهْدَتْهُ لَنَا فَقَالَ هُوَ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا وَ هَدِيَّةٌ لَنَا.

کور پخکړے ترکاري راوړے شوه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا زه غوښه نه وينم. جواب ورکړے شو. او، يا رسول الله، دا غوښه ده، چه بريرهؓ ته صدقه کښې ورکړے شوے ده. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغے د پاره صدقه ده، ليکن مونږ د پاره هديه ده.

باب ۲۵۴: الْحَلْوَآءِ وَالْعَسَلِ.

باب ۲۵۴: د، حلوه او شاتو بيان.

۵۳۹۵: حَدَّثَنِىْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ عَنْ اَبِىْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ اَبِىْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ.

۵۳۹۵: اسحاق بن ابراهيم حنظلي. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، د هغے بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم به حلوه او، شات ډير زيات خوښول.

۵۳۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ شَيْبَةَ قَالَ اَخْبَرَنِىْ بْنُ اَبِىْ الْفُدَيْكِ عَنِ ابْنِ اَبِىْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنْتُ اَلْزَمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِشِبَعِ بَطْنِىْ حِيْنَ لَا اٰكُلُ الْخَمِيْرَ وَلَا اَلْبَسُ الْحَرِيْرَ وَلَا يَخْدُمُنِىْ فُلَانٌ وَّ لَا فُلَانَةُ وَ اُلْصِقُ بَطْنِىْ بِالْحَصْبَآءِ وَ اَسْتَقْرِئُ الرَّجُلَ الْاٰيَةَ وَ هِىَ مَعِىْ كَىْ يَنْقَلِبَ بِىْ فَيُطْعِمَنِىْ وَ خَيْرُ النَّاسِ لِلْمَسَاكِيْنِ جَعْفَرُ بْنُ اَبِىْ طَالِبٍ يَنْقَلِبُ بِنَا فَيُطْعِمُنَا مَا كَانَ فِىْ بَيْتِهٖ حَتّٰى اِنْ كَانَ لَيُخْرِجُ اِلَيْنَا الْعُكَّةَ

۵۳۹۶: عبدالرحمن بن شيبه. ابن ابي الفديک. ابن ابي ذئب مقبري. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. زه به هميشه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښې ووم. ماته به خوراک د پاره روټئ او اغوستلو د پاره ريښم نه حاصليدل، صرف خيټه به م ډکيدله. او نه څه وينزه يا غلام خمونږ خلقو د پاره وو. او ما به خپلے خيټے سره (د، لوږے نه) کانړي تړل. او حالانکه زه به پوهيدم، ليکن خلقوته به ما د، آيت د لوستو د پاره وئيلے چه هغوي ما کورته بوځي، او ډوډي راباندے اوخروي. او مسکينانو د پاره د ټولو نه زيات ښه سړے جعفر بن ابي طالب وو، چه مونږ به ئے خان سره بوتلو، او څه چه به د هغه کور کښې موجود وو، په مونږ به ئے خوروّل. تردے چه بعضے وخت به ئے خالي لوښي راوړل، هغه به

لَيْسَ فِيْهَا شَيْءٌ فَنَشْتَقُّهَا فَنَلْعَقُ مَا فِيْهَا.

ما ځر كند كړل' او څه چه به هغې كښې وو' هغه به ما اوڅټل.

## باب ۲۵۵ : الدُّبَّاءِ.

## باب ۲۵۵ : د' كدو' بيان.

۳۹۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيّ حَدَّثَنَا اَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ ثُمَامَةَ ابْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَى مَوْلًى لَهُ خَيَّاطًا فَاُتِيَ بِدُبَّاءٍ فَجَعَلَ يَاْكُلُهُ فَلَمْ اَزَلْ اُحِبُّهُ مُنْذُ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّهُ.

۳۹۷: عمرو بن علي. ازهر بن سعد. ابن عون. ثمامه بن انس. انسؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل يو غلام درزي له تشريف راوړلو. هغه كدو راوړلو' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه خوړلو. په كومه ورځ چه ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په كدو خوړلو اوليدلو' نو د هغې ورځې نه زه هم كدو خوښوم.

## باب ۲۵۶ : الرَّجُلِ يَتَكَلَّفُ الطَّعَامَ لِاِخْوَانِهٖ.

## باب ۲۵۶ : د' هغه سړي بيان چه هغه خپلو وروڼرو باندې خوړولو كښې تكليف كوي.

۳۹۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ مِنَ الْاَنْصَارِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ اَبُوْ شُعَيْبٍ وَّ كَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ فَقَالَ اصْنَعْ لِيْ طَعَامًا اَدْعُوْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ فَدَعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَوْتَنَا خَامِسَ خَمْسَةٍ وَّ هٰذَا رَجُلٌ قَدْ تَبِعَنَا فَاِنْ شِئْتَ اَذِنْتَ لَهُ وَ اِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ

۳۹۸: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابو وائل. ابو مسعود انصاري نه روايت كوي' انصارو كښې يو سړې' چه د هغه نوم ابو شعيب وو' د هغه يو غوښه خرخونكې (قصاب) غلام وو. هغه خپل غلام ته اووې' طعام تيار كړه' چه زه سره د' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته پنځو سړو سره دعوت وركړم' نو هغه سره د' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم پنځه سړي راوبلل حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يو سړې بل هم راغې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' تا مونږ پنځه كسان بللي يو. خو دا سړې هم راسره ملګرې شوې دې' كه ته غواړې' نو ده له هم اجازت وركړه' او كه ستا خواهش نه وي' نو دې واپس اوليږه. هغه اووې' ده ته هم (تاسو سره دعوت كښې) اجازت دې. محمد بن

قَالَ بَلْ اَذِنْتُ لَهُ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنِ اِسْمَاعِيْلَ يَقُوْلَ اِذَا كَانَ الْقَوْمُ عَلَى الْمَائِدَةِ فَلَيْسَ لَهُمْ اَنْ يَنَاوَلُوْا مِنْ مَائِدَةٍ اِلَى مَائِدَةٍ اُخْرٰى وَلٰكِنْ يُنَاوِلُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فِيْ تِلْكَ الْمَائِدَةِ اَوْ يَدَعُوْا.

**بـاب ۲۵۷ : مَنْ اَضَافَ رَجُلًا اِلَى طَعَامٍ وَّ اَقْبَلَ هُوَ عَلٰى عَمَلِهٖ.**

**۳۹۹**: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ النَّضْرَ اَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ثُمَامَةُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا اَمْشِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى غُلَامٍ لَهُ خَيَّاطٍ فَاَتَاهُ بِقَصْعَةٍ فِيْهَا طَعَامٌ وَّ عَلَيْهِ دُبَّاءٌ فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ قَالَ فَلَمَّا رَاَيْتُ ذٰلِكَ جَعَلْتُ اَجْمَعُهُ بَيْنَ يَدَيْهِ قَالَ فَاَقْبَلَ الْغُلَامُ عَلٰى عَمَلِهٖ قَالَ اَنَسٌ لَا اَزَالُ اُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ مَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مَا صَنَعَ.

**باب ۲۵۸ : اَلْمَرَقِ.**

**۴۰۰**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

يوسف اووے، ما د محمد بن اسماعيل نه واوريدل، هر كله چه څو كسان په دسترخوان ناست وي، نو جائز نه دي چه يو دسترخوان واله خلق بل دسترخوان باندے ناستو خلقوته وركړي. ليكن يو دسترخوان باندے ناستو خلقو ته خپلو كښ يو بل ته د وركولو يا نه وركولو اختيار دے.

**باب ۲۵۷ : د هغے سړي بيان، چه چاته د خوراک دعوت وركړي، او خپله څه كار كښ مشغول شي.**

**۳۹۹**: عبدالله بن منير. نضر. ابن عون. ثمامه بن عبدالله بن انس. انس نه روايت كوي، زه كم عمره ووم. رسول الله صلي الله عليه وسلم سره روان ووم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د خپل يو درزي غلام په كور كښ داخل شولو، نو هغه يوه پيالئے پيش كړله، او هغے كښ كدو وو. رسول اللهؐ به كدو لټولو، او راوښكلو. هر كله چه ما اوليدل، نو ما د حضور صلي الله عليه وسلم مخكښ كدو جمع كول شروع كړل، او هغه غلام خپل كار كښ مشغول شو. د حضرت انس رضي الله عنه بيان دے. د كوم وخت نه چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسے كولو ليدلے دے، نو د هغے ورځے نه زه كدو خوښوم.

**باب ۲۵۸ : د ښوروا بيان.**

**۴۰۰**: عبدالله بن مسلمه. مالک. اسحاق

مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَنَّ خَيَّاطًا دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهُ فَذَهَبْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَّبَ خُبْزَ شَعِيْرٍ وَّ مَرَقًا فِيْهِ دُبَّآءٌ وَّ قَدِيْدٌ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّآءَ مِنْ حَوَالِي الْقَصْعَةِ فَلَمْ اَزَلْ اُحِبُّ الدُّبَّآءَ بَعْدَ يَوْمَئِذٍ.

بن عبداللّٰه بن ابي طلحه. انس بن مالكؓ نه روايت كوي. يو درزي نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د طعام خوړلو دعوت وركه. چه هغه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د پاره تيار كړے وو. زه هم نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره لاړم، هغه د، وربشے روټيے او ښوروا پيش كړله، چه هغے كښې كدو او اوچه غوښه وه. ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، چه د، كدو ځلور واړه طرف ته به ئے كدو لټولو، او راوښكلو. نو د هغے ورځے نه پس زه هم كدو خوښوم.

## باب ۲۵۹: اَلْقَدِيْدِ.

## باب ۲۵۹: دَ اوچے غوښے بيان.

۴۰۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِمَرَقَةٍ فِيْهَا دُبَّآءٌ وَّ قَدِيْدٌ فَرَاَيْتُهُ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّآءَ يَاْكُلُهَا.

۴۰۱: ابو نعيم. مالک بن انس. اسحاق بن عبداللّٰه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ښوروا راوړے شوه. هغے كښې كدو او اوچه غوښه وه. ما اوليدل، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به د هغے نه كدو راوښكلو، او خوړلو به ئے.

۴۰۲: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا فَعَلَهُ اِلَّا فِيْ عَامٍ جَاعَ النَّاسُ اَرَادَ اَنْ يُّطْعِمَ الْغَنِيُّ الْفَقِيْرَ وَ اِنْ كُنَّا لَنَرْفَعُ الْكُرَاعَ بَعْدَ خَمْسَ عَشْرَةَ وَمَا شَبِعَ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خُبْزِ بُرٍّ مَا دُوْمٍ ثَلٰثًا.

۴۰۲: قبيصه. سفيان. عبدالرحمٰن بن عابس عابس. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د، قرباني د، غوښے د، درے ورځو نه زيات د خوړلو ممانعت په هغه كال كړے وو، په كوم كال چه خلق د، لوږے نه مره كيدل. د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مقصد دا وو، چه غني دے په فقير اوخوروي. كني مونږ خلقو به پنځلس پنځلس ورځو پورے سر پښے ايښودلے. آل محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم درے ورځے مسلسل أينكولي سره په مره خيټه روټئے نه ده خوړلے.

**باب ۲٦۰: مَنْ نَاوَلَ اَوْ قَدَّمَ لِصَاحِبِهٖ عَلَى الْمَائِدَةِ شَيْئًا قَالَ وَ قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ لَا بَأْسَ اَنْ يُنَاوِلَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا وَّلَا يُنَاوِلُ مِنْ هٰذِهِ الْمَائِدَةِ اِلٰى مَائِدَةٍ اُخْرٰى.**

۴۰۳: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ اِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهٗ قَالَ اَنَسٌ فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى ذٰلِكَ الطَّعَامِ فَقَرَّبَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُبْزًا مِّنْ شَعِيْرٍ وَّ مَرَقًا فِيْهِ دُبَّآءٌ وَّ قَدِيْدٌ قَالَ اَنَسٌ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّآءَ مِنْ حَوْلِ الصَّحْفَةِ فَلَمْ اَزَلْ اُحِبُّ الدُّبَّآءَ مِنْ يَّوْمَئِذٍ وَّ قَالَ ثُمَامَةُ عَنْ اَنَسٍ فَجَعَلْتُ اَجْمَعُ الدُّبَّآءَ بَيْنَ يَدَيْهِ.

**بـاب ۲٦۱: الـرُّطَـبِ بِالْقِثَّآءِ.**

۴۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى

**باب ۲٦۰: که يو سړے خپل دوست ته څه څيز راوړي، يا هغه په دسترخوان کيږدي نو د' دے متعلق ابن مبارک اووے، يو دستر خوان بانـدے يو بل لـه څـه ورکولو کښ څه حرج نشته. ليکن د يو دسترخوان نه په بل دسترخوان دے نه ورکوي.**

۴۰۳: اسماعيل. مالک. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالک نه روايت کوي' د هغه بيان دے. يو درزي نبي صلي الله عليه وسلم ته د' طعام دعوت ورکړلو' چه هغه حضور صلي الله عليه وسلم د پاره پخکړے وو. د انسؓ بيان دے. زه هم حضور صلي الله عليه وسلم سره هغے دعوت کښ شامل شوم. هغه د حضور صلي الله عليه وسلم مخکښ د' وربشو ډوډي او ښوروا پيش کړله' چه هغے کښ کدو او' اوچه غوښه وه. د حضرت انسؓ بيان دے' ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو' چه د پيالئے څلور واړه طرفه نه ئے کدو تلاش کولو. د هغے ورځے نه زه هم کدو خوښوم' او ثمامه د انسؓ نه دومره زيات الفاظو سره بيان اوکه' چه ما د حضور صلي الله عليه وسلم مخکښ کدو جمع کولو.

**باب ۲٦۱: تازه قجورے او ترے (ککړے) د' يوځائے خوړلو بيان.**

۴۰۴: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. عبدالله بن جعفر بن ابي طالب نه روايت کوي' د هغه بيان دے' ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو' چه تر

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ.

قجورې ئې تـرو (ککړيو ن) سـره يـوځـائې خوړلې.

باب ۲۶۲: اَلْحَشَفِ.

باب ۲۶۲: (دا باب بې عنوانه دې).

۵۰۴۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبَّاسٍ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ قَالَ تَضَيَّفْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ سَبْعًا فَكَانَ هُوَ وَامْرَاَتُهُ وَ خَادِمُهُ يَعْتَقِبُوْنَ اللَّيْلَ اَثْلَاثًا يُصَلِّيْ هٰذَا ثُمَّ يُوْقِظُ هٰذَا وَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ قَسَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَصْحَابِهِ تَمْرًا فَاَصَابَنِيْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ اِحْدٰهُنَّ حَشَفَةٌ.

۵۰۴۰: مسدد. حماد بن زيد. عباس جريري. ابو عثمانؓ نه روايت کوي د هغه بيان دې، زه اوو ورځو پورې د ابوهريرهؓ ميلمه ووم، هغه، د هغه ښځه او د هغه خادم به دريمه حصه (۱/۳) شپه په وار، وار پاسيدل. چه يو به مونځ او کړلو نو بل به ئې پاسولو. ما د، انس نه واوريدل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو صحابهؓ کښې قجورې تقسيم کړلې. ماله ئې هم اووه قجورې راکړې، چه هغې کښې يوه خرابه وه.

۵۰۴۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَنَا تَمْرًا فَاَصَابَنِيْ مِنْهُ خَمْسٌ اَرْبَعُ تَمَرَاتٍ وَّ حَشَفَةٌ ثُمَّ رَاَيْتُ الْحَشَفَةَ هِيَ اَشَدُّ هُنَّ لِضِرْسِيْ.

۵۰۴۶: محمد بن صباح. اسماعيل بن زکريا. عاصم. ابو عثمان. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خمونږ مينځ کښې قجورې تقسيم کړلې. ماته پنځه قجورې راکړې شوې. هغې کښې څلور قجورې ښې وې، او يوه خرابه وه. خو هغه خما جويلو کښې سخته وه.

باب ۲۶۳: اَلرُّطَبِ وَالتَّمْرِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ هُزِّيْ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا وَّ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَّنْصُوْرِ بْنِ صَفِيَّةَ حَدَّثَتْنِيْ اُمِّيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَدْ شَبِعْنَا

باب ۲۶۳: د، تازه او، اوچو قجورو (رطب او تمر) بيان. او د، اللّٰه تعالٰي قول: وَ هزّی اليک بجذع النّخلةِ تساقط عليکِ رُطبًا جنيًّا: او محمد بن يوسف په واسطه د، سفيان، منصور بن صفيه، د، منصور مور، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. د هغې بيان دې، د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د، وفات نه مخکښې به مونږ خلقو اس ردين يعني قجورو او،

مِنَ الْاَسْوَدَيْنِ التَّمَرِ وَالْمَآءِ.

۴۰۷: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ رَبِيْعَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ؓ قَالَ كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ يَهُوْدِيٌّ وَ كَانَ يُسْلِفُنِيْ فِيْ تَمْرِيْ اِلَى الْجِدَادِ وَ كَانَتْ لِجَابِرٍ ؓ الْاَرْضُ الَّتِيْ بِطَرِيْقِ رُوْمَةَ فَجَلَسَتْ فَخَلَا عَامًا فَجَآءَ نِيَ الْيَهُوْدِيُّ عِنْدَ الْجِدَادِ وَلَمْ اَجِدَّ مِنْهَا شَيْئًا فَجَعَلْتُ اَسْتَنْظِرُهُ اِلٰى قَابِلٍ فَيَاْبٰى فَاُخْبِرَ بِذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِاَصْحَابِهِ امْشُوْا نَسْتَنْظِرُ لِجَابِرٍ ؓ مِنَ الْيَهُوْدِيِّ فَجَآءُوْنِيْ فِيْ نَخْلِيْ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَلِّمُ الْيَهُوْدِيَّ فَيَقُوْلُ اَبَا الْقَاسِمِ لَا اُنْظِرُهُ فَلَمَّا رَاَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فَطَافَ فِي النَّخْلِ ثُمَّ جَآءَهُ فَكَلَّمَهُ فَاَبٰى فَقُمْتُ فَجِئْتُ بِقَلِيْلِ رُطَبٍ فَوَضَعْتُهُ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوبو سره خیته ډکوله.

۴۰۷: سعید بن ابي مریم. ابو غسان. ابو حازم. ابراهیم بن عبدالرحمٰن بن عبدالله بن ابي ربیعه. جابر بن عبدالله نه روایت کوي، د هغه بیان دے. مدینه کښې یو یهودي وو، چه ماسره به ئے خما قجورو کښې د، هغے د شوکولو د، وخته پورے بیع سلم کولو. خما یوه زمکه د بیر رومه په لاره کښې وه. یو کال دے زمکه کښې هیڅ پیداوار اونه شولو. ماته یهودي د میوے شوکولو په وخت راغے. او ما د هغے نه هیڅ شوکولے نه وو. ما د هغه نه د راتلونکي کال د پاره مهلت اوغوښتلو. لیکن هغه انکار اوکړلو، نبي صلي الله علیه وسلّم ته د هغے خبر اوشو، حضور صلي الله علیه وسلّم خپلو صحابه ؓ ته اووے، ځئ چه جابر له ددے یهودي نه مهلت واخلو. نو دا خلق خما باغ ته راغلل، نبي صلي الله علیه وسلّم هغے یهودي ته د مهلت ورکولو د پاره اووے، نو هغے یهودي اووے. اے ابوالقاسم، زه ده له مهلت نه ورکوم. هر کله چه نبي صلي الله علیه وسلّم دا صورت اولیدلو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم اودریدلو او باغ کښې ئے چکر، اولګولو. بیا هغے یهودي له راغے. خبرے اترے ئے ورسره اوکړے (د، مهلت ورکولو ئے ورته اووے) خو هغه اونه منله، زه اودریدم، او لږے شان تازه قجورے مِ راوړلے، او د حضور صلي الله علیه وسلّم مخکښې م کیښودلے. حضور صلي الله علیه وسلّم هغه اوخوړلے. بیائے اوفرمائیل. اے جابره، ستا جونګړه کوم ځائے وه، ما حضور صلي الله علیه وسلّم ته هغه ځائے اوښودلو. نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ما د پاره څه

فَأَكَلَ ثُمَّ قَالَ أَيْنَ عَرِيشُكَ يَا جَابِرُ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ افْرُشْ لِيْ فِيْهِ فَفَرَشْتُهُ فَدَخَلَ فَرَقَدَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَجِئْتُهُ بِقَبْضَةٍ أُخْرٰى فَأَكَلَ مِنْهَا ثُمَّ قَامَ فَكَلَّمَ الْيَهُوْدِيَّ فَأَبٰى عَلَيْهِ فَقَامَ فِي الرِّطَابِ فِي النَّخْلِ الثَّانِيَةَ ثُمَّ قَالَ يَا جَابِرُ جُدَّ وَاقْضِ فَوَقَفَ فِي الْجِدَادِ فَجَدَدْتُ مِنْهَا مَا قَضَيْتُهُ وَ فَضَلَ مِنْهُ فَخَرَجْتُ حَتّٰى جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَشَّرْتُهُ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ عَرُوْشٌ وَّ عَرِيْشٌ بِنَآءٌ وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَّعْرُوْشَاتٍ مَّا يُعَرَّشُ مِنَ الْكُرُوْمِ وَ غَيْرِ ذٰلِكَ. يُقَالُ عُرُوْشُهَا اَبْنِيَتُهَا.

فرش اوغوړوه. نو ما اوغوړولو. حضور صلي الله عليه وسلّم دننه ورغے' او اوده شولو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم بيدار شولو. او يهودي سره ئے د مهلت متعلق خبرے اوكړے' خو هغه اونه منلے' نو حضور صلي الله عليه وسلّم په دريم وار قجورو طرف ته تشريف راوړلو' او' وے فرمائيل' اے جابره' ته شوكوه' او يهودي ته ئے ادا كوه. حضور صلي الله عليه وسلّم د قجورو په خائے كيناستلو' نو ما دومره قجورے اوشوكولے' چه هغے سره ما د هغے يهودي قرض ادا كړلو' او څه باقي هم پاتے شوے. زه بهر راووتم' تردے چه د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم' او حضور صلي الله عليه وسلّم ته م خوشخبري واوروله. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زه ګواهي كوم' چه زه د الله رسول يم. عروش او عريش نه مراد مكان دے. او ابن عباسؓ اووے' چه معروشات د انګورو وغيره د كچه څيزونو جوړ ځائے ته وائي. عروشها معني دي' د هغے مكانات.

## بَابٌ ۲۶۴: اَكْلِ الْجُمَّارِ.

## باب ۲۶۴: د' جُمار (د قجورو د' كچه وړي) خوړلو بيان.

۴۰۸: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوْسٌ اِذْ اُتِيَ بِجُمَّارِ نَخْلَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ

۴۰۸: عمر بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. مجاهد. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' مونږ خلق نبي صلي الله عليه وسلّم سره ناست وو' نو چا حضور صلي الله عليه وسلّم ته د كچه قجورو غنچك راوليږلو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' يوه اونه داسے ده' چه هغے كښ بركت د مسلمان په شان دے. ما خيال اوكه' چه د حضور صلي

مِنَ الشَّجَرِ لَمَا بَرَكَتُهُ كَبَرَكَةِ الْمُسْلِمِ فَظَنَنْتُ اَنَّهُ يَعْنِي النَّخْلَةَ فَاَرَدْتُ اَنْ اَقُوْلَ هِيَ النَّخْلَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ثُمَّ الْتَفَتُّ فَاِذَا اَنَا عَاشِرُ عَشَرَةٍ اَنَا اَحْدَثُهُمْ فَسَكَتُّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ.

اللّٰه عليه وسلّم مقصد د قجورے اونه ده' ما بنودل غوښتل' چه يا رسول اللّٰه هغه د قجورے اونه ده (کومه چه تاسو يادونے) بيا ما ښلور طرف ته نظر اوکه' نو و م ليدل' چه زه د لسو نه' لسم يم' او هغوي کښې کم عمره يم' په دے وجه زه خاموش پاتے شوم' بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه د قجورے اونه ده.

**باب ۲۶۵ : الْعَجْوَةِ.**

باب ۲۶۵ : د' عجوه (د' مدينے منورے د' اعلي قجورو) بيان.

۴۰۹ : حَدَّثَنَا جُمُعَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ اَخْبَرَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ اَخْبَرَنَا عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَصَبَّحَ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعَ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَمْ يَضُرُّهُ فِيْ ذٰلِكَ الْيَوْمِ سَمٌّ وَلَا سِحْرٌ.

۴۰۹ : جمعه بن عبداللّٰه. مروان. هاشم بن هاشم. عامر بن سعد. د خپل پلار نه روايت کوي' د هغه بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' کوم سړے چه هر سحر اوه قجورے خوري' نو په هغه به نه څه زهر او نه څه جادو هغه ته نقصان رسولے شي.

**بَابُ ۲۶۶ : الْقِرَانِ فِي التَّمْرِ.**

باب ۲۶۶ : دوه قجورے په يو ځائے د' خوړلو بيان.

۴۱۰ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ قَالَ اَصَابَنَا عَامُ سَنَةٍ مَّعَ ابْنِ الزُّبَيْرِ رَزَقَنَا تَمْرًا فَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ يَمُرُّ بِنَا وَنَحْنُ نَأْكُلُ وَ يَقُوْلُ لَا تُقَارِنُوْا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْقِرَانِ ثُمَّ يَقُوْلُ اِلَّا اَنْ يَسْتَاْذِنَ الرَّجُلُ اَخَاهُ قَالَ شُعْبَةُ الْاِذْنُ مِنْ قَوْلِ ابْنِ عُمَرَ.

۴۱۰ : آدم. شعبه. جبله بن سحيم بيان کوي' مونږ خلق د عبداللّٰه بن زبير په زمانه کښې قحط کښې مبتلا شو' او مونږ ته به قجورے راکولے شوے. عبداللّٰه بن عمر به هم کله کله تيريدلو' کله چه به مونږ قجورے خوړلے' نو هغه به وئيلے' دوه قجورے په يو ځائے مه خورئ ځکه چه حضورؐ دوه قجورے يوځائے د خوړلو نه منع فرمائيلے ده. بيا به ئے فرمائيل' خو' دے شرط سره خوړلے شي' چه د خپل ملګري نه اجازت واخلے. شعبه اووے. اذن طلب کول د' ابن عمرؓ قول دے.

**باب ۲۶۷ : الْقِثَّاءِ.**

باب ۲۶۷ : د' ترو (ککړيون) بيان.

٤١١: حَدَّثَنِيْ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جَعْفَرٍ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ.

٤١١: اسماعيل بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. سعد. عبدالله بن جعفر نه روايت كوي. د هغه بيان دے، ما نبي صلي الله عليه وسلم تازه قجورے ترو، سره يو خائے په خوړلو ليدلے دے.

## باب ٢٦٨: بَرَكَةِ النَّخْلِ.

## باب ٢٦٨: د قجورے د اونے د بركت بيان.

٤١٢: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ عَنْ زُبَيْدٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةٌ تَكُوْنُ مِثْلَ الْمُسْلِمِ وَهِيَ النَّخْلَةُ.

٤١٢: ابو نعيم. محمد بن طلحه. زبيد. مجاهد. ابن عمرؓ حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، يوه اونه داسے ده، چه د مسلمان په شان ده، او هغه د قجورے اونه ده.

## باب ٢٦٩: جَمْعِ اللَّوْنَيْنِ اَوِ الطَّعَامَيْنِ بِمَرَّةٍ.

## باب ٢٦٩: په يو وخت د دوو طعامونو يا دوه قسمه غذاګانو د خوراك بيان.

٤١٣: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ.

٤١٣: ابن مقاتل. عبدالله. ابراهيم بن سعد. سعد. عبدالله بن جعفر نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما حضور صلي الله عليه وسلم، تازه قجورے ترو، سره په خوړلو ليدلے دے.

## باب ٢٧٠: مَنْ اَدْخَلَ الضِّيْفَانَ عَشَرَةً عَشَرَةً وَالْجُلُوْسِ عَلَى الطَّعَامِ عَشَرَةً عَشَرَةً.

## باب ٢٧٠: لس لس سړي دننه بلل، او لس لس سړي په دسترخوان د كينولو بيان.

٤١٤: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنِ الْجَعْدِ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ

٤١٤: صلت بن محمد. حماد بن زيد. جعد ابو عثمان. انس. هشام. محمد. انس. سنان ابو ربيعه. انس نه روايت كوي. د هغه مور ام سليم يو مُد وربشے د

اَنَسٍ وَعَنْ هِشَامٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسٍ ح وَّعَنْ سِنَانٍ اَبِیْ رَبِيْعَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ اُمَّ سُلَيْمٍ اُمَّهٗ عَمَدَتْ اِلٰى مُدٍّ مِّنْ شَعِيْرٍ جَشَّتْهُ وَ جَعَلَتْ مِنْهُ خَطِيْفَةً وَّعَصَرَتْ عُكَّةً عِنْدَهَا ثُمَّ بَعَثَتْنِیْ اِلَى النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَيْتُهٗ وَهُوَ فِیْ اَصْحَابِهٖ فَدَعَوْتُهٗ قَالَ وَمَنْ مَّعِیَ فَجِئْتُ فَقُلْتُ اِنَّهٗ يَقُوْلُ وَ مَنْ مَّعِیَ فَخَرَجَ اِلَيْهِ اَبُوْ طَلْحَةَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّمَا هُوَ شَیْءٌ صَنَعَتْهُ اُمُّ سُلَيْمٍ فَدَخَلَ فَجِیْءَ بِهٖ وَ قَالَ اَدْخِلْ عَلَیَّ عَشَرَةً فَدَخَلُوْا فَاَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا ثُمَّ قَالَ اَدْخِلْ عَلَیَّ عَشَرَةً حَتّٰى عَدَّ اَرْبَعِيْنَ ثُمَّ اَكَلَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَامَ فَجَعَلْتُ اَنْظُرُ هَلْ نَقَصَ مِنْهَا شَیْءٌ.

کړے' او هغه ئے پخے کړے. او هغے سره چه کومه کُوپئ وه' د هغے نه ئے غوړي نچوړي کړل' په هغے ئے اوخځول. بيائے زه د حضور صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښ اوليږلم. هغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم خپلو صحابهؓ سره وو. ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته دعوت ورکه' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اووے ايا هغه خلق هم راشي' چه ما سره دي. زه واپس راغلم' او ورته مِ اووے' حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائي' آيا هغه خلق هم راشي کوم چه ماسره دي. ابو طلحه د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو' او عرض ئے اوکه' يا رسول الله' هغه څيز لږ دے' کوم چه ام سليمؓ تيار کړے دے' نو حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. او هغه طعام حضور صلي الله عليه وسلّم ته راوړے شو' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' لس لس سړي دننه رابلئے. هغه خلق راغلل' او ټولو په مړي خيټه ډوډي اوخوړله. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' لس سړي ماته راوله' نو دا هم راغلل' او په مړه خيټه ئے ډوډي اوخوړه' تردے چه څلويښت سړي شمار کړے شو. بيا نبي صلي الله عليه وسلّم ډوډي اوخوړله' او پاسيدلو. ما هغے طعام ته کتل' چه د هغے نه هيڅ نه وو کم شوے.

**باب ۱۷۲ : مَا يُكْرَهُ مِنَ الثُّوْمِ وَالْبُقُوْلِ فِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۱۷۲** : د' اوږے او بدبوداره ترکارو د خوړلو د کراهت بيان. دے باره کښ د' ابن عمر روايت د' حضور صلي الله عليه وسلّم نه منقول دے.

**۵۱۴** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ

**۵۱۴** : مسدد. عبدالوارث. عبدالعزيز نه روايت کوي' انس نه تپوس اوشو' آيا د' اوګے باره کښ تا د نبي

الْعَزِيْزِ قَالَ قِيْلَ لِاَنَسٍ مَا سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الثُّوْمِ فَقَالَ مَنْ اَكَلَ فَلَايَقْرِبَنَّ مَسْجِدَنَا.

صلي اللّٰه عليه وسلّم نه څه آوريدلے دي (هغه اووے). حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، كوم سړے چه اوګه اوخوري، هغه دے خمونږ جمات ته نزدے نه راځي.

۴۱۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَفْوَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَاءٌ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ زَعَمَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَكَلَ ثُوْمًا اَوْ بَصَلًا فَلْيَعْتَزِلْنَا اَوْ لِيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا.

۴۱۶: علي بن عبداللّٰه. ابو صفوان. عبداللّٰه بن سعيد. يونس. ابن شهاب. عطاء. حضرت جابر بن عبداللّٰه نه هغه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، كوم سړے چه اوګه يا پياز اوخوري، مونږ نه دِ جدا اوسي، يا دائے فرمائيلے دي، چه هغه دے خمونږ د جمات نه جدا اوسي.

## باب ۲۷۲: اَلْكَبَاثِ وَهُوَ ثَمَرُ الْاَرَاكِ.

## باب ۲۷۲: كباث، يعني د پيلو د ميوے بيان.

۴۱۷: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ نَجْنِي الْكَبَاثَ فَقَالَ عَلَيْكُمْ بِالْاَسْوَدِ مِنْهُ فَاِنَّهُ اَطْيَبُ فَقِيْلَ اَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ قَالَ نَعَمْ وَهَلْ مِنْ نَّبِيٍّ اِلَّا رَعَاهَا.

۴۱۷: سعيد بن عفير. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره مر الظهران كښ د پيلو ميوه شوكوله. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه ته د تور رنګ اوشوكوه، ځكه چه هغه ښه وي. حضرت جابرؓ عرض اوكه، آيا تاسو چيلئے هم څرولے دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. او. داسے هيڅ نبي نشته، چه هغه چيلئے نه وي څرولے.

## باب ۲۷۳: اَلْمَضْمَضَةِ بَعْدَ الطَّعَامِ.

## باب ۲۷۳: د خوراک نه پس د خولے كنګالولو بيان.

۴۱۸: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ

۴۱۸: علي. سفيان. يحيي بن سعيد. بشير بن

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى خَيْبَرَ فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ دَعَا بِطَعَامٍ فَمَا اُتِيَ اِلَّا بِسَوِيقٍ فَاَكَلْنَا فَقَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَتَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا قَالَ يَحْيٰى سَمِعْتُ بُشَيْرًا يَقُولُ حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى خَيْبَرَ فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ قَالَ يَحْيٰى وَهِيَ مِنْ خَيْبَرَ عَلٰى رَوْحَةٍ دَعَا بِطَعَامٍ فَمَا اُتِيَ اِلَّا بِسَوِيقٍ فَلُكْنَاهُ فَاَكَلْنَا مَعَهُ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا مَعَهُ ثُمَّ صَلّٰى بِنَا الْمَغْرِبَ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ وَقَالَ سُفْيَانُ كَاَنَّكَ تَسْمَعُهُ مِنْ يَحْيٰى.

يسار. سويد بن نعمان نه روايت كوي. مونږ خلق رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره خيبر طرف ته روان شو. كوم وخت چه مونږ مقام صهبا ته اورسيدو. نو حضور صلي الله عليه وسلّم طعام طلب كړلو. صرف ستوان ورته پيش كړے شو. نو مونږ هم اوخوړل. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم مانخه د پاره اودريدلو. او حضور صلي الله عليه وسلّم خوله كنګال كړله. يحيٰي اووے. ما د بشير نه بيان واوريدلو. چه مونږ ته سويد بيان اوكه، مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره خيبر طرف ته روان شو. كوم وخت چه مونږ مقام صهباء ته اورسيدو، يحيٰي اووے دا مقام د خيبر نه د، يو منزل (پړاو) په مسافت (فاصله) دے. حضور صلي الله عليه وسلّم طعام طلب كه، نو صرف ستوان ورته پيش كړے شو. مونږ هم هغه اوخوړل، بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوبه اوغوښتلے، خوله ئے كنګال كړه. حضور صلي الله عليه وسلّم سره مونږ هم خوله كنګال كړه، پس د، هغے حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ ته د، ماښام مونځ راكړلو. او اودس ئے اونه كړلو. د سفيان بيان دے، ما تاسو ته داسے بيان اوكه، چه ګويا تاسوئے د يحيٰي نه آورئے.

بَابٌ ۲۷۴: لَعْقِ الْاَصَابِعِ وَمَصِّهَا قَبْلَ اَنْ تُمْسَحَ بِالْمَنْدِيلِ.

باب ۲۷۴: روميال سره د، اوچولو نه مخكښ د، ګوتو د ختهولو او، رولو بيان.

۴۲۱۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۴۲۱۹: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. عطاء. ابن عباسؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هر كله چه تاسو كښ څوك طعام اوخوري، نو خپل لاس دے نه

إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَمْسَحْ يَدَهُ حَتّٰى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا.

اوچوي، خو پورے چه هغه اونه ختي يا په چاټے اونه ختي.

## باب ۲۷۵ : الْمِنْدِيْلِ.

## باب ۲۷۵ : رومیال سره د اوچولو بیان.

۴۲۰ : حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهُ سَأَلَهُ عَنِ الْوُضُوْءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ فَقَالَ لَا قَدْ كُنَّا زَمَانَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَجِدُ مِثْلَ ذٰلِكَ مِنَ الطَّعَامِ إِلَّا قَلِيْلًا فَإِذَا نَحْنُ وَجَدْنَاهُ لَمْ يَكُنْ لَنَا مَنَادِيْلُ إِلَّا أَكُفَّنَا وَ سَوَاعِدَنَا وَ أَقْدَامَنَا ثُمَّ نُصَلِّيْ وَلَا نَتَوَضَّأُ.

۴۲۰ : ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. فليح. سعيد بن حرث. جابر بن عبدالله نه روايت كوي، د هغه نه سعيد په اور د پخكړے شوے څيز استعمالولو سره د، اودس متعلق تپوس او كه، نو هغه اووے، نه، مونږ خلقو ته د، رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ ډير كم خوراك نصيب كيدو. او مونږ خلقوته به چه طعام حاصل شو، نو مونږ سره به سِوا د پښو، متو (بازو) او تلو (ہتھیلیوں) نه سِوا هيڅ رومال نه وو (يعني مونږ خلقو به خپل جسم ددے حصو سره اوچولو) بيا به مونږ خلقو مونځ كولو. ليكن اودس به مو نه كولو.

## باب ۲۷۶ : مَا يَقُوْلُ إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ.

## باب ۲۷۶ : چه د، خوراك نه فارغ شي، نو څه به وائي.

۴۲۱ : حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رُفِعَ مَائِدَتُهُ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيْهِ غَيْرَ مُكْفِيٍّ وَّلَا مُوَدَّعٍ وَّلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا.

۴۲۱ : ابو نعيم. سفيان. ثور. خلد بن معدان. ابو امامه نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم چه به خپل دسترخوان اوچتولو، نو فرمائيل به ئے: الحمدلله كثيرًا: طيبًا مباركًا فيه غير مكفي ولا مودع ولا مستغني عنه ربنا.

۴۲۲ : حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

۴۲۲ : ابو عاصم. ثور بن يزيد. خالد بن معدان. ابو امامه نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم چه به د طعام نه فارغ شو، نو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ وَ قَالَ مَرَّةً اِذَا رَفَعَ مَآئِدَتَهُ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ كَفَانَا وَ اَرْوَانَا غَيْرَ مُكْفِيٍّ وَلَا مَكْفُوْرٍ وَ قَالَ مَرَّةً اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّنَا غَيْرَ مُكْفِيٍّ وَّلَا مُوَدَّعٍ وَّلَا مُسْتَغْنًى رَبَّنَا.

فرمائيل به ئې، ټول تعريفونه الله سره دي، چه هغه مونږ بانديې كافي اوخورول او، اوڅكول، نه د، هغې نه مخ آړولې شي او نه د هغې نه ناشكري شوې ده. او كله به ئې دا فرمائيل: الحمدلله ربنا غير مكفي ولا مودع و مستغنى ربنا.

باب٢٧٧: اَلْاَكْلِ مَعَ الْخَادِمِ.

باب٢٧٧: خادم سره د خوراک کولو بيان.

٤٢٣: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدٍ هُوَابْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَتَى اَحَدَكُمْ خَادِمُهُ بِطَعَامِهِ فَاِنْ لَّمْ يُجْلِسْهُ مَعَهُ فَلْيُنَاوِلْهُ اُكْلَةً اَوْ اُكْلَتَيْنِ اَوْ لُقْمَةً اَوْ لُقْمَتَيْنِ فَاِنَّهُ وَلِيَ حَرَّهُ وَ عِلَاجَهُ.

٤٢٣: حفص بن عمر. شعبه. محمد بن زياد. ابوهريرةؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كه تاسو كښې چاته خپل خادم طعام راوړي، او هغه ځان سره نه كينوي، نو هغه له دې يوه نوړئې يا دوه نوړئې وركړي. ځكه چه هغه (د، باورچي خانې) ګرمي او د هغې طعام د، تيارئ مشقت برداشت كړې دې.

باب٢٧٨: اَلطَّاعِمُ الشَّاكِرُ مِثْلُ الصَّائِمِ الصَّابِرِ فِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب٢٧٨: شكر ګزار، خوړونكې د، صبر كونكي روژه دار په شان دې. دې باب كښې د ابوهريرةؓ حديث د نبي صلي الله عليه وسلّم نه منقول دې.

باب٢٧٩: اَلرَّجُلِ يُدْعٰى اِلٰى طَعَامٍ فَيَقُوْلُ وَ هٰذَا مَعِيَ وَ قَالَ اَنَسٌ اِذَا دَخَلْتَ عَلٰى مُسْلِمٍ لَا يُتَّهَمُ فَكُلْ مِنْ طَعَامِهِ وَاشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ.

باب٢٧٩: كه يو سړې طعام د پاره راوغبنتلې شي، او هغه سره بل څوک هم راشي، نو او، دې وائي چه دې ما سره راغلې دې. او انس اووې، هر كله چه تاسو يو مسلمان له ورشئ، او هغه متهم نه وي، نو د هغه د طعام نه خورئې، او د څكلو د څيزونونه ئې خورې.

٤٢٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا اَبُوْ

٤٢٤: عبدالله بن ابي اسود. ابو اسامه. اعمش. شقيق. ابو مسعود انصاري نه روايت كوي، يو انصاري

أُسَامَةُ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيقٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ مَسْعُوْدِ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ كَانَ رَجُلٌ مِّنَ الْأَنْصَارِ يُكْنَى أَبَا شُعَيْبٍ وَ كَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ أَصْحَابِهِ فَعَرَفَ الْجُوْعَ فِيْ وَجْهِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَهَبَ إِلَى غُلَامِهِ اللَّحَّامِ فَقَالَ اصْنَعْ لِيْ طَعَامًا يَكْفِيْ خَمْسَةً لَعَلِّيْ أَدْعُو النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ فَصَنَعَ لَهُ طُعَيِّمًا ثُمَّ أَتَاهُ فَدَعَاهُ فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا شُعَيْبٍ إِنَّ رَجُلًا تَبِعَنَا فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ وَ إِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ قَالَ لَا بَلْ أَذِنْتُ لَهُ.

چه د هغه کُنیت ابو شعیب وو، د هغه یو غلام وو، چه قصاب وو. د حضور صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. دغه وخت حضور صلي الله علیه وسلّم خپلو اصحابو سره ناست وو، هغه د حضور صلي الله علیه وسلّم د مخ مبارک نه د لوږې اثر معلوم که. نو خپل قصاب غلام له ورغې او وئیلې، ما د پاره دومره طعام تیار کړه، چه پنځو کسانو له کافي وي، چه زه نبي صلي الله علیه وسلّم سره پنځه کسانو له دعوت ورکړې شم، هغې غلام طعام تیار کړلو. بیا د حضور صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او حضور صلي الله علیه وسلّم ته ئې دعوت ورکه، هغوي سره یو سړې بل هم شامل شولو، نو نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، اې ابو شعیب. یو سړې (زیات) مونږ سره راغلې دې (یعني د، پنځو په ځائې اوس شپږ کسان شو) که ته غواړې، نو هغه ته د، راتلو اجازت ورکه، یا که ستا خواهش نه وي، نو هغه پریږده. انصاري اووې، نه بلکه زه هغه ته هم اجازت ورکوم.

## باب ۲۸۰ : إِذَا حَضَرَ الْعَشَاءُ فَلَا يَعْجَلْ عَنْ عَشَائِهِ.

## باب ۲۸۰ : که د شپې طعام راشي، نو د ماسختن مونځ کښې دې تادي نه کوي.

۴۲۵ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ أَبَاهُ عَمْرَو بْنَ أُمَيَّةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ رَأَى رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِيْ يَدِهِ

۴۲۵ : ابوالیمان. شعیب. زهري. لیث. یونس. ابن شهاب. جعفر بن عمرو بن امیه. عمرو بن امیه نه روایت کوي، ما رسول الله صلي الله علیه وسلّم اولیدلو، د چیلئې د، پتون نه چه د حضور صلي الله علیه وسلّم لاس کښې وو، غوښه ئې پریکولو، پریکولو سره خوړله. دې کښې د مانخه تکبیر اوشو، نو هغه پتون او چاړه چه هغې سره ئې

فَدُعِيَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَلْقٰهَا وَالسِّكِّيْنَ الَّتِيْ كَانَ يَحْتَزُّ بِهَا ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

پټـون پـريـكـولـو' ئـے يـو طـرف تـه اوغـورځـول' او اودريـدلـو. بيا ئـے مـونـځ اوكـړلـو. ليـكـن اودس ئـے اونه كه.

۴۲۶: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا وُضِعَ الْعَشَآءُ وَ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَابْدَءُ وْا بِالْعَشَآءِ. وَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ تَعَشّٰى مَرَّةً وَّهُوَ يَسْمَعُ قِرَاءَ ةَ الْاِمَامِ.

۴۲۶: مـعـلـي بـن اسـد. وهيـب. ايوب. ابـو قـلابـه. انـس بـن مـالـک. نبي صـلي اللّٰه عليه وسلّم نـه روايـت كـوي' حـضـور صـلـي اللّٰـه عـليـه وسلّم اوفـرمـائيـل' كـوم وخت چه د شپے طعام راشي' او مونځ د پـاره تـكبيـر اوشي' نـو اول طعام اوخورئے. او ايوب د' نـافـع نـه' نـافـع د ابـن عـمرؓ نه' او ابن عمرؓ د نبي صلي اللّٰه عـليـه وسـلّـم نه دغه شان روايت كوي. او ايوب د نـافـع نـه پـه واسطه د ابن عمرؓ روايت كوي' چه ابن عمرؓ يـو ځـل د شپے طـعـام خـوړلـو. حـالانكـه هغـه د امـام قرأت اوريدلو.

۴۲۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ وَ حَضَرَ الْعَشَآءُ فَابْدَءُ وْا بِالْعَشَآءِ قَالَ وُهَيْبٌ وَّ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ هِشَامٍ اِذَا وُضِعَ الْعَشَآءُ.

۴۲۷: مـحـمـد بن يوسف. سفيـان. هشـام بـن عـروه. عـروه. بـي بـي عـائشـهؓ د نبي صلي اللّٰـه عـليـه وسلّم نـه روايـت كـوي. حـضـور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفـرمـائيل' كوم وخت چه د مانځه تكبير اوشي' او د شپـے طـعـام مـخـے تـه راشي' نـو اول طعـام اوخـورئـے. وهيـب او يـحيٰـي بـن سـعيـد د هشـام نـه: اذا وضـع الـعشــاء: الـفـاظ روايـت كـړے دے.

باب ۲۸۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا.

باب ۲۸۱: د' اللّٰـه تعالٰي قول' هر كله چه تاسو طعام اوخورئے' نو بيا خواره شئے.

۴۲۸: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۴۲۸: عبـداللّٰـه بـن محمد. يعقوب بن ابراهيم. ابـراهيم. صالح. ابن شهاب. انس نه روايت كوي' چه د' پـردے د' آيـت نـازليـدو متـعلق زه خلقو كښ د ټولو نه

أَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ اَنَسًا قَالَ اَنَا اَعْلَمُ النَّاسِ بِالْحِجَابِ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَسْأَلُنِيْ عَنْهُ اَصْبَحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرُوْسًا بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ وَ كَانَ تَزَوَّجَهَا بِالْمَدِيْنَةِ فَدَعَا النَّاسَ لِلطَّعَامِ بَعْدَ اِرْتِفَاعِ النَّهَارِ فَجَلَسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ جَلَسَ مَعَهُ رِجَالٌ بَعْدَ مَا قَامَ الْقَوْمُ حَتّٰى قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَشٰى وَ مَشَيْتُ مَعَهُ حَتّٰى بَلَغَ بَابَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ ظَنَّ اَنَّهُمْ خَرَجُوْا فَرَجَعْتُ مَعَهُ فَاِذَا هُمْ جُلُوْسٌ مَّكَانَهُمْ فَرَجَعَ وَ رَجَعْتُ مَعَهُ الثَّانِيَةَ حَتّٰى بَلَغَ بَابَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَرَجَعَ وَ رَجَعْتُ مَعَهُ فَاِذَا هُمْ قَدْ قَامُوْا فَضَرَبَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ سِتْرًا وَّ اُنْزِلَ الْحِجَابُ.

زيات پوهيږم. ابي بن كعب به ما نه تپوس كولو؛ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم واده زينب بنت جحش سره نوي نوي شوي وو. او هغې سره ئې نكاح مدينه كښې كړې وه. ورځ راختو نه پس ئې خلق طعام د پاره راوبلل. رسول الله صلي الله عليه وسلّم كيناستلو. او حضور صلي الله عليه وسلّم سره خلق هم كيناستل. كوم وخت چه څه خلقو طعام اوخوړ، او فارغ شو، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم هم فارغ شو، او روان شو، نو مونږ هم رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره روان شو، تردې چه د، بي بي عائشې د حجرې دروازې ته اورسيدو، نو خيال مو اوكه، چه خلق به تلي وي، زه هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره واپس شوم، نو څه گورو چه څه خلق په خپل ځائې ناست دي. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم واپس شولو. زه هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره په دونم وار واپس شوم، تردې چه د، بي بي عائشې د حجرې (كوټې) دروازې ته اورسيدو، بيا حضور صلي الله عليه وسلّم واپس شولو، زه هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره واپس راغلم، نو څه گورو، چه خلق وتلي دي، حضور صلي الله عليه وسلّم خما او د خپل ځان مينځ كښې پرده اوكړله. د غه وخت د پردې آيت نازل شولو.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

# كِتَابُ الْعَقِيْقَةِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

# (د، عقيقې بيان)

## بـاب ۲۸۲ : تَسْمِيَةِ الْمَوْلُوْدِ غَدَاةَ يُوْلَدُ لِمَنْ لَّمْ يَعُقَّ

## باب ۲۸۲ : نومولود چه د، هغه عقيقه نه وي شوې، د پيدا كيدو په دولمه ورځ د نوم ايښودو او د

وَ تَحْنِيكِهِ. هغه د تحنيک بيان.

ف: (۱) عقيقه: سر کلے. د نوي پيدا شوي ماشوم په اومه ورځ د سر کلولو او د هغه د نوم کيښودو يو رسم. د سر کلي په وخت د هلک د پاره د، دوو پسونو يا ګډانو قرباني ورکوي، او د جينۍ د پاره د يو پسه يا ګډ قرباني ورکوي. (۲) تحنيک: نوے پيدا شوے بچي له خوله کښ لوندے قجورے اچولو ته وائي. (او که قجورے نه وي نو بيا بل څه خوږ شے پکار دے ولے شات ډير سودمند وي خو چه اور ورته نه وي رسيدلے)

۴۲۹: حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِي بُرَيْدٌ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ وُلِدَ لِي غُلَامٌ فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمَّاهُ إِبْرَاهِيمَ فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ وَ دَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ وَ دَفَعَهُ إِلَيَّ وَ كَانَ أَكْبَرَ وَلَدِ أَبِي مُوسَى.

۴۲۹: اسحٰق بن نصر. ابو اسامه. بريد. ابو برده. ابو موسىٰؓ نه روايت کوي. ما کره يو بچے پيدا شو، ما هغه د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضر کړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم د هغه نوم ابراهيم کيښودلو. او قجورے سره ئے د هغه تحنيک اوکه (يعني قجوره ئے اوجويله او بچي له ئے تالو کښ کيښوده) د هغه حق کښ ئے دعا اوکړه. بيائے ماله راکړلو، او هغه هلک د ابو موسىٰ د ټولونه مشرے هلک وو.

۴۳۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَبِيٍّ يُحَنِّكُهُ فَبَالَ عَلَيْهِ فَأَتْبَعَهُ الْمَاءَ.

۴۳۰: مسدد. يحيٰي. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ يو بچے راوستے شو، چه حضور صلي الله عليه وسلّم د هغه تحنيک اوکړي. هغے بچي د حضور صلي الله عليه وسلّم غيږ کښ واړه بول اوکړل، نو حضور صلي الله عليه وسلّم په هغے اوبه اوبهيولے.

۴۳۱: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّهَا حَمَلَتْ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ قَالَتْ فَخَرَجْتُ وَ أَنَا مُتِمٌّ فَأَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَنَزَلْتُ

۴۳۱: اسحٰق بن نصر. ابو اسامه. هشام بن عروه. عروه. اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنه نه روايت کوي، زه عبدالله بن زبيرؓ سره مکه کښ حامله شوم. د حمل ورځے پوره کيدونکے وے، چه زه مدينے ته روانه شوم. زه قباء (مقام) کښ کوزه شوم، او قباء کښ م بچے پيدا شو. بيا ما هغه د، رسول الله صلي الله

قُبَاءٌ فَوَلَدْتُ بِقُبَاءٍ ثُمَّ أَتَيْتُ بِهِ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ فِي حُجْرِهِ ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ فَمَضَغَهَا ثُمَّ تَفَلَ فِي فِيهِ فَكَانَ أَوَّلُ شَيْءٍ دَخَلَ جَوْفَهُ رِيقُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ حَنَّكَهُ بِالتَّمْرَةِ ثُمَّ دَعَا لَهُ وَبَرَّكَ عَلَيْهِ وَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الْإِسْلَامِ فَفَرِحُوا بِهِ فَرَحًا شَدِيدًا لِأَنَّهُمْ قِيلَ لَهُمْ إِنَّ الْيَهُودَ قَدْ سَحَرَتْكُمْ فَلَا يُولَدُ لَكُمْ.

عليه وسلّم خدمت كښ حاضر كه، او د حضور صلي الله عليه وسلّم غيږ مبارك كښ م واچولو. حضور صلي الله عليه وسلّم قجوره راوغوښتله. هغه ئے اوچوبله بيائے د هغے ماشوم په خوله كښ واچوله. نو د هر څه نه مخكښ د هغه ماشوم په خيټه كښ د حضور صلي الله عليه وسلّم د خولے مبارك لاړے داخلے شوے. بيائے د هغه تالو كښ قجوره واچوله. او د هغه حق كښ ئے دُعا اوكړله، او مباركبادي ئے وركړله. دا، د ټولونه وړمبے هلک وو، چه اسلام كښ پيدا شولو. خلق ډير زيات خوشحاله شو، ځكه چه د مسلمانانو متعلق وئيلے شو، چه په هغوي يهوديانو جادو كړے دے، په دے وجه د هغوي اولاد نه پيدا كيږي.

۴۳۲: مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَوْنٍ عَنْ أَنَسِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ ابْنٌ لِأَبِي طَلْحَةَ يَشْتَكِي فَخَرَجَ أَبُو طَلْحَةَ فَقُبِضَ الصَّبِيُّ فَلَمَّا رَجَعَ أَبُو طَلْحَةَ قَالَ مَا فَعَلَ ابْنِي قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ هُوَ أَسْكَنُ مَا كَانَ فَقَرَّبَتْ إِلَيْهِ الْعَشَاءَ فَتَعَشَّى ثُمَّ أَصَابَ مِنْهَا فَلَمَّا فَرَغَ قَالَتْ وَارِ الصَّبِيَّ فَلَمَّا أَصْبَحَ أَبُو طَلْحَةَ أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ

۴۳۲: مطر بن فضل. يزيد بن هارون. عبدالله بن عون. انس بن سيرين. انس بن مالک نه روايت كوي، د طلحه .. ځوئے پيدا شو. ابو طلحه بهر اووتلو، نو بچے مړ شولو. كوم وخت چه ابو طلحه واپس راغے، نو تپوس ئے اوكه، ځما د بچي څه حال دے، ام سليم ورته اووے. هغه د مخكښ نه زيات د سكون حالت كښ دے. او د شپے طعام ئے ورته پيش كړلو (هغه اوخوړلو) بيائے خپلے بي بي سره هم بستري اوكړله. كوم وخت چه فارغ شو، نو ښځے ورته اووے. دا بچے دفن كړه. چه سحر شو، نو ابو طلحه د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو، او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئے ټوله قصه بيان كړله. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا تا خپلے بي بي سره صحبت كړے دے. هغه اووے، او. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته

فَقَالَ أَعْرَسْتُمُ اللَّيْلَةَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمَا فَوَلَدَتْ غُلَامًا قَالَ لِيْ أَبُوْ طَلْحَةَ احْفَظْهُ حَتّٰى تَأْتِيَ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَرْسَلَتْ مَعَهُ بِتَمَرَاتٍ فَأَخَذَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَمَعَهُ شَيْءٌ قَالُوْا نَعَمْ تَمَرَاتٌ فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَضَغَهَا ثُمَّ أَخَذَ مِنْ فِيْهِ فَجَعَلَهَا فِيْ فِيِّ الصَّبِيِّ وَ حَنَّكَهُ بِهِ وَ سَمَّاهُ عَبْدَ اللّٰهِ.

اوفرمائيل' الله دې' دې دواړو كښې بركت واچوي. د' ام سليم بيان دې' څما بچې پيدا شو' نو ماته ابو طلحه اووې' دده حفاظت كوه' چه مونږ دې نبي صلي الله عليه وسلّم له بوځو. او ام سليم هغه سره څو قجورې هم اوليږلې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه بچې واخستلو. او تپوس ئې اوكه' ده' سره نور هم څه شته' خلقو اووې' او. يو څو قجورې ورسره دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه قجورې واخستې' بيائې هغه اوجويلې. د خپلې خولې نه ئې اوبنكلې' او هغې سره ئې د هغه تحنيک اوكه. او د هغه نوم ئې عبداللّٰه كيښودلو.

۴۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسٍ وَ سَاقَ الْحَدِيْثَ.

۴۳۳: محمد بن مثنٰي. ابن ابي عدي. ابن عون. محمد. حضرت انسؓ نه روايت كوي' هغه دا حديث بيان كړې دې.

باب ۲۸۳ : إِمَاطَةِ الْأَذٰى عَنِ الصَّبِيِّ فِي الْعَقِيْقَةِ.

باب ۲۸۳ : عقيقه كولو سره د بچي د' تكليف لرې كولو بيان.

۴۳۴: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ مَعَ الْغُلَامِ عَقِيْقَةٌ وَ قَالَ حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ أَخْبَرَنَا أَيُّوْبُ وَ قَتَادَةُ وَ هِشَامٌ وَّ حَبِيْبٌ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ سَلْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ عَاصِمٍ وَّ هِشَامٍ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنِ الرَّبَابِ عَنْ سَلْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۴۳۴: ابو نعيمان. حماد بن زيد. ايوب. محمد. سلمان بن عامرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې. د هلک عقيقه كول په كار دي' او حجاج په واسطه د حماد بيان اوكه' هغه اووې. مونږ ته ايوب' قتاده' هشام او حبيب' ابن سيرين نه' هغه د سلمان نه' سلمان د' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړې دې. او ګڼړو خلقو په واسطه د' عاصم او هشام' حفصه بنت سيرين' رباب' سلمان بن عامر ضبي' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي' او دا' زيد بن

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَوَاهُ يَزِيْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ سَلْمَانَ قَوْلَهُ وَ قَالَ اَصْبَغُ اَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ السَّخْتِيَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ حَدَّثَنَا سَلْمَانُ بْنُ عَامِرٍ الضَّبِّيُّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَعَ الْغُلَامِ عَقِيْقَةٌ فَاَهْرِيْقُوْا عَنْهُ دَمًا وَ اَمِيْطُوْا عَنْهُ الْاَذٰى.

ابراهيم د' ابن سيرين نه' هغه د' سلمان نه د هغه قول نقل کړے دے. او اصبغ په واسطه د' ابن وهب' جرير بن حازم' ايوب سختياني' محمد بن سيرين' سلمان بن عامر ضبي نه روايت کړے دے' د هغه بيان دے' ما د' حضور صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي' د هلک عقيقه کول لازم دي' د هغه د طرف نه وينه اوبهيوے' او د' هغه نه تکليف لرے کړے.

۴۳۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا قُرَيْشُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ حَبِيْبِ بْنِ الشَّهِيْدِ قَالَ اَمَرَنِي ابْنُ سِيْرِيْنَ اَنْ اَسْاَلَ الْحَسَنَ مِمَّنْ سَمِعَ حَدِيْثَ الْعَقِيْقَةِ فَسَاَلْتُهُ فَقَالَ مِنْ سَمُرَةَ ابْنِ جُنْدُبٍ.

۴۳۵: عبدالله بن ابي الاسود. قريش بن انس. حبيب بن شهيد نه روايت کوي' ماته ابن سيرين حکم راکه' د حسن بصريؒ نه تپوس اوکه' چه د عقيقه حديث هغه د چا نه اَوريدلے دے. ما د هغه نه تپوس اوکه' هغه اووے' سمره بن جندب نه م اوريدلے دے.

باب ۲۸۴: اَلْفَرَعِ.

باب ۲۸۴: د' فرع بيان.

۴۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ اَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا فَرَعَ وَ لَا عَتِيْرَةَ وَالْفَرَعُ اَوَّلُ النِّتَاجِ كَانُوْا يَذْبَحُوْنَهُ لِطَوَاغِيْتِهِمْ وَالْعَتِيْرَةُ فِيْ رَجَبٍ.

۴۳۶: عبدان. عبدالله. معمر. زهري. ابن مسيب. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي' حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' نه فرع او نه عتيره څه څيز دے. او فرعے' د' اوښے (اوښئ) د ټولو نه ورمبني بچي ته وائي. چه مشرکينو به د خپلو بتانو په نوم ذبح کولو. او عتيره هغې قرباني ته وائي' چه رجب (مياشت) کښ به ئے کوله.

باب ۲۸۵: اَلْعَتِيْرَةِ.

باب ۲۸۵: د' عتيره بيان.

۴۳۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

۴۳۷: علي بن عبدالله. سفيان. زهريه

اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَا عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيْرَةَ قَالَ وَالْفَرَعُ اَوَّلُ نِتَاجٍ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ كَانُوْا يَذْبَحُوْنَهُ لِطَوَاغِيْتِهِمْ وَالْعَتِيْرَةُ فِيْ رَجَبَ.

سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، فرع او عتيره هيڅ خيز نه دي. او، فرع د، اُوبنے هغے ورمبني بچي ته وائي، چه مشركينو به د، خپلو بتانو په نوم ذبح كولو. او عتيره به ئے رجب كښ كوله.

الحمد لِلّٰه والشكر لِلّٰه دويشتمه پاره ختمه شوه



تاج

# تاج البخاری

پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲۳


شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور

فون: 214454

C-18

# تاج البخاري پاره ۲۳ دمضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | كتاب الذبائح | |
| ۲۸۶. | ذَ غشي ذَ ښکار بيان | ۳۵۳۳ |
| ۲۸۷. | د هغې ښکار بيان چه ذَ تير په بل سر اولګي او مړ شي | ۳۵۳۴ |
| ۲۸۸. | غشي ليندۍ سره ښکار | ۳۵۳۴ |
| ۲۸۹. | كوت كانړي سره ښکار کول | ۳۵۳۶ |
| ۲۹۰. | په سپي باندې ښکار کول | ۳۵۳۶ |
| ۲۹۱. | که چرې سپي د ښکار نه خوراک او کړي | ۳۵۳۷ |
| ۲۹۲. | کله چه ښکار يو دوه ورځې پس ملاؤ شي | ۳۵۳۸ |
| ۲۹۳. | ښکار سره بل سپې موندل | ۳۵۳۹ |
| ۲۹۴. | د ښکار مشغله | ۳۵۴۰ |
| ۲۹۵. | په غرونو کښې ښکار | ۳۵۴۳ |
| ۲۹۶. | د درياب ښکار | ۳۵۴۴ |
| ۲۹۷. | ملخ خوړل | ۳۵۴۶ |
| ۲۹۸. | د مجوسيانو لوښي | ۳۵۴۶ |
| ۲۹۹. | په ذبيحه باندې بسم الله | ۳۵۴۷ |
| ۳۰۰. | د بتانو په نوم ذبحه شوې خناور | ۳۵۴۹ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۰۱. | د الله په نوم باندې حلالول پکار دي | ۳۵۴۹ |
| ۳۰۲. | کوم کانړې او اوسپنه چه وينه اوبهيوي | ۳۵۵۰ |
| ۳۰۳. | د ښځې او وينزې ذبيحه | ۳۵۵۱ |
| ۳۰۴. | غابښ وغيره سره حلالول | ۳۵۵۲ |
| ۳۰۵. | د بانډيچيانو ذبيحه | ۳۵۵۲ |
| ۳۰۶. | د اهل کتابو ذبيحه | ۳۵۵۳ |
| ۳۰۷. | پاللي خناور چه وران شي | ۳۵۵۴ |
| ۳۰۸. | نَحر او ذبحه | ۳۵۵۴ |
| ۳۰۹. | د ژوندي خناور نه پريکول | ۳۵۵۶ |
| ۳۱۰. | چرګه | ۳۵۵۷ |
| ۳۱۱. | ذَ اَس ذَ غوښې بيان | ۳۵۵۹ |
| ۳۱۲. | د کورني خرونو غوښه | ۳۵۶۰ |
| ۳۱۳. | درنده که چرې غوښه اوخوري | ۳۵۶۲ |
| ۳۱۴. | د مردارې څرمنه | ۳۵۶۳ |
| ۳۱۵. | مشک | ۳۵۶۳ |
| ۳۱۶. | خرګوش (سوه) | ۳۵۶۴ |
| ۳۱۷. | سمساره | ۳۵۶۴ |
| ۳۱۸. | کله چه په غوړو کښې مږه پروځي | ۳۵۶۵ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۱۹. | د خناورو مخ له داغ ورکول | ۳۵۶۷ |
| ۳۲۰. | د مجاهدينو جماعت الخ | ۳۵۶۷ |
| ۳۲۱. | که يو اوبښ وران شي | ۳۵۶۹ |
| ۳۲۲. | د پاکو څيزونو خوري | ۳۵۶۹ |
| | كتاب الاضاحي | |
| ۳۲۳. | قرباني سنت ده | ۳۵۷۱ |
| ۳۲۴. | د قربانۍ غوښه تقسيمول | ۳۵۷۲ |
| ۳۲۵. | ذَ مسافرو او د ښځو قرباني | ۳۵۷۲ |
| ۳۲۶. | د قربانۍ په ورځ د غوښې خواهش | ۳۵۷۳ |
| ۳۲۷. | د لوئې اختر په ورځ قرباني | ۳۵۷۳ |
| ۳۲۸. | په عيدګاه کښې قرباني | ۳۵۷۵ |
| ۳۲۹. | د حضورؐ قرباني | ۳۵۷۵ |
| ۳۳۰. | چيلۍ سره د يو کلن بچي قرباني | ۳۵۷۶ |
| ۳۳۱. | د قربانۍ خناور خپل لاس سره حلال | ۳۵۷۸ |
| ۳۳۲. | د بل قرباني حلالول | ۳۵۷۸ |
| ۳۳۳. | د اختر مونځ نه پس قرباني کول | ۳۵۷۹ |
| ۳۳۴. | د مونځ نه مخکښې | ۳۵۷۹ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | والا قرباني | |
| ۳۳۵. | په ذبيحه باندې خپه اېښول | ۳۵۸۱ |
| ۳۳۶. | د حلالې وخت كښې الله اكبر | ۳۵۸۱ |
| ۳۳۷. | د قرباني ښاروې حرم ته ليكل | ۳۵۸۱ |
| ۳۳۸. | خومره غوښه اوخورې شي | ۳۵۸۲ |
| | كتاب الاشربه | |
| ۳۳۹. | د انگورو شراب | ۳۵۸۷ |
| ۳۴۰. | كله چه شراب حرام شو | ۳۵۸۸ |
| ۳۴۱. | ذ شاتو شراب | ۳۵۸۹ |
| ۳۴۲. | كوم چه عقل لره مخمور كړي | ۳۵۹۰ |
| ۳۴۳. | څوک چه د شرابو نوم بدل كړي | ۳۵۹۱ |
| ۳۴۴. | نبيذ جوړول | ۳۵۹۱ |
| ۳۴۵. | د ممانعت د لوښو اجازت | ۳۵۹۲ |
| ۳۴۶. | د كجورو شربت | ۳۵۹۴ |
| ۳۴۷. | د هرې نشې ممانعت | ۳۵۹۴ |
| ۳۴۸. | د شيرې حكم | ۳۵۹۵ |
| ۳۴۹. | پني څكل | ۳۵۹۶ |
| ۳۵۰. | د خوږو اوبو طلب | ۳۵۹۹ |
| ۳۵۱. | پيو سره د اوبو گډون | ۳۶۰۰ |
| ۳۵۲. | د خوږ خيز شربت | ۳۶۰۲ |
| ۳۵۳. | په ولاړه څكل | ۳۶۰۲ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۵۴. | په اوبش باندې ناستے سره څكل | ۳۶۰۳ |
| ۳۵۵. | په څكلو كښې د ښي طرفنه | ۳۶۰۳ |
| ۳۵۶. | كه په مجلس كښې مشر سړے وي | ۳۶۰۴ |
| ۳۵۷. | تالاؤ سره خوله لګولو سره څكل | ۳۶۰۴ |
| ۳۵۸. | د ماشومانو خدمت كول | ۳۶۰۵ |
| ۳۵۹. | په لوښي باندې سر اېښول | ۳۶۰۶ |
| ۳۶۰. | مشک سره خوله لګول | ۳۶۰۶ |
| ۳۶۱. | ذ مشک د خولې نه څكل | ۳۶۰۷ |
| ۳۶۲. | په لوښي كښې ساه اخستل | ۳۶۰۸ |
| ۳۶۳. | په دوؤ يا درې ساه ګانو سره څكل | ۳۶۰۸ |
| ۳۶۴. | د سرو زرو په لوښي كښې څكل | ۳۶۰۹ |
| ۳۶۵. | د چاندئ په لوښي كښې څكل | ۳۶۰۹ |
| ۳۶۶. | پيالو كښې څكل | ۳۶۱۰ |
| ۳۶۷. | د حضور پيالئ كښې څكل | ۳۶۱۱ |
| ۳۶۸. | بركتي مشروب | ۳۶۱۲ |
| | كتاب المرضي | |
| ۳۶۹. | د مريض كفاره | ۳۶۱۳ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۷۰. | د مرض تيزوالے | ۳۶۱۵ |
| ۳۷۱. | سخت ازمائش | ۳۶۱۶ |
| ۳۷۲. | د بيمار تپوس كول | ۳۶۱۷ |
| ۳۷۳. | د بے هوشه عيادت | ۳۶۱۷ |
| ۳۷۴. | د مِرګو مريض | ۳۶۱۸ |
| ۳۷۵. | د نابينا فضيلت | ۳۶۱۹ |
| ۳۷۶. | د ښځو بيمار پرسي كول | ۳۶۱۹ |
| ۳۷۷. | ذ بچو بيماري پښتنه | ۳۶۲۰ |
| ۳۷۸. | ذ اعرابو عيادت | ۳۶۲۱ |
| ۳۷۹. | ذ مشرک عيادت | ۳۶۲۲ |
| ۳۸۰. | مريض سره جماعت | ۳۶۲۲ |
| ۳۸۱. | مريض باندې لاس ايښودل | ۳۶۲۳ |
| ۳۸۲. | مريض ته څه اوويلے شي | ۳۶۲۴ |
| ۳۸۳. | عيادت د پاره په سورلئ تلل | ۳۶۲۵ |
| ۳۸۴. | د مريض څه وئيل | ۳۶۲۶ |
| ۳۸۵. | د مريض وينا چه لاړ شئ | ۳۶۲۹ |
| ۳۸۶. | د مريض نه دعا غوښتل | ۳۶۳۰ |
| ۳۸۷. | د مريض د مرګ تمنا | ۳۶۳۱ |
| ۳۸۸. | مريض د پاره دعا | ۳۶۳۲ |
| ۳۸۹. | د مريض عيادت د پاره اودس كول | ۳۶۳۳ |
| ۳۹۰. | د تبے او وباء دفع كيدلو دعا | ۳۶۳۴ |
| | كتاب الطب | |

| باب | مضامین | صفحه | باب | مضامین | صفحه | باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ٣٩١. | د هـــرے بیمـــاري | ٣٦٣٥ | ٤٠٣. | بیماری کښے ښکر | ٣٦٤٢ | ٤١٦. | ذات الجنب (نمونیه) | ٣٦٥٢ |
| | علاج شته | | | لګول | | ٤١٧. | د وینے بـنـدولو د | ٣٦٥٣ |
| ٣٩٢. | آیا سرے د ښځے یا | ٣٦٣٥ | ٤٠٤. | پـه سـر کښے ښکر | ٣٦٤٣ | | پاره | |
| | ښځه د سري علاج | | | لګول | | ٤١٨. | تبه | ٣٦٥٤ |
| | کولے شي | | ٤٠٥. | د نیم سیري د پاره | ٣٦٤٤ | ٤١٩. | نـامـوافقے زمکے ته | ٣٦٥٥ |
| ٣٩٣. | پـــه درے څیـــزونو | ٣٦٣٥ | | ښکر لګول | | | تلل | |
| | کښے شفا | | ٤٠٦. | سَر خوږیل | ٣٦٤٤ | ٤١٠. | د طاعون باره کښے | ٣٦٥٦ |
| ٣٩٤. | شاتو سره علاج | ٣٦٣٦ | ٤٠٧. | داغ لګول | ٣٦٤٥ | ٤١١. | پـــه طـــاعون کښے | ٣٦٥٩ |
| ٣٩٥. | د اوښ پیو سره علاج | ٣٦٣٧ | ٤٠٨. | سترګے خُوږیدل | ٣٦٤٦ | | صبر | |
| ٣٩٦. | د اوښ متیـازو سره | ٣٦٣٨ | ٤٠٩. | جُذام | ٣٦٤٧ | ٤١٢. | قـرآن او مـعـوذاتو | ٣٦٦٠ |
| | علاج | | ٤١٠. | خـریږے د سترګو | ٣٦٤٨ | | سره دَم | |
| ٣٩٧. | کلونجي (کونځلے) | ٣٦٣٩ | | شفا ده | | ٤١٣. | سـورت فـاتح سره | ٣٦٦١ |
| ٣٩٨. | مریض د پاره تلبینه | ٣٦٤٠ | ٤١١. | په خوله کښے دارو | ٣٦٤٨ | | دمؤل | |
| ٣٩٩. | پـــوزه کښـے دارُو | ٣٦٤١ | | اچول | | ٤١٤. | پـــه دمـؤلو کښے د | ٣٦٦١ |
| | اچول | | ٤١٢. | باب ٤١٢ | ٣٦٥٠ | | چیلو شر لګول | |
| ٤٠٠. | دریابي قسط | ٣٦٤١ | ٤١٣. | عذره | ٣٦٥١ | ٤١٥. | د بد نظر د پاره | ٣٦٦٢ |
| ٤٠١. | کـوم وخـت ښکـر | ٣٦٤٢ | ٤١٤. | د ذَستونو علاج | ٣٦٥١ | ٤١٦. | نظر لګیدل حق دي | ٣٦٦٣ |
| | اولګوي | | ٤١٥. | د صـفـر هیـڅ اصل | ٣٦٥٢ | ٤١٧. | د مـــار او لـــړم دم | ٣٦٦٣ |
| ٤٠٢. | په سفر کښے ښکر | ٣٦٤٢ | | نیشته | | | اچول | |
| | لګول | | | | | | تمت | |

# درويشتمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## كِتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ وَالتَّسْمِيَةِ عَلَى الصَّيْدِ

## دَ ذبحو او ښكار او په ښكار دَ بسم اللّٰه وئيلو بيان

وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ اِلٰى قَوْلِهٖ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ اِلٰى قَوْلِهٖ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ اُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ اَلْعُقُوْدُ الْعُهُوْدُ مَا اُحِلَّ وَحُرِّمَ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمُ الْخِنْزِيْرُ يَجْرِ مَنْكُمْ يَحْمِلَنَّكُمْ شَنَاٰنُ عَدَاوَةٌ اَلْمُنْخَنِقَةُ تُخْنَقُ فَتَمُوْتُ اَلْمَوْقُوْذَةُ تُضْرَبُ بِالْخَشَبِ يُوْقِذُهَا فَتَمُوْتُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ تَتَرَدّٰى مِنَ الْجَبَلِ وَالنَّطِيْحَةُ تُنْطَحُ الشَّاةُ فَمَا اَدْرَكْتَهٗ يَتَحَرَّكُ بِذَنَبِهٖ اَوْ بِعَيْنِهٖ فَاذْبَحْ وَكُلْ.

او دَ اللّٰه تعالٰي قول' په تاسو مرداره حرام كړے شوه: لا تخشوهم واخشون: پورے' او دَ اللّٰه تعالٰي قول' اے ايمان والو' اللّٰه تعالٰي تاسو دَ ښكار په ذريعه آزمائي' څو پورے چه ستاسو لاس او ستاسو نيزے رسي' آخر آيت پورے. او دَ اللّٰه تعالٰي قول چه: احلت لكم بهيمة الانعام الا ما يتلٰى عليكم: آخر آيت فلا تخشوهم واخشون پورے. او ابن عباسؓ اووے' دَ عقود نه مراد هغه عهدونه دي' چه دَ حلال او حرام متعلق اوكړے شي: او د: الا ما يتلٰى عليكم: نه مراد خنزير دے. يجرمنكم: معني يحملنكم (تاسو راوپاروي) دي. او شنآن: نه مراد دشمني ده. او' منخنقه: معني هغه ښناور چه هغه مرئ (ګلا) تا وهلو سره اُووژلے شي. موقوذه: هغے ته وائي' چه هغه لرګي سره اووژلے شي. (لكه چه عرب وائي) يوقذها فتموت او متردية هغے ته وائي' چه دَ غر نه راغرځيدو سره مړشي. او نطيحه: هغه ده' چه هغه چيلے څپلو ښكرو سره اُووژني' كه تاسو هغه لكۍ خوزولو سره يا ستركه رپولو سره بياموميے' نو هغه ذبح كوئے' او خورۍ يے.

۴۳۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا

۴۳۸: ابو نعيم. زكريا. عامر. عدي بن حاتم. نه

زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَيْدِ الْمِعْرَاضِ قَالَ مَا أَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْهُ وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَهُوَ وَقِيْذٌ وَسَأَلْتُهُ عَنْ صَيْدِ الْكَلْبِ فَقَالَ مَا أَمْسَكَ فَكُلْ فَإِنَّ أَخْذَ الْكَلْبِ ذَكَاةٌ وَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ أَوْ كِلَابِكَ كَلْبًا غَيْرَهُ فَخَشِيْتَ أَنْ يَكُوْنَ أَخَذَهُ مَعَهُ وَقَدْ قَتَلَهُ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا ذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ عَلٰى كَلْبِكَ وَلَمْ تَذْكُرْهُ عَلٰى غَيْرِهِ.

روايت كوي، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه معراض (دَ تير ډنډې) سره دَ ښكار متعلق تپوس اوكړ، حضورؐ اوفرمائيل، كه دَ تير دَ دهار نه زخمي شي، نو هغه خوره، او كه دَ هغې ډنډې سره اولږي نو هغه دَ موقوذه: حكم كښې داخل دے. او ما دَ حضورؐ نه دَ سپي دَ ښكار متعلق تپوس اوكړ، نو حضورؐ اوفرمائيل كه ستا دَ پاره ئے پريږدي، نو خوره ئے، ځكه چه دَ سپي نيول دَ هغې ذبح كول دي، او كه ته خپل سپي يا سپو سره څۀ بل سپے بيامومے، او تاته انديښنه وي، چه هغۀ هم ورسره نيولے دے، او هغه ئے وژلے دے، نو تۀ هغه مۀ خوره، ځكه چه تا په خپل سپي بسم الله وئيلے ده. په بل سپي دے نۀ ده وئيلے.

باب ۲۸۶: صَيْدِ الْمِعْرَاضِ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ فِي الْمَقْتُوْلَةِ بِالْبُنْدُقَةِ تِلْكَ الْمَوْقُوْذَةُ وَكَرِهَهُ سَالِمٌ وَالْقَاسِمُ وَمُجَاهِدٌ وَإِبْرٰهِيْمُ وَعَطَاءٌ وَالْحَسَنُ وَكَرِهَ الْحَسَنُ رَمْيَ الْبُنْدُقَةِ فِي الْقُرٰى وَالْأَمْصَارِ وَلَا يَرٰى بَأْسًا فِيْمَا سِوَاهُ.

باب ۲۸۶: دَ غشي دَ ښكار بيان. او ابن عمرؓ غُله سره دَ وژلے شوے ښكار متعلق اوفرمائيل چه هغه دَ موقوذه حكم كښې دے. او سالم، قاسم، مجاهد، ابراهيم، عطاء او حسن دا مكروه ګڼړلے دے. او حسن كلو او ښارونو كښې غُله چلول مكروه ګڼړلے دي. او دَدې نه سِوا نورو ځايونو كښې ئے څۀ حرج نۀ دے ګڼړلے.

ف: غُله: بُندُق: دَ خاورے ګولے يا مردكے چه غليل يا مجوغنه كښې كيښودلو سره پرے ويشتل كيږي. دَ خاورو ختبو ګولۍ يا مردكي، چه ښكاريان ئے په لينده كښې استعمالولو دَ پاره خپله جوړوي خښے ئے هسے اوچے كړي، او خښے ئے په اُور كښې سرے كړي.

۴۳۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَدِيَّ بْنَ حَاتِمٍ قَالَ

۴۳۹: سليمان بن حرب. شعبه. عبدالله بن ابي السفر. شعبي. عدي بن حاتم نه روايت كوي، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه غشي سره دَ ښكار كولو متعلق تپوس اوكړ، حضورؐ اوفرمائيل، كه دَ تير، د هار سره

سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ إِذَا أَصَبْتَ بِحَدِّهِ فَكُلْ وَ إِذَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَ فَإِنَّهُ وَقِيْذٌ فَلَا تَأْكُلْ فَقُلْتُ أُرْسِلُ كَلْبِيْ قَالَ إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَ سَمَّيْتَ فَكُلْ قُلْتُ فَإِنْ أَكَلَ قَالَ لَا تَأْكُلْ فَإِنَّهُ لَمْ يُمْسِكْ عَلَيْكَ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلٰى نَفْسِهِ قُلْتُ أُرْسِلُ كَلْبِيْ فَأَجِدُ مَعَهُ كَلْبًا اٰخَرَ قَالَ لَا تَأْكُلْ فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلٰى كَلْبِكَ وَ لَمْ تُسَمِّ عَلٰى اٰخَرَ.

اولږي، نو هغه خورلې. او که د هغې عرض (دونیم سر) سره اولږي، او هغه مړ شي، نو هغه د موقوذه حکم کښې داخل دے، هغه مۀ خورلے ما تپوس او کړ، که زۀ خپل سپے پرېږدم، نو د هغې څۀ حکم دے. حضورؐ اوفرمائيل، که تۀ بسم اللّٰه وئيلو سره سپے پرېږدے، نو د هغې نه خوره. ما تپوس او که، که سپے هغه اوخوري نو حضورؐ اوفرمائيل، مۀ ئے خوره، ځکه چه هغۀ تا د پاره نه، بلکه خان د پاره (ښکار) کړے دے. بيا ما عرض او کړ، که زۀ خپل سپے پرېږدم، او هغے سره د ښکار بل سپے بيامومم نو څۀ به کوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، مۀ ئے خوره، ځکه چه تا په خپل سپي بسم الله وئيلے ده، په بل دے نۀ ده وئيلے.

ف: دهار: داره. د تورے يا د بل پريکونکي څيز څُله، لښه يا تيره والے.

باب ۲۸۷: مَا أَصَابَ الْمِعْرَاضُ بِعَرْضِهِ.

باب ۲۸۷: د هغے ښکار بيان چه د تير په بل سر اولږي، او مړ شي.

۴۴۰: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍؓ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا نُرْسِلُ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ قَالَ كُلْ مَا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ قُلْتُ وَ إِنْ قَتَلْنَ قَالَ وَ إِنْ قَتَلْنَ قُلْتُ وَ إِنَّا نَرْمِيْ بِالْمِعْرَاضِ قَالَ كُلْ مَا خَزَقَ وَ مَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ.

۴۴۰: قبيصه. سفيان. منصور. ابراهيم. همام بن حارث. عدي بن حاتم نه روايت کوي، ما عرض او کړ، يا رسول اللّٰه، مونږ تربيت يافته سپي پرېږدو. (د دے څه حکم دے) حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، که ستا د پاره ښکار پرېږدي، نو هغه خوره. ما عرض او کړ، اګر که هغه ئے اووژني. حضورؐ اوفرمائيل (او) اګر که وے وژني، بيا ما عرض او کړ، مونږ د تير په بل سر يا د هغے ډنډے سره ښکار کوو، حضورؐ اوفرمائيل، که دے شلوي (پهاڑڈالے) نو هغه خوره، او که د هغے ډنډے سره مړشي، نو هغه مۀ خوره.

باب ۲۸۸: صَيْدِ الْقَوْسِ

باب ۲۸۸: ليندے سره د ښکار کولو بيان. او

وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ اِبْرٰهِيْمُ اِذَا ضَرَبَ صَيْدًا فَبَانَ مِنْهُ يَدٌ اَوْ رِجْلٌ لَا يَاْكُلُ الَّذِيْ بَانَ وَ يَاْكُلُ سَائِرَهٗ وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ اِذَا ضَرَبْتَ عُنُقَهٗ اَوْ وَسَطَهٗ فَكُلْهُ وَ قَالَ الْاَعْمَشُ عَنْ زَيْدٍ اِسْتَعْصٰى عَلٰى رَجُلٍ مِنْ اٰلِ عَبْدِ اللّٰهِ حِمَارٌ فَاَمَرَهُمْ اَنْ يَضْرِبُوْهُ حَيْثُ تَيَسَّرَ دَعُوْا مَا سَقَطَ مِنْهُ وَ كُلُوْهُ.

حسن او ابراهيم اووے' كه تاسو څۀ ښكار او كړئے' او ذ هغے څۀ لاس يا ښپے (ټاټيدو سره) جدا شي' نو كومه حصه چه جُدا شوې ده هغه مۀ خورئے' او باقي حصه خورئے. او ابراهيم اووے كه هغه په څټ يا ملا (گردن يا كمر) اوولي' او مړه شي' نو هغه خورئے. او اعمش ذ زيد نه نقل اوكه چه آلِ عبدالله نه يو سړي ذ "نيل گائے" ښكار اونۀ كړے شو' نو عبدالله حكم اوكۀ' چه كوم ځائے موقعه وي' اُودے لي (مارے) او كومه حصه چه ذ هغے اوغورځيږي' هغه پريږدئ او باقي اوخورئ.

ف: نيل گائے: يو قسم ځنګلي چوپايه' چه غوا سره څه نه څۀ مشابهت لري. يا ځنګلي خر.

۱۴۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ رَبِيْعَةُ بْنُ يَزِيْدَ الدِّمَشْقِيُّ عَنْ اَبِيْ اِدْرِيْسَ عَنْ اَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اِنَّا بِاَرْضِ قَوْمٍ اَهْلِ الْكِتٰبِ اَفَنَاْكُلُ فِيْ اٰنِيَتِهِمْ وَ بِاَرْضِ صَيْدٍ اَصِيْدُ بِقَوْسِيْ وَ بِكَلْبِيَ الَّذِيْ لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ وَ بِكَلْبِيَ الْمُعَلَّمِ فَمَا يَصْلُحُ لِيْ قَالَ اَمَّا مَا ذَكَرْتُ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ فَاِنْ وَجَدْتُّمْ غَيْرَهَا فَلَا تَاْكُلُوْا فِيْهَا وَ اِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاغْسِلُوْهَا وَ كُلُوْا فِيْهَا وَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ فَكُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَذَكَرْتَ اسْمَ

۱۴۴۱: عبدالله بن يزيد. حيوة. ربيعه بن يزيد دمشقي. ابو ادريس. ابو ثعلبه خشني نه روايت كوي' ما عرض اوكۀ' يا رسول الله' زۀ ذ اهل كتابو ملك كښې اوسيږم' آيا مونږ ذ هغوي لوښو كښې خورو' او ذ ښكار زمكه كښې اوسيږم' او زه ليندے (كمان) سره ښكار كوم' او ذ هغے سپي په ذريعه هم چه تربيت يافته نۀ وي' او ذ داسے سپي په ذريعه چه تربيت يافته (تربيتلے) وي' خما ذ پاره كوم صورت بهتر دے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ذ اهل كتابو متعلق چه تا ذكر اوكۀ' ذ هغے حكم دادے' كه تۀ ذ هغے نه علاوه بل لوښے بيامومے' نو ذ هغوي لوښو كښې مۀ خوره' اوكه بيا نۀ مومے' نو هغه لوښے اووينزه. بيا هغے كښې خوره او خپلے ليندے سره چه تا كوم ښكار كړے دے. كه په هغے دے بسم الله وئيلے وي' نو هغه خوره' او ذ پالليے (تربيت يافته) سپي په ذريعه چه ته ښكار او كړے' كه په هغے دے بسم الله وئيلے وي' نو هغه خوره. او كه

اللّٰهِ فَكُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ غَيْرِ مُعَلَّمٍ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ.

ناپاللے (نائربیت یافته) سپي په ذریعه ښکار اوکړے' او ذ هغې ذ ذبح کولو موقع بیامومے' نو هغه خوره.

بَاب ۲۸۹: الْخَذْفِ وَالْبُنْدُقَةِ.

باب ۲۸۹: ذ کنکر اوګولۍ ویشتلو بیان.

۴۴۲: حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ وَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ وَاللَّفْظُ لِيَزِيدَ عَنْ كَهْمَسِ بْنِ الْحَسَنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ إِنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَخْذِفُ فَقَالَ لَهُ لَا تَخْذِفْ فَإِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَذْفِ أَوْ كَانَ يَكْرَهُ الْخَذْفَ وَ قَالَ إِنَّهُ لَا يُصَادُ بِهِ صَيْدٌ وَلَا يُنْكَى بِهِ عَدُوٌّ وَ لٰكِنَّهَا قَدْ تَكْسِرُ السِّنَّ وَ تَفْقَأُ الْعَيْنَ ثُمَّ رَآهُ بَعْدَ ذٰلِكَ يَخْذِفُ فَقَالَ لَهُ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ نَهَى عَنِ الْخَذْفِ أَوْ كَرِهَ الْخَذْفَ وَ أَنْتَ تَخْذِفُ لَا أُكَلِّمُكَ كَذَا وَ كَذَا.

۴۴۲: یوسف بن راشد. وکیع او زید بن هارون. کهمس بن حسن. عبدالله بن بریده. عبدالله بن مغفل نه روایت کوي' هغهٔ یو سړے اولید' چه کنکر' ئے ویشتل' نو هغهٔ ته ئے اووے' کنکر (یا ګټکي) مهٔ اوولهٔ' ځکه چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ذدے نه منع فرمائیلے دہ. یا دائے اووے' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به کنکر ویشتل مکروه ګنړل (چه څوک پرے اونهٔ لیري) او' وے فرمائیل' دے سره نهٔ ښکار کیږي' او نهٔ څوک دشمن ورسره زخمي کیدے شي. او. ذ چا غابښ ماتولے شي' سترګه ئے ړنګولے شي. بیا هغه ئے دے نه پس په ګټکو ویشتلو اولیدلو' نو ورته ئے اووے. ما تاته ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم حدیث بیان اوکهٔ' چه حضورؐ ذ کنکر ویشتلو نه منع فرمائیلے ده' یا حضور دا مکروه ګنړلے دي' او تهٔ کنکر اوولے. زهٔ به بیا تاسره دومره مودے پورے خبرے اونهٔ کړم (چه ذ حضورؐ ګفته نهٔ منے' نو څما او ستا پائے).

بَاب ۲۹۰: مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا لَيْسَ بِكَلْبِ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ.

باب ۲۹۰: ذ هغے سړي بیان چه داسے سپے (ګتا) اوساتي چه ذ ښکار یا څناور ذ حفاظت ذ پاره نهٔ وي.

۴۴۳: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

۴۴۳: موسٰي بن اسمٰعیل. عبدالعزیز بن مسلم. عبداللّٰه بن دینار. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي' ذ هغهٔ بیان دے' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. کوم سړے چه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا لَيْسَ بِكَلْبِ مَاشِيَةٍ اَوْ ضَارِيَةٍ نَقَصَ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهٖ قِيْرَاطَانِ.

داسې سپې اوساتي چه دَ څناورو دَ حفاظت یا ښکار دَ پاره نهٔ وي، نو هره ورځ دَ هغهٔ دَ عمل نه دوه قیراط کمیږي.

ف: قیراط: یو تول یا وزن چه دَ درهم دَ دولسمې برخې هومره وي. دَ سرو زرو او دَ جواهراتو دَ تللو یو تول، په انګریزي کښې ورته کیرټ وائي.

۴۴۴: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ ابْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا اِلَّا كَلْبَ ضَارِيًا لِصَيْدٍ اَوْ كَلْبَ مَاشِيَةٍ فَاِنَّهٗ يَنْقُصُ مِنْ اَجْرِهٖ كُلَّ يَوْمٍ قِيْرَاطَانِ.

۴۴۴: مکي بن ابراهیم. حنظله بن ابي سفیان. سالم. عبدالله بن عمرؓ نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. کوم سړے چه په ښکار دَ حملې کولو یا دَ څناور دَ حفاظت والا دَ سپي نه علاوه بل سپې اوساتي، نو هره ورځ دَ هغه په اجر کښې دوه قیراطه کمیږي.

۴۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا اِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ اَوْ ضَارٍ نَقَصَ مِنْ عَمَلِهٖ كُلَّ يَوْمٍ قِيْرَاطَانِ.

۴۴۵: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، کوم سړے چه دَ څناور دَ حفاظت یا ښکار نه علاوه څهٔ غرض دَ پاره سپے اوساتي، نو روزانه دَ هغهٔ دَ عمل نه دوه قیراطه کمیږي.

## باب ۱۲۹۱: اِذَا اَكَلَ الْكَلْبُ.

وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى يَسْاَلُوْنَكَ مَاذَا اُحِلَّ لَهُمْ قُلْ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ الصَّوَائِدَ وَالْكَوَاسِبَ اِجْتَرَحُوْا اِكْتَسَبُوْا تُعَلِّمُوْنَهُنَّ

باب ۱۲۹۱: که سپې (ښکار) اوخوري، نو څهٔ حکم دے. او دَ الله تعالٰي قول، تانه تپوس کوي، چه هغوي له څهٔ حلال دي، ورته اووایه، ستاسو دَ پاره پاک څیزونه حلال کړے شوي دي. او کوم ښکاري څناورو ته چه تاسو تعلیم ورکړے، او هغه پریږدئے. او داسې طریقې سره هغوي ته تعلیم ورکوئے، چه الله تاسو ته تعلیم

مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ فَكُلُوْا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ إِلَى قَوْلِهِ سَرِيْعُ الْحِسَابِ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنْ أَكَلَ الْكَلْبُ فَقَدْ أَفْسَدَهُ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ وَاللَّهُ يَقُوْلُ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ فَيُضْرَبُ وَيُعَلَّمُ حَتَّى يَتْرُكَ وَكَرِهَهُ ابْنُ عُمَرَ وَقَالَ عَطَاءٌ إِنْ شَرِبَ الدَّمَ وَلَمْ يَأْكُلْ فَكُلْ.

درکړے دے، نو داسے خناور، چه کوم ښکار ستاسو دَ پاره اوکړي هغه خورلے. او په هغے دَ اللّٰه نوم آخلئے. او دَ اللّٰه نه ویریږئے. بیشکه اللّٰه تعالٰي زر حساب اخستونکے دے. جوارح نه مراد صوائد: اوکواسب: اجترحوا په معني دَ: اکتسبوا: راخي. او ابن عباسؓ اووے دَ سپي خوراک هغه خرابوي، هغهٔ خان دَ پاره کړے دے. او اللّٰه تعالٰي فرمائي، تاسو هغوي ته زده کړه کوئے، څنګه چه اللّٰه تعالٰي تاسو ته زده کړه کړے ده. هغه وهئے او زده کړه ورکوئے، تردے چه هغه پریږدي. او ابن عمرؓ دا مکروه ګنړلے دي، او عطاء اووے، که وینه او څکي، او، اونه خوري، نو دَ هغے نه خورئے.

۴۴۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ بَيَانٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ إِنَّا نَصِيْدُ بِهَذِهِ الْكِلَابِ قَالَ إِذَا أَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَإِنْ قَتَلْنَ إِلَّا أَنْ يَأْكُلَ الْكَلْبُ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَكُوْنَ أَمْسَكَهُ عَلَى نَفْسِهِ وَإِنْ خَالَطَهَا كِلَابٌ مِنْ غَيْرِهَا فَلَا تَأْكُلْ.

۴۴۶: قتیبه بن سعید. محمد بن فضیل. بیان. شعبي. عدي بن حاتم نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته عرض اوکړ، مونږ هغه قوم کښې یُو، چه دَ سپو په ذریعه ښکار کوي. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، کله چه تاسو دَ اللّٰه نوم واخلئے، او ساتلے (سکھائے ہوئے) سپي پریږدے، نو څهٔ چه ستاسو دَ پاره اوساتي، دَ هغے نه خورئے، آکر که هغه اووژني، خو دا چه دَ هغے نه څهٔ اوخوري. ځکه چه اندیښنه ده، چه دا هغهٔ د خان د پاره نیولے وي او که هغهٔ سره دَ هغهٔ نه علاوه نور سپي هم یوځائے شي، نو مهٔ خوره.

بَابُ ۲۹۲: الصَّيْدِ إِذَا غَابَ عَنْهُ يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً.

باب ۲۹۲: دَ هغے ښکار بیان چه دوه یا درے ورځو پورے غائب وي.

۴۴۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ

۴۴۷: موسٰي بن اسمٰعیل. ثابت بن زید. عاصم. شعبي. عدي بن حاتم. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه

يَزِيْدَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَ سَمَّيْتَ فَأَمْسَكَ وَ قَتَلَ فَكُلْ وَ إِنْ أَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلٰى نَفْسِهِ وَ إِذَا خَالَطَ كِلَابًا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهَا فَأَمْسَكْنَ وَ قَتَلْنَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّكَ لَا تَدْرِيْ أَيُّهَا قَتَلَ وَ إِنْ رَمَيْتَ الصَّيْدَ فَوَجَدْتَّهُ بَعْدَ يَوْمَيْنِ أَوْ يَوْمٍ لَيْسَ بِهِ إِلَّا أَثَرُ سَهْمِكَ فَكُلْ وَ إِنْ وَّقَعَ فِي الْمَاءِ فَلَا تَأْكُلْ وَ قَالَ عَبْدُ الْأَعْلٰى عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِيِّ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي الصَّيْدَ فَيَقْتَفِرُ أَثَرَهُ الْيَوْمَيْنِ وَالثَّلٰثَةَ ثُمَّ يَجِدُهُ مَيِّتًا وَّ فِيْهِ سَهْمُهُ قَالَ يَأْكُلُ إِنْ شَاءَ.

روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل ه کله چه تاسو بسم الله وئیلو سره خپل سپے پریږدئے، او هغه ښکار اُوساتي، او هغه اُووژني، نو هغه خورئے. اوکه سپي اوخوړلو، نو مه ئے خورئے، ځکه چه هغهٔ خان دَ پاره ساتلے دے، اوکه هغهٔ سره نور سپي شریک شوے وي چه په هغوي دَ الله نوم نهٔ وي اخستے شوے، او هغه ښکار ایسار کړي او قتل ئے کړي، نو مه ئے خورئے ځکه چه تاسو ته نهٔ ده معلومه چه هغوي کښې کوم یو (ښکار) قتل کړے دے اوکه یو ښکار ته په غشي اوولے او یوه یا دوه ورځے پس هغه (ښکار) بیامومے. او هغے (ښکار) کښې ستا دَ غشي نه سِوا بل څهٔ نښه نهٔ وي، نو هغه خوره، اوکه اُوبو کښې غرځیدلے وي نو هغه مهٔ خوره. او عبدالاعلی په واسطه دَ داؤد، عامر، عدي بیان اوکړ، چه عدي نبي صلي الله علیه وسلّم ته عرض اوکړ زهٔ ښکار په غشي اوولم، اودوه، درے ورځے پورے هغه ښکار غائب وي، بیا هغه ښکار مړ شوے بیامومم، او هغے کښې خما غشي وي، نو څهٔ اوکړم. حضورٌ ورته اوفرمائیل، که غواړے، نو هغه خوره.

## بَابٌ ۲۹۳ : إِذَا وَجَدَ مَعَ الصَّيْدِ كَلْبًا اٰخَرَ.

## بـاب ۲۹۳ : کـه ښکـار سـره بل سپے بیامومي.

۴۴۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّيْ أُرْسِلُ كَلْبِيْ وَ أُسَمِّيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَ

۴۴۸ : آدم. شعبه. عبدالله بن ابي السفر. شعبي عدي بن حاتم نه روایت کوي، ما عرض اوکړ، یا رسول الله، زهٔ بسم الله وئیلو سره خپل سپے پریږدم، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل کله چه بسم الله وئیلو سره خپل سپے پریږدے، او هغه ښکار اونیسي، مړ ئے کړي او، وے خوري، نو دَ هغے نه مهٔ خوره، ځکه چه هغهٔ خان

سَمَّيْتَ فَأَخَذَ فَقَتَلَ فَأَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ قُلْتُ إِنِّي أُرْسِلُ كَلْبِي أَجِدُ مَعَهُ كَلْبًا آخَرَ لَا أَدْرِي أَيُّهُمَا أَخَذَهُ فَقَالَ لَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى غَيْرِهِ وَ سَأَلْتُهُ عَنْ صَيْدِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ إِذَا أَصَبْتَ بِحَدِّهِ فَكُلْ وَ إِذَا أَصَبْتَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَ فَإِنَّهُ وَ قِيذٌ فَلَا تَأْكُلْ.

پاره ښکار کړے دے. ما عرض اوکړ' زه خپل سپے پریږدم' او هغه سره دوېم سپے بیامومم' او نه پوهیږم' چه هغے کښې کوم يو دا (ښکار) نيولے دے. حضورؐ اوفرمائيل' مه خوره' ځکه چه تا خو په خپل سپي بسم الله وئيلے ده' نه چه په هغه دوېم سپي. او ما د حضورؐ نه غشي سره د ښکار کولو تپوس اوکړ' نو حضورؐ اوفرمائيل' که د هغے دهار سره زخمي شي' نو خوره ئے' او که د هغے غشي ډنډے سره اولږي' او مړ شي. نو هغه موقوذه دے' هغه مه خوره.

## بَابٌ ۲۹۴: مَا جَاءَ فِي التَّصَيُّدِ.

## باب ۲۹۴: د هغے رواياتو بيان چه د ښکار متعلق منقول دي:

۴۴۹: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنِي ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ بَيَانٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ إِنَّا قَوْمٌ نَتَصَيَّدُ بِهٰذِهِ الْكِلَابِ فَقَالَ إِذَا أَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَ ذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ إِلَّا أَنْ يَأْكُلَ الْكَلْبُ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَكُوْنَ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ وَ إِنْ خَالَطَهَا كَلْبٌ مِنْ غَيْرِهَا فَلَا تَأْكُلْ.

۴۴۹: محمد. ابن فضيل. بيان. عامر. عدي بن حاتم نه روايت کوي' ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوکړ' يا رسول الله' مونږ داسے قوم کښې اوسيږو' چه دے سپو سره ښکار کوي. حضورؐ اوفرمائيل' کله چه تاسو پاللے (سکھائے ہوئے) سپي پريږدئے' او په هغے د الله نوم واخلئے' يعني بسم الله اووے' نو څه چه تاسو د پاره اوساتي' د هغے نه خورئے. او که سپے ئے اوخوري' نو مه ئے خورئے' ځکه چه انديښنه ده' چه هغه ځان د پاره ساتلے وي' او که هغه سره نور سپي هم شريک شوے وي' نو د هغے نه مه خورئے.

۴۵۰: حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ حَيْوَةَ وَ حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِيْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ حَيْوَةَ ابْنِ شُرَيْحٍ قَالَ

۴۵۰: ابو عاصم. حيوة او احمد بن رجاء. سلمه بن سليمان. ابن مبارک. حيوة بن شريح نه په واسطه د ربيعه بن يزيد دمشقي. ابو ادريس عائذ الله. ابو ثعلبه خشني روايت کوي' د هغه بيان دے'

سَمِعْتُ رَبِيْعَةَ بْنَ يَزِيْدَ الدِّمَشْقِيَّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ إِدْرِيْسَ عَائِذُ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ يَقُوْلُ أَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ نَأْكُلُ فِيْ آنِيَتِهِمْ وَ أَرْضِ صَيْدٍ أَصِيْدُ بِقَوْسِيْ وَ أَصِيْدُ بِكَلْبِيْ الْمُعَلَّمِ وَالَّذِيْ لَيْسَ مُعَلَّمًا فَأَخْبِرْنِيْ مَا الَّذِيْ يَحِلُّ لَنَا مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتٰبِ تَأْكُلُ فِيْ آنِيَتِهِمْ فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ فَلَا تَأْكُلُوْا فِيْهَا وَ إِنْ لَمْ تَجِدُوْا فَاغْسِلُوْهَا ثُمَّ كُلُوْا فِيْهَا وَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ صَيْدٍ فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ ثُمَّ كُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ ثُمَّ كُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِيْ لَيْسَ مُعَلَّمًا فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ.

زۀ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم، او عرض مې اوکړ، يا رسول اللّٰه، زۀ دَ اهل کتاب قوم په زمکه کښې اوسيږم، دَ هغوي په لوښو کښې خورم او دَ ښکار زمکه کښې اوسم. خپلې لينديې سره ښکار کوم. او دَ پاللې او غير پاللې سپو په ذريعه ښکار کوم، نو تاسو اوفرمائي، چه دې کښې کوم صورت موږ دَ پاره حلال دې. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تا چه کوم بيان اوکړ، چه تۀ دَ اهل کتابو په زمکه کښې اوسيږې، او دَ هغوي لوښو کښې خوراک کوې، که تاته دَ هغوي دَ لوښو نه سِوا دَ بل چا لوښي په لاس راشي نو دَ هغوي لوښو کښې مۀ خوره. او که بل لوښې بيانۀ مومې، نو هغه اووينزه، صاف ئې کړه. بيا هغې کښې خوره. او تا چه کوم بيان اوکړ، چه دَ ښکار په زمکه کښې اوسيږې، نو خپلې لينديې سره چه کوم ښکار اوکړې، او په هغې بسم اللّٰه اووې، نو هغه خوره. او بسم اللّٰه وئيلو سره که پاللې شوې سپې پرېږدې، نو دَ هغۀ ښکار خوره. او دَ ناپاللي سپي په ذريعه چه کوم ښکار اوکړې، او دَ هغې دَ ذبح کولو موقع بيامومې نو هغه خوره.

۱۴۵۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ هِشَامُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ فَسَعَوْا عَلَيْهَا حَتّٰى تَعِبُوْا فَسَعَيْتُ عَلَيْهَا حَتّٰى أَخَذْتُهَا فَجِئْتُ بِهَا إِلٰى أَبِيْ طَلْحَةَ فَبَعَثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۴۵۱: مسدد. يحيٰي. شعبه. هشام بن زيد. انس بن مالک نه روايت کوي. موږ مقام مر الظهران کښې يوه سوه (خرگوش) اوزغلوله او خلقو هغې پسې ورغړ وهلې. خو دَ هغې دَ نيولو نه عاجزه راغلل. زۀ هغې پسې وراُوزغليدم. تر دې چه هغه مې رالاندې کړه. ما هغه ابو طلحه له راوړله، نو هغۀ دَ هغې دواړه پتونونه او دواړه آړخونه حضور

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَرِ كَيْهَا وَ فَخِذَيْهَا فَقَبِلَهُ.

صلي الله عليه وسلم ته اوليږل نو حضورً هغه قبول كړلو.

۴۵۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ مَوْلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيْقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ اَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِيْنَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَاٰى حِمَارًا وَّحْشِيًّا فَاسْتَوٰى عَلٰى فَرَسِهِ ثُمَّ سَاَلَ اَصْحَابَهُ اَنْ يُّنَاوِلُوْهُ سَوْطًا فَاَبَوْا فَسَاَلَهُمْ رُمْحَهُ فَاَبَوْا فَاَخَذَهُ ثُمَّ شَدَّ عَلَى الْحِمَارِ فَقَتَلَهُ فَاَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبٰى بَعْضُهُمْ فَلَمَّا اَدْرَكُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَلُوْا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ اِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ اَطْعَمَكُمُوْهَا اللّٰهُ تَعَالٰى.

۴۵۲: اسمٰعيل. مالک. ابوالنضر (دَ عمر بن عبيدالله آزاد كړده غلام). نافع (دَ ابو قتاده آزاد كړده غلام) ابو قتاده نه روايت كوي، هغه نبي صلي الله عليه وسلّم سره وو، تردې چه كوم وخت دَ مكې يوې لارې ته راورسيدلو، نو خو سرو سره، چه احرام ئې تړلې وو او په خپله دَ حضورً نه ورستو پاتې شو. ليكن ابو قتاده خپله دَ احرام حالت كښې نه وو. هغهٔ يو ځنګلي خر (ګورخر) اوليدو. او په خپل اَس سور شولو. بيائې خپلو ملګروته اووې، چه كوړه راكړئې. هغوي انكار اوكهٔ. بيائې دَ هغوي نه نيزه اوغوښتله، خو هغوي دَ وركولو نه انكار اوكهٔ، نو خپله راكوز شولو. هغه ئې واخسته. بيائې په هغه ځنګلي خر حمله اوكړله. او هغه ئې اووژلو. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم بعضې صحابهٔ دَ هغې نه خوراک اوكهٔ. او بعضو انكار اوكهٔ (چه نه ئې خورو) كوم وخت چه دا خلق حضور صلي الله عليه وسلّم ته راورسيدل، نو په دې حقله ئې دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوكهٔ، حضورً ورته اوفرمائيل، دا خو يو خوراک دې چه الله تعالي په تاسو ا خوركړې دې.

۱. يعني د احرام په حالت كښې ښكار كول اګرچه جائز نه دي اوپه ښكار كولو باندې كفاره ادا كول وي ليكن د بل چا وژلي شوي ښكار خوړلو كښې هيڅ حرج نيشته.

۴۵۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ مِثْلَهُ اِلَّا اَنَّهُ قَالَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ

۴۵۳: اسمٰعيل. مالک. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. ابو قتاده نه دا شان روايت كوي، خو دومره زيات الفاظ ې بيان كړې دي، چه حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ... تاسو سره د هغې نه څه بچ شوې غوښه

شَيْءٌ.

## بَابٌ ۲۹۵: التَّصَيُّدِ عَلَى الْجِبَالِ.

۴۵۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو أَنَّ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ وَأَبِي صَالِحٍ مَوْلَى التَّوْأَمَةِ سَمِعْتُ أَبَا قَتَادَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ وَهُمْ مُحْرِمُونَ وَأَنَا رَجُلٌ حِلٌّ عَلَى فَرَسٍ وَكُنْتُ رَقَّاءً عَلَى الْجِبَالِ فَبَيْنَا أَنَا عَلَى ذَلِكَ إِذْ رَأَيْتُ النَّاسَ مُتَشَوِّفِينَ لِشَيْءٍ فَذَهَبْتُ أَنْظُرُ فَإِذَا هُوَ حِمَارُ وَحْشٍ فَقُلْتُ لَهُمْ مَا هَذَا قَالُوا لَا نَدْرِي قُلْتُ هُوَ حِمَارٌ وَحْشِيٌّ فَقَالُوا هُوَ مَا رَأَيْتَ وَكُنْتُ نَسِيتُ سَوْطِي فَقُلْتُ لَهُمْ نَاوِلُونِي سَوْطِي فَقَالُوا لَا نُعِينُكَ عَلَيْهِ فَنَزَلْتُ فَأَخَذْتُهُ ثُمَّ ضَرَبْتُ فِي أَثَرِهِ فَلَمْ يَكُنْ إِلَّا ذَاكَ حَتَّى عَقَرْتُهُ فَأَتَيْتُ إِلَيْهِمْ فَقُلْتُ لَهُمْ قُومُوا فَاحْتَمِلُوا قَالُوا لَا نَمَسُّهُ فَحَمَلْتُهُ حَتَّى جِئْتُهُمْ بِهِ فَأَبَى بَعْضُهُمْ وَأَكَلَ بَعْضُهُمْ فَقُلْتُ أَنَا أَسْتَوْقِفُ لَكُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَدْرَكْتُهُ فَحَدَّثْتُهُ

شته.

## باب ۲۹۵: په غرونو دَ ښکار کولو بيان.

۴۵۴: يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمرو. ابو النضر. نافع. (دَ ابو قتاده آزاد کرده غلام) او دَ ابو صالح توامه مولي بيان اوکړ، چه زۀ نبي صلي الله عليه وسلم سره دَ مکے او مدينے مينځ کښې ووم، داسے حال کښې، چه نورو خلقو خو احرام تړلے وو، او زۀ بغير احرام نه په يو آس سور ووم. او زۀ په غرونو ډير ختونکے ووم. ما اوليدل، چه خلق يو طرف ته ډير شوق سره ګوري، ما هم ورته اوکتل، نو يو ځنګلي خر مِ اوليدلو. ما خلقونه تپوس اوکړ، څۀ دي، هغوي جواب راکړ، مونږ ته نۀ ده معلومه. ما اووے، دا ځنګلي خر دے. هغوي اووے. او. دے. ما نه خپله کوړه هيره شوے وه. ما هغوي ته اووے، ځما کوړه راکړئے، هغوي اووے. مونږ ستا مدد نه کوو. نو زۀ راکوز شوم. کوړه مِ راواخسته بيا زۀ هغے پسے روان شوم، تردے چه هغه ځنګلي خر ما قتل کړلو، زۀ هغے خلقوله راغلم، او هغوي ته مِ اووے، اودريږئے، او هغه راوړئے. خلقو اووے، مونږ هغه مَس کولے نۀ شو، نو ما هغه راوړلو. بعضو انکار اوکړ، او بعضو اوخوړلو. ما اووے، زۀ به ستاسو دَ پاره دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړم. زۀ حضور صلي الله عليه وسلم له ورغلم، او دا واقعه مِ ورته بيان کړله. نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، آيا تاسو سره

الْحَدِيثَ فَقَالَ لِيْ اَبَقِيَ مَعَكُمْ شَيْءٌ مِنْهُ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ كُلُوْا هُوَ طُعْمٌ اَطْعَمَكُمُوْهَا اللّٰهُ.

څۀ باقي پاتے شوبنه شته. ما عرض اوکړو او. حضورﷺ اوفرمائيل، خورئے، دا يو خوراک وو، چه الله تعالى په تاسو خوړولے دے.

باب ۲۹۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَ قَالَ عُمَرُ صَيْدُهُ مَا اصْطِيْدَ وَ طَعَامُهُ مَا رَمٰى بِهٖ وَ قَالَ اَبُوْبَكْرِ اَلطَّافِيُ حَلَالٌ وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَعَامُهُ مَيْتَتُهُ اِلَّا مَا قَذِرْتَ مِنْهَا وَالْجِرِّيُّ لَا تَأْكُلُهُ الْيَهُوْدُ وَ نَحْنُ نَأْكُلُهُ وَ قَالَ شُرَيْحٌ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ شَيْءٍ فِي الْبَحْرِ مَذْبُوْحٌ وَّ قَالَ عَطَاءٌ اَمَّا الطَّيْرُ فَاَرٰى اَنْ يَّذْبَحَهُ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ صَيْدُ الْاَنْهَارِ وَ قِلَاتِ السَّيْلِ اَصَيْدُ بَحْرٍ قَالَ نَعَمْ ثُمَّ تَلَا هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّ هٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ وَّ مِنْ كُلٍّ تَاْكُلُوْنَ لَحْمًا طَرِيًّا وَّ رَكِبَ الْحَسَنُ (عَلَيْهِ السَّلَامُ) عَلٰى سَرْجٍ مِّنْ جُلُوْدِ كِلَابِ الْمَاءِ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ لَوْ اَنَّ اَهْلِيْ اَكَلُوا الضَّفَادِعَ لَاَطْعَمْتُهُمْ وَ لَمْ يَرَى الْحَسَنُ بِالسُّلَحْفَاتِ بَاْسًا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلْ مِنْ صَيْدِ

باب ۲۹۶: دَ الله تعالى قول چه دَ درياب ښکار ستاسو دَ پاره حلال دے. او حضرت عمرؓ اوفرمائيل، دَ "صيد" نه مراد هغه ښکار دے چه جال سره ښکار کړے شي. او دَ خوراک نه مراد هغه دے چه درياب لے بهرته راوغورځوي حضرت ابوبکرؓ اوفرمائيل "طافي" درياب کښې چه خپله مړشي (او درياب دَ پاسه تيريږي) حلال دے. او ابن عباسؓ اوفرمائيل، چه طعام نه مراد درياب کښې مړ شوے ځناور دے، خو هغه چه تاسو ته مکروه معلوميږي. او مار ماهي يهوديان نۀ خوري. ليکن مونږ ئے خورو. او دَ حضور صلى الله عليه وسلم صحابي شريح اوفرمائيل، چه دَ درياب ټول څيزونه دَ مذبوح (ذبح کړے شوے) په حکم کښې داخل دي. عطاء اووے دَ مارغانو (چه په اُوبو آلوځي) ذبح کول زۀ مناسب ګنړم. او ابن جريج اووے، ما دَ عطاء نه دَ نهرونو او غرونو په ځوکو چه کومے اُوبه جمع کيږي، دَ هغے دَ ښکار متعلق تپوس اوکړو، چه آيا دا هم دَ دريابي ښکار په حکم کښې راځي، نو هغۀ اووے، او. بيائے دا آيت اولوست: هٰذا عذبٌ فراتٌ وّ هٰذا مِلْحٌ اُجَاجٌ وَ مِنْ كُلٍّ تاكلون لَحْمًا طَرِيًّا: او حسن عليه السلام به دَ دريابي سپو دَ څرمنے نه جوړ شوے زين باندے سوريدلو. او شعبي اووے. که څما دَ کور خلقو چيندخ خوړے، نو ما به پرے خوړولو. او حسن بصريؒ شمشتے (خوړلو) کښې څۀ حرج نۀ دے ګنړلے. او ابن عباسؓ اوفرمائيل، دَ

الْبَحْرِ نَصْرَانِيٌّ أَوْ يَهُودِيٌّ أَوْ مَجُوسِيٌّ وَ قَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ فِي الْمُرِيِّ ذَبَحَ الْخَمْرَ النِّينَانُ وَالشَّمْسُ.

دریاب ښکار خوړنے' اګر که هغه یهودي' نصراني یا مجوسي ښکار کړے وي. او ابوالدرداء ذَ مُري متعلق اوفرمائیل چه نمر او کبانو شراب ذبح کړے دي (حلال کړے دي).

ف: مُري: کانجي یو قسم پخے اُوبه' چه هغے کښې پخه غله اچولو سره تُرش کیږي. یو قسم تَروَلے او مالګینے اُوبه.

۱. عربو به په شرابو کښے کبان واچول او په نمر کښے به ئے کیښودل او د هغے نه به ئے سرکه جوړوله او هغه ته به ئے مزدي وئیل' ابو درداء رضي الله عنه وئیل دا غوښتل چه کله په شرابو کښے مهے واچولے شي او د نمر په ذریعه ترے سرکه جوړه کړے شي نو هغه سرکه حلاله ده. د شرابو سرکه د احنافو په نزد هم جائز ده. امام بخاري رحمة الله علیه په دے باب کښے د قرآن آیت د صحابه ؤ آثارو او د نورو اسلافو د اقوالو په ذریعه دا ښودل غواړي چه تمام دریابي ځناور حلال دي. د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد هم په دریابي ځناورو کښے لوئے ګنجائش دے' څنګه چه معلومه ده. احناف د ټولو دریابي ځناورو د خوراک اجازت نه ورکوي. دلائل دواړه طرفته شته.

۴۵۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ غَزَوْنَا جَيْشَ الْخَبَطِ وَ أَمِيْرُنَا أَبُوْ عُبَيْدَةَ فَجُعْنَا جُوْعًا شَدِيْدًا فَأَلْقَى الْبَحْرُ حُوْتًا مَيِّتًا لَمْ يُرَ مِثْلُهُ يُقَالُ لَهُ الْعَنْبَرُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ فَأَخَذَ أَبُوْ عُبَيْدَةَ عَظْمًا مِّنْ عِظَامِهٖ فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهٗ.

۴۵۵: مسدد. یحیٰی. ابن جریج. عمرو. جابر نه روایت کوي. مونږ جیش الخبط سره جهاد کښې وو. څمونږ سردار ابو عبیده وو. مونږ سخت اوږے شو' نو دریاب یو ډیر غټ مړ کب (مچھلی) غاړے ته راوغرځولو' چه هغے ته عنبر وائي. مونږ دومره غټ کب چرته نهٔ وو لیدلے. مونږ نیمے میاشتے پورے هغه خوړلو. ابو عبیده ذَ هغے ذَ هډوکو نه یو هډوکے راواخست (هغه دومره لوئے وو) چه ذَ هغے ذَ لاندے نه به یو سور پوریوتلو).

۴۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُوْلُ بَعَثَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَ مِائَةِ رَاكِبٍ وَّ أَمِيْرُنَا أَبُوْ عُبَيْدَةَ نَرْصُدُ عِيْرًا لِّقُرَيْشٍ فَأَصَابَنَا جُوْعٌ

۴۵۶: عبدالله بن محمد. سفیان. عمرو. جابر نه روایت کوي. مونږ درے سوه سواره وو' چه هغه نبي صلي الله علیه وسلّم لیږلے وو' او څمونږ سردار ابو عبیده وو. مونږ ذَ قریشو ذَ قافلے په سو (ګهات) کښې ناست وو او مونږ ډیر سخت اوږے شو. تردے چه مونږ خبط (ذَ کیکر پانړے) اوخوړلے. په دے وجه ذَ دے

شَدِيدٌ حَتّٰى اَكَلْنَا الْخَبَطَ فَسُمِّيَ جَيْشُ الْخَبَطِ وَ اَلْقَى الْبَحْرُ حُوْتًا يُقَالُ لَهُ الْعَنْبَرُ فَاَكَلْنَا بِصُفَ شَهْرٍ وَّادَّهَنَّا بِوَدَكِهٖ حَتّٰى صَلُحَتْ اَجْسَامُنَا قَالَ فَاَخَذَ اَبُو عُبَيْدَةَ ضِلْعًا مِّنْ اَضْلَاعِهٖ فَنَصَبَهٗ فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهٗ وَ كَانَ فِيْنَا رَجُلٌ فَلَمَّا اشْتَدَّ الْجُوْعُ نَحَرَ ثَلٰثَ جَزَآئِرَ ثُمَّ ثَلٰثَ جَزَآئِرَ ثُمَّ نَهَاهُ اَبُو عُبَيْدَةَ.

لښکر نوم جيش الخبط کيښودے شو. او درياب يو کب چه هغے ته عنبر وئيلے شي، غارے ته راوغورځولو. مونږ پنځلس ورځے پورے هغه اوخوړلو. او د هغے تيل مونږ په خپل جسم اومږل (مالش مو اوکړ) تردے چه خمونږ جسم تندرست شولو. جابر اووے، ابو عبيده د هغے کب يوه پښتئ اُودروله، نو د هغے د لاندے نه يو سور (سوار) تير شولو. مونږ کښ يو سړے وو، هغه چه به زيات اوږے شو، نو درے درے اوښان به ئے ذبح کول. بيا ابو عبيده هغه منع کړلو.

## بَاب۲۹۷: اَكْلِ الْجَرَادِ.

## باب۲۹۷: د ملخانو (ټڈی) خوړلو بيان.

۴۵۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ يَعْفُوْرَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ اَوْ سِتًّا كُنَّا نَاْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ قَالَ سُفْيَانُ وَ اَبُوْ عَوَانَةَ وَ اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ يَعْفُوْرَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى سَبْعَ غَزَوَاتٍ.

۴۵۷: ابوالوليد. شعبه. ابو يعفور. ابن ابي اوفي نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره اوو يا شپږو غزاګانو کښ شريک شو. مونږ به حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره (د لوږے نه) ملخان خوړل. او ابو عوانه او اسرائيل په واسطه د ابي يعفور، ابن ابي اوفي نه د اوو غزاګانو لفظ بيان کړے دے.

## بَاب۲۹۸: اٰنِيَةِ الْمَجُوْسِ وَالْمَيْتَةِ.

## باب۲۹۸: د مجوسي د لوښي او مُردارے بيان.

۴۵۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ حَيْوَةَ ابْنِ شُرَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ رَبِيْعَةُ بْنُ يَزِيْدَ الدِّمَشْقِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِدْرِيْسَ الْخَوْلَانِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيُّ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا

۴۵۸: ابو عاصم. حيوة. شريح. ربيعه بن يزيد دمشقي. ابو ادريس خولاني. ابو ثعلبه خشني نه روايت کوي، زهٔ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم، او عرض م اوکړ يا رسول اللّٰه، د اهل کتابو زمکه کښ اوسيږو په دے وجه مونږ د هغوي لوښو کښ خورو، او د ښکار زمکه کښ

رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا بِاَرْضِ اَهْلِ الْكِتَابِ فَنَاْكُلُ فِىْ اٰنِيَتِهِمْ وَ بِاَرْضِ صَيْدٍ اَصِيْدُ بِقَوْسِىْ وَ اَصِيْدُ بِكَلْبِىَ الْمُعَلَّمِ وَ بِكَلْبِىَ الَّذِىْ لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ فَقَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا مَا ذَكَرْتَ اَنَّكَ بِاَرْضِ اَهْلِ كِتَابٍ فَلَا تَاْكُلُوْا فِىْ اٰنِيَتِهِمْ اِلَّا اَنْ لَّا تَجِدُوْا بُدًّا فَاغْسِلُوْهَا وَ كُلُوْا وَ اَمَّا مَا ذَكَرْتَ اَنَّكُمْ بِاَرْضِ صَيْدٍ فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَ كُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَ كُلْ وَ مَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِىْ لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ فَاَدْرَكْتَ ذَكَاتَهٗ فَكُلْهُ.

اوسيږو، او مونږ ليندے سره او خپل پالليے شوي او ناپالليے سپو په ذريعه ښكار كوو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاچه كوم بيان اوكړ، چه تۀ د اهل كتابو زمكه كښې اوسيږے، نو د هغوي لوښي كښې مۀ خوره خو دا چه د هغے نه سِوا بله څۀ چاره نۀ وي كه څۀ ضورت نۀ وي، نو هغه اووينزه، او هغے كښې خوره. او تا چه كوم بيان اوكړ، چه تۀ د ښكار زمكه كښې اوسيږے، نو كه تا ليندے سره په هغے بسم الله اووے، او ښكار كوے، نو خوره ئے، او د ښكاري سپي په ذريعه بسم الله ونيلو سره ښكار كوے، نو خوره. او كه د ناپاللے سپي په ذريعه ښكار كوے او د هغے د ذبحے موقعه په لاس درشي، نو ذبح ئے كړه، اوخوره ئے.

**٤٥٩**: حَدَّثَنَا الْمَكِّىُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِىْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِىْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ لَمَّا اَمْسَوْا يَوْمَ فَتَحِ خَيْبَرَ اَوْقَدُوا النِّيْرَانَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مَا اَوْقَدْتُمْ هٰذِهِ النِّيْرَانَ قَالُوْا لُحُوْمُ الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ قَالَ اَهْرِيْقُوْا مَا فِيْهَا وَاكْسِرُوْا قُدُوْرَهَا فَقَامَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ فَقَالَ نُهَرِيْقُ مَا فِيْهَا وَ نَغْسِلُهَا فَقَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ ذَاكَ.

**٤٥٩**: مكي بن ابراهيم. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اكوع نه روايت كوي، كوم وخت چه خيبر فتح شو، نو مابنامي كښې خلقو اُوربل كړ، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو په څۀ څيز اُوربل كړلو (يعني څۀ پخوئے) خلقو جواب وركړ. د ساتلے خرونو غوښه، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. څۀ چه دے (كټو) كښې دي، هغه اوغرخوئے. او دا كټوے ماتے كړئے. يو سړے د جماعت نه اودريدلو، او عرض ئے اوكړ، آيا داسے نشي كيدے، چه مونږ دَدے دننه څيز اُوغرخوو. او دَدے لوښي اووينزو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ښۀ ده دغسے اوكړئے.

**بَاب ٢٩٩: التَّسْمِيَةِ عَلَى الذَّبِيْحَةِ. وَ مَنْ تَرَكَ مُتَعَمِّدًا.** قَالَ

**باب ٢٩٩: ذبيحه (حلاله) باندے د بسم الله ونيلو بيان. او د هغے سړي بيان، چه قصداً ئے پريږدي**

ابْنُ عَبَّاسٍ مَنْ نَسِيَ فَلَا بَأْسَ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ لَا تَأْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَ اِنَّهٗ لَفِسْقٌ وَّ النَّاسِيُ لَا يُسَمّٰى فَاسِقًا وَّ قَوْلُهٗ اِنَّ الشَّيَاطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰى اَوْلِيَآئِهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ وَ اِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ.

ابن عباسؓ اووے، كه بسم اللّٰه ترے هيره شي، نو هيڅ حرج نشته. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، په څه څيز چه دَ اللّٰه نوم نه وي آخستے شوے، دَ هغے نه مه خورئے، دا فِسق دے. او په هيره پريښودونكي ته فاسق نشي وئيلے. دَ اللّٰه تعالٰي قول: وَ اِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰى اَوْلِيٰٓئِهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ وَ اِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ.

۴۲۶۰: حَدَّثَنِيْ مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ عَنْ جَدِّهٖ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَاَصَابَ النَّاسَ جُوْعٌ فَاَصَبْنَا اِبِلًا وَّ غَنَمًا وَّ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اُخْرَيَاتِ النَّاسِ فَعَجِلُوْا فَنَصَبُوا الْقُدُوْرَ فَدُفِعَ اِلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ بِالْقُدُوْرِ فَاُكْفِئَتْ ثُمَّ قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِّنَ الْغَنَمِ بِبَعِيْرٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيْرٌ وَّ كَانَ فِي الْقَوْمِ خَيْلٌ يَسِيْرَةٌ فَطَلَبُوْهُ فَاَعْيَاهُمْ فَاَهْوٰى اِلَيْهِ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللّٰهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِهٰذِهِ الْبَهَائِمِ اَوَابِدَ كَاَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا نَدَّ عَلَيْكُمْ فَاصْنَعُوْا بِهٖ هٰكَذَا قَالَ وَ قَالَ جَدِّيْ اِنَّا لَنَرْجُوْا اَوْ نَخَافُ اَنْ نَّلْقَى الْعَدُوَّ وَ

۴۲۶۰: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. سعيد بن مسروق. عبايه بن رفاعه بن رافع دَ خپل نيكه (دادا) رافع بن خديج نه روايت كوي، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذي الحليفه كښې وو، خلق اوږي وو، نو مونږ يو اُوښ او يوه چيلئے حلاله كړه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خلقو كښې دَ ټولو نه ورستو وو. خلقو تادي او كړه او كټوے ئے په نغري اوخيژولے. كوم وخت چه حضورؐ خلقو ته راورسيدو، نو حضورؐ دَ كټوو دَ آړولو حكم اوكړلو. بيائے مال غنيمت تقسيم كړلو، دا شان چه لس چيلے ئے دَ يو اُوښ برابر كيښودلے. هغے كښې يو اوښ اُوتښتيدلو. جماعت كښې اسونه لږ وو، هغوي دَ هغے نيول اوغوښتل، خو وے نه نيولے شو. هغوي كښې يو سړي اوښ طرف ته تير اوويشتلو، نو اللّٰه هغه ايسار كړلو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دے چوپايه ؤ كښې هم دَ ځنګلي ښاورو په شان تيښته كونكي وي. هر كله چه يو ښاور اوتښتي، نو هغهٔ سره داسے كوئے. دَ عبايه بيان دے. ځما نيكه (دادا) عرض اوكهٔ، زهٔ اُميد كوم يا داسے ئے اووے، مونږ ته انديښنه ده، چه صبا له به ځمونږ دشمن سره مقابله وي. او مونږ سره څهٔ چاړهٔ (چهري) نشته، نو آيا مونږ په بانړس (بانس) ذبح كوو.

غَدًا وَّ لَيْسَ مَعَنَا مُدًى اَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ فَقَالَ مَا اَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَكُلْ لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَ سَاُخْبِرُكُمْ عَنْهُ اَمَّا السِّنُّ عَظْمٌ وَّ اَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبْشَةِ.

حضورﷺ ورته اوفرمائيل کوم څيز چه وينه بهيوي، او په هغې دَ اللّٰه نوم آخستے شوے وي. نو (هغې سره ذبح کړے شوے) خوړئے خو دا چه غابښ يا نوک سره ذبح نۀ وي. او زۀ به تاسوته دَدې متعلق اووايم چه غابښ خو هډوکے دے، او نوک (ناخن) دَ حبشيانو چاړۀ (چهري) ده.

## بَاب ۳۰۰: مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَالْاَصْنَامِ.

باب ۳۰۰: دَ هغې څيز بيان، چه اصنام او بتانو باندې ذبح کړے شي.

۱۶۴۱: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ يَعْنِي ابْنَ الْمُخْتَارِ اَخْبَرَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّهٗ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ لَقِيَ زَيْدَ بْنَ عَمْرِو ابْنِ نُفَيْلٍ بِاَسْفَلَ بَلْدَحٍ وَ ذَاكَ قَبْلَ اَنْ يُنْزَلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَحْيُ فَقَدَّمَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُفْرَةً فِيْهَا لَحْمٌ فَاَبٰى اَنْ يَّاْكُلَ مِنْهَا ثُمَّ قَالَ اِنِّيْ لَا اٰكُلُ مِمَّا تَذْبَحُوْنَ عَلٰى اَنْصَابِكُمْ وَ لَا اٰكُلُ اِلَّا مَا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ.

۱۶۴۱: معلي بن اسد. عبدالعزيز بن مختار. موسٰي بن عقبه. سالم. عبداللّٰه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم، زيد بن عمرو بن نفيل سره مقام اسفل بلدح کښې ملاقات اوکړه. او دا واقعه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم باندې دَ وحي نازليدونه مخکښې ده. هغه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې دسترخوان پيش کړلو، چه په هغې غوښه وه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغې دَ خوړلو نه انکار اوکړه. بيائے اوفرمائيل، زۀ دَ هغې نه نۀ خورم، کوم چه تاسو په خپلو بتانو ذبح کوئے. او زۀ صرف هغه خورم، چه په هغې دَ اللّٰه نوم آخستے شوے وي، يعني بسم اللّٰه پرے وئيلے شوے وي.

## بَاب ۳۰۱: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَذْبَحْ عَلٰى اِسْمِ اللّٰهِ.

باب ۳۰۱: دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، دَ اللّٰه په نوم ذبح کول پکار دي.

۱۶۴۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۱۶۴۲: قتيبه. ابو عوانه. اسود بن قيس. جندب

اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ جُنْدُبِ بْنِ سُفْيٰنَ الْبَجَلِيِّ قَالَ ضَحَّيْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُضْحِيَّةً ذَاتَ يَوْمٍ فَاِذَا اُنَاسٌ قَدْ ذَبَحُوْا قَبْلَ الصَّلٰوةِ قَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا اُخْرٰى وَمَنْ لَّمْ يَذْبَحْ حَتّٰى صَلَّيْنَا فَلْيَذْبَحْ عَلٰى اِسْمِ اللّٰهِ.

بن سفيان بجلي نه روايت كوي. مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره يوه ورځ قرباني اوكړه په هغه ورځ خنو خلقو دَ قربانۍ څناور د مانځه نه مخكښې حلال كړي وو. څهٔ وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم فارغ شو. او خلق ئے اوليدل چه د مانځه نه مخكښې ئے قرباني كړے ده. نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل كومو خلقو چه د مانځه نه مخكښې ذبح كړے ده. هغوي دے د هغے په ځائے دوئيم څناور ذبح كړي. او چا چه خمونږ مونځ كولو پورے ذبح نه وه كړے هغوي له پكار دي چه دَ الله په نوم ذبح اوكړي.

**باب ۳۰۲: مَا اَنْهَرَ الدَّمَ مِنَ الْقَصَبِ وَالْمَرْوَةِ وَالْحَدِيْدِ.**

**باب ۳۰۲:** هغے څيز سره دَ ذبح كولو بيان چه وينه تويے كړي. لكه بانړس، كانړے (بَكره) او اوسپنه.

۴۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِىْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ سَمِعَ ابْنَ كَعْبِ ابْنِ مَالِكٍ يُّخْبِرُ ابْنَ عُمَرَ اَنَّ اَبَاهُ اَخْبَرَهٗ اَنَّ جَارِيَةً لَّهُمْ كَانَتْ تَرْعٰى غَنَمًا بِسَلْعٍ فَاَبْصَرَتْ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِهَا مَوْتًا فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا فَقَالَ لِاَهْلِهٖ لَا تَاْكُلُوْا حَتّٰى اٰتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ فَاَسْئَلَهٗ اَوْ حَتّٰى اُرْسِلَ اِلَيْهِ مَنْ يَّسْئَالُهٗ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ بَعَثَ اِلَيْهِ فَاَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَكْلِهَا.

۴۶۳: محمد بن ابي بكر. معتمر. عبيدالله. نافع. ابن كعب بن مالك. ابن عمرؓ نه بيان اوكهٔ د هغهٔ د پلار بيان دے چه د هغهٔ يوے وينځے مقام سلع كښې چيلے څرولے هغے په رمه كښې يوه چيلے اوليده چه مرګ ته نزدے ووه، نو هغے يو كانړے مات كهٔ، او په هغے ئے هغه چيلے حلاله كړه. نو كعب خپل كوروالو ته اووے. څو پورے چه زهٔ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه خپله يا د چا په ذريعه تپوس اونه كړم. هغه وخته پورے تاسو دا چيلئے مه خورئے. كعب د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. يا څوك ئے اوليږل، تپوس ئے اوكه. نو نبي صلي الله عليه وسلّم د هغے (چيلئے) دَ خوړلو حكم اوكړلو.

۴۶۴: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ

۴۶۴: محمد بن ابي بكر. معتمر. عبيدالله. نافع دَ بني سلمه دَ يو فرد نه روايت كوي، عبدالله اووے د

رَجُلٍ مِّنْ بَنِي سَلِمَةَ اَخْبَرَ عَبْدَ اللّٰهِ اَنَّ جَارِيَةً لِّكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ تَرْعٰى غَنَمًا لَّهٗ بِالْجَبَلِ الَّذِيْ بِالسُّوْقِ وَهُوَ بِسَلْعٍ فَاُصِيْبَتْ شَاةٌ فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا فَذَكَرُوْا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَهُمْ بِاَكْلِهَا.

كعب بن مالك يوه وينزه په وړوكے غنډۍ چه سوق كښې په مقام سلع ده' ذَ هغهٔ چيلئے څرولے. يوه چيلے په كښې ناروغه شوه' نو هغے وينزے يو كاڼړے راواخست' هغه ئے مات كۀ' او هغه چيلئے ئے پرے حلاله كړه. خلقو نبي صلي الله عليه وسلّم ته ذَ دے بيان اوكۀ نو حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے (چيلے) ذَ خوړلو حكم اوكړلو.

۴۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رَافِعٍ عَنْ جَدِّهٖ اَنَّهٗ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَيْسَ لَنَا مُدًى فَقَالَ مَا اَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ فَكُلْ لَيْسَ الظُّفُرَ وَالسِّنَّ اَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ وَ اَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَ نَدَّ بَعِيْرٌ فَحَبَسَهٗ فَقَالَ اِنَّ لِهٰذِهِ الْاِبِلِ اَوَابِدَ كَاَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا فَاصْنَعُوْا بِهٖ هٰكَذَا.

۴۶۵: عبدالله. ذَ عبدان پلار. شعبه. سعيد بن مسروق. عبايه بن رافع ذَ خپل نيكه (دادا) نه روايت كوي' هغهٔ اووے' يا رسول الله' مونږ سره چاړهٔ (چهری) نشته' حضورؐ ورته اوفرمائيل' كوم څيز چه وينه توے كړي' اوپه هغے ذَ الله نوم واخستے شي' هغه خورئے' خو په شرط ذَ دے چه نوك او غاښ نهٔ وي (دے سره حلاله نهٔ كيږي) نوك خو ذَ حبشيانو چاړهٔ ده' او غاښ هډوكے دے. يو اوښ اوتښتيدلو' چه هغه تير ويشتلو سره رامنع كړے شو' نو حضورؐ اوفرمائيل' ذَدے چوپايه ؤ عادت هم ذَ ځنګلي ځناورو په شان دے' كه تاسو كښې په دوي څوك غالب رانشي' نو دغسے ورسره كوئے.

بَابٌ ۳۰۳: ذَبِيْحَةِ الْمَرْاَةِ وَالْاَمَةِ.

باب ۳۰۳: ذَ ښځے او وينځے ذَ ذبيحے بيان.

۴۶۶: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنٍ لِّكَعْبِ ابْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ امْرَاَةً ذَبَحَتْ شَاةً بِحَجَرٍ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَاَمَرَ بِاَكْلِهَا وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا نَافِعٌ

۴۶۶: صدقه. عبده. عبيدالله. نافع. ابن كعب بن مالك ذَ خپل پلار (كعب بن مالك) نه روايت كوي' يو ښځے كاڼړي سره يوه چيلئے ذبح كړه. نبي صلي الله عليه وسلّم نه ذَ هغے متعلق تپوس اوشو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے ذَ خوړلو حكم اوكۀ. او ليث بيان اوكۀ. مزنے ته نافع بيان اوكۀ. هغهٔ ذيو

أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا مِّنَ الْأَنْصَارِ يُخْبِرُ عَبْدَ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ جَارِيَةً لِّكَعْبٍ بِهٰذَا.

انصاري سړي نه واوريدل. عبدالله نبي صلي الله عليه وسلَم نه روايت كوي، چه دَ كعب بن مالك يوه وينزه وَه، او دا حديث ئے روايت كۀ.

۴۶۷: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ رَّجُلٍ مِّنَ الْأَنْصَارِ عَنْ مُّعَاذِ بْنِ سَعْدٍ أَوْ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ جَارِيَةً لِّكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ كَانَتْ تَرْعٰى غَنَمًا بِسَلْعٍ فَأُصِيْبَتْ شَاةٌ فَأَدْرَكَتْهَا فَذَبَحَتْهَا بِحَجَرٍ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلُوْهَا.

۴۶۷: اسمٰعيل. مالک. نافع. يو انصاري سړي، معاذ بن سعد، يا سعد بن معاذ نه روايت كوي، هغۀ بيان اوكۀ، دَ كعب بن مالک وينزے مقام سلع كښې چيلئے څرولے، هغے كښې يوه چيلئے ناجوړه شوه. وينزه هغے لـه ورغلـه، او هغه ئے كاڼړي سره حلاله كړه. بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلَم نه تپوس اوشو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل، دا خورئے.

باب ۳۰۴: لَا يُذَكّٰى بِالسِّنِّ وَالْعَظْمِ وَالظُّفُرِ.

باب ۳۰۴: غابښ، هډوكي او نوک سره ذبح كول نۀ دي پكار.

۴۶۸: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَبَايَةَ ابْنِ رِفَاعَةَ عَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلْ يَعْنِيْ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ إِلَّا السِّنَّ وَالظُّفُرَ.

۴۶۸: قبيصه. سفيان. دَ خپل پلار نه، هغه دَ عبايه بن رفاعه نه، هغه دَ رافع بن خديج نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلَم اوفرمائيل، خورئے (يعني هغے څيز سره ذبح كړے شوے ځناور) چه وينه توئے كړي. خو چه غابښ او نوک سره نه وي.

باب ۳۰۵: ذَبِيْحَةِ الْأَعْرَابِ وَ نَحْوِهِمْ.

باب ۳۰۵: دَ اَعرابو (جټ، ګنوار) دَ ذبيحے بيان.

۴۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا أُسَامَةُ بْنُ حَفْصٍ الْمَدَنِيُّ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ قَوْمًا قَالُوْا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ قَوْمًا يَّأْتُوْنَا بِاللَّحْمِ لَا نَدْرِيْ أَذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ

۴۶۹: محمد بن عبيداللّٰه. اسامه بن حفص مدني. هشام بن عروه. عروه بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، ځنے خلقو، نبي صلي الله عليه وسلَم ته عرض اوكۀ، چه ځۀ خلق مونږ له غوښه راوړي، ليكن مونږ ته پته نۀ لږي چه هغوي پرے بسم الله وئيلے ده يا نه، حضور صلي الله عليه وسلَم ورته اوفرمائيل،

عَلَيْهِ أَمْ لَا فَقَالَ سَمُّوْا عَلَيْهِ أَنْتُمْ وَ كُلُوْهُ قَالَتْ وَ كَانُوْا حَدِيْثِيْ عَهْدٍ بِالْكُفْرِ تَابَعَهُ عَلِيٌّ عَنِ الدَّرَاوَرْدِيِّ وَ تَابَعَهُ أَبُوْ خَالِدٍ وَ الطُّفَاوِيُّ.

تاسو په هغې بسم الله وائې او خورې ئې. دَ بي بي عائشې بيان دې، چه خلق هغه وخت دَ کفر زمانې ته قريب وو. علي دَ دراوردي نه او ابو خالد اوو طفاوي ددې متابع حديث روايت کړې دې.

**باب ٣٠٦: ذَبَائِحِ أَهْلِ الْكِتَابِ وَ شُحُوْمِهَا مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ وَ غَيْرِهِمْ** وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى اَلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ وَ طَعَامُ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ وَ طَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ لَا بَأْسَ بِذَبِيْحَةِ نَصَارٰى الْعَرَبِ وَ إِنْ سَمِعْتَهُ يُسَمِّيْ لِغَيْرِ اللّٰهِ فَلَا تَأْكُلْ وَ إِنْ لَّمْ تَسْمَعْهُ فَقَدْ أَحَلَّهُ اللّٰهُ وَ عَلِمَ كُفْرَهُمْ وَ يُذْكَرُ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوُهُ وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ إِبْرٰهِيْمُ لَا بَأْسَ بِذَبِيْحَةِ الْأَقْلَفِ.

**باب ٣٠٦: دَ دارالحرب وغيره دَ اهل کتابو دَ ذبيحو بيان.** او دَ الله تعالىٰ قول، چه نن تاسو دَ پاره پاکيزه څيزونه حلال کړې شو، او دَ هغې خلقو طعام چه اهل کتاب دي، ستاسو دَ پاره حلال دې. او زهري اووې، دَ عربو نصاراؤ دَ ذبيحو خوړلو کښې څهٔ حرج نشته. او که تاسو واورئې، چه هغه پرې دَ غير الله نوم واخست نو هغه مهٔ خورئې، او که څهٔ واونهٔ رئې، نو الله هغه حلال کړې دي، حالانکه دَ هغوي کفر معلوم دې. او دَ حضرت عليؓ نه هم دا شان منقول دي، او حسن او ابراهيم اووې، دَ اقلف (ناسنته) ذبيحه خوړلو کښې څهٔ حرج نشته.

**ف:** دارالحرب: هغه ملک چه په کښې دَ کافرو حکومت وي، او مسلمان په کښې دَ خپل مذهبي فرائض دَ ادا کولو نه منع کولې شي.

٤٧٠: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِيْنَ قَصْرَ خَيْبَرَ فَرَمٰى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيْهِ شَحْمٌ فَنَزَوْتُ لِآخُذَهُ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَعَامُهُمْ ذَبَائِحُهُمْ.

٤٧٠: ابوالوليد. شعبه. حميد بن هلال. عبدالله بن مغفل نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، مونږ دَ خيبر قلعه محاصره کړې وه، دې کښې يو سړي تهيلۍ راوغورځوله، هغې کښې چربي وَه. ما وراُودانګل چه هغه راواخلم، زهٔ ورتاويدم، چه په نبي صلي الله عليه وسلّم نظر پريوتلو، زهٔ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه اوشرميدم، او هغه تهيلۍ م اوچته نه کړه. حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل: طعامهم: نه مراد دَ هغوي ذبيحې (يعني حلالې) دي.

باب۳۰۷: مَا نَدَّ مِنَ الْبَهَآئِمِ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْوَحْشِ وَ اَجَازَهُ ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا اَعْجَزَكَ مِنَ الْبَهَآئِمِ مِمَّا فِيْ يَدَيْكَ فَهُوَ كَالصَّيْدِ وَ فِيْ بَعِيْرٍ تَرَدّٰى فِيْ بِئْرٍ مِّنْ حَيْثُ قَدَرْتَ عَلَيْهِ فَذَكِّهِ وَرَاٰى ذٰلِكَ عَلِيٌّ وَ ابْنُ عُمَرَ وَ عَائِشَةُ.

باب۳۰۷: كوم خناور چه اوتښتي، هغه دَ ځنګلي خناور په شان دے. ابن مسعودؓ دے ته جائز وئيلے دي. ابن عباسؓ اووے. كوم خناور چه تاسو نه اوتښتي هغه دَ ښكار په شان دے. او د هغے اوښ متعلق چه كوهي كښ اوغرځيږي. وے فرمائيل، دَ كوم ځائے نه چه ممكن وي. هغه ذبح كړئے. دَ حضرت عليؓ، ابن عمرؓ او بي بي عائشےؓ هم دا خيال دے.

۱۷۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ عَبَايَةَ ابْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ عَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا لَا قُوا الْعَدُوِّ غَدًا وَّ لَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى فَقَالَ اعْجِلْ اَوْ اَرِنْ مَا اَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ فَكُلْ لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَ سَاُحَدِّثُكَ اَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَّ اَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبْشَةِ وَ اَصَبْنَا نَهْبَ اِبِلٍ وَّ غَنَمٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيْرٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِهٰذِهِ الْاِبِلِ اَوَابِدَ كَاَوَابِدِ الْوَحْشِ فَاِذَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا شَيْءٌ فَافْعَلُوْا بِهٖ هٰكَذَا.

۱۷۴: عمرو بن عليؒ. يحيٰي. سفيان دَ سفيان پلار عبايه بن رفاعه بن رافع بن خديج. رافع بن خديج نه روايت كوي. ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، صباله خمونږ دشمن سره مقابله ده. او مونږ سره چاړه (چهري) نشته، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. تادي كوئے. يا. دائے اوفرمائيل. هلاک كړئے، كوم څيز چه وينه اوبهيوي، او د اللّٰه نوم په هغے اخستے شوے وي. هغه خورے. خو غاښ او نوک سره دے نه وي. او زه تاسو ته دَ دے وجه بيانوم، چه غاښ خو هډوكے دے او نوک د حبشيانو چاړه (چهري) ده. يو ځل دَ غنيمت مال كښ اوښان اوچيلئے مونږ ته په لاس راغلے، هغے كښ يو اوښ اوتښتيدلو. يو سړي په غشي اوويشتلو هغے سره هغه اودريدلو نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دے اوښانو كښ هم ځنے دَ ځنګلي خناورو په شان شي. هر كله چه هغوي په تاسو غالب شي (يعني كه په هغوي قابو بيانه مومئے) نو هغوي سره دغسے كوئے.

بـاب۳۰۸: النَّحْرِ وَالذَّبْحِ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ لَا ذَبْحَ وَلَا مَنْحَرَ اِلَّا فِي الْمَذْبَحِ

باب۳۰۸: دَ نحر او ذبح بيان. او ابن جريج دَ عطاء قول نقل كه، چه ذبح (په حلق چاړه راښكل) او نحر (سينه په نيزه وهل) په حلق او سينے وي. ما تپوس

وَالْمَنْحَرِ قُلْتُ اَيَجْزِئُ مَا يُذْبَحُ اَنْ اَنْحَرَهُ قَالَ نَعَمْ ذَكَرَ اللّٰهُ ذَبْحَ الْبَقَرَةِ فَاِنْ ذَبَحْتَ شَيْئًا يُنْحَرُ جَازَ وَالنَّحْرُ اَحَبُّ اِلَيَّ وَالذَّبْحُ قَطْعُ الْاَوْدَاجِ قُلْتُ فَتُخَلَّفُ الْاَوْدَاجُ حَتّٰى يُقْطَعَ النِّخَاعُ قَالَ لَا اِخَالُ وَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ نَهٰى عَنِ النَّخْعِ يَقُوْلُ يَقْطَعُ مَا دُوْنَ الْعَظْمِ ثُمَّ يَدَعُ حَتّٰى تَمُوْتَ وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً وَّ قَالَ فَذَبَحُوْهَا وَ مَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ O وَ قَالَ سَعِيْدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَلذَّكَاةُ فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَؓ وَابْنُ عَبَّاسٍ وَّ اَنَسٌؓ اِذَا قُطِعَ الرَّاْسُ فَلَا بَاْسَ.

اوکهٔ، که ذبح کونکي څناور، نحر کړم، نو آیا دا جائز دي. هغهٔ اووے، او. اللّٰه تعالٰي دَ غوا ذبح کول بیان کړل که نحر کونکي څناور ذبح کړي، نو جائز دي، او نحر خما په نزد زیات غوریز دے. او ذبح دَ رګونو پریکول دي. ما تپوس اوکهٔ، آیا رګونه ورستو پریښنودے شي، تردے چه دَ حرام مغز پریکړے شي. هغهٔ اوفرمائیل، زهٔ دا ټیک نهٔ ګنړم. او نافع ماته بیان اوکهٔ، چه ابن عمرؓ دَ حرام مغز پریکولو نه منع فرمائیلے ده. هغهٔ وئیلے، چه هډوکي ته دے اورسوي، نو پرے دے ږدي تردے چه مړشي (ساه ترے اوځي) او دَ اللّٰه تعالٰي قول، کوم وخت چه موسٰي علیه السلام خپل قوم ته اووے، چه اللّٰه تعالٰي تاسوته حکم درکوي، چه غوا ذبح کړے. او بیان ئے اوکهٔ، چه هغے خلقو هغه (غوا) ذبح کړه. او هغوي داسے کونکي نهٔ وو. او سعید دَ ابن عباسؓ نه نقل کړے دے، چه ذبح حلق او لبه دواړو کښې وي. حضرت ابن عمرؓ، ابن عباسؓ او انسؓ اوفرمائیل، که سر کټ کړے شي، نو هیڅ حرج نشته.

۴۷۲: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ اَخْبَرَتْنِيْ فَاطِمَةُ بِنْتُ الْمُنْذِرِ امْرَاَتِيْ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍؓ قَالَتْ نَحَرْنَا عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا فَاَكَلْنَاهُ.

۴۷۲: خلاد بن یحیٰي. سفیان. هشام بن عروه. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابي بکرؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، چه مونږ خلقو دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم زمانه کښې (یو خلے) یو اَس ذبح کولو. او بیا مونږ هغه اوخوړلو.

۴۷۳: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ سَمِعَ عَبْدَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ ذَبَحْنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ

۴۷۳: اسحاق. عبده. هشام. فاطمه. اسماء نه روایت کوي، دَ هغے بیان دے مونږ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم زمانه کښې یو اَس ذبح کهٔ.

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا وَّ نَحْنُ بِالْمَدِيْنَةِ فَاَكَلْنَاهُ.

او هغه وخت مونږ خلق مدينه كښې وو. بيا مونږ خلقو هغه اوخوړلو.

۴۷۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ اَنَّ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ نَحَرْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا فَاَكَلْنَاهُ تَابَعَهُ وَكِيْعٌ وَّابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامٍ فِي النَّحْرِ.

۴۷۴: قتيبه. جرير. هشام. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابي بكرؓ نه روايت كوي، د هغې بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې يو اَس ذبح كړے شو. بيا مونږ خلقو هغه اوخوړلو، وكيع او ابن عيينه د هشام نه د نحر متعلق ددے متابعت كښې روايت كړے دے.

بَابٌ ۳۰۹: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْمُثْلَةِ وَالْمَصْبُوْرَةِ وَالْمُجَثَّمَةِ.

باب ۳۰۹: دَ مثله، مصبوره، او مجثمه دَ كراهت بيان.

ف: (۱) مُثله: لاس پښې پريكونه (۲) مصبوره: تړلو سره وژل.

۴۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ اَنَسٍ عَلَى الْحَكَمِ بْنِ اَيُّوْبَ فَرَاٰى غِلْمَانًا اَوْ فِتْيَانًا نَّصَبُوْا دَجَاجَةً يَّرْمُوْنَهَا فَقَالَ اَنَسٌ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُصْبَرَ الْبَهَآئِمُ.

۴۷۵: ابوالوليد. شعبه. هشام بن زيد نه روايت كوي. زه حضرت انس له حكم بن ايوب سره ورغلم، حضرت انس څو هلكان يا ځوانان اوليدل. چه يوه چرګه ئې تړلې وه او په غشو، ئې ويشتله. حضرت انس اووے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ځناورو تړلو سره دَ ويشتلو نه منع فرمائيلې ده.

۴۷۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يَعْقُوْبَ اَخْبَرَنَا اِسْحٰقُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّهُ دَخَلَ عَلَى يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ وَّ غُلَامٌ مِّنْ بَنِيْ يَحْيَى رَابِطٌ دَجَاجَةً يَّرْمِيْهَا فَمَشَى اِلَيْهَا ابْنُ عُمَرَ حَتّٰى حَلَّهَا ثُمَّ اَقْبَلَ بِهَا وَ بِالْغُلَامِ

۴۷۶: احمد بن يعقوب. اسحاق بن سعيد بن عمرو. ابن عمرؓ نه روايت كوي. هغه يحيٰي بن سعيد له ورغے. نو د يحيٰي د اولاد نه ئې يو هلك اوليدلو، چه چرګه ئې تړلې ده. او هغه په كانړو اُولي ابن عمرؓ هغې چرګې له ورغے، او هغه ئې پرانسته بيا هغې چرګې طرف ته ئې اشاره اوكړه او ورسره هلك ته ئې اووے، چه خپل بچي دَ

مَعَهُ فَقَالَ ازْجُرُوا غُلَامَكُمْ اَنْ يَّصْبِرَ هٰذَا الطَّيْرَ لِلْقَتْلِ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى اَنْ تُصْبَرَ بَهِيْمَةٌ اَوْ غَيْرُهَا لِلْقَتْلِ.

مرغو قتلولو دَ پاره دَ تړلو او ويشتلو نه منع كړئ. ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه سلّم نه آوريدلے دي، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم څوپايه تړلو سره دَ وژلو نه منع فرمائيلے ده.

۴۷۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ فَمَرُّوْا بِفِتْيَةٍ اَوْ بِنَفَرٍ نَصَبُوْا دَجَاجَةً يَّرْمُوْنَهَا فَلَمَّا رَاَوْا ابْنَ عُمَرَ تَفَرَّقُوْا عَنْهَا وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ مَنْ فَعَلَ هٰذَا اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ مَنْ فَعَلَ هٰذَا تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ عَنْ شُعْبَةَ.

۴۷۷: ابوالنعمان. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير نه روايت كوي، زهٔ ابن عمرؓ له ورغلم، نو مونږ په يو څو هلكانو يا سړو تير شولو، هغوي يوه چرگه تړلے وه، او په هغے ئے نشانه بازي كوله. كوم وخت چه هغوي ابن عمرؓ اوليدلو، نو تس نس شو. ابن عمرؓ تپوس وكړ، دا چا كړے دي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په داسے كونكو لعنت كړے دے. سليمان دَ شعبه نه دَدے متابعت كښ روايت كړے دے.

۴۷۸: حَدَّثَنَا الْمِنْهَالُ عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَثَّلَ بِالْحَيَوَانِ وَ قَالَ عَدِيٌّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۷۸: منهال. سعيد. ابن عمرؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم په هغه سړي لعنت كړے دے، چه څناور مُثله كړي، او عدي په واسطه دَ سعيد، ابن عباسؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كړے دے.

۴۷۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَاللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهٰى عَنِ النُّهْبَةِ وَالْمُثْلَةِ.

۴۷۹: حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. عبداللّٰه بن يزيد نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ نهبه (لوټ مار) او مُثلـه (پوزه، غوږ وغيره پريكولو) نه منع فرمائيلے ده.

## باب ۳۱۰: الدَّجَاجِ.

## باب ۳۱۰: دَ چرگے خوړلو بيان.

۴۸۰: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ

۴۸۰: يحيي. وكيع. سفيان. ايوب. ابو قلابه. زهدم جرمي. ابو موسي

قِلَابَةَ عَنْ زَهْدَمٍ الْجَرْمِيِّ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى يَعْنِي الْاَشْعَرِيُّ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ دَجَاجًا.

اشعري نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په چرګه خوړلو ليدلے دے.

۴۸۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ بْنُ اَبِيْ تَمِيْمَةَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ وَ كَانَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ هٰذَا الْحَيِّ مِنْ جَرْمٍ اِخَاءٌ فَاُتِيَ بِطَعَامٍ فِيْهِ لَحْمُ دَجَاجٍ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ جَالِسٌ اَحْمَرُ فَلَمْ يَدْنُ مِنْ طَعَامِهٖ قَالَ ادْنُ فَقَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ مِنْهُ قَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُهٗ اَكَلَ شَيْئًا فَقَذِرْتُهٗ فَحَلَفْتُ اَنْ لَّا اٰكُلَهٗ فَقَالَ ادْنُ اُخْبِرْكَ اَوْ اُحَدِّثْكَ اِنِّيْ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَفَرٍ مِّنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ فَوَافَقْتُهٗ وَهُوَ غَضْبَانُ وَهُوَ يَقْسِمُ نَعَمًا مِّنْ نَّعَمِ الصَّدَقَةِ فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَحَلَفَ اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا قَالَ مَا عِنْدِيْ مَا اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ ثُمَّ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۸۱: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب بن ابي تميمه. قاسم. زهدم نه روايت كوي. مونږ ابو موسي اشعري سره ناست وو. او خمونږ او د جرم قبيلے مينځ ورُور وَلي وَه. نو طعام راوړلے شو. هغے كښ د چرګے غوښه وه. هغے جماعت كښ يو سړے ناست وو. د هغهٔ رنګ سُر (سرخ) وو. نو هغه طعام ته نزدے رانغے. ابو موسٰي اشعري هغهٔ ته اووے. نزدے راشه. ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په چرګه خوړلو ليدلے دے. هغه اووے ما چرګه په يَو داسے څيز خوړلو ليدلے ده. چه د هغے نه ماله كركه (نفرت) راځي. نو ما قسم اوخوړ چه زهٔ به چرګ چرګورے نه خورم. ابو موسٰي ورته اوفرمائيل نزدے راشه چه زهٔ تا خبر كړم' يا' دائے اوفرمائيل چه تاته بيان اوكړم. چه زهٔ څو اشعريانو سره ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم. او داسے وخت اُورسيدم چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د غصے حالت كښ وو. او ذَ صدقے ځناور ئے تقسيمول. مونږ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د سورلي ځناور اوغوښتلو' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم قسم سره اُوفرمائيل ماته به سورلي رانهٔ كړي. او' وے فرمائيل' ما سره هيڅ ځناور نشته چه تاسوله ئے سورلي ذَ پاره دركړم. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ذَ غنيمت اُوښان راغلل. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم

وَسَلَّمَ بِنَهْبِ مِنْ اِبِلٍ فَقَالَ اَيْنَ الْاَشْعَرِيُّوْنَ اَيْنَ الْاَشْعَرِيُّوْنَ قَالَ فَاَعْطَانَا خَمْسَ ذَوْدٍ غُرَّ الذُّرٰى فَلَبِثْنَا غَيْرَ بَعِيْدٍ فَقُلْتُ لِاَصْحَابِىْ نَسِىَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهٗ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ تَغَفَّلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهٗ لَا نُفْلِحُ اَبَدًا فَرَجَعْنَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا اِسْتَحْمَلْنَاكَ فَحَلَفْتَ اَنْ لَّا تَحْمِلَنَا فَظَنَنَّا اَنَّكَ نَسِيْتَ يَمِيْنَكَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ حَمَلَكُمْ اِنِّىْ وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ وَ تَحَلَّلْتُهَا.

اُوفرمائيل. اشعريان چرته دي. اشعريان چرته دي. مونږ ته ئې بيا پنځه اُوښان راکړل، چه سپين وو. او اُوچت قُب واله وو. بيا مونږ روان شو. او لږ لرې لا نۀ وو تلې. چه مونږ خلقو ملګروته اووې. شايد چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه خپل قسم هير شوې دې. كه مونږ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغوي د قسم نه غافل اوساتو، په خدائې چه مونږ هيڅ كله خلاصي نۀ شو بيامندې. نو مونږ واپس راغلو، دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. او اومو وئيل. يا رسول اللّٰه، مونږ تاسونه سورلئ اوغوښتله نو تاسو قسم خوړلو سره فرمائيلې وو، چه مونږ ته به سورلئ نه راکوئې. نو مونږ سره خيال پيدا شو، چه شايد تاسوّ نه خپل قسم هير شولو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، اللّٰه تاسوله سورلي دركړله، او زۀ خو په خدائې م دې قسم وي. كله چه په څۀ خبره قسم اُوخورم او نيكي د هغې سِوا كار كښې وينم. نو هغه كار كوم چه هغې كښې نيكي (خير) وي. او (كفاره وركولو سره) قسم ماتوم.

باب ۱۱۳: لُحُوْمِ الْخَيْلِ.

باب ۱۱۳: دَ اَس دَ غوښې بيان.

۴۸۲: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِىُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ نَحَرْنَا فَرَسًا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَكَلْنَاهُ.

۴۸۲: حميدي. سفيان. هشام. فاطمه. اسماءؓ نه روايت كوي. د هغې بيان دې. مونږ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې اَس ذبح كړۀ. بيا مونږ خلقو هغه اُوخوړلو.

۴۸۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ

۴۸۳: مسدد. حماد بن زيد. عمرو بن دينار. محمد بن علي. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي. د هغه بيان دې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر

عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ وَ رَخَّصَ فِيْ لُحُوْمِ الْخَيْلِ.

په ورځ دَ خرونو (ګدهوں) د غوښے خوړلو نه منع اُوفرمائيله. او دَ اسونو دَ غوښے خوړلو اجازت ئے ورکړلو۱.

۱. د شرعي دلائلو په رنړا کښے د اَس غوښه د اَحنافو په رائے کښے مکروهه ده.

بَابٌ ۲ ۱ ۳: لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ فِيْهِ عَنْ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲ ۱ ۳: دَ کورنو خرونو دَ غوښے بيان. دے باب کښې ذ سلمه روايت د نبي صلي الله عليه وسلّم نه منقول دے.

۴۸۴: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَالِمٍ وَّ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ.

۴۸۴: صدقه. عبده. عبيداللّٰه. سالم او نافع ابن عمرؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر په ورځ دَ کورنو خرونو دَ غوښے خوړلو نه منع اوفرمائيله.

۴۸۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ تَابَعَهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ وَّ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَالِمٍ.

۴۸۵: مسدد. يحيٰي. عبيداللّٰه. عبداللّٰه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ کورنو خرونو دَ غوښے خوړلو نه منع اوفرمائيله. ابن مبارک د عبداللّٰه نه هغه د نافع نه دَدے متابعت کښې روايت کړے دے. او ابو اسامه په واسطه دَ عبيداللّٰه د سالم نه نقل کړے دے.

۴۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَالْحَسَنِ ابْنَيْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ اَبِيْهِمَا عَنْ عَلِيٍّؓ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُتْعَةِ عَامَ خَيْبَرَ وَ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ.

۴۸۶: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. عبداللّٰه او حسن بن محمد بن علي. دَ خپل پلار نه هغه د حضرت عليؓ نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر په کال ذ متعه او کورنو خرونو د غوښے خوړلو نه منع اوفرمائيله.

ف: متعه: ميعادي نكاح، عارضي او اوږه نكاح لږو ورځو يا لږې مودې دَ پاره نكاح. هغه ښځه چه ورسره مُتعه او كړې شي، استعمال، فائده. نفع.

۴۸۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ وَ رَخَّصَ فِي لُحُوْمِ الْخَيْلِ.

۴۸۷: سليمان بن حرب. حماد. عمرو. محمد بن علي. جابر بن عبدالله نه روايت كوي، دَ هغه بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم دَ خيبر په ورځ دَ خرونو دَ غوښې خوړلو نه منع اوفرمائيله. او دَ اسونو دَ غوښې اجازت ئې وركړلو.

۴۸۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَدِيٌّ عَنِ الْبَرَاءِ وَابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ.

۴۸۸: مسدد. يحيٰي. شعبه. عدي. براء او ابن ابي اوفٰي نه روايت كوي، دَ دواړو بيان دې، حضور صلي الله عليه وسلّم دَ خرونو دَ غوښې خوړلو نه منع اوفرمائيله.

۴۸۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ اَبَا اِدْرِيْسَ اَخْبَرَهٗ اِنَّ اَبَا ثَعْلَبَةَ قَالَ حَرَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُحُوْمَ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَّ قَالَ مَالِكٌ وَّ مَعْمَرٌ وَّالْمَاجِشُوْنَ وَ يُوْنُسُ وَابْنُ اِسْحٰقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ ذِيْ نَابٍ مِّنَ السِّبَاعِ.

۴۸۹: اسحٰق. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم. صالح. ابن شهاب. ابو ادريس. ابو ثعلبه نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم كورني خرونه حرام كرځولي دي. زبيدي او عقيل، ابن شهاب نه دې روايت كړې دې. او مالک، معمر، ماجشون، يونس او ابن اسحاق د زهري نه نقل كړې دې. او حضور صلي الله عليه وسلّم هر نوک لرونكو درندګانو دَ خوراک نه منع فرمائيلې ده.

۴۹۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ

۴۹۰: محمد بن سلام. عبدالوهاب ثقفي ايوب. محمد. انس بن مالک نه روايت كوي، ه

عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَهُ جَآءٍ فَقَالَ اُكِلَتِ الْحُمُرُ ثُمَّ جَآءَهُ جَآءٍ فَقَالَ اُكِلَتِ الْحُمُرُ ثُمَّ جَآءَهُ جَآءٍ فَقَالَ اُفْنِيَتِ الْحُمُرُ فَاَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادٰى فِي النَّاسِ اِنَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ فَاِنَّهَا رِجْسٌ فَاُكْفِئَتِ الْقُدُوْرُ وَ اِنَّهَا لَتَفُوْرُ بِاللَّحْمِ.

نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې يو راتلونکے راغے، او عرض ئے اوکړ، چه ما ذَ خر غوښه خوړلے ده. بيا يو بل سړے راغے، او وئيلے، ما خر اوخوړلو، بيا يو دريم سړے راغے، عرض ئے اوکړ، چه خرونه ختم شول. نو حضور صلي الله عليه وسلّم يو اعلان کونکي ته حکم اوکړ، خلقو کښې اعلان اوکړي، چه الله او ذَ هغه رسول کورني خرونه خوړل حرام کړل، ځکه چه هغه ناپاکه دي، نو کټوے واړولے شوے، چه هغے کښې (ذَ خر) غوښه پخيدله.

۴۹۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قُلْتُ لِجَابِرِ بْنِ زَيْدٍ يَزْعُمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ حُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ فَقَالَ قَدْ كَانَ يَقُوْلُ ذَاكَ الْحَكَمُ بْنُ عَمْرٍو الْغِفَارِيُّ عِنْدَنَا بِالْبَصْرَةِ وَلٰكِنْ اَبٰى ذَاكَ الْبَحْرُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ قَرَاَ قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْمَا اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا.

۴۹۱: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بيان کوي. ما ذَ جابر بن زيد نه تپوس اوکړ، خلق وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ کورني خرونو ذَ غوښے خوراک نه منع فرمائيلے ده. هغهٔ اووے، چه حکم بن عمرو غفاري بصره کښې مونږ ته دغه وئيلے. ليکن ذَ حديث درياب يعني ابن عباس ذَ دے نه انکار کولو. او دا آيت ئے تلاوت کړلو: قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْمَا اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا.

## باب ۳۱۳: اَكْلِ كُلِّ ذِيْ نَابٍ مِّنَ السِّبَاعِ.

## باب ۳۱۳: ذَ هر داړے لرونکو (غوښه خوړونکو) شلونکو ځناورو ذَ خوراک ذَ حرمت بيان.

۴۹۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ اِدْرِيْسَ الْخَوْلَانِيِّ عَنْ اَبِيْ ثَعْلَبَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ اَكْلِ كُلِّ ذِيْ

۴۹۲: عبدالله بن يوسف. مالک. ابن شهاب. ابو ادريس خولاني. ابو ثعلبه نه روايت کوي، ذَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ هر داړے لرونکو درندګانو ذَ خوړلو نه منع فرمائيلے ده.

نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ تَابَعَهُ يُوْنُسُ وَ مَعْمَرٌ وَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَالْمَاجِشُوْنَ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

يونس، معمر، ابن عيينه او ماجشون دَ زهري نه دَدې متابع حديث روايت کړې دې.

۱. دا دَ ذي ناب ترجمه ده، ددې نه مراد داسې غابښونه دي کومو سره چه (څيرونکي) درنده ځناور يا مارغه خپل ښکار زخمي کوي. ګټې غابښونه خو دَ ټولو ځناورو وي او هغې سره هغوئ خوراک کوي.

## باب ۳۱۴: جُلُوْدِ الْمَيْتَةِ.

## باب ۳۱۴: دَ مُردارې دَ څرمنو بيان.

۴۹۳: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍؓ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِشَاةٍ مَّيْتَةٍ فَقَالَ هَلَّا اسْتَمْتَعْتُمْ بِاِهَابِهَا قَالُوْا اِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ اِنَّمَا حُرِّمَ اَكْلُهَا.

۴۹۳: زهير بن حرب. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم. صالح. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. عبدالله بن عباس نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې. رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ يوې مردارې چيلئې په خوا کښې تير شولو، نو وې فرمائيل، دَ دې څرمن نه تاسو فائده ولې اوچته نهٔ کړه (دا مو ولې په کار رانهٔ وستله).

۴۹۴: حَدَّثَنَا خَطَّابُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ حُمَيْرٍ عَنْ ثَابِتِ بْنِ عَجْلَانَ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَنْزٍ مَيْتَةٍ فَقَالَ مَا عَلٰى اَهْلِهَا لَوِ انْتَفَعُوْا بِاِهَابِهَا.

۴۹۴: خطاب بن عثمان. محمد بن حمير. ثابت بن عجلان. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم په يوې مړې چيلې تير شولو، نو وې فرمائيل، دَ دې مالکانوله څهٔ شوې دي، کاش چه هغوي دَ دې دَ څرمنې نه فائده اوچته کړې وې.

## باب ۳۱۵: الْمِسْكِ.

## باب ۳۱۵: دَ مشک بيان.

۴۹۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ ابْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ

۴۹۵: مسدد. عبدالواحد. عماره بن قعقاع. ابو زرعه بن عمرو بن جرير. ابو هريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل،

اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَكْلُوْمٍ يُكْلَمُ فِي اللّٰهِ اِلَّا جَآءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ كَلْمُهُ يَدْمِيَ اللَّوْنُ لَوْنُ دَمٍ وَّالرِّيْحُ رِيْحُ مِسْكٍ.

کوم سړے چه ذَ اللّٰه په لار کښ زخمي کيږي' هغه به د قيامت په ورځ ذَ اللّٰه تعالٰي مخکښ داسے حال کښ راشي' چه ذَ هغهٔ ذَ زخم نه به وينه څاڅي' ذَ هغے رنګ خو به ذَ وينے په شان وي' او بوئ به ترے لکه د مشکو خيژي.

۴۹۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ جَلِيْسِ الصَّالِحِ وَالسُّوْءِ كَحَامِلِ الْمِسْكِ وَ نَافِخِ الْكِيْرِ فَحَامِلُ الْمِسْكِ اِمَّا اَنْ يُّحْذِيَكَ وَ اِمَّا اَنْ تَبْتَاعَ مِنْهُ وَ اِمَّا اَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيْحًا طَيِّبَةً وَّ نَافِخُ الْكِيْرِ اِمَّا اَنْ يُّحْرِقَ ثِيَابَكَ وَ اِمَّا اَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيْحًا خَبِيْثَةً.

۴۹۶: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد. ابوبرده. ابو موسٰي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ذَ ښهٔ او بد ملګري مثال ذَ هغے سړي دے. چه مشک ورسره وي' او بهټئ پُوکي. مشک واله خو به تاسوله څهٔ درکړي يا تاسو به ئے ذَ هغهٔ نه (په بيع) واخلئ. يا ذَ هغے خوشبوئ به بوئ کړئے. او بهټئ واله خو به ستاسو کپړے اوسيزي' يا ذَ هغے بدبُو به ورته اُورسي.

## باب۱۶ ۳: اَلْاَرْنَب.

## باب۱۶ ۳: ذَ سوے (خرګوش) بيان.

۴۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اَنْفَجْنَا اَرْنَبًا وَّ نَحْنُ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ فَسَعَى الْقَوْمُ فَلَغِبُوْا فَاَخَذْتُهَا فَجِئْتُ بِهَا اِلٰى اَبِيْ طَلْحَةَ فَذَبَحَهَا فَبَعَثَ بِوَرِكَيْهَا اَوْ قَالَ بِفَخِذَيْهَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبِلَهَا.

۴۹۷: ابوالوليد. شعبه. هشام بن زيد. انس نه روايت کوي' مونږ يوه سوه (خرګوش) اوزغلوله. هغه وخت مونږ خلق (مر الظهران) کښ وو. څهٔ خلق هغے پسے اوزغليدل' ليکن ستړے شو' بيا مونږ هغه اونيوله. او هغه مو ابو طلحه له راوړله. هغه ذبح که' او ذَ هغے دواړه پتونونه يا آړخونه ئے ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ اوليږل. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه قبول کړل.

## باب۱۷ ۳: اَلضَّبِّ.

## باب۱۷ ۳: ذَ سمسرۍ (ګوه) بيان.

۴۹۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ

۴۹۸: موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالعزيز

اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الضَّبُّ لَسْتُ اٰكُلُهٗ وَلَا اُحَرِّمُهٗ.

بن مسلم. عبدالله بن دينار. ابن عمرؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، سمسره نه زهٔ خورم، او نه ئے حرام كوم.

۴۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ اَنَّهٗ دَخَلَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْتَ مَيْمُوْنَةَ فَاُتِيَ بِضَبٍّ مَّحْنُوْذٍ فَاَهْوٰى اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ فَقَالَ بَعْضُ النِّسْوَةِ اَخْبِرُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا يُرِيْدُ اَنْ يَّاْكُلَ فَقَالُوْا هُوَ ضَبٌّ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَرَفَعَ يَدَهٗ فَقُلْتُ اَحَرَامٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ لَا وَلٰكِنْ لَّمْ يَكُنْ بِاَرْضِ قَوْمِيْ فَاَجِدُنِيْ اَعَافُهٗ قَالَ خَالِدٌ فَاجْتَرَرْتُهٗ فَاَكَلْتُهٗ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ.

۴۹۹: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. ابو امامه بن سهل. عبدالله بن عباسؓ. خالد بن وليدؓ نه روايت كوي، هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره دَ ميمونے كور كښې داخل شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ته وريته سمسره راوړے شوه. رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپل لاس هغې طرف ته ورمخكښې كه. بعضے ښځو اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته اوښائيے، چه دَ څهٔ څيز دَ خوړلو اراده كوي. خلقو ورته اوښودل، يا رسول الله، دا دَ سمسرے غوښه ده دے آوريدو سره حضورؐ خپل لاس مبارك په ورستو كړلو، ما تپوس اوكهٔ، آيا دا حرام ده، يا رسول الله، حضورؐ اوفرمائيل، نه، ليكن څما دَ قوم په زمكه كښې دا نهٔ وي، په دے وجه خپل طبيعت دَدے نه متنفر وينم. دَ خالد بيان دے. ما هغه (سمسره) څان طرف ته راښكله، ما هغه اُوخوړله، حالانكه رسول الله صلي الله عليه وسلّم كتل.

## بَابٌ ۳۱۸: اِذَا وَقَعَتِ الْفَارَةُ فِي السَّمَنِ الْجَامِدِ وَالذَّائِبِ.

## باب ۳۱۸: جم شوے يا ويلے شوے غوړو كښې دَ مږے دَ غُرځيدو بيان.

۵۰۰: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ

۵۰۰: حميدي. سفيان. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباسؓ. بي بي ميمونے نه روايت كوي، يوه مږه غوړو كښې

عُتْبَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يُحَدِّثُهٗ عَنْ مَيْمُوْنَةَ اَنَّ فَارَةً وَّقَعَتْ فِيْ سَمْنٍ فَمَاتَتْ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهَا فَقَالَ اَلْقُوْهَا وَ مَا حَوْلَهَا وَ كُلُوْهُ قِيْلَ لِسُفْيَانَ فَاِنَّ مَعْمَرًا يُحَدِّثُهٗ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَا سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يَقُوْلُ اِلَّا عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنْ مَيْمُوْنَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَقَدْ سَمِعْتُهٗ مِنْهُ مِرَارًا.

اُوغـرځيـده، او مـړه شـوه. حـضـور صـلـي اللّٰـه عـليـه وسـلّـم نـه ددې متـعـلـق تپـوس اوشـو، نـو حـضـور صـلـي اللّٰـه عـليـه وسـلّم اوفـرمـائيل مـږه او ذ هـغـې خـواوشـا غـوړي او كـاږنـې وې غـرځـونـې، او بـاقـي غـوړي خـورې. سـفـيـان نـه تپـوس اوشـو، چـه مـعـمـر دا حـديث پـه واسطـه دَ زهـري، سـعيـد بـن مسيب، ابوهـريـرهٌ نـه روايت كـوي، دَ هـغـه بيـان دې. مـا دَ زهـري نـه صـرف پـه سـنـد دَ عبيـدالـلّٰـه، ابـن عبـاسٌ، ميمونهٌ دَ نبـي صـلـي الـلّٰـه عـليـه وسـلّـم نـه روايت كـول آوريدلې دي.

۵۰۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ الدَّآبَّةِ تَمُوْتُ فِي الزَّيْتِ وَالسَّمْنِ وَهُوَ جَامِدٌ اَوْ غَيْرُ جَامِدٍ اَلْفَارَةَ اَوْ غَيْرِهَا قَالَ بَلَغَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِفَارَةٍ مَاتَتْ فِيْ سَمْنٍ فَاَمَرَ بِمَا قَرُبَ مِنْهَا فَطُرِحَ ثُمَّ اُكِلَ عَنْ حَدِيْثِ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ.

۵۰۱: عبـدان. عبـدالـلّٰـه. يـونـس. زهري نـه دَ هغې ځـناور متعـلق يعنـي مږې وغيـره چـه روغن زيتـون كـښې خـواه مـنـجـمـد وي، يـا ويـلـې شـوې وي، اوغـرځيږي، مړ شي، روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې مونږ ته خبر رارسيدلې دې چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم غـوړو كـښې دَ غـرځيـدلې مړې مږې دَ غرځولو حكم اوكړلو نو هغه مږه اُوغرځولې شوه، بيا هغه غوړي اوخـوړې شـو. دا حديث په ذريعه دَ عبيداللّٰه بن عبداللّٰه منقول دې.

۵۰۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ فَارَةٍ سَقَطَتْ فِيْ سَمْنٍ فَقَالَ اَلْقُوْهَا وَ مَا

۵۰۲: عبـدالـعـزيـز بـن عبـدالـلّٰـه. مـالـک. ابـن شهـاب. عبيـدالـلّٰـه بـن عبـدالـلّٰـه. ابـن عبـاسٌ. بي بي ميمونهٌ نه روايت كوي، دَ هغې بيان دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دَ هغې مږې (چوهې) باره كښې تپوس اوشـو، چـه غـوړو كـښې اوغرځيږي، مړه شي، نو حضورٌ اوفـرمـائيـل، دغـه مـږه او دَ هغـې خـواوشـا غـوړي

حَوْلَهَا وَ كُلُوْهُ. اوغرځوئې. او باقي خوړئې ۱.

۱. ددې بـاب دَ تېـرو احاديثو د الفاظونه دا واضحه ده چه حکم دَ ځګه غوړو بيان شوې دې، دَ ويلو شوؤ غوړو نهٔ دې، ولې چه که چرې غوړي يا بل يو څيز بهيدونکې وي نو په هغې کښې د مړ شوي منږک د څلورو واړو طرفونونه غوړي ويستل ممکن نه دي دا صورت خو صرف په هغه څيزونو کښې چليدې شي کوم چه ځکه وي، هر کله چه څيز ځکه (ټينک) وي نو دَ منږک سره د هغه د نزدې غوړي هم په اسانۍ سره ويستلې او غورزولې کيدې شي. د نورو احاديثو نه ددې تائيد کيږي چه مراد صرف ځکه شوي غوړي يا دا قسمه بل يو ځکه شوي څيز کښې د يو څناور وغيره پريوتل دي. احنافو په هم دې باب کښې د منجمد او سيال فرق کړې دې.

بَاب ۳۱۹: اَلْوَسْمِ وَالْعَلَمِ فِي الصُّوْرَةِ.

باب ۳۱۹: پـه مخ دَ داغ لږولو او نښې کولو بيان.

۵۰۳: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ حَنْظَلَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ كَرِهَ اَنْ تُعْلَمَ الصُّوْرَةُ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُضْرَبَ تَابَعَهٗ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا الْعَنْقَزِيُّ عَنْ حَنْظَلَةَ وَ قَالَ تُضْرَبُ الصُّوْرَةُ.

۵۰۳: عبيدالله بـن موسٰي. حنظلـه. سالم. ابن عمرؓ نـه روايت کوي. هغـه بـه پـه مخ نښـه لږول مکـروه ګنـړل، او ابن عمرؓ بيـان اوکـه نبي صلي الله عليـه وسلَم پـه مخ دَ وهلـو نـه منع فرمائيلې ده. قتيبه پـه واسطـه دَ عـنقـزي، حنظلـه ددې متابعت کښې روايت اوکـه. او دَ تضـرب الصـوره. الفـاظ ئې روايت کړې دي.

۵۰۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَخٍ لِّيْ يُحَنِّكُهٗ وَ هُوَ فِيْ مِرْبَدٍ لَّهٗ فَرَاَيْتُهٗ يَسِمُ شَاةً حَسِبْتُهٗ قَالَ فِيْ اٰذَانِهَا.

۵۰۴: ابوالوليد. شعبه. هشام بن زيد. انسؓ نه روايت کوي. ما دَ حضور صلي الله عليه وسلَم خدمت کښې ورور راوستلو، چه حضور صلي الله عليه وسلَم د هغهٔ تحنيک اوکړي. دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلَم خپلو اوښانو کښې وو. ما اوليدل، چه حضور صلي الله عليه وسلَم يوې چيلنې له داغ ورکولو. د راوي بيان دې. خما خيال دې. هغهٔ دا هم اووې. چه د هغوي په غوږونوئې نښې کولې.

ف: تحنيک، بچي له ګهټي ورکول، يعني خُرما وغيره جويل او بچي له ئې تالو سره لږول.

بَاب ۳۲۰: اِذَا اَصَابَ قَوْمٌ

باب ۳۲۰: کـه يـو جـماعت لـه مال غنيمت په

غَنِيمَةٌ فَذَبَحَ بَعْضُهُمْ غَنَمًا أَوْ إِبِلًا بِغَيْرِ أَمْرِ أَصْحَابِهِمْ لَمْ تُؤْكَلْ لِحَدِيثِ رَافِعٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ طَاوُسٌ وَ عِكْرِمَةُ فِي ذَبِيحَةِ السَّارِقِ اطْرَحُوهُ.

لاس ورشي او هغوي کښې څوک سړے د خپل ملګرې د حکم نه بغير چيلے يا اُوښ ذبح کړي، نو هغهٔ به د رافع دَ حديث په بنا نشي خوړلے چه هغه ئے دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. او طاؤس او عکرمه د غل (چور) دَ ذبيحے (حلالے) متعلق اوفرمائيل، چه هغه اُوغرځوئے.

۵۰۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ ابْنِ رِفَاعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّنَا نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا وَ لَيْسَ مَعَنَا مُدًى فَقَالَ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَكُلُوا مَا لَمْ يَكُنْ سِنٌّ وَ لَا ظُفُرٌ وَ سَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذٰلِكَ أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَ أَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ وَ تَقَدَّمَ سَرْعَانُ النَّاسِ فَأَصَابُوا مِنَ الْغَنَائِمِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُخْرِ النَّاسِ فَنَصَبُوا قُدُورًا فَأَمَرَ بِهَا فَأُكْفِئَتْ وَ قَسَمَ بَيْنَهُمْ وَ عَدَلَ بَعِيرًا بِعَشْرِ شِيَاهٍ ثُمَّ نَدَّ بَعِيرٌ مِنْ أَوَائِلِ الْقَوْمِ وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ خَيْلٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ

۵۰۵: مسدد. ابوالاحوص. سعيد بن مسروق. عبايه بن رفاعه. رفاعه. رافع بن خديج نه روايت کوي. ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکړ چه صباله مونږ دښمن سره مقابله کونکے يُو. او مونږ سره چاړه (چھری) نشته. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم څيز سره چه وينه اوبهيږي، او په هغے دَ اللّٰه نوم اخستے شوے وي نو (هغے سره ذبح شوے) خورئے په شرط دَ دے، چه غاښ او نوک نه وي، (يعني غاښ او نوک سره ذبح مه خورئے) او زهٔ تاسوته (حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي) ددے وجه بنايم. چه غاښ خو هډوکے دے. او نوک د حبشيانو چاړهٔ ده. او ځنو خلقو تادي اوکړه. مخکښې شو. او هغوي مال غنيمت بيامندلو. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورستنو خلقو کښې وو. او خلقو کټوئے (په نغرو) سُوَرے کړے وے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغے کټوو دَ آړولو حکم اوکړلو نو هغه کټوئے واړولے شوے. او په هغوي ئے دَ غنيمت مال تقسيم کړلو. او يو اُوښ ئے دَ لسو چيلو برابر اوګرځولو. بيا دَ مخکښې جماعت نه يَو اوښ اُوتښتيدلو. او هغوي سره هيڅوک سُور نهٔ وو. يو سړي هغه په غشي اُويشتلو، نو اللّٰه هغه اُوښ رامنع کړلو. بيا

بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللّٰهُ فَقَالَ إِنَّ لِهٰذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا فَعَلَ مِنْهَا هٰذَا فَافْعَلُوْا مِثْلَ هٰذَا.

حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دا څناور هم د ځنګلي څناور په شان کيږي. که دے څناورو کښې څوک دغسے اوکړي (لکه دے اُوښ چه اوکړل) نو دغسے (سلوک) ورسره کوئے.

بـاب ۳۲۱: إِذَا نَدَّ بَعِيْرٌ لِقَوْمٍ فَرَمَاهُ بَعْضُهُمْ بِسَهْمٍ فَقَتَلَهُ فَأَرَادَ إِصْلَاحَهُمْ فَهُوَ جَائِزٌ لِخَبَرِ رَافِعٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۲۱: که د يو قوم اُوښ اوتښتي او هغوي کښې يو سړے ئے په غشي اُولي (تيرچلاکر مارڈالے) او د هغے نه مقصد د هغوي ښيګړه (خير) وي. نو د دے حديث په بنا جائز دي. چه رافع ئے د نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي.

۵۰۶: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّنَافِسِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَنَدَّ بَعِيْرٌ مِّنَ الْإِبِلِ قَالَ فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ قَالَ ثُمَّ قَالَ إِنَّ لَهَا أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا غَلَبَكُمْ مِّنْهَا فَاصْنَعُوْا بِهِ هٰكَذَا قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا نَكُوْنُ فِي الْمَغَازِيْ وَالْأَسْفَارِ فَنُرِيْدُ أَنْ نَّذْبَحَ فَلَا تَكُوْنُ مُدًى فَقَالَ أَرِنْ مَا نَهَرَ أَوْ أَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ فَكُلْ غَيْرَ السِّنِّ وَالظُّفُرِ فَإِنَّ السِّنَّ عَظْمٌ وَّالظُّفُرَ مُدَى الْحَبْشَةِ.

۵۰۶: ابن سلام. عمر بن عبيد طنافسي. سعيد بن مسروق. عبايه بن رفاعه. رافع بن خديج نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے، مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره يو سفر کښې وو، اُوښانو کښې يو اُوښ اوتښتيدلو. يو سړي هغه په غشي اُوويشتلو، هغے سره هغه اُوښ ايسار شولو. بيا حضورؐ اوفرمائيل، دا څناور هم د ځنګلي څناورو په شان کيږي، که هغے کښې څنے په تاسو غالب راشي، نو هغه سره دغسے کوئے. د رافع بيان دے. ما عرض اوکهٔ يا رسول الله، مونږ د جنګونو او سفر حالت کښې يُو او مونږ ذبح کول غواړو، ليکن مونږ سره چاړهٔ چاقو نهٔ وي. حضورؐ فرمائيل، هغے څيز سره ئے هلاک کړئے، کوم چه وينه بهيوي، يا داسے شے چه وينه تونے کړي، او د الله نوم په هغے اخستے شوے وي، نو خورے ئے، په شرط د دے چه غاښ او نوک نهٔ وي، ځکه غاښ خو هډوکے دے، او نوک د حبشيانو چاړهٔ ده.

بـاب ۳۲۲: أَكْلِ الْمُضْطَرِّ. لِقَوْلِهِ تَعَالٰى يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا

باب ۳۲۲: د اضطرار (لاچاری) حالت کښې مُرداره خوړل جائز دي، ځکه چه د الله تعالٰي قول دے.

مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَاشْكُرُوْا لِلّٰهِ
اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ اِنَّمَا حَرَّمَ
عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَ لَحْمَ
الْخِنْزِيْرِ وَ مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ فَمَنِ
اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ
وَ قَالَ فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ
مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ وَّ قَوْلِهٖ فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ
اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ
مُؤْمِنِيْنَ وَ مَا لَكُمْ اَنْ لَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا
ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَ قَدْ فَصَّلَ لَكُمْ
مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ
وَ اِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ بِاَهْوَائِهِمْ بِغَيْرِ
عِلْمٍ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِيْنَ
قُلْ لَّا اَجِدُ فِيْمَا اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا
عَلٰى طَاعِمٍ يَّطْعَمُهٗ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ
مَيْتَةً اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِيْرٍ
فَاِنَّهٗ رِجْسٌ اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ
فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ
غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَسْفُوْحًا
يَعْنِيْ مُهْرَاقًا وَّ قَالَ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ
اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا وَاشْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ
اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ. اِنَّمَا حَرَّمَ
عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَ لَحْمَ
الْخِنْزِيْرِ وَ مَا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ فَمَنِ
اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ
رَّحِيْمٌ.

(۱) اے ایمان والو' تاسو د هغے پاکیزه ځیزونو نه خورنے' چه مونږ تاسوته بښلے دي. او دَ الله شکر ادا کونے' که تاسو دَ هغهٔ عبادت کونے' په تاسو حرام ده مرداره او' وینه او دَ خنزیر غوښه او هغه چه دَ غیر الله په نوم ذبح شوے وي' خو کوم سړے چه مضطر (لاچاره) وي' سرکشي کونکے او دَ حد نه تیریدونکے نهٔ وي' نو په هغهٔ هیڅ ګناه نشته. (۲) او وے فرمائیل' کوم سړے چه دَ لوږے په سبب بے آرامه شي' ګناه ته مائل نهٔ وي (۳) او دَ الله تعالیٰ قول دَ هغے ځیز نه خورئے په کوم چه دَ الله نوم اخستے شوے دے. او ستاسو دَ پاره تفصیل سره بیان شوے دي' چه څهٔ ځیز په تاسو حرام کړے دے' خو دا چه تاسو هغے ته مجبوره شئے. او بیشکه اکثر خلق دَ خپلو خواهشاتو په سبب بغیر دَ علم نه ګمراه کیږي. بیشکه ستاسو رب دَ حد نه تیریدونکي ښهٔ پیژني (۴) اے پیغمبره' تهٔ دوي ته اووایه' چه ماته کومه وحي شوے ده هغے کښ هیڅ ځیز حرام کړے نهٔ بیامومم' چه خورینده هغه اُوخوري' خو دا چه مُردار وي یا بهیدونکے وینه وي یا دَ خنزیر غوښه وي ځکه چه هغه ناپاکه ده: غفور رحیم: پورے (۵) اوفرمائیلے دي' دَ هغے ځیز نه خورئے چه الله تاسوته بښلے (درکړے) دي' حلال او پاکیزه او دَ الله دَ نعمت شکر ادا کوے' که تاسو دَ هغهٔ عبادت کونے' الله په تاسو حرام کړے دي: مُرداره او' وینه او دَ خنزیر غوښه' او څهٔ چه دَ خدائے نه علاوه دَ بل چا (بُتانو وغیره) په نوم ذبح کړے شوے وي. نو کوم سړے چه مضطر (بدحاله) شي' سرکشي کونکے او دَ حد نه تیریدونکے نهٔ وي' نو الله تعالیٰ ښنونکے او مهربانه دے.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

# كِتَابُ الۡاَضَاحِيِّ

**باب ۳۲۳:** سُنَّةِ الۡاُضۡحِيَّةِ. وَ قَالَ ابۡنُ عُمَرَ هِيَ سُنَّةٌ وَّ مَعۡرُوۡفٌ.

**۵۰۷:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنۡدَرٌ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ زُبَيۡدِ الۡاَيَامِيِّ عَنِ الشَّعۡبِيِّ عَنِ الۡبَرَآءِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَوَّلَ مَا نَبۡدَاُ بِهٖ فِيۡ يَوۡمِنَا هٰذَا نُصَلِّيۡ ثُمَّ نَرۡجِعُ فَنَنۡحَرُ فَمَنۡ فَعَلَهٗ فَقَدۡ اَصَابَ سُنَّتَنَا وَمَنۡ ذَبَحَ قَبۡلُ فَاِنَّمَا هُوَ لَحۡمٌ قَدَّمَهٗ لِاَهۡلِهٖ لَيۡسَ مِنَ النُّسُكِ فِيۡ شَيۡءٍ فَقَامَ اَبُوۡ بُرۡدَةَ ابۡنُ نِيَارٍ وَّ قَدۡ ذَبَحَ فَقَالَ اِنَّ عِنۡدِيۡ جَذَعَةً فَقَالَ اِذۡبَحۡهَا وَ لَنۡ تُجۡزِيَ عَنۡ اَحَدٍ بَعۡدَكَ قَالَ مُطَرِّفٌ عَنۡ عَامِرٍ عَنِ الۡبَرَآءِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَنۡ ذَبَحَ بَعۡدَ الصَّلٰوةِ تَمَّ نُسُكُهٗ وَ اَصَابَ سُنَّةَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ.

**۵۰۸:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسۡمٰعِيۡلُ عَنۡ اَيُّوۡبَ عَنۡ مُحَمَّدٍ عَنۡ اَنَسِ بۡنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَنۡ ذَبَحَ قَبۡلَ الصَّلٰوةِ فَاِنَّمَا ذَبَحَ لِنَفۡسِهٖ وَ مَنۡ ذَبَحَ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

# (دَ قُربانو بیان)

**باب ۳۲۳:** دَ قرباني دَ سنت کیدو بیان. ابن عمرؓ اوفرمائیل' دا سنت دي' او مشهور دي.

**۵۰۷:** محمد بن بشار. غندر. شعبه. زبید ایامي. شعبي. براء نه روایت کوي' دَ هغهٔ بیان دے' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دَ ټولونه وړمبے څیز چه هغه نن مونږ کوو هغه دادے' چه مونځ اوکړو. بیابه واپس کیږو' او قرباني به کوو. چاچه داسے اوکړل' هغه خما سنت بیامندل (یعني عمل ئے پرے اوکړلو). او چا چه (دَ مانځه نه) مخکښ ذبح اوکړله' نو هغه صرف غوښه ده' چه هغهٔ خپل کوروالو دَ پاره تیاره کړے ده' قرباني کښ ئے هیڅ حصه نشته. ابو برده بن نیار' چه هغهٔ دَ مانځه نه مخکښ ذبحه کړے وه' اودریدلو' عرض ئے اوکهٔ ماسره یو چیلوکے (بکرا) دے. حضورؐ ورته اوفرمائیل دغه ذبح کړه. او ستا نه پس بنه بل چا دَ پاره (دغه هومره چیلوکے) کافي نهٔ وي. مطرف دَ عامر نه هغهٔ دَ براء نه روایت اوکهٔ' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' چاچه دَ مانځه نه پس ذبح اوکړه' دَ هغهٔ قرباني پوره شوه. او دَ مسلمانانو دَ طریقے مطابق ئے عمل اوکهٔ.

**۵۰۸:** مسدد. اسمٰعیل. ایوب. محمد. انس بن مالکؓ نه روایت کوي' دَ هغهٔ بیان دے نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' چا چه دَ مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه' هغهٔ صرف خان دَ پاره ذبح اوکړه او چا چه د مانځه نه پس ذبح اوکړه' دَ هغهٔ قرباني پوره شوه' او هغه

بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهٗ وَ اَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِيْنَ.

دَ مسلمانانو سنت بیامندل (يعني دَ سنت مطابق ئے عمل اوکۀ).

بــاب ۳۲۴: قِسْـمَةِ الْاِمَـامِ الْاَضَاحِيَّ بَيْنَ النَّاسِ.

باب ۳۲۴: دَ امام خلقو کښې دَ قرباني غوښه تقسيمول.

۵۰۹: حَـدَّثَـنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَـدَّثَـنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ بَعْجَةَ الْجُهَنِيِّ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَصْحَابِهٖ ضَحَايَا فَصَارَتْ لِعُقْبَةَ جَذَعَةٌ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَارَتْ جَذَعَةٌ قَالَ ضَحِّ بِهَا.

۵۰۹: معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي. بعجه جهني. عقبه بن عامر جهنيؓ نه روايت کړي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو صحابهٌ ؤ کښې دَ قرباني ځناور تقسيم کړل، دَ عقبه حصه کښې يو جذعه (شپږ مياشتيز چيلوکے، بکرا) اورسيد. ما عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، خما حصه کښې خو دَ شپږ مياشتو بچے راغلے دے. حضورؐ اوفرمائيل هم دا قرباني کړه.

باب ۳۲۵: اَلْاُضْحِيَّةِ لِلْمُسَافِرِ وَالنِّسَآءِ.

باب ۳۲۵: دَ مسافر او ښځو دَ قرباني کولو بيان.

۵۱۰: حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ حَـدَّثَـنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَ حَاضَتْ بِسَرِفَ قَبْلَ اَنْ تَدْخُلَ بِمَكَّةَ وَ هِيَ تَبْكِيْ فَقَالَ مَالَكِ اَنُفِسْتِ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ اِنَّ هٰذَا اَمْرٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ فَاقْضِيْ مَا يَقْضِي الْحَآجُّ غَيْرَ اَلَّا تَطُوْفِيْ بِالْبَيْتِ فَلَمَّا كُنَّا بِمِنٰى اُتِيْتُ بِلَحْمِ بَقَرٍ فَقُلْتُ مَا هٰذَا قَالُوْا ضَحّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَزْوَاجِهٖ بِالْبَقَرِ.

۵۱۰: مسدد. سفيان. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم، بي بي عائشےؓ له تشريف يوړلو، او هغے ته مقام سرف کښې مکے ته دَ رسيدو نه مخکښې حيض راغے، هغے ژړل. حضورؐ ترے تپوس اوکۀ، ولے ژاړے، آيا تاته حيض شوے دے. هغے جواب ورکۀ، او. حضورؐ ورته اوفرمائيل، دا هغه څيز دے، چه اللّٰه تعالٰي دَ آدمؑ دَ لونړ په قسمت کښې ليکلے دے. نو څۀ چه حاجيان کوي، هغه تۀ هم کوه، خو دا چه تۀ دَ خانه کعبے طواف مۀ کوه (دَ بي بي عائشےؓ بيان دے) کوم وخت چه مونږ منٰي کښې وو، نو ماته دَ غوا (گاۓ) غوښه راوړلے شوه. ما تپوس اوکۀ، دا څۀ دي، خلقو اووے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ خپلو بيبيانو دَ طرف نه دَ غوا قرباني کړے ده.

باب ۳۲۲۶: مَا يُشْتَهِيُ مِنَ اللَّحْمِ يَوْمَ النَّحْرِ.

۵۱۱۱: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَلْيُعِدْ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ هٰذَا يَوْمٌ يُشْتَهٰى فِيْهِ اللَّحْمُ وَ ذَكَرَ جِيْرَانَهُ وَ عِنْدِيْ جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَرَخَّصَ لَهُ فِيْ ذٰلِكَ فَلَا اَدْرِيْ اَبَلَغَتِ الرُّخْصَةُ مَنْ سِوَاهُ اَمْ لَا ثُمَّ انْكَفَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى كَبْشَيْنِ فَذَبَحَهُمَا وَ قَامَ النَّاسُ اِلٰى غُنَيْمَةٍ فَتَوَزَّعُوْهَا اَوْ قَالَ فَتَجَزَّعُوْهَا.

باب ۳۲۲۶: دَ قرباني په ورځ دَ غوښې خوړلو دَ خواهش كولو بيان.

۵۱۱۱: صدقه. ابن عُليه. ايوب. ابن سيرين. انس بن مالک نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ قرباني په ورځ اوفرمائيل، كوم سړي چه دَ مونځ نه مخكښې ذبح كړے وي، هغه دے دوباره قرباني اوكړي. يو سړے اودريدلو او عرض ئے اوكړ، يا رسول اللّٰه، نن ورځ دَ غوښے خوړلو خواهش وي. او دَ خپلو گوانډيانو ذكر ئے اوكړ، او وئيلے، ماسره دَ شپږو مياشتو (دَ چيلے) يو بچے دے، چه دَ غوښې دوو چيلونه بهتر (سُرب) دے. حضورٌ ورته دَ هغے دَ قرباني اجازت ورکړ، ماته معلومه نۀ ده، چه دا اجازت دَ هغے نه علاوه نورو خلقو دَ پاره هم باقي دے يا نه بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دوه ګډانو طرف ته متوجه شولو، او هغه ئے ذبح كړل. او خلق چيلو ته متوجه شو، هغه ئے تقسيم او ذبح كړل.

باب ۳۲۲۷: مَنْ قَالَ الْاَضْحٰى يَوْمُ النَّحْرِ.

۵۱۱۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَّامٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهٖ يَوْمَ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَلسَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا

باب ۳۲۲۷: دَ هغے خلقو دليل چه ددے قائل دي، چه قرباني دَ بقر عيد په ورځ ده.

۵۱۱۲: محمد بن سلام. عبدالوهاب. ايوب. محمد. ابن ابي بكره. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل څنګه چه دَ اللّٰه تعالي دَ آسمان او زمكے دَ پيدائش په ورځ زمانه ګردش كښې ده، دغه شان اوس هم ګردش كښې ده. كال كښې دولس مياشتے دي، هغے كښې څلور دَ حرام (يعني دَ عزت) مياشتے دي. درے يعني ذوالقعده، ذي الحجه او محرم خو پرله پسے دي. او رجب مضر

اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُوالْقَعْدَةِ وَ ذُوالْحَجِّ وَالْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَ شَعْبَانَ اَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قُلْنَا اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ ذَاالْحَجَّةِ قُلْنَا بَلٰى. قَالَ اَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قُلْنَا اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ الْبَلْدَةَ قُلْنَا بَلٰى. قَالَ فَاَيُّ يَوْمٍ هٰذَا؟ قُلْنَا اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاِنَّ دِمَآءَكُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ قَالَ مُحَمَّدٌ وَّ اَحْسِبُهٗ قَالَ وَ اَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا وَ سَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ فَيَسْاَلُكُمْ عَنْ اَعْمَالِكُمْ اَلَا فَلَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ ضُلَّالًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ اَلَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَلَعَلَّ بَعْضَ مَنْ

چه ذ جمادي او شعبان مينځ كښې ده دا كومه مياشت ده. مونږ عرض او كۀ. اللّٰه او ذ هغۀ رسول ښۀ پوهيږي. حضورٌ خاموش شولو' تردے چه خمونږ گمان راغے' چه شايد حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ددے نه علاوه څه بل نوم بيان كړي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل آيا دا ذي الحجه مياشت نه ده. مونږ عرض او كۀ' ولے نه ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دا كوم ښار دے. مونږ اووے اللّٰه او ذ هغه رسول ښۀ پوهيږي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خاموش شولو. تردے چه مونږ دا اوګڼړله. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به څه بل نوم بيان ړي. آيا دا بلده (يعني مكه) نۀ ده. مونږ عرض اوكه جي. او' بيا حضورٌ اوفرمائيل. دا كومه ورځ ده. مونږ عرض اوكه' اللّٰه او د هغه رسول ښۀ پوهيږي بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خاموش شو. تردے چه خمونږ دا خيال راغے. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به څۀ بل نوم بيان كړي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا دا ذ قرباني ورځ نۀ ده. مونږ اووے' جي' او. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ستاسو وينه او ستاسو مال (او محمد اووے خما خيال دے. چه دائے هم اوفرمائيل) او ستاسو عزت په يو بل داسے حرام دے څنګه چه د نن ورځ حرمت ستاسو دے ښار كښې ستاسو دے مياشت كښې دے او عنقريب تاسو به خپل رب سره يوځائے شئے' او تاسونه به ستاسو ذ' اعمالو بابت كښې تپوس كيږي. خبردار' خما نه پس ګمراه نۀ شئے' چه ذ يو بل څټ وهل شروع ... اورئے' څوک چه دلته موجود دي. هغے چاته دے ... سړي' كوم چه دلته

يُبَلِّغُهُ اَنْ يَّكُوْنَ اَوْعٰى لَهُ مِنْ بَعْضِ مَنْ سَمِعَهُ وَ كَانَ مُحَمَّدٌ اِذَا ذَكَرَهُ قَالَ صَدَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ اَلَاهَلْ بَلَّغْتُ.

موجود نهٔ دي. ځکه چه بعضے خلق کومو ته چه خبر وررسولے شي. هغوي دَ بعضے هغے خلقو نه زيات ياد ساتونکے وي. چاچه اوريدلے وي. او محمد چه به دا بيان کولو نو ونيل به ئے نبي صلي الله عليه وسلّم ريښتيا اوفرمائيل. واورئے ما ورسولو. واورے ما ورسولو (يعني دَ حق پيغام).

باب ۳۲۸: اَلْاَضْحٰى وَالْمَنْحَرِ بِالْمُصَلّٰى.

باب ۳۲۸: دَ قرباني بيان او دا چه د قرباني ځائے عيدګاه دے.

۵۱۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَنْحَرُ فِي الْمَنْحَرِ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ يَعْنِيْ مَنْحَرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۱۳: محمد بن ابي بکر مقدمي. خالد بن حارث. عبدالله. نافع نه روايت کوي. عبدالله به دَ قرباني ځائے کښې قرباني کوله. عبيدالله بيان اوکهٔ. يعني دَ نبي صلي الله عليه وسلّم دَ قُرباني کولو په ځائے به ئے کوله.

۵۱۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا بُكَيْرٌ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ كَثِيْرِ بْنِ فَرْقَدٍ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ اَخْبَرَهٗ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْبَحُ وَ يَنْحَرُ بِالْمُصَلّٰى.

۵۱۴: يحيي بن بکير. ليث. کثير بن فرقد. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه نبي صلي الله عليه وسلّم به عيدګاه کښې ذبح کوله، او نحر به ئے کولو.

باب ۳۲۹: فِيْ اُضْحِيَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ اَقْرَنَيْنِ وَ يُذْكَرُ سَمِيْنَيْنِ وَ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ اَبَا اُمَامَةَ بْنَ سَهْلٍ قَالَ كُنَّا نُسَمِّنُ الْاُضْحِيَّةَ بِالْمَدِيْنَةِ وَ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ

باب ۳۲۹: دَ نبي صلي الله عليه وسلّم د دوه ښکريز ګډه (ذبح) دَ قرباني کولو بيان. او سمينين لفظ هم منقول دے، او يحيي بن سعيد بيان اوکهٔ، ما ابو امامه بن سهل نه بيان کول واوريدل. مونږ خلقو به دَ قرباني ځناور مدينه کښې غټول (موٹا کرتے تھے) او ټولو مسلمانانو به (د قرباني ځناور)

يُسَمِّنُوْنَ.

غټول.

۵۱۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُضَحِّيْ بِكَبْشَيْنِ وَ اَنَا اُضَحِّيْ بِكَبْشَيْنِ.

۵۱۵: آدم بن ابي اياس. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، ډ هغه بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به دوه ګډان قربان کول. او ما به هم دوه ګډان قرباني کول.

۵۱۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْكَفَأَ اِلٰى كَبْشَيْنِ اَقْرَنَيْنِ اَمْلَحَيْنِ فَذَبَحَهُمَا بِيَدِهٖ تَابَعَهُ وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ وَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسٍؓ

۵۱۶: قتيبه بن سعيد. عبدالوهاب. ايوب. ابو قلابه. انسؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دوه ښکريز برګي ګډانو طرف ته متوجه شو، او هغه دواړه ئے خپل لاس مبارک سره ذبح کړل. وهيب ډ ايوب نه ډدے متابعت کښې روايت اوکړ. او اسمٰعيل او حاتم بن وردان په واسطه ډ ايوب، ابن سيرين، انسؓ نه روايت کوي.

۵۱۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَاهُ غَنَمًا يَقْسِمُهَا عَلٰى صَحَابَتِهٖ ضَحَايَا فَبَقِيَ عَتُوْدٌ فَذَكَرَهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ضَحِّ اَنْتَ بِهٖ.

۵۱۷: عمرو بن خالد. ليث. يزيد. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو صحابهؓ کښې ډ قرباني چيلئے تقسيمولے. يو شپږ مياشتيز چيلوګے باقي پاتے شو، نو هغهٔ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ډ هغے بيان اوکړ، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ته هم دا قرباني کړه.

باب ۳۳۰: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ بُرْدَةَ ضَحِّ بِالْجَذَعِ مِنَ الْمَعْزِ وَ لَنْ تُجْزِيَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

باب ۳۳۰: ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ابو بردهؓ ته فرمائيل، چه ته دا شپږ مياشتيز بچے ذبح کړه، او ستا نه پس به بل چا ډ پاره جائز نهٔ وي.

٥١٨: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ عَنْ عَامِرٍ عَنِ الْبَرَاءِ ابْنِ عَازِبٍ قَالَ ضَحّٰى خَالٌ لِّيْ يُقَالُ لَهُ اَبُوْ بُرْدَةَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاتُكَ شَاةُ لَحْمٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ عِنْدِيْ دَاجِنًا جَذَعَةً مِّنَ الْمَعْزِ قَالَ اذْبَحْهَا وَلَنْ تَصْلُحَ لِغَيْرِكَ ثُمَّ قَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَاِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهٖ وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهٗ وَاَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِيْنَ تَابَعَهٗ عُبَيْدَةُ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَاِبْرٰهِيْمُ وَتَابَعَهٗ وَكِيْعٌ عَنْ حُرَيْثٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ عَاصِمٌ وَّدَاوُدُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عِنْدِيْ عَنَاقُ لَبَنٍ وَقَالَ زُبَيْدٌ وَّفِرَاسٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عِنْدِيْ جَذَعَةٌ وَقَالَ اَبُو الْاَحْوَصِ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنَاقٌ جَذَعَةٌ وَّقَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنَاقٌ جَذَعٌ عَنَاقُ لَبَنٍ.

٥١٨: مسدد. خالد بن عبدالله. مطرف. عامر. براء بن عازبؓ نه روايت كوي، هغه وائي خما ماما چه هغه ته ابوبرده وئيلے شو، دَ مونځ نه مخكښې قرباني اوكړه. هغه ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، ستا چيلے خو دَ غوښې ده (يعني دَ قرباني نه ده) هغه عرض اوكړ يا رسول اللّٰه، ما سره دَ شپږ مياشتو ساتلے بچے دے حضورؐ ورته اوفرمائيل، هم دغه ذبح كړه، او ستانه علاوه بل چا دَ پاره (داسے كول) درست نهٔ دي (ځكه چه هغهٔ يوه چيلے مخكښې حلاله كړے وه، او ورپسے ئے دا بچے هم قرباني كهٔ، يعني دَ هغهٔ يو قسم له دوه ذبحے شوے. خو ورمبنے قرباني ئے اونهٔ شوه، نو ځكه ئے بله قرباني اوكړه، اګر كه هغه بچے وو، او بل څوك به پوره قرباني كوي، نه چه هغسے بچے به ذبح كوي، ځكه چه مسئله ورته معلومه شوه) بيائے اوفرمائيل، چاچه دَ مانځه نه مخكښې ذبح اوكړه، نو هغهٔ صرف دَ خپل ذات دَ پاره ذبح اوكړله، او چا چه دَ مانځه نه پس ذبح اوكړه، نو دَ هغهٔ (اصل) قرباني اوشوه، او هغه دَ مسلمانانو په سنت عمل اوكهٔ. عبيده دَ شعبي او ابراهيم او وكيع دَ حريث نه، هغهٔ دَ شعبي نه دَ دے متابعت كښې روايت اوكهٔ. او عاصم او داؤد دَ شعبي نه دے لفظ سره روايت اوكهٔ: عندى عناق لبن: او زبيد او فراس د شعبي نه د: عندى جذعة: لفظ نقل كه. او ابوالاحوص اووے، مونږ ته منصور عناق جذعة: بيان كه، او ابن عون: عناق جذع، عناق لبن: الفاظو سره روايت اوكهٔ.

٥١٩: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ

٥١٩: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ ذَبَحَ اَبُوْ بُرْدَةَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْدِلْهَا قَالَ لَيْسَ عِنْدِيْ اِلَّا جَذَعَةٌ قَالَ شُعْبَةُ وَ اَحْسِبُهُ قَالَ هِيَ خَيْرٌ مِّنْ مُّسِنَّةٍ قَالَ اجْعَلْهَا مَكَانَهَا وَ لَنْ تَجْزِيَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ وَ قَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ عَنَاقٌ جَذَعَةٌ.

سلمه. ابو جحيفه. براء نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے، ابو بردهؓ ذَ مونځ نه مخکښ ذبح اوکړه، هغهٔ ته نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذَ دے عوض کښ دويمه قرباني اوکړه هغهٔ عرض اوکهٔ، ماسره صرف ذَ چيلے يو شپږ مياشتيز بچے (چيلوکے) دے. ذَ شعبه خيال دے شايد دائے هم اووے، چه هغه ذَ يو کليز چيلوکي نه هم غوريز دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. ذَ هغے په ځائے دا قرباني کړه. او ستا نه پس به داسے کول بل چا ذَ پاره جائز نهٔ وي. او حاتم بن وردان ذَ ايوب نه، هغه ذَ محمد نه، هغه ذَ انسؓ نه هغه ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوکهٔ، چه حضورؐ: عناق جذعة: اوفرمائيلو.

## بَاب ١٣٣١: مَنْ ذَبَحَ الْاَضَاحِيَّ بِيَدِهٖ.

## باب ١٣٣١: ذَ هغے سړي بيان چه ذَ قرباني ځناور خپل لاس سره ذبح کړي.

٥٢٠٠: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ ضَحّٰى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ اَمْلَحَيْنِ فَرَاَيْتُهُ وَاضِعًا قَدَمَهُ عَلٰى صِفَاحِهِمَا يُسَمِّيْ وَ يُكَبِّرُ فَذَبَحَهُمَا بِيَدِهٖ.

٥٢٠٠: آدم بن ابي اياس. شعبه. قتاده. انسؓ نه روايت کوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دوه برګي ګډان ذبح کړل، ما اوليدل، چه حضورؐ خپله پښه مبارکه ذَ هغے دواړو په اړخ کيښودله، بسم اللّٰه او تکبير ئے اوکهٔ، بيائے دواړه خپل لاس مبارک سره ذبح کړل.

## بَاب ١٣٣٢: مَنْ ذَبَحَ ضَحِيَّةَ غَيْرِهٖ وَ اَعَانَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ فِيْ بَدَنَتِهٖ وَ اَمَرَ اَبُوْ مُوْسٰى بَنَاتَهٗ اَنْ يُّضَحِّيْنَ بِاَيْدِيْهِنَّ.

## باب ١٣٣٢: ذَ هغے سړي بيان، چه ذَ بل ذَ قرباني ځناور ذبح کړي. او يو سړي ذَ قرباني ځناور کښ ذَ ابن عمرؓ مدد اوکهٔ، او ابو موسيٰ خپلو لونړو ته حکم اوکهٔ چه خپلو لاسونو سره ذبح اوکړي.

٥٢١١: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ

٥٢١١: قتيبه. سفيان. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، مقام سرف کښ

عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَرِفَ وَ اَنَا اَبْكِيْ فَقَالَ مَا لَكِ اَنَفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ هٰذَا اَمْرٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ اِقْضِيْ مَا يَقْضِي الْحَاجُّ غَيْرَ اَنْ لَّا تَطُوْفِيْ بِالْبَيْتِ وَ ضَحّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِّسَآئِهٖ بِالْبَقَرِ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ما پله تشريف راوړلو داسے حال کښې چه ما ژړل. حضورؐ اوفرمائيل ولې ژاړے، آيا تاته حيض شوے دے. ما جواب ورکهٔ، جي. او. حضورؐ اوفرمائيل دا يو داسے ځيز دے، چه اللّٰه تعالٰي دَ آدم په لونړو مقرر کړے دے. تهٔ ټول ارکان پوره کړه، کوم چه حاجيان صاحبان پوره کوي، خو دا چه تهٔ دَ خانه کعبے طواف مهٔ کوه. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ خپلو بيبيانو دَ طرف نه دَ غوا قرباني اوکړه.

## بَابُ ۳۳۳: اَلذَّبْحِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ.

## باب ۳۳۳: دَ مانځه نه پس دَ ذبح کولو بيان.

۵۲۲: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ الْمِنْهَالِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زُبَيْدٌ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ اِنَّ اَوَّلَ مَا نَبْدَاُ مِنْ يَّوْمِنَا هٰذَا اَنْ نُّصَلِّيَ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ فَمَنْ فَعَلَ هٰذَا فَقَدْ اَصَابَ سُنَّتَنَا وَ مَنْ نَّحَرَ فَاِنَّمَا هُوَ لَحْمٌ يُّقَدِّمُهٗ لِاَهْلِهٖ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِيْ شَيْءٍ فَقَالَ اَبُوْ بُرْدَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ اُصَلِّيَ وَ عِنْدِيْ جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّسِنَّةٍ فَقَالَ اجْعَلْهَا مَكَانَهَا وَ لَنْ تَجْزِيَ اَوْ تُوْفِيَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

۵۲۲: حجاج بن منهال. شعبه. زبيد. شعبي. براء نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه خطبه کښې واوريدل حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، نن ورځ به دَ ټولو نه مخکښې مونځ کوو. بيا به واپس کيږو، او قرباني به کوو. چا چه داسے اوکړل، نو ځمونږ په سنت ئے عمل اوکهٔ. او چا چه دَ مونځ نه مخکښې قرباني اوکړه، نو هغه صرف غوښه ده، چه دَ خپل کور والو دَ پاره ئے تيارَوي. قرباني کښې ئے هيڅ حصه نشته. ابو برده عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، ما خو دَ مانځه نه مخکښې ذبح اوکړله، او ما سره (دَ چيلئے) يو شپږ مياشتيز بچے دے، چه دَ يو کليز بچي نه غټ دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تهٔ دا دَ هغے په بدله کښې ذبح کړه. او ستا نه پس به بل چا دَ پاره کافي نهٔ وي.

## بَابُ ۳۳۴: مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ اَعَادَ.

## باب ۳۳۴: دَ مانځه نه مخکښې که څوک ذبح اوکړي، نو دوباره دے قرباني اوکړي.

۵۲۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَلْيُعِدْ فَقَالَ رَجُلٌ هٰذَا يَوْمٌ يُشْتَهٰى فِيْهِ اللَّحْمُ وَ ذَكَرَ مِنْ جِيْرَانِهٖ فَكَاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَذَرَهٗ وَ عِنْدِيْ جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِّنْ شَاتَيْنِ فَرَخَّصَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا اَدْرِيْ اَبَلَغَتِ الرُّخْصَةُ اَمْ لَا ثُمَّ انْكَفَاَ اِلٰى كَبْشَيْنِ يَعْنِيْ فَذَبَحَهُمَا ثُمَّ انْكَفَاَ النَّاسُ اِلٰى غُنَيْمَةٍ فَذَبَحُوْهَا.

۵۲۳ : علي بن عبدالله. اسمعيل بن ابراهيم. ايوب. محمد. انسؓ. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي' حضرت اوفرمائيل' چاچه ذ مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه' نو هغهٔ له پکار دي' چه دوباره (قرباني) اوکړي. يو سړي اووے' دا هغه ورځ ده چه دے کښ ذ غوښے خواهش وي. او ذ خپلو ګوانډيانو حال ئے بيان کړ' ګويا حضور صلي الله عليه وسلّم هغه معذور اوګنړلو. او هغهٔ اووے ماسره يو شپږ مياشتيز چيلو کے دے' چه ذ دوو چيلو نه بهتر (غټ) دے' نو نبي صلي الله عليه وسلّم هغهٔ له اجازت ورکړ' ماته نهٔ ده معلومه چه دا اجازت ذ ټولو خلقو ذ پاره دے يا نه. بيا حضورؐ دوو ګډانو طرف ته متوجه شو يعني هغه ئے ذبح کړل. بيا خلق چيلو (بکریوں)طرف ته متوجه شو' او چيلئے ئے ذبح کړے.

۵۲۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْاَسْوَدُ بْنُ قَيْسٍ سَمِعْتُ جُنْدُبَ بْنَ سُفْيَانَ الْبَجَلِيَّ قَالَ شَهِدْتُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ يُّصَلِّيَ فَلْيُعِدْ مَكَانَهَا اُخْرٰى وَ مَنْ لَّمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ.

۵۲۴ : آدم. شعبه. اسود بن قيس. جندب بن سفيان بجلي نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' زهٔ ذ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ ذ نحر په ورځ حاضر شوم' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چا چه ذ مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه' نو ذ هغے په ځائے دے دويم ځاروے قرباني کړے' او چا چه ذبح نهٔ وي کړے' هغه دے ذبح وکړي.

۵۲۵ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ فِرَاسٍ عَنْ عَامِرٍ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ مَنْ صَلّٰى صَلٰوتَنَا وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا فَلَا يَذْبَحْ حَتّٰى

۵۲۵ : موسٰي بن اسمعيل. ابو عوانه. فراس. عامر. براء نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' نبي صلي الله عليه وسلّم يو ورځ مونځ اوکړ' بيائے اوفرمائيل. چاچه خمونږ پشان مونځ اوکړ' او خمونږ قبلے ته متوجه شي (مخ کړي) نو هغه دے ذبح نهٔ کوي' څو پورے چه ذ مانځه نه فارغ نشي. ابو برده بن نيار اُودريدلو' او عرض

يَنصَرِفَ فَقَامَ اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَعَلْتُ فَقَالَ هُوَ شَیْءٌ عَجَّلْتَهٗ قَالَ فَاِنَّ عِنْدِیْ جَذَعَةً هِیَ خَيْرٌ مِّنْ مُسِنَّتَيْنِ اَذْبَحُهَا قَالَ نَعَمْ ثُمَّ لَا تَجْزِیْ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ قَالَ عَامِرٌ هِیَ خَيْرُ نَسِيْكَتِهٖ.

نبي اوكړه' يا رسول اللّٰه' ما خو ذبح اوكړله. حضور اوفرمائيل هغه داسې څيز دې چه تا په تادي تيار كړلو' هغه عرض اوكړه' ماسره يو شپږ مياشتيز چيلوكې دې چه ذ يو كليز دوو بچو نه غټ دې' آيا زه دا ذبح كړم. حضور ورته اوفرمائيل بيا ستا نه پس به هيچا ذ پاره كافي نه وي. عامر ذ: خير نَسِيْكَتِهٖ: لفظ روايت كړ.

بَابٌ ۳۳۵: وَضْعِ الْقَدَمِ عَلٰی صَفْحِ الذَّبِيْحَةِ.

باب ۳۳۵: ذ ذبيحه په اړخ د قدم ايښودو بيان.

۵۲۶: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُضَحِّیْ بِكَبْشَيْنِ اَمْلَحَيْنِ اَقْرَنَيْنِ وَ وَضَعَ رِجْلَهٗ عَلٰی صَفْحَتِهِمَا وَ يَذْبَحُهُمَا بِيَدِهٖ.

۵۲۶: حجاج بن منهال. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به دوه ښكريز برګي ګډان ذبح كول. او خپله پښه به ئې ذ دواړو په آړخونو (تشو) ايښودو سره دواړه خپل لاسونو مباركو سره ذبح كول.

بَابٌ ۳۳۶: التَّكْبِيْرِ عِنْدَ الذَّبْحِ.

باب ۳۳۶: ذ ذبح په وخت ذ اللّٰه اكبر وئيلو بيان.

۵۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ ضَحّٰی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ اَمْلَحَيْنِ اَقْرَنَيْنِ ذَبَحَهُمَا بِيَدِهٖ وَ سَمّٰی وَ كَبَّرَ وَ وَضَعَ رِجْلَهٗ عَلٰی صِفَاحِهِمَا.

۵۲۷: قتيبه. ابو عوانه. قتاده. انس نه روايت كوي. ذ هغه بيان دې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دوه برګي ګډان ذبح كړل. هغه دواړه ئې خپلو لاسونو مباركو سره ذبح كړل. بِسْمِ اللّٰه او اللّٰه اكبر ئې اووې او خپله پښه ئې د هغې دواړو په آړخونو كيښوده.

بَابٌ ۳۳۷: اِذَا بَعَثَ بِهَدْيِهٖ لِيُذْبَحَ لَمْ يَحْرُمْ عَلَيْهِ شَیْءٌ.

باب ۳۳۷: كه يو سړې هدي (ذ قرباني ځناور) ذ ذبح د پاره اوليږي. نو په هغه هيڅ څيز حرام نه دې.

۵۲۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنِ

۵۲۸: احمد بن محمد. عبداللّٰه. اسمٰعيل. شعبي. مسروق نه روايت كوي' هغه بي بي عائشې له

الشَّعْبِيِّ عَنْ مَّسْرُوْقٍ اَنَّهُ اَتٰى عَآئِشَةَ فَقَالَ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ رَجُلًا يَّبْعَثُ بِالْهَدْيِ اِلَى الْكَعْبَةِ وَ يَجْلِسُ فِي الْمِصْرِ فَيُوْصِيْ اَنْ تُقَلَّدَ بَدَنَتُهٗ فَلَا يَزَالُ مِنْ ذٰلِكَ الْيَوْمِ مُحْرِمًا حَتّٰى يَحِلَّ النَّاسُ قَالَ فَسَمِعْتُ تَصْفِيْقَهَا مِنْ وَّرَآءِ الْحِجَابِ فَقَالَتْ لَقَدْ كُنْتُ اَفْتِلُ قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَبْعَثُ هَدْيَهٗ اِلَى الْكَعْبَةِ فَمَا يَحْرُمُ عَلَيْهِ مِمَّا حَلَّ لِلرِّجَالِ مِنْ اَهْلِهٖ حَتّٰى يَرْجِعَ النَّاسُ.

راغے، او وئیلے، اے ام المؤمنین یو سړے خانه کعبے طرف ته هدي (ذ قرباني خناور) لیږي. او خپله خپل ښار کښې ناست وي، او وصیت کوي، چه ذ هغهٔ ذ قرباني ذ خناور غاړه کښې دے پټے واچولے شي، نو آیا هغه محرم وي، څو پورے چه خلق حلال نشي. ذ مسروق بیان دے. ما ذ پردے ذ پناهي نه ذ بي بي عائشہؓ ذ لاس وهلو آواز واوریدلو. او وے فرمائیل، ما به ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ هدي (ذ قرباني ذ خناور) ذ غاړے هار بنړلو. بیا به حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هدي خانه کعبے طرف ته لیږله. او په حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به هیڅ څیز حرام نهٔ وو، چه په سړو ذ خپلو ببیبانو نه حلال دے، تردے چه خلق به واپس شو.

## بَابٌ ۳۳۸: مَا يُؤْكَلُ مِنْ لُحُوْمِ الْاَضَاحِيِّ وَ مَا يُتَزَوَّدُ مِنْهَا.

## باب ۳۳۸: ذ قرباني غوښه څومره خوړل او څومره جمع کیدل پکار دي.

۵۲۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ سَمِعَ جَابِرًا بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُوْمَ الْاَضَاحِيِّ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ غَيْرُ مَرَّةٍ لُحُوْمَ الْهَدْيِ.

۵۲۹: علي بن عبداللّٰه. سفیان. عمرو. عطاء. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے. مونږ خلقو به د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم زمانه کښې ذ قرباني غوښه مدینے ته رسیدو پورے جمع کوله. او متعدد ځائے (ذ لحوم الاضاحی په ځائے) لحوم الهدی بیان کړے دے.

۵۳۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ اَنَّ ابْنَ خَبَّابٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ يُحَدِّثُ اَنَّهٗ كَانَ غَآئِبًا فَقَدِمَ

۵۳۰: اسمٰعیل. سلیمان. یحیٰي بن سعید. قاسم. ابن خباب ذ ابو سعید خدريؓ قول نقل کوي. هغه غیر حاضر وو. کوم وخت چه هغه راغے. هغهٔ له غوښه راوړلے شوه. نو ورته اُوئیلے شو. چه دا څمونږ ذ قربانو غوښه ده. هغهٔ اووے دا لرے کړئ. زهٔ دا نه څکم. د ابو

اِلُمِّهٖ لَحْمٌ قَالَ وَ هٰذَا مِنْ لَحْمِ ضَحَايَانَا فَقَالَ اَخِّرْهُ لَا اَذُوْقُهٗ قَالَ ثُمَّ قُمْتُ فَخَرَجْتُ حَتّٰى اٰتِيَ اَخِيْ اَبَا قَتَادَةَ وَ كَانَ اَخَاهُ لِاُمِّهٖ وَ كَانَ بَدْرِيًّا فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهٗ فَقَالَ اِنَّهٗ قَدْ حَدَثَ بَعْدَكَ اَمْرٌ.

سعيد خدريؓ بيان دے. زهٔ اُودريدم' بيا روان شوم' تردے چه خپل ورور ابو قتاده ته اورسيدم' او هغه د مور د طرف نه د هغه ورور وو (يعني مور ئے يوه وه پلار ئے جُدا جُدا وو) او بدري (دَ بدر غزا كښ شريک) وو. ما هغهٔ ته دا واقعه بيان كړه. نو هغهٔ اووے' چه نوے خبره ستا نه پس پيدا شوے ده.

۵۳۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ضَحّٰى مِنْكُمْ فَلَا يُصْبِحَنَّ بَعْدَ ثَالِثَةٍ وَّ فِيْ بَيْتِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَفْعَلُ كَمَا فَعَلْنَا عَامَ الْمَاضِيْ قَالَ كُلُوْا وَ اَطْعِمُوْا وَادَّخِرُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ الْعَامَ كَانَ بِالنَّاسِ جَهْدٌ فَاَرَدْتُّ اَنْ تُعِيْنُوْا فِيْهَا.

۵۳۱: ابو عاصم. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اكوع نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو كښ چه څوک قرباني اوكړي. هغه دے دَ دريمے ورځ نه پس صبا كوي نه' داسے حال كښ چه د هغهٔ كور كښ ددے نه څهٔ وي' بيا چه دويَم كال راغے. خلقو عرض اوكهٔ يا رسول الله' آيا مونږ خلق هغسے اوكړو څنگه چه مو تير كال كړے وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. خپله خورئے' او په خلقو خوروئے. او جمع كوئے. په هغه كال خلق لوږه كښ آخته وو. په دے وجه ما اراده اوكړه. چه تاسو خلق دے كښ مدد اوكړئے.

۵۳۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَلضَّحِيَّةُ كُنَّا نُمَلِّحُ مِنْهُ فَنُقَدِّمُ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ لَا تَاْكُلُوْا اِلَّا ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّ لَيْسَتْ بِعَزِيْمَةٍ وَ لٰكِنْ اَرَادَ اَنْ يُّطْعِمَ مِنْهُ وَاللّٰهُ

۵۳۲: اسمٰعيل بن عبداللّٰه. برادر اسمٰعيل. سليمان. يحيٰي بن سعيد. عمره بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. د هغے بيان دے. مونږ خلقو به د قرباني غوښه باندے مالگه (نمک) لړوله' او ايښودله به مو. بيا به مو هغے كښ څهٔ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ راوړله. حضور صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل درے ورځے ئے خورئے. ليكن دا تاكيدي حُكم نه وو. بلكه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم مقصد دا وو. چه مونږ دَ دے نه په خلقو اوخوروو. او الله تعالي به

اَعْلَمُ.

پوهيدونکے دے.

۵۳۴: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عُبَيْدٍ مَوْلٰى ابْنِ اَزْهَرَ اَنَّهٗ شَهِدَ الْعِيْدَ يَوْمَ الْاَضْحٰى مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِؓ فَصَلّٰى قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ نَهٰكُمْ عَنْ صِيَامِ هٰذَيْنِ الْعِيْدَيْنِ اَمَّا اَحَدُهُمَا فَيَوْمُ فِطْرِكُمْ مِّنْ صِيَامِكُمْ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَيَوْمٌ تَاْكُلُوْنَ نُسُكَكُمْ قَالَ اَبُوْ عُبَيْدٍ ثُمَّ شَهِدْتُّ مَعَ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ فَكَانَ ذٰلِكَ. يَوْمُ الْجُمُعَةِ فَصَلّٰى قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ هٰذَا يَوْمٌ قَدِ اجْتَمَعَ لَكُمْ فِيْهِ عِيْدَانِ فَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّنْتَظِرَ الْجُمُعَةَ مِنْ اَهْلِ الْعَوَالِيِّ فَلْيَنْتَظِرْ وَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّرْجِعَ فَقَدْ اَذِنْتُ لَهٗ قَالَ اَبُوْ عُبَيْدٍ ثُمَّ شَهِدْتُّهٗ مَعَ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ فَصَلّٰى قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَاكُمْ اَنْ تَاْكُلُوْا لُحُوْمَ نُسُكِكُمْ فَوْقَ ثَلٰثٍ وَّ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ نَحْوَهٗ.

۵۳۴: حبان بن موسي. عبدالله. يونس. زهري. ابو عبيد (دَ ابن ازهر آزاد کرده غلام) نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے هغهٔ حضرت عمرؓ بن خطاب سره د قرباني (لوئے) آختر په ورځ شريک شولو. هغه د خطبے نه مخکښې مونځ اوکهٔ. بيائے د خلقو مخکښې خطبه ورکړله. او وے فرمائيل. اے خلقو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم تاسو، د دے دواړو (وړوکي او لوئے) اخترونو په ورځ د روژے نيولو نه منع کړے نے. دے کښې خو يو (اختر) دَ روژو نه د افطار ورځ ده. او دويمه هغه ورځ ده چه هغے کښې تاسو دَ خپلو قربانو غوښه خورئے. دَ ابو عبيد بيان دے بيا زهٔ حضرت عثمانؓ بن عفان سره شريک شوم. هغه دَ جمعے ورځ وه، هغهٔ د خطبے نه مخکښې مونځ اوکهٔ بيائے خطبه ورکړله، او وے فرمائيل، اے خلقو، نن هغه ورځ ده، چه هغے کښې ستاسو دَ پاره دوه آخترونه راجمع کړے شوے دي. د عوالي باشندګانو کښې چه کوم سړے دَ جمعے انتظار کول غواړي، نو انتظار دے اوکړي. او کوم سړے چه واپس کيدل غواړي، نو زهٔ هغهٔ ته اجازت ورکوم. دَ ابو عبيد بيان دے. بيا زهٔ حضرت عليؓ بن ابي طالب سره (آختر کښې) شريک شوم. هغه دَ خطبے نه مخکښې مونځ اوکهٔ. بيائے دَ خلقو مخکښې خطبه ورکړه او وے فرمائيل، نبي صلي الله عليه وسلّم تاسو خلق دَ قرباني غوښه دَ دريو ورځو نه زياته دَ خوړلو نه منع فرمائيلے ده. او معمر نه په واسطه دَ زهري، ابو عبيد، دغسے منقول دي.

۵۳۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ بْنِ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ اَخِيْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوْا مِنَ الْاَضَاحِيِّ ثَلٰثًا وَّ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَاْكُلُ بِالزَّيْتِ حِيْنَ يُنْفِرُ مِنْ مِّنٰى مِنْ اَجْلِ لُحُوْمِ الْهَدْيِ.

۵۳۴ : محمد بن عبدالرحيم. يعقوب بن ابراهيم بن سعد. دَ ابن شهاب برادر زاده (وراره). ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ قربانئ غوښه درے ورځو پورے خورئے. او عبدالله بن عمرؓ چه دَ منٰي نه واپس کيدلو، نو دَ قرباني دَ غوښے په سبب به ئے روټي دَ زيتون تيلو سره خوړله.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

# كِتَابُ الْاَشْرِبَةِ

# (دَ څکلو بيان)

وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ.

او دَ الله تعالي قول، چه شراب، جواري، بُتان او دَ فال غشي ويشتل، ګنده خبرے، شيطاني کارونه دي. دے نه پرهيز اوکړئے، چه خلاصي بياموم‍ئے.

۵۳۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِى الدُّنْيَا ثُمَّ لَمْ يَتُبْ مِنْهَا حُرِمَهَا فِى الْاٰخِرَةِ.

۵۳۵ : عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه په دنيا کښې شراب اوڅکل، بيا دَ هغے نه توبه ګار نه شو، نو آخرت کښې به هغه دَ دے نه محروم وي.

۵۳۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِىْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِىَ لَيْلَةَ اُسْرِىَ بِهٖ بِاِيْلِيَاءَ

۵۳۶ : ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته دَ معراج په شپه ايلياء کښې دوه پيالے پيش کړے شوے، يوه دَ شرابو او بله دَ پيو. حضورؐ دواړو پيالو طرف ته اوکتل بيائے

بِقَدَحَيْنِ مِنْ خَمْرٍ وَّ لَبَنٍ فَنَظَرَ اِلَيْهِمَا ثُمَّ اَخَذَ اللَّبَنَ فَقَالَ جِبْرِيْلُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ وَلَوْ اَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ اُمَّتُكَ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَابْنُ الْهَادِ وَ عُثْمَانُ بْنُ عَمْرٍو وَالزُّبَيْدِىُّ عَنِ الزُّهْرِىِّ.

پښے واخستل' نو جبرائيل عليه السلام ورته اوفرمائيل: شكر دے خدائے لـهٔ' چه هغهٔ تاسو ته ذ فطرت هدايت اوكړ. كه تاسو ذ شرابو پيالئے آخستے وے' نو ستاسو اُمت به گمراه شوے وو. معمر' او''ابن هاد' او عثمان بن عمرو' او' زبيده ذ زهري نه ذ دے متابعت كښ روايت كړے دے.

۵۳۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ قَالَ سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثًا لَا يُحَدِّثُكُمْ بِهٖ غَيْرِىْ قَالَ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يَّظْهَرَ الْجَهْلُ وَ يَقِلَّ الْعِلْمُ وَ يَظْهَرَ الزِّنَا وَ تُشْرَبُ الْخَمْرُ وَ تَقِلَّ الرِّجَالُ وَ يَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتّٰى يَكُوْنَ لِخَمْسِيْنَ اِمْرَاَةً قَيِّمُهُنَّ رَجُلٌ وَّاحِدٌ.

۵۳۷: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. انس نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' ما ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه داسے حديث آوريدلے دے' چه ځما نه علاوه بل هيڅوک به ئے درته بيان نهٔ كړي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ذ قيامت علامتونه دادي چه جهالت به غالب شي' او علم به كم شي' زنا به زياته شي. شراب به څكلے شي. سړي به كم شي' ښځے به دومره زياتے شي' چه ذ پنځو سو ښځو نګراني به يو سړے كوي.

۵۳۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ يَقُوْلَانِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اِنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزْنِىْ الزَّانِىْ حِيْنَ يَزْنِىْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَ لَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِيْنَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَسْرِقُ السَّارِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَّ اَخْبَرَنِىْ عَبْدُ الْمَلِكِ ابْنُ اَبِىْ بَكْرِ بْنِ

۵۳۸: احمد بن صالح. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن او ابن مسيب. دواړه ذ حضرت ابوهريرهٔ نه روايت كوي. هغهٔ اووے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زنا كونكے زنا نهٔ كوي' داسے حال كښ چه هغه مؤمن وي. او شراب څكونكے شراب نهٔ څكي. داسے حال كښ چه هغه مؤمن وي. او غلا كونكے (چوری کرنے والا) غلا نهٔ كوي' داسے حال كښ چه هغه مؤمن وي. ابن شهاب بيان اوكړ' ماته عبدالملک بن ابي بكر

عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَانَ يُحَدِّثُهُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ يُلْحِقُ مَعَهُنَّ وَلَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً ذَاتَ شَرَفٍ يَرْفَعُ النَّاسُ اِلَيْهِ اَبْصَارَهُمْ فِيْهَا حِيْنَ يَنْتَهِبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ.

بن عبدالرحمن بن حارث بن هشام اوورے' ابوبكر دا د حضرت ابوهريرة نه نقل كولو. بيائے وئيل' ابوبكر به دے سره دومره زيات يوځائے كول' چه د مؤمن كيدو حالت كښې دغه شان د ورځے ډاكه نه غرخوي چه خلق هغه ډاكه غرخونكے ويني.

## باب ۹۳۳۹: اَلْخَمْرِ مِنَ الْعِنَبِ.

## باب ۹۳۳۹: د انګورو د شرابو بيان.

**۹۵۳۹**: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ هُوَ ابْنُ مِغْوَلٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ وَ مَا بِالْمَدِيْنَةِ مِنْهَا شَيْءٌ.

**۹۵۳۹**: حسن بن صباح. محمد بن سابق. مالك بن مغول. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے. شراب داسے وخت كښې حرام كړے شو. چه مدينه كښې د انګورو شراب نه وو.

**۵۴۰**: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَبْدُ رَبِّهٖ بْنُ نَافِعٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ اَنَسٍ قَالَ حُرِّمَتْ عَلَيْنَا الْخَمْرُ حِيْنَ حُرِّمَتْ وَ مَا نَجِدُ يَعْنِيْ بِالْمَدِيْنَةِ خَمْرَ الْاَعْنَابِ اِلَّا قَلِيْلًا وَّ عَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ.

**۵۴۰**: احمد بن يونس. ابن شهاب. عبد ربه. ابن نافع. يونس. ثابت بناني. انس نه روايت كوي' په مونږ شراب حرام كړے شو' او كوم وخت چه هغه حرام كړے شو' مونږ خلقو ته به مدينه كښې د انګورو شراب ډير كم په لاس راتلل' او مونږ سره به اكثر شراب د كجه او پخو قجورو وو.

**۱۵۴۱**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ حَدَّثَنَا عَامِرٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَامَ عُمَرُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اَمَّا بَعْدُ نَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ وَ هِيَ مِنْ خَمْسَةٍ الْعِنَبُ وَالتَّمْرُ وَالْعَسَلُ وَالْحِنْطَةُ وَالشَّعِيْرُ وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ.

**۱۵۴۱**: مسدد. يحيي. ابن حبان. عامر. ابن عمرؓ نه روايت كوي. حضرت عمرؓ په منبر او دريدلو' او وے فرمائيل' اما بعد: د شرابو حرمت (حرام كيدل) نازل شوے دي. او هغه پنځو څيزونو كښې وي (۱) انګور (۲) قجورے (۳) شات (۴) غنم (۵) وربشے. او خمر هغه دے' چه عقل مخمور (ضائع) كړي.

**باب ۰ ۳۴: نَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ وَهِيَ مِنَ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ.**

۵۴۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ ابْنُ اَنَسٍ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ كُنْتُ اَسْقِيْ اَبَا عُبَيْدَةَ وَ اَبَا طَلْحَةَ وَ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ مِنْ فَضِيْخِ زَهْوٍ وَّ تَمْرٍ فَجَآءَهُمْ اٰتٍ فَقَالَ اِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ قُمْ يَا اَنَسُ فَاَهْرِقْهَا فَاَهْرَقْتُهَا.

۵۴۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ كُنْتُ قَآئِمًا عَلَى الْحَيِّ اَسْقِيْهِمْ عُمُوْمَتِيْ وَ اَنَا اَصْغَرُهُمُ الْفَضِيْخَ فَقِيْلَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ فَقَالَ اَكْفِئْهَا فَكَفَأْنَا قُلْتُ لِاَنَسٍ مَا شَرَابُهُمْ قَالَ رُطَبٌ وَّ بُسْرٌ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ اَنَسٍ وَّ كَانَتْ خَمْرُهُمْ فَلَمْ يُنْكِرْ اَنَسٌ وَّ حَدَّثَنِيْ بَعْضُ اَصْحَابِيْ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسًا يَّقُوْلُ كَانَتْ خَمْرُهُمْ يَوْمَئِذٍ.

۵۴۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا يُوْسُفُ اَبُوْ مَعْشَرِ الْبَرَّآءُ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ بَكْرُ بْنُ عَبْدِ

**باب ۰ ۳۴: کوم وخت چه دَ شرابو حرمت نازل شو، نو دا به دَ کچه او پخو قجورو نه جوړیدل.**

۵۴۲: اسمٰعیل بن عبدالله. مالک بن انس. اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالکؓ نه روایت کوي، ما ابو عبیده. ابو طلحه او ابي بن کعب باندے دَ کچه او پخو قجورو شراب څکول. هغوي ته يو سړے راغے او وئیلے، شراب حرام کړے شو. ابو طلحه اووے. اے انسؓ، پاسه، او دا (شراب) واړوه، نو ما هغه واړول.

۵۴۳: مسدد. معتمر دَ خپل پلار نه روایت کوي. ما دَ انسؓ نه واوریدل، زهٔ يوے قبيلے سره ولاړ ووم، خپلو ترونو باندے م فضيخ (يو قسم شراب) څکول، او زهٔ هغوي کښ کم عمره ووم. دے کښ چا اووے، چه شراب حرام کړے شو. نو خلقو اووے دا (شراب) توئے کړئے، نو ما توئے کړل، دَ معتمر پلار سليمان اووے. ما دَ انس نه تپوس او کهٔ، هغه دَ څهٔ شراب وو، هغهٔ اووے، دَ کچه او پخو قجورو. ابوبکر بن انس اووے، دغه دَ هغوي شراب وو، نو انسؓ انکار اونهٔ کهٔ، او ما ته خما بعضے ملګرو اووے، مونږ دَ انسؓ نه واوريدل، چه هغه زمانه کښ دَ هغوي دا شراب وو.

۵۴۴: محمد بن ابي بکر مقدمي. يوسف ابو معشر براء. سعيد بن عبيدالله. بکر بن عبيدالله. بيان کوي. دے خلقو ته حضرت انس بن مالکؓ بيان او کهٔ، کوم وخت

اللّٰهِ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ اَنَّ الْخَمْرَ حُرِّمَتْ وَالْخَمْرُ يَوْمَئِذٍ الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ.

چه شراب حرام کړے شو، نو هغه وخت شراب د کچه او پخو قجورو نه تياريدل.

**باب ۱۳۴۱: اَلْخَمْرِ مِنَ الْعَسَلِ وَهُوَ الْبِتْعُ** وَ قَالَ مَعْنُ سَأَلْتُ مَالِكَ بْنَ اَنَسٍ عَنِ الْفُقَّاعِ فَقَالَ اِذَا لَمْ يُسْكِرْ فَلَا بَأْسَ وَ قَالَ ابْنُ الدَّرَاوَرْدِيُّ سَأَلْنَا عَنْهُ فَقَالُوْا لَا يُسْكِرُ لَا بَأْسَ بِهٖ.

**باب ۱۳۴۱:** شراب د شاتوهم وي. او هغې ته بتع وائي. او معن اووے. ما د انس بن مالک نه د "فقاع" متعلق تپوس اوکۀ، نو هغۀ اووے، هر کله چه څۀ نشه پيدا نۀ کړي، نو څۀ حرج نشته، او ابن دراوردي اووے. مونږ د خلقونه د دے متعلق تپوس اوکۀ، نو هغوي اووے، که نشه رانۀ ولي، نو بيا څۀ حرج نشته.

**۵۴۵**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِتْعِ فَقَالَ كُلُّ شَرَابٍ اَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ.

**۵۴۵**: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن بي بي عائشۓ نه روايت کوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د بتع (د شاتو د شرابو) متعلق تپوس اوشو. نو حضورﷺ اوفرمائيل هر هغه شراب چه نشه راولي حرام دي.

**۵۴۶**: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِتْعِ وَ هُوَ نَبِيْذُ الْعَسَلِ وَ كَانَ اَهْلُ الْيَمَنِ يَشْرَبُوْنَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ شَرَابٍ اَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَنْتَبِذُوْا فِي

**۵۴۶**: ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، د بي بي عائشۓ قول نقل کوي هغې اوفرمائيل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د بتع (يعني د شاتو د شرابو) متعلق تپوس وُشو. او د يمن خلقو به دا څکل، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هر هغه شراب چه نشه راولي حرام دي. اوزهري نه روايت دے د هغه بيان دے. ماته انس بن مالک بيان اوکۀ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. چه ته مه دُباء کښې اونۀ مزفت کښې نبيذ (شراب) جوړوه

الدُّبَّآءِ وَ لَا فِي الْمُزَفَّتِ وَ كَانَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَلْحَقُ مَعَهَا الْحَنْتَمَ وَالنَّقِيْرَ.

او حضرت ابوهريرهؓ دے سره حنتم او نقير هم يوځائے بيان کولو.

ف: (١) دُباء (٢) مزفت (٣) حنتم (۴) نقير دا ټول قسما قسم لوښي وو چه شراب به په کښې جوړولے او استعمالولے شو. نو ددے ټولو د استعمال نه منع راغلهٔ.

باب ٢٣٤٢: مَا جَاءَ نَبِيُّ اَنَّ الْخَمْرَ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ مِنَ الشَّرَابِ.

باب ٢٣٤٢: د دے امر بيان چه خمر د څکلو هغه څيز دے، چه عقل مخمور کړي.

ف: مخمور: بے خوده، نشه، بے هوشه، بے عقله، ضائع، بيهوده.

٥٣٧: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ التَّيْمِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ خَطَبَ عُمَرُ عَلٰى مِنْبَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّهُ قَدْ نَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ وَ هِيَ مِنْ خَمْسَةِ اَشْيَآءَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالْعَسَلِ وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ وَ ثَلٰثٌ وَّ دِدْتُّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُفَارِقْنَا حَتّٰى يَعْهَدَ اِلَيْنَا عَهْدًا اَلْجَدُّ وَالْكَلَالَةُ وَ اَبْوَابٌ مِّنْ اَبْوَابِ الرِّبٰو قَالَ قُلْتُ يَا اَبَا عَمْرٍو فَشَيْءٌ يُصْنَعُ بِالسِّنْدِ مِنَ الرُّزِّ قَالَ ذَاكَ لَمْ يَكُنْ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ عَلٰى عَهْدِ عُمَرَ وَ قَالَ حَجَّاجٌ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ مَكَانَ الْعِنَبِ الزَّبِيْبُ.

٥٣٧: احمد بن رجاء. يحيٰي. ابو حيان تيمي. شعبي. ابن عمرؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. حضرت عمرؓ د نبي صلي الله عليه وسلّم په منبر خطبه کښې اوفرمائيل، د شرابو حرام کيدل نازل شوے دي، او هغه د پنځو څيزونو نه جوړيږي (١) انګور (٢) قجورے (٣) غنم (۴) وربشے (۵) شات. او خمر هغه دي چه عقل بے خوده کړي. او درے خبرے داسے دي، د هغے متعلق ما غوښتل چه حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ نه جُدا نهٔ وے، خو پورے چه هغه نے مونږ ته نښے بيان کړے نهٔ وے (١) د نيکه (دادا) ترکه (٢) د کلاله بيان (٣) د سُود مسائل. د ابو حيان بيان دے. ما شعبي ته بيان اوکه، چه اے ابو عمرو، سند ه کښې څهٔ د ورجو (چاولوں) نه جوړيږي نو هغهٔ اووے، دا د نبي صلي الله عليه وسلّم زمانه کښې نهٔ وو. يا دائے اووے، چه د حضرت عمرؓ زمانه کښې نهٔ وو. حجاج په واسطه د حماد، ابو حيان د: عنب: ځائے د زبيب لفظ روايت کړے دے.

٥٣٨: حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ

٥٣٨: حفص بن عمر. عبدالله بن

حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِى السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ قَالَ اَلْخَمْرُ يُصْنَعُ مِنْ خَمْسَةٍ مِنَ الزَّبِيْبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالْعَسَلِ.

ابي سفر. شعبي. ابن عمرؓ. حضرت عمرؓ نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل، شراب ذ پنځو څيزونو نه جوړيږي (۱) منقي (۲) قجورے (۳) غنم (۴) وربشے (۵) شات.

باب ۳۴۳: مَا جَاءَ فِيْمَنْ يَسْتَحِلُّ الْخَمْرَ وَ يُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ. وَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ يَزِيْدَ بْنِ جَابِرٍ حَدَّثَنَا عَطِيَّةُ بْنُ قَيْسٍ الْكَلَابِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ غَنْمٍ الْاَشْعَرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عَامِرٍ اَوْ اَبُوْ مَالِكٍ الْاَشْعَرِيُّ وَاللّٰهِ مَا كَذَبَنِيْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَيَكُوْنَنَّ مِنْ اُمَّتِيْ اَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّوْنَ الْحِرَّ وَالْحَرِيْرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ وَ لَيَنْزِلَنَّ اَقْوَامٌ اِلٰى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوْحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ يَأْتِيْهِمْ يَعْنِى الْفَقِيْرَ لِحَاجَةٍ فَيَقُوْلُوْا ارْجِعْ اِلَيْنَا غَدًا فَيُبَيِّتُهُمُ اللّٰهُ وَ يَضَعُ الْعَلَمَ وَ يَمْسَخُ اٰخَرِيْنَ قِرَدَةً وَ خَنَازِيْرَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ.

باب ۳۴۳: ذ دے امر بيان، چه يو سړے شراب حلال ګنړي، او ذ هغے څۀ بل نوم كيږدي. او هشام بن عمار، اووے، مونږ ته صدقه بن خالد په واسطه ذ عبدالرحمٰن بن يزيد بن جابر. عطيه بن قيس كلابي. عبدالرحمٰن بن غنم اشعري. ابو عامر يا ابو مالک اشعري بيان كوي. او په خدائے چه هغه دروغ نه وائي، هغۀ ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، عنقريب ځما امت كښ به داسے خلق پيدا شي، چه زنا، ريښم، شراب او باجے به حلال ګنړي. او بعضے قومونه به داسے وي. چه د غر برابر به اوسيږي. او مابنام چه خپلے رمے (ريوړ) سره واپس كيږي. هغه وخت به هغوي ته فقير ذ څۀ ضرورت په بنا راشي، نو هغوي به ورته وائي چه صباله سحر مونږ پله راشه نو الله تعالٰي به هغوي د شپے هلاک كړي. او غر به راوغرځوي. او باقي به د بيزو او خنزير شكل كښ مسخ كړي. او قيامته پورے به دغه حال كښ وي.

باب ۳۴۴: اَلْاِنْتِبَاذِ فِى الْاَوْعِيَةِ وَالتَّوْرِ.

باب ۳۴۴: لوښو او د لرګي پيالو كښ ذ نبيذ جوړولو بيان.

ف: نبيذ د وربشو شراب، د خُرما او وربشو شربت.

۵۴۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ

۵۴۹: قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن.

حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلًا يَقُوْلُ أَتَى أَبُوْ أُسَيْدِ السَّاعِدِيُّ فَدَعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عُرْسِهِ فَكَانَتِ امْرَأَتُهُ خَادِمُهُمْ وَ هِيَ الْعَرُوْسُ قَالَ أَتَدْرُوْنَ مَا سَقَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْقَعَتْ لَهُ تَمَرَاتٍ مِنَ اللَّيْلِ فِيْ تَوْرٍ.

ابو حازم نه روایت کوي د هغهٔ بیان دے. ما دَ سهل نه واوریدل. ابو اسید ساعدي راغے. او حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته ئے دَ ولیمے دعوت ورکهٔ نو دَ هغهٔ ښځے یعني تازه ناوے دَ هغے خلقو خدمت کولو. هغے اووے تاسو ته پته ده چه ما په نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم څه څیز اوڅکولو، ما خو قجورے دَ شپے نه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ پاره یوے پیالے کښې خوشتے کړے وے.

باب ۳۴۵: تَرْخِيْصِ النَّبِيِّ صَلَّى للّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَوْعِيَةِ وَالظُّرُوْفِ بَعْدَ النَّهْيِ.

باب ۳۴۵: دَ لوښو او ظروف دَ استعمال دَ ممانعت نه پس دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اجازت ورکول.

۵۵۰: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَبُوْ أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الظُّرُوْفِ فَقَالَتِ الْأَنْصَارُ إِنَّهُ لَا بُدَّ لَنَا مِنْهَا قَالَ فَلَا إِذًا وَّ قَالَ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِهٰذَا وَ قَالَ فِيْهِ لَمَّا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْأَوْعِيَةِ.

۵۵۰: یوسف بن موسٰي. محمد بن عبداللّٰه. ابو احمد زبیري. سفیان. منصور. سالم. جابر نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ بعضے لوښو دَ استعمال نه منع اوفرمائیله. خلقو عرض اوکهٔ، مونږ دَ پاره خو دَ دے نه سِوا چارهٔ کار نشته، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. بیا دے صورت کښې دا ممانعت نشته. او خلیفه اووے مونږ دَ یحیٰي بن سعید نه په واسطه دَ سفیان منصور، سالم بن ابي الجعد دا حدیث روایت کهٔ.

۵۵۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِهٰذَا وَ قَالَ فِيْهِ لَمَّا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْأَوْعِيَةِ.

۵۵۱: عبداللّٰه بن محمد. سفیان نه دا حدیث روایت کهٔ. او هغے کښې ئے بیان اوکهٔ، چه کوم وخت حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ بعضے لوښو نه منع اوفرمائیله.

۵۵۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ اَبِيْ مُسْلِمٍ الْاَحْوَلِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ عِيَاضٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ لَمَّا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ كُلُّ النَّاسِ يَجِدُ سِقَآءً فَرَخَّصَ لَهُمْ فِي الْجَرِّ غَيْرَ الْمُزَفَّتِ.

۵۵۲: علي بن عبدالله. سفيان. سليمان بن مسلم احول. مجاهد. ابو عياض. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، كوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ بعضے لوښو نه منع اوفرمائيله[۱] چا حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوكهٔ، مونږ كښې هر يو سره مشک نشته، نو حضورؐ ذَ منكوټې ذَ استعمال اجازت وركهٔ، چه مزفت نهٔ وي.

۱. ددے حديث ذَ راوي سفيان بن عيينه اكثرو شاګردانو د "سقياه" (مشک) په ځائے ذَ "اَوعيه" (لوښي) د لفظ روايت كړے دے او همدا روايت صحيح دے ولے چه حضور اكرمؐ د مشكو د استعمال چرے ممانعت نه وو كړے بلكه هغوئ د هغه لوښو استعمالولو ممانعت كړے وو كومو كښے به چه عربو شراب جوړول. دا خاص قسمه لوښي وو كومو كښے به چه شراب زر تياريدل. كله چه د شرابو حُرمت نازل شو نو ابتداءً د دغه لوښو د استعمال هم ممانعت اوكړے شو ليكن روستو بيا اجازت وركړے شو. شراب د عربو په ګوټي كښے پراته وو، دا عادت د جرړے او بيخ نه ويستلو د پاره په ابتدا كښے زياته سختي اوكړے شوه او هغه لوښي هم د مخے لرے كړے شو كومو سره چه د شرابو ياد تازه كيدلو.

۵۵۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَلِيٍّ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْمُزَفَّتِ.

۵۵۳: مسدد. يحيي. سليمان. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. حضرت عليؓ نه روايت كوي ذَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم دباء او مزفت نه منع فرمائيلے ده.

ف: دباء او مزفت: د شرابو لوښي چه شراب به په كښې جوړيدل او استعماليدل.

۵۵۴: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ بِهٰذَا.

۵۵۴: عثمان. جرير. اعمش نه دا حديث روايت كړے دے.

۵۵۵: حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ قُلْتُ لِلْاَسْوَدِ هَلْ سَاَلْتَ عَآئِشَةَ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ عَمَّا يُكْرَهُ اَنْ يُّنْتَبَذَ فِيْهِ

۵۵۵: عثمان. جرير. منصور. ابراهيم نه روايت كوي. ما اسود نه تپوس اوكهٔ. آيا تا ذَ اُم المؤمنين بي بي عائشےؓ نه ذَ هغے څيز متعلق تپوس كړے دے. چه هغے كښې نبيذ جوړول مكروه دي. هغهٔ اووے، او. ما تپوس

فَقَالَ نَعَمْ قُلْتُ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ عَمَّا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُنْتَبَذَ فِيْهِ قَالَتْ نَهَانَا فِيْ ذٰلِكَ اَهْلَ الْبَيْتِ اَنْ نَّنْتَبِذَ فِي الدُّبَّآءِ وَالْمُزَفَّتِ قُلْتُ اَمَا ذَكَرْتَ الْجَرَّ وَ الْحَنْتَمَ قَالَ اِنَّمَا اُحَدِّثُكَ مَا سَمِعْتُ اَفَاُحَدِّثُكَ مَالَمْ اَسْمَعْ.

او كړه' اے ام المؤمنين' كوم څيز كښې د نبيذ جوړولو نه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم منع فرمائيلے ده' هغې اووے' مونږ اهل بيت دباء او مزفت (يو و قسم لوښو) كښې د نبيذ جوړولو نه منع اوفرمائيله. ما تپوس او كړه' آيا بي بي عائشےؓ د' جر او حنتم هم ذكر كړے دے. هغه اووے' زۀ تاته هغه بيان كوم چه ما آوريدلے دي. آيا هغه هم بيان كړم چه مانه دي آوريدلے.

۵۵۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُالْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَرِّ الْاَخْضَرِ قُلْتُ اَنَشْرَبُ فِي الْاَبْيَضِ قَالَ لَا.

۵۵۶: موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. شيباني. عبداللّٰه بن ابي اوفي نه روايت كوي' هغه اووے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د شين منكوټي (چه شراب به په كښې جوړولے شو) منع فرمائيلے ده. ما تپوس او كړه' آيا زۀ سپين منګوټے د څكلو د پاره استعمال كړم' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' نه.

باب ۳۴۶: نَقِيْعِ التَّمْرِ مَا لَمْ يُسْكِرْ.

باب ۳۴۶: د قجورو د رس بيان' څۀ وخته پورے چه نشته پيدا نۀ كړي.

۵۵۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقَارِيُّ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ اَنَّ اَبَا اُسَيْدِ السَّاعِدِيَّ دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُرْسِهٖ فَكَانَتِ امْرَاَتُهٗ خَادِمَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّهِيَ الْعَرُوْسُ فَقَالَتْ اَتَدْرُوْنَ مَا اَنْقَعْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْقَعْتُ لَهٗ تَمَرَاتٍ مِّنَ اللَّيْلِ فِيْ تَوْرٍ.

۵۵۷: يحيٰي بن بكير. يعقوب بن عبدالرحمٰن قاري. ابو حازم. سهل بن سعد. ابو اسيد ساعدي نه روايت كوي' هغۀ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له د وليمے دعوت وركړه' او د هغۀ ښځه چه تازه ناوے وه' هغه وخت ئے (د ميلمنو) خدمت كولو' هغې اووے' اُووايي' چه ما په حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د څۀ څيز عرق اوڅكول' ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د پاره د شپے د لركي پيالے كښې څو قجورے خوشتے كړے وے.

باب ۳۴۷: الْبَاذِقِ وَ مَنْ

باب ۳۴۷: شراب باذق او د هغے خلقو بيان'

نَهٰى عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ مِّنَ الْاَشْرِبَةِ وَرَاٰى عُمَرُ وَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ وَ مُعَاذُ شُرْبَ الطِّلَاءِ عَلَى الثُّلُثِ وَ شَرِبَ الْبَرَاءُ وَ وَ اَبُوْ جُحَيْفَةَ عَلَى النِّصْفِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَشْرَبُ الْعَصِيْرَ مَادَامَ طَرِيًّا وَ قَالَ عُمَرُ وَجَدْتُ مِنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ رِيْحَ شَرَابٍ وَ اَنَا سَائِلٌ عَنْهُ فَاِنْ كَانَ يُسْكِرُ جَلَدْتُهٗ.

چه هغوي ذَ هر نشته راوستونکي څيز ذَ څکلو نه منع کړے ده. او عمرؓ او ابو عبيده او معاذ پخ شے دريمه حصه پاتے شوے شراب څکل جائز اوګنړلؒ او براء او ابو جحيفه پخ شوے نصف پاتے شوے شراب اوڅکل. او ابن عباسؓ اوفرمائيل چه عرق څکيے' څۀ وخته پورے چه تازه وي. او حضرت عمرؓ اوفرمائيل' زۀ ذَ عبيدالله ذَ خولے نه ذَ شرابو بُوي محسوسوم (يعني ماله ذَ هغۀ ذَ خولے نه ذَ شرابو بوي راځي) زۀ به ذَ دے متعلق ذَ هغۀ نه تپوس کوم' که هغه نشه آور وي' نو زۀ به هغه په کوړه اووهم.

۱. کله چه د يو‌ے ميوے وغيره شيره دومره پخه کړے شي چه د هغے صرف دريمه حصه باقي پاتے شي نو هغه خرابيږي هم نا' او نۀ په هغے کښے نشه پيدا کيږي' په روايت کښے هم همدا مراد دے.

۵۵۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِى الْجُوَيْرِيَةِ قَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ الْبَاذِقِ فَقَالَ سَبَقَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْبَاذِقَ فَمَا اَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ قَالَ الشَّرَابُ الْحَلَالُ الطَّيِّبُ قَالَ لَيْسَ بَعْدَ الْحَلَالِ الطَّيِّبِ اِلَّا الْحَرَامُ الْخَبِيْثُ.

۵۵۸: محمد بن کثير. ابو سفيان. ابوالجوريه نه روايت کوي. ما ذَ ابن عباسؓ نه ذَ بازق (شرابو) متعلق تپوس اوکۀ' نو هغه اووے چه بازق ذَ مخکښې نه حضور صلي الله عليه وسلّم حرام کړځولے دي. په دے وجه کوم څيز چه نشه پيدا کړي هغه حرام دے. ما اووے' شراب چه حلال طيب دي' هغۀ اوفرمائيل' ذَ حلال طيب نه پس حرام خبيث دي.

۵۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِىْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَ الْعَسَلَ.

۵۵۹: عبدالله بن ابي شيبه. ابو اسامه. هشام بن عروه. ببي ببي عائشےؓ نه روايت کوي. د هغے بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم به خوږ څيز او شات خوښول.

باب ۳۴۸: مَنْ رَاٰى اَنْ

باب ۳۴۸: د هغے خلقو بيان' چه هغوي کچه

لَا يُخْلَطَ الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ إِذَا كَانَ مُسْكِرًا وَ أَنْ لَا يُجْعَلَ إِدَامَيْنِ فِيْ إِدَامٍ.

او پخے قجورے يوځائے كولو سره هر كله چه هغه نشه پيدا كړي، جائز نه دي ګڼړلے. او دا چه ذ دوړ تركارونه دے يو تركاري نه جوړوي[۱].

۱. ددے مخالفت محض د سدباب د ذريعے په طور دے، كه چرے دوه تركاريانے په يو كښے ګډے كړے شي او كيښودے شي نو زر خرابيږي.

۵٦٠: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنِّيْ لَأَسْقِيْ أَبَا طَلْحَةَ وَ أَبَا دُجَانَةَ وَ سُهَيْلَ بْنَ الْبَيْضَاءِ خَلِيْطَ بُسْرٍ وَّ تَمْرٍ إِذْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ فَقَذَفْتُهَا وَ أَنَا سَاقِيْهِمْ وَ أَصْغَرُهُمْ وَ إِنَّا نَعُدُّهَا يَوْمَئِذٍ الْخَمْرَ وَ قَالَ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ سَمِعَ أَنَسًا.

۵٦٠: مسلم. هشام. قتاده. انس نه روايت كوي. چه ما ابو طلحه او ابو دجانه او سهيل بن بيضاء باندے ذ كجه او پخو قجورو يوځائے كړے شراب څكول. عين هغه وخت شراب حرام كړے شو. نو ما هغه أوغرځول. او زۀ ذ هغوي ساقي او كم عمره ووم. او په هغه ورځ ما هغے خلقو ذ پاره شراب جوړ كړے وو. عمرو بن حارث اووے مونږ ته قتاده بيان اوكۀ. چه هغۀ د انس نه واوريدل.

۵٦١: حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الزَّبِيْبِ وَالتَّمْرِ وَالْبُسْرِ وَالرُّطَبِ.

۵٦١: ابو عاصم. ابن جريج. عطاء. حضرت جابرؓ نه روايت كوي. د هغۀ نه ئے واوريدل. چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ منقي او قجورو او ذ كجه او د پخو قجورو يوځائے كولو نه منع اوفرمائيله.

۵٦٢: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّهْوِ وَالتَّمْرِ وَالزَّبِيْبِ وَلْيُنْبَذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا عَلٰى حِدَةٍ.

۵٦٢: مسلم. هشام. يحيٰي بن ابي بكر. عبداللّٰه بن ابي قتاده. ابو قتاده نه روايت كوي. د هغۀ بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ كجه او پخو قجورو، او قجورو او منقي يوځائے كولو نه منع فرمائيلے ده. او دے كښں د هر يو نبيذ جُدا جوړول پكار دي.

## بَابٌ ٣٤٩: شُرْبِ اللَّبَنِ. وَ

## باب ٣٤٩: ذ پيو څكلو بيان. او ذ اللّٰه

قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَّ دَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشّٰرِبِيْنَ.

تعالي قول: مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَّ دَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سائغا لِلشَّارِبِيْنَ.

۵٦۳: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَّ قَدَحِ خَمْرٍ.

۵٦۳: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ته ذَ معراج په شپه يوه پيالے ذَ پيو او يوه پيالے ذَ شرابو راوړلے شوه.

۵٦۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ سَمِعَ سُفْيَانَ اَخْبَرَنَا سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ اَنَّهٗ سَمِعَ عُمَيْرًا مَوْلٰى اُمِّ الْفَضْلِ يُحَدِّثُ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ قَالَتْ شَكَّ النَّاسُ فِيْ صِيَامِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ فَاَرْسَلْتُ اِلَيْهِ بِاِنَآءٍ فِيْهِ لَبَنٌ فَشَرِبَ فَكَانَ سُفْيَانُ رُبَّمَا قَالَ شَكَّ النَّاسُ فِيْ صِيَامِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ فَاَرْسَلَتْ اِلَيْهِ اُمُّ الْفَضْلِ فَاِذَا وَقَفَ عَلَيْهِ قَالَ هُوَ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ.

۵٦۴: حميدي. سفيان. سالم. ابوالنضر. عمير. (ذَ اُم فضل مولٰي) اُم فضل نه روايت كوي، ذَ عرفه په ورځ خلقوته ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ روژے متعلق شک شولو نو، ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته يو لوښے اوليږلو، هغے کښ پئے وو، حضور صلي الله عليه وسلّم هغه اوڅکل، او سفيان به اکثر وئيلے چه خلقو ته ذَ عرفے په ورځ ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ روژے متعلق شک شولو. نو ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ اُم فضل پئے اوليږل. هغه دا مرفوعاً روايت كه (چه ذَ هغه نه تپوس اوشو) نو وئيلے، اُم فضل نه مرفوعاً روايت دے.

۵٦۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ وَّ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَآءَ اَبُوْ حُمَيْدٍ بِقَدَحٍ مِّنْ لَّبَنٍ مِّنَ النَّقِيْعِ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا خَمَّرْتَهٗ وَلَوْ اَنْ

۵٦۵: قتيبه. جرير. اعمش. ابو صالح او ابوسفيان. جابر بن عبدالله نه روايت كوي ذَ هغه بيان دے، ابو حميد د نقيع نه ذَ پيؤ يوه پيالے راوړه حضور صلي الله عليه وسلّم هغه ته اوفرمائيل، چه دا دے پټه کړے ولے راونۀ ړله، اګر که يو لرګے دے، هغے سره ئے پټول پکار وو (ڈھانک لیناچاہئے

تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُوْدًا.

(تها).

۵٦٦: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ يَذْكُرُ أُرَاهُ عَنْ جَابِرٍ قَالَ جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مِنَ النَّقِيعِ بِإِنَاءِ اللَّبَنِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُوْدًا وَ حَدَّثَنِيْ أَبُو سُفْيَانَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

۵٦٦: عمر بن حفص. اعمش. ابو صالح. شائد جابر نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ابو حميد چه ذ انصارو يو فرد وو، نقيع نه ذ پيو يو لوښے ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر كړلو، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، دا دے پټ كړے (ڈهانپ كر) ولے راؤنهٔ ړلو. اګر كه يو لرګے وے، هغے سره نے پتهول پكار وو. او ماته سفيان، هغهٔ ذ جابر نه او حضرت جابر ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دا روايت كهٔ.

۵٦٧: حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ أَخْبَرَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَّكَّةَ وَ أَبُوْبَكْرٍ مَّعَهُ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ مَّرَرْنَا بِرَاعٍ وَّ قَدْ عَطِشَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ فَحَلَبْتُ كُثْبَةً مِّنْ لَّبَنٍ فِيْ قَدَحٍ فَشَرِبَ حَتّٰى رَضِيْتُ وَ أَتَانَا سُرَاقَةُ بْنُ جُعْشُمٍ عَلٰى فَرَسٍ فَدَعَا عَلَيْهِ فَطَلَبَ إِلَيْهِ سُرَاقَةُ أَنْ لَّا يَدْعُوَ عَلَيْهِ وَ أَنْ يَّرْجِعَ فَفَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵٦٧: محمود. النضر. شعبه. ابو اسحٰق. براء نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ مكے نه تشريف راوړلو. او حضرت ابوبكرؓ ورسره وو. حضرت ابوبكرؓ بيان اوكهٔ، مونږ خلق په يو، ګكهٔ به تير شو او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تږے شو، ذ ابوبكرؓ بيان دے، ما لږ شان پئے يو پيالئے كښ اُولشل. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه اوڅكل، نو، زه (ابوبكرؓ) ډير خوشحاله شوم، او مونږ پله سراقه بن جعشم په اَس سور راغے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغه حق كښ بد دُعا اوكړله، نو هغه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته خواست اوكه، چه هغه ته دے بددُعا نه كوي، او دا چه هغه به واپس شي، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دغسے اوكړل.

۵٦٨: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ

۵٦٨: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي ذ هغه

عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نِعْمَ الصَّدَقَةُ اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً تَغْدُوْ بِاِنَاءٍ وَ تَرُوْحُ بِاٰخَرَ.

**۵۶۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ** الْاَوْزَاعِيِّ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ فَقَالَ اِنَّ لَهُ دَسَمًا وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُفِعْتُ اِلَى السِّدْرَةِ فَاِذَا اَرْبَعَةُ اَنْهَارٍ نَهْرَانِ ظَاهِرَانِ وَ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ فَاَمَّا الظَّاهِرَانِ النِّيْلُ وَالْفُرَاتُ وَ اَمَّا الْبَاطِنَانِ فَنَهْرَانِ فِي الْجَنَّةِ فَاُتِيْتُ بِثَلٰثَةِ اَقْدَاحٍ قَدَحٌ فِيْهِ لَبَنٌ وَّ قَدَحٌ فِيْهِ عَسَلٌ وَّ قَدَحٌ فِيْهِ خَمْرٌ فَاَخَذْتُ الَّذِيْ فِيْهِ اللَّبَنُ فَشَرِبْتُ فَقِيْلَ لِيْ اَصَبْتَ الْفِطْرَةَ اَنْتَ وَ اُمَّتُكَ قَالَ هِشَامٌ وَ سَعِيْدٌ وَّ هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْاَنْهَارِ نَحْوَهُ وَ لَمْ يَذْكُرُوْا ثَلٰثَةَ اَقْدَاحٍ.

بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، بهترينه صدقه ښۀ ښے ورکونکے داسے اُوښه يا ښۀ ښے ورکونکے داسے چيلئے عطا کول دي، چه يو لوښے ۀ سحر ډکوي او يو لوښے ۀ ماښام ډکوي.

**۵۶۹: ابو عاصم. اوزاعي. ابن شهاب.** عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. ابن عباسؓ نه روايت کوي ۀ هغه بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پئے اوڅکل نو خوله مبارکه نے کنګال کړه، او، وے فرمائيل دے کښې غوړوالے وي. او ابراهيم بن طهمان په واسطه ۀ شعبه، قتاده څخه ۀ انس بن مالکؓ قول نقل کۀ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زه سدره طرف ته اوليږلے شوم نو په څلورواړو نهرونو مِ نظر پريوتلو، دوه ظاهري نهرونه وو او دوه باطني. ظاهري خو نيل او فرات دي. او باطني دوه نهرونه چه جنت کښې دي. ماله درے پيالئے راوړے شوے. يوه کښې پئے، دوېمے کښې شات او درېيمے کښې شراب وو. ما هغه پيالئے واخسته، چه هغے کښې پئے وو. او ۀ هغے نه ما اوڅکل، نو ماته اوئيلے شو، چه تا او ستا اُمت فطرت بيامندلو. هشام او سعيد او همام په واسطه ۀ قتاده، انس بن مالکؓ مالک بن صعصعهؓ ۀ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ۀ نهرونو متعلق دغسے روايت کوي. ليکن ۀ درے پيالو ذکر ئے اونۀ کۀ.

## باب ۳۵۰: اِسْتِعْذَابِ الْمَاءِ.

## باب ۳۵۰: ۀ خوږو اُوبو څکلو بيان.

۵۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ كَانَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَكْثَرَ اَنْصَارِيٍّ بِالْمَدِيْنَةِ مَالاً مِنْ نَخْلٍ وَ كَانَ اَحَبُّ مَالِهِ اِلَيْهِ بَيْرُ حَاءٌ وَ كَانَتْ مُسْتَقْبِلَ الْمَسْجِدِ وَ كَانَ مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَ يَشْرَبُ مِنْ مَّاءٍ فِيْهَا طَيِّبٍ قَالَ اَنَسٌ فَلَمَّا نَزَلَتْ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ قَامَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ وَ اِنَّ اَحَبَّ مَالِيْ اِلَيَّ بَيْرُ حَاءَ وَ اِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلّٰهِ اَرْجُوْا بِرَّهَا وَ ذُخْرَهَا عِنْدَ اللّٰهِ تَعَالٰى فَضَعْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حَيْثُ اَرَاكَ اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَخٍ ذٰلِكَ مَالٌ رَابِحٌ اَوْرَايِحٌ شَكَّ عَبْدُ اللّٰهِ وَ قَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ وَ اِنِّيْ اَرٰى اَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَفْعَلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَسَمَهَا اَبُوْ طَلْحَةَ فِيْ اَقَارِبِهٖ وَ فِيْ بَنِيْ عَمِّهٖ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ وَ يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى رَايِحٌ.

۵۷۰: عبدالله بن مسلمه. مالک. اسحق بن عبدالله. انس بن مالکؓ نه روایت کوي هغهٔ وئیلے' ابو طلحه انصار مدینه کښې دَ قجورو دَ اُولو دَ اعتبار نه ډیر زیات مالدار وو. او دَ هغهٔ دَ ټولو نه زیات خوښ مال (بیرحاء) باغ وو' او دَ هغے رُخ جُمات طرف ته وو. حضورؐ به هلته تشریف اوړلو' او دَ هغے خوږے اُوبه به ئے څکلے. دَ حضرت انسؓ بیان دے. کوم وخت چه دا آیت نازل شو: لن تنالوا البر حتّٰی تنفقوا ممّا تحبون: نو ابو طلحه اودریدلو' او عرض ئے اوکهٔ' یا رسول الله' الله تعالٰي فرمائي' تاسو هیڅ کله نیکي نهٔ شے بیامندے' څو پورے چه دَ هغه څیز نه خرچ نهٔ کړئے' چه هغه تاسو زیات خوښوئے او څما زړهٔ پورے (محبوب) مال بیرحاء دے. زهٔ هغهٔ دَ الله تعالٰي په لار کښې خرچ کوم. دَ الله په نزد دَ هغے ثواب (آخرت کښې) دَ جمع کیدو امیدوار یم. په دے وجه یا رسول الله' کوم مصرف کښې چه تاسوّ دا مناسب گنړئے' خرچ ئے کړئے. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' ډیر ښه. دا خو دَ نفع سودا ده' یا دالے اوفرمائیل' چه زیاتیدونکے مال دے (عبدالله ته شک شو' چه دے دواړو کښې حضورؐ څهٔ اوفرمائیل) حضورؐ اوفرمائیل تا چه څهٔ اووے هغه ما واوریدل. لیکن زهٔ مناسب گنړم' چه ته دا خپلو رشته دارانو کښې تقسیم کړئے. ابو طلحه اووے' یا رسول الله زهٔ به هم دغسے اوکړم. نو ابو طلحه هغه باغ دَ خپل دَ ترهٔ خامنو (چچازاد بھائیوں) او رشته دارانو کښې اُوویشلو. او اسمٰعیل او یحیٰي بن یحیٰي دَ رائح لفظ روایت کړلو.

## باب ۱۳۵۱: شُرْبِ اللَّبَنِ

## باب ۱۳۵۱: اُوبو سره دَ پیو گډولو

بِالْمَاءِ.

۵۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّهٗ رَاٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا وَّ اَتٰى دَارَهٗ فَحَلَبْتُ شَاةً فَشِبْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْبِئْرِ فَتَنَاوَلَ الْقَدَحَ فَشَرِبَ وَ عَنْ يَّسَارِهٖ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عَنْ يَّمِيْنِهٖ اَعْرَابِيٌّ فَاَعْطَى الْاَعْرَابِيَّ فَضْلَهٗ ثُمَّ قَالَ الْاَيْمَنُ فَالْاَيْمَنُ.

۵۷۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ مَعَهٗ صَاحِبٌ لَّهٗ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَآءٌ بَاتَ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ فِيْ شَنَّةٍ وَّ اِلَّا كَرَعْنَا قَالَ وَالرَّجُلُ يُحَوِّلُ الْمَآءَ فِيْ حَائِطِهٖ قَالَ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عِنْدِيْ مَآءٌ بَآئِتٌ فَانْطَلَقَ اِلَى الْعَرِيْشِ قَالَ فَانْطَلَقَ بِهِمَا فَسَكَبَ فِيْ قَدَحٍ ثُمَّ حَلَبَ عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ لَّهٗ قَالَ فَشَرِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بيان.

۵۷۱: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. انس بن مالک نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم په پيؤ څکلو اوليدلو. او حضورٌ خما کورته تشريف راوړلو. نو ما چيلئے اُولشله. او دَ کوهي نه مِ اُوبه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ پاره هغے پيؤ کښې ګډے کړے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم پياله اوچته کړه، او پيئے ئے اوڅکل دَ حضورٌ ګس طرف ته ابوبکرؓ او ښي طرف ته يو باندېسے (اعرابي) وو. حضورٌ هغے اعرابي ته خپله جوټه ورکړله. بيائے اوفرمائيل، او دَ ښي بيا دَ هغه دَ ښي طرف واله حق دے.

۵۷۲: عبدالله بن محمد. ابو عامر. فليح بن سليمان. سعيد بن حارث. جابر بن عبداللهؓ نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلّم يو انصاري سړي پله تشريف راوړلو. او حضور صلي الله عليه وسلّم سره دَ حضور صلي الله عليه وسلّم يو ملګرے بل هم وو. هغے انصاري ته رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. آيا تا سره مشک کښې دَ شپے ايښے شوے (باسي) اُوبه شته، کني زه به چرته بل خائے اوڅکم. دَ راوي بيان دے، هغے سړي خپل باغ له اوبه ورکولے. هغه عرض اوکهٔ. يا رسول الله، ما سره باسي اوبه شته. تاسو سپر طرف ته تشريف راوړئے بيا هغوي دواړه هغے سړي سپر (چپر) ته بوتلل يو پيالے کښې ئے اُوبه واچولے، خپله چيلے ئے اولشله. حضور صلي الله عليه وسلّم هغه اوڅکل. حضور صلي الله عليه وسلّم نه پس بياهغے سړي اوڅکل کوم چه حضور صلي الله عليه

ثُمَّ شَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِيْ جَآءَ مَعَهُ.

وسلّم سره وو.

باب ۳۵۲: شَرَابِ الْحَلْوَاءِ وَالْعَسَلِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ لَا يَحِلُّ شُرْبُ بَوْلِ النَّاسِ لِشِدَّةٍ تَنْزِلُ لِاَنَّهُ رِجْسٌ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فِي السَّكَرِ اِنَّ اللّٰهَ لَمْ يَجْعَلْ شِفَاءَ كُمْ فِيْمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ.

باب ۳۵۲: دَ خوږ څيز او شاتو دَ څکلو بيان.

او زهري اووے دَ سړي وارۀ بول څکل د شديد ضرورت په وخت هم حلال نه دي، ځکه چه هغه ناپاک دي اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، ستاسو د پاره پاک څيزونه حلال دي. او ابن مسعود، دَ نشه آور څيزونو متعلق اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي ستاسو شفاء هغے څيز کښ نۀ ده ايښے، چه په تاسو حرام دي.

۵۷۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ الْحَلْوَآءُ وَالْعَسَلُ.

۵۷۳: علي بن عبداللّٰه. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغے بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به خوږ څيز او، شات خوښول.

باب ۳۵۳: الشُّرْبِ قَآئِمًا.

باب ۳۵۳: په ولاړه دَ څکلو بيان.

۵۷۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنِ النَّزَّالِ قَالَ اَتٰى عَلِيٌّ عَلٰى بَابِ الرَّحَبَةِ فَشَرِبَ قَآئِمًا فَقَالَ اِنَّ نَاسًا يَكْرَهُ اَحَدُهُمْ اَنْ يَّشْرَبَ وَهُوَ قَآئِمٌ وَّ اِنِّيْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ كَمَا رَاَيْتُمُوْنِيْ فَعَلْتُ.

۵۷۴: ابو نعيم. مسعر. عبدالملک بن ميسره. نزال نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دے، حضرت عليؓ ته باب الرحبه کښ اُوبه راوړلے شوے، نو هغۀ په ولاړه اوڅکلے، او، وے فرمائيل خلقو کښ بعضے په ولاړه اوبه څکل مکروه ګنړي، او ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په داسے کولو ليدلے دے، څنګه چه تاسو زۀ اوليدم.

۵۷۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ سَمِعْتُ النَّزَّالَ بْنَ سَبْرَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عَلِيٍّ اَنَّهُ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ قَعَدَ فِيْ حَوَائِجِ النَّاسِ فِيْ رَحَبَةِ الْكُوْفَةِ حَتّٰى

۵۷۵: آدم. شعبه. عبدالملک بن ميسره. حضرت عليؓ نه روايت کوي، هغۀ دَ ماسپخين مونځ اوکۀ، بيا دَ خلقو دَ ضروررياتو دَ پاره دَ کوفے دَ جمات په انګړ (صحن) کښ کيناست، تردے چه دَ مازيګر دَ مونځ وخت راغے. بيا اُوبه راوړے شوے،

حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ ثُمَّ اُتِيَ بِمَآءٍ فَشَرِبَ وَ غَسَلَ وَجْهَهُ وَ يَدَيْهِ وَ ذَكَرَ رَاْسَهُ وَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ قَامَ فَشَرِبَ فَضْلَهُ وَهُوَ قَآئِمٌ ثُمَّ قَالَ اِنَّ نَاسًا يَكْرَهُوْنَ الشُّرْبَ قَآئِمًا وَّ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ.

نو هغه اوڅکلے او مخ لاس ئے اووينزل. او شعبه دَ سر او پښو هم ذکر اوکه. بيا اودريدلو. او په ولاړه ولاړه ئے بچ شوے اُوبه اوڅکلے. بيائے اوفرمائيل خلق په ولاړه اُوبه څکل مکروه ګڼړي، حالانکه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دغسے کړے دي، څنګه چه ما اوکړل.

۵۷۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ الْاَحْوَلِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ شَرِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَآئِمًا مِّنْ زَمْزَمَ.

۵۷۶: ابو نعيم. سفيان. عاصم. احول. شعبي. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ زمزم اُوبه په ولاړه اُوڅکلے.

بَاب ٣٥٤: مَنْ شَرِبَ وَ هُوَ وَاقِفٌ عَلٰى بَعِيْرِهٖ.

باب ٣٥٤: په اُوښ دَ سورلي په حالت کښ دَ څکلو بيان.

۵۷۷: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَنَا اَبُو النَّضْرِ عَنْ عُمَيْرٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ اَنَّهَا اَرْسَلَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَّ هُوَ وَاقِفٌ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ فَاَخَذَ بِيَدِهٖ فَشَرِبَهُ. زَادَ مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ عَلٰى بَعِيْرِهٖ.

۵۷۷: مالک بن اسمٰعيل. عبدالعزيز بن ابي سلمه. ابوالنضر. عمير (دَ ابن عباسؓ آزاد کرده غلام) اُم فضل بنت حارث نه روايت کوي، چه اُم فضل دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ دَ پيؤ يو پيالئے اوليږله، داسے حال کښ چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ عرفه ماښام کښ ايسار شوے وو. حضورؐ خپل لاس کښ هغه واخسته، اووے څکله. مالک په واسطه دَ ابوالنضر دومره نور الفاظ زيات کړل، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په اُوښ سور وو.

بَاب ٣٥٥: اَلْاَيْمَنِ فَالْاَيْمَنِ فِي الشُّرْبِ.

باب ٣٥٥: څکلو کښ اول ښي طرف واله، بيا دَ هغه ښي طرف واله مستحق دے.

۵۷۸: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ

۵۷۸: اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم

شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِلَبَنٍ قَدْ شِيْبَ بِمَآءٍ وَّ عَنْ يَمِيْنِهٖ اَعْرَابِيٌّ وَ عَنْ شِمَالِهٖ اَبُوْ بَكْرٍ فَشَرِبَ ثُمَّ اَعْطَى الْاَعْرَابِيَّ وَ قَالَ الْاَيْمَنَ الْاَيْمَنَ.

ته پئے راوړلے شو، هغې كښې اُوبه ګډې شوې وې. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ښي طرف ته يو اعرابي او ګس طرف ته حضرت ابوبكرؓ وو حضورؐ هغه اوڅكل. بيائے هغه اعرابي ته وركړل اووے فرمائيل، اول ښي طرف واله او دَ هغهٔ نه پس دَ هغهٔ ښي طرف واله سړے مستحق دے.

**باب ۳۵۶: هَلْ يَسْتَأْذِنُ الرَّجُلُ مَنْ عَنْ يَمِيْنِهٖ فِي الشُّرْبِ لِيُعْطِيَ الْاَكْبَرَ.**

**باب ۳۵۶:** آيا سړے خپل ښي طرف واله نه اجازت آخستے شي، چه لوئے سړي ته د څكلو دَ پاره وركړي.

**۵۷۹:** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَ مِنْهُ وَ عَنْ يَمِيْنِهٖ غُلَامٌ وَّ عَنْ يَسَارِهِ الْاَشْيَاخُ فَقَالَ لِلْغُلَامِ اَتَأْذَنُ لِيْ اَنْ اُعْطِيَ هٰٓؤُلَآءِ فَقَالَ الْغُلَامُ وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا اُوْثِرُ بِنَصِيْبِيْ مِنْكَ اَحَدًا قَالَ فَتَلَّهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ يَدِهٖ.

**۵۷۹:** اسمٰعيل. مالک. ابو حازم بن دينار. سهل بن سعد نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته دَ څكلو څيز راوړے شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم دَ هغې نه اوڅكل. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ښي طرف ته يو هلک وو او ګس طرف دَ زيات عمر خلق وو. حضور صلي الله عليه وسلّم هغې هلک ته اوفرمائيل، آيا ته اجازت كوے چه دا زهٔ دے (ګس طرف) خلقو ته وركړم هغه اووے، يا رسول الله، په خدائے چه ستاسو دَ طرف نه راكړے شوے خپلے حصے كښې هيڅا له په خپل ځان ترجيح ورنه كړم. دَ سهل بن سعد بيان دے، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ هغه په لاس كښې (هغه دَ څكلو څيز) كيښودلو.

**باب ۳۵۷: اَلْكَرْعِ فِي الْحَوْضِ.**

**باب ۳۵۷:** خولے لګولو سره دَ حوض دَ اُوبو څكلو بيان.

**۵۸۰:** حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ

**۵۸۰:** يحيي بن صالح. فليح بن سليمان. سعيد بن حارث. جابر بن عبدالله نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم يو انصاري سړي ته تشريف يوړلو، او

اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ مَعَهٗ صَاحِبٌ لَّهٗ فَسَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَاحِبُهٗ فَرَدَّ الرَّجُلُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ وَ هِيَ سَاعَةٌ حَارَّةٌ وَّهُوَ يُحَوِّلُ فِيْ حَائِطٍ لَّهٗ يَعْنِي الْمَآءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَآءٌ بَاتَ فِيْ شَنَّةٍ وَّ اِلَّا كَرَعْنَا وَالرَّجُلُ يُحَوِّلُ الْمَآءَ فِيْ حَائِطٍ لَهٗ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عِنْدِيْ مَآءٌ بَاتَ فِيْ شَنَّةٍ فَانْطَلَقَ اِلَى الْعَرِيْشِ فَسَكَبَ فِيْ قَدَحٍ مَآءً ثُمَّ حَلَبَ عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ لَّهٗ فَشَرِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَعَادَ فَشَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِيْ جَآءَ مَعَهٗ.

حضور صلي الله عليه وسلّم سره يو بل ملګرے هم وو. حضور صلي الله عليه وسلّم او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ملګرے هغے انصاري ته سلام او کړلو. هغے سړي دَ سلام جواب ور کړلو. (يعني وَ عليکم السلام ئے ورته اُووے) او عرض ئے اوکۀ، يا رسول الله ځما مور پلار دے په تاسو قربان وي. دا خو ډير د ګرمي وخت دے. او هغه خپل باغ اُوبه کولو. نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، که تاسره مشک کښ دَ شپے ايښودلے اُوبه وي، نو رابانددے اُوڅکوه کني چرته بل ځائے به خولے لګولو سره اُوبه اوڅکم. هغے سړي چه باغ اُوبه کولو. عرض ئے اوکۀ يا رسول الله ماسره دَ شپے ايښے اُوبه مشک کښ موجود دي. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ئے يو سَپَر (چهپر) طرف ته بوتلو. او يو پيالے کښ ئے اُوبه واچولے. بيائے خپله چيلے اُولشله نبي صلي الله عليه وسلّم هغه اُوڅکل بيا هغے سړي اُوبه راوړلے. او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ملګري اوڅکلے.

## بَاب ۳۵۸: خِدْمَةِ الصِّغَارِ الْكِبَارَ.

## باب ۳۵۸: دَ وړو دَ لويو دَ خدمت کولو بيان.

۵۸۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ كُنْتُ قَآئِمًا عَلَى الْحَيِّ اَسْقِيْهِمْ عُمُوْمَتِيْ وَ اَنَا اَصْغَرُهُمُ الْفَضِيْخَ فَقِيْلَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ فَقَالَ اَكْفِئْهَا فَكَفَأْنَا قُلْتُ لِاَنَسٍ مَّا شَرَابُهُمْ قَالَ رُطَبٌ وَّ بُسْرٌ فَقَالَ اَبُوْبَكْرِ بْنُ اَنَسٍ وَّ كَانَتْ خَمْرُهُمْ فَلَمْ يُنْكِرْ اَنَسٌ وَّ

۵۸۱: مسدد. معتمر. دَ خپل پلار نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، ما حضرت انس نه واوريدل، چه زۀ قبيلے سره ولاړ ووم، او هغے خلقو ته يعني ترونو (چچاؤں) بانددے مِ فضيخ (يو قسم شراب) څکول، او زۀ هغوي کښ کم عمره ووم. څوک راغے، او ونيلے ئے، چه شراب حرام کړے شو. ځما ترۀ اووے، دا واړوه. نو ما هغه شراب واړول. ما دَ انس نه تپوس اوکۀ، دَ هغوي شراب وو، نو انس انکار اونۀ کړلو. او ماته ځما بعضے

حَدَّثَنِيْ بَعْضُ اَصْحَابِيْ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَتْ خَمْرَهُمْ يَوْمَئِذٍ.

دوستانو اوورے هغوي ذَ انس نه واوريدل' دغه ذَ هغوي شراب وو.

ف: فضيخ: ذَ كجه او پخو قجورو شراب.

## باب ٣٥٩: تَغْطِيَةِ الْاِنَاءِ.

## باب ٣٥٩: په لوښي ذَ سر ايښودو بيان.

٥٨٢: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا رَوْحُ ابْنُ عُبَادَةَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ اَوْ اَمْسَيْتُمْ فَكُفُّوْا صِبْيَانَكُمْ فَاِنَّ الشَّيَاطِيْنَ تَنْتَشِرُ حِيْنَئِذٍ فَاِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِّنَ اللَّيْلِ فَخَلُّوْهُمْ فَاَغْلِقُوا الْاَبْوَابَ وَاذْكُرُوْا اسْمَ اللّٰهِ فَاِنَّ الشَّيْطٰنَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُّغْلَقًا وَّ اَوْكُوْا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ وَ خَمِّرُوْا اٰنِيَتَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ وَ لَوْ اَنْ تَعْرِضُوْا عَلَيْهَا شَيْئًا وَّاَطْفِئُوْا مَصَابِيْحَكُمْ.

٥٨٢: اسحٰق بن منصور. روح بن عباده. ابن جريج. عطاء. جابر بن عبدالله نه روايت كوي' ذَ هغهٔ بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم وخت چه ذَ شپے تيارهٔ (تاريكي) راشي' يا ستاسو مخكښ مابنام شي' نو خپل بچي ذَ بهر وتلو نه منع كوئيے' ځكه چه دغه وخت شيطانان خوارهٔ شي. كوم وخت چه ذَ شپے يوه گهړئ تيره شي' نو هغوي پريږدے' او ذَ اللّٰه نوم واخلئے' دروازے بندے كړئے' ځكه چه شيطانان بندے دروازے نهٔ پرانزي' او ذَ خپل مشك خولے بسم اللّٰه وئيلو سره بندَوئے. او ذَ الله نوم سره (ذَ خوراك ځكاك) په لوښو سر اږدے. اگر كه عرض كښ هيڅ نهٔ وي. او خپلے ډيوے وژنئے (داسے نه چه په اُودو كښ چرته ذَ اُور لږيدو سبب جوړ شي).

٥٨٣: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَطْفِئُوا الْمَصَابِيْحَ اِذَا رَقَدْتُّمْ وَ غَلِّقُوا الْاَبْوَابَ وَ اَوْكُوا الْاَسْقِيَةَ وَ خَمِّرُوا الطَّعَامَ وَالشَّرَابَ وَ اَحْسَبُهُ قَالَ وَلَوْ بِعُوْدٍ تَعْرِضُ عَلَيْهِ.

٥٨٣: موسٰي بن اسماعيل. همام. عطاء. جابر نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم وخت چه تاسو اُودهٔ كيږئے. نو ډيوے وژنئے. او دروازه بندَوئے. او ذَ خوراك ځكاك څيزونو باندے سر اږدئے. ذَ جابر بيان دے. شايد چه حضور صلي الله عليه وسلّم دا هم اوفرمائيل' اگر كه يو لرگے ولے نه وي. چه عرض (په پرتو) كيښودے شي.

## باب ٣٦٠: اِخْتِنَاثِ

## باب ٣٦٠: د مشك ذَ خولے پرانستلو او ذَ

الْاَسْقِيَةِ.

۵۸۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اِخْتِنَاثِ الْاَسْقِيَةِ يَعْنِيْ اَنْ تُكْسَرَ اَفْوَاهُهَا فَيُشْرَبَ مِنْهَا.

۵۸۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنْ اِخْتِنَاثِ الْاَسْقِيَةِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ مَعْمَرٌ اَوْ غَيْرُهُ هُوَ الشُّرْبُ مِنْ اَفْوَاهِهَا.

بَابُ ۱۳۶۱: الشُّرْبِ مِنْ فَمِ السِّقَاءِ.

۵۸۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ قَالَ لَنَا عِكْرِمَةُ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَشْيَاءَ قِصَارٍ حَدَّثَنَا بِهَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فَمِ الْقِرْبَةِ اَوِ السِّقَاءِ وَ اَنْ يَّمْنَعَ جَارَهُ اَنْ يَّغْرِزَ خَشَبَهُ فِيْ دَارِهِ.

۵۸۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

اُوبو څکلو بیان.

۵۸۴: آدم. ابن ابي ذئب. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم دَ اختناث نه منع فرمائيلے ده. او هغه دادے چه دَ مشک خوله پرانستلو سره دے دَ هغے نه اُوبه وغيره څکلے شي.

۵۸۵: محمد بن مقاتل. عبدالله. يونس. زهري. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي هغهٔ وئيلے، ما دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه دَ اختناث نه منع فرمائيل آوريدلے دي. عبدالله دَ معمر يا دَ بل چا قول نقل کړے دے: چه اختناث دَ مشک دَ خولے نه اُوبه څکلو ته وائي.

باب ۱۳۶۱: دَ مشک دَ خولے نه دَ اُوبو څکلو بیان.

۵۸۶: علي بن عبدالله. سفيان. دَ ايوب قول نقل کوي. مونږ ته عکرمه اُووے، آيا زهٔ تاسو ته څو وړے خبرے بيان نهٔ کړم. چه مونږ ته ابوهريره بيان کړے دي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ مشک د خولے نه د اُوبو څکلو ممانعت فرمائيلے دے او د دے نه ئے هم منع فرمائيلے ده. چه خپل گوانډي، ديوال کښ د ميخ ټکوهلو نه منع کړے شي.

۵۸۷: مسدد. اسمٰعيل. ايوب. عکرمه.

اِسْمٰعِيْلُ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ نَهَى النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّشْرَبَ مِنْ فِى السِّقَاءِ.

حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' ذَ هغهٔ بيان دے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ مشک ذَ خولے نه ذَ اُوبو څکلو نه منع فرمائيلے ده.

۵۸۸: حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ نَهَى النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِيْ السِّقَاءِ.

۵۸۸: مسدد. يزيد بن زريع. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. ذَ هغهٔ بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ مشک ذَ خولے نه اُوبه څکل منع فرمائيلے ده.

## باب ۳۶۲: التَّنَفُّسِ فِى الْاِنَاءِ.

## باب ۳۶۲: لوښو كښې ذَ ساه اخستلو بيان.

۵۸۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِىْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا شَرِبَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِى الْاِنَاءِ وَ اِذَا بَالَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَمْسَحْ ذَكَرَهٗ بِيَمِيْنِهٖ وَ اِذَا تَمَسَّحَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِيْنِهٖ.

۵۸۹: ابو نعيم. شيبان. يحيٰي. عبداللّٰه بن قتاده. ابي قتاده. ابو قتاده نه روايت كوي' ذَ هغهٔ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هر كله چه تاسو كښې څوک اُوبه څكي' نو لوښي كښې دے ساه نهٔ آخلي. او كله چه تاسو كښې څوک وارهٔ بول او كړي نو خپل لاس سره دے خپل آله تناسل (ذَكر) نهٔ مَس كوي' او كه مَس كوي ئے هم' نو ښي لاس سره دے نهٔ مَس كوي.

## باب ۳۶۳: الشُّرْبِ بِنَفَسَيْنِ اَوْ ثَلَاثَةٍ

## باب ۳۶۳: دوه يا درے ساه كښې ذَ اُوبو څكلو بيان.

۵۹۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ وَّ اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَا حَدَّثَنَا عَزْرَةُ ابْنُ ثَابِتٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ اَنَسٌ يَتَنَفَّسُ فِى الْاِنَاءِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا وَّ زَعَمَ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ

۵۹۰: ابو عاصم او. ابو نعيم. عزره بن ثابت. ثمامه بن عبداللّٰه. ذَ انسؓ متعلق بيان كوي' هغهٔ به لوښي كښې دوه يا درے ساه سره اُوبه څكلے. او بيان به ئے كولو' چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به ذَ اوبو څكلو په وخت درے خله ساه آخستله (يعني په يو وار به ئے نهٔ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَنَفَّسُ ثَلٰثًا.

څکلے).

**بـاب ۳٦۴: الشُّرْبِ فِيْ اٰنِيَةِ الذَّهَبِ.**

**باب ۳٦۴: دَ سرو زرو په لوښي کښې دَاوبو څکلو بيان.**

**۵۹۱:** حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَآئِنِ فَاسْتَسْقٰى فَاَتَاهُ دِهْقَانٌ بِقَدَحٍ فِضَّةٍ فَرَمَاهُ بِهٖ فَقَالَ اِنِّيْ لَمْ اَرْمِهٖ اِلَّا اَنِّيْ نَهَيْتُهُ فَلَمْ يَنْتَهِ وَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا عَنِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالشُّرْبِ فِيْ اٰنِيَةِ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ وَ قَالَ هُنَّ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَ هِيَ لَكُمْ فِي الْاٰخِرَةِ.

**۵۹۱:** حفص بن عمر. شعبه. حکم. ابن ابي ليلٰي نه روايت کوي، حذيفهؓ مدائن کښې وو، هغهٔ اوبه اوغوښتلے، يو ديهاتي (بانډيسي) هغهٔ له دَ سپينو زرو په لوښي کښې اوبه راوړے، نو حذيفه هغهٔ لوښے اوغرځولو. او ونيلے، چه ما دا نهٔ غورزولو ليکن په دے سبب، چه هغه ما منع کړلو، او بيا هم هغه منع نهٔ شولو. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ دَ حرير، ديباج (دَ ريښمو قسمونه) سرو زرو لوښو کښې دَ څکلو نه منع فرمائيلے ده. او فرمائيلے دي، چه دا څيزونه دُنيا کښې کافرو دَ پاره دي، او ستاسو دَ پاره آخرت کښې دي.

**بـاب ۳٦۵: اٰنِيَةِ الْفِضَّةِ.**

**بـاب ۳٦۵: دَ چاندي (سپينو زرو) دَ لوښي بيان.**

**۵۹۲:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ خَرَجْنَا مَعَ حُذَيْفَةَ وَ ذَكَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَشْرَبُوْا فِيْ اٰنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَا تَلْبَسُوا الْحَرِيْرَ وَ الدِّيْبَاجَ فَاِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَ لَكُمْ فِي الْاٰخِرَةِ.

**۵۹۲:** محمد بن مثنٰي. ابن ابي عدي. ابن عون. مجاهد. ابن ابي ليلٰي نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. مونږ خلق حضرت حُذيفهؓ سره اووتلو. او هغهٔ ذکر اوکهٔ، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي چه دَ سرو سپينو په لوښو کښې مهٔ څکئے او نهٔ حرير او ديباج اغُندئے، ځکه چه دا کافرو دَ پاره دُنيا کښې دي، او ستاسو دَ پاره آخرت کښې دي.

**۵۹۳:** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ ابْنُ اَنَسٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ

**۵۹۳:** اسمٰعيل. مالک بن انس. نافع. زيد بن عبداللّٰه بن عمرؓ. عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن بن ابي بکر صديقؓ. بي بي اُم سلمهؓ دَ نبي صلي

اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الَّذِیْ يَشْرَبُ فِیْ اِنَاءِ الْفِضَّةِ اِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِیْ بَطْنِهٖ نَارَ جَهَنَّمَ.

اللّٰه علیه وسلّم ذ تېر نه روایت کوي. وئیلې حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلې دي. کوم سړے چه ذ چاندي لوښي کښې څکي، ذ هغه خېټه کښې ذ جهنم اُور بړقیږي.

۵۹۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ مُعٰوِيَةَ ابْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَ نَهَانَا عَنْ سَبْعٍ اَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَ اِتِّبَاعِ الْجَنَازَةِ وَ تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَ اِجَابَةِ الدَّاعِیْ وَ اِفْشَاءِ السَّلَامِ وَ نَصْرِ الْمَظْلُوْمِ وَ اِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَ نَهَانَا عَنْ خَوَاتِيْمِ الذَّهَبِ وَ عَنِ الشُّرْبِ فِی الْفِضَّةِ اَوْ قَالَ اٰنِيَةِ الْفِضَّةِ وَ عَنِ الْمَيَاثِرِ وَالْقَسِّيِّ وَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْاِسْتَبْرَقِ.

۵۹۴: موسي بن اسمٰعیل. ابو عوانه. اشعث بن سلیم. ذ ماویه بن سوید بن مقرن. براء بن عازب نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مونږ ته ذ اوو خبرو حکم اوکړۀ. او ذ اوو خبرو نه ئې منع کړو. ذ مریض تپوس، جنازې سره تلل، انتهوش کونکي له جواب ورکول، ذ دعوت ورکونکي دعوت قبلول، سلام له رواج ورکول، ذ مظلوم مدد او ذ قسم خوړونکي ذ قسم پوره کولو، حکم ئې اوکړۀ. او ذ سرو زرو ذ ګوتې. ذ چاندي لوښو کښې (اُوبه وغیره) څکل، او میاثر، او قسي، حریر، دیباج، او استبرق (ریښمینو څیزونو وغیره) ذ اغستولو نه منع فرمائیلې ده.

## بَابٌ ۳۶۶: الشُّرْبِ فِی الْاَقْدَاحِ.

## باب ۳۶۶: پیالو کښې ذ څکلو بیان.

۵۹۵: حَدَّثَنِیْ عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ سَالِمٍ اَبِی النَّضْرِ عَنْ عُمَيْرٍ مَّوْلٰى اُمِّ الْفَضْلِ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ اَنَّهُمْ شَكُّوْا فِیْ صَوْمِ النَّبِيِّ

۵۹۵: عمرو بن عباس. عبدالرحمٰن. سفیان. سالم. ابوالنضر. عمیر (ذ اُم فضل آزاد کرده غلام) اُم فضل نه روایت کوي، خلقو ته ذ عرفې په ورځ ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ روژې نیولو متعلق شک شو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم ته

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ فَبَعَثَ اِلَيْهِ بِقَدَحٍ مِّنْ لَّبَنٍ فَشَرِبَهٗ.

يو پيالے پنے اوليږلے شو، چه هغه حضور صلي الله عليه وسلّم اوڅکل.

**باب ۳۶۷: اَلشُّرْبُ مِنْ قَدَحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اٰنِيَتِهٖ. وَ قَالَ اَبُوْ بُرْدَةَ قَالَ لِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ اَلَا اَسْقِيْكَ فِيْ قَدَحٍ شَرِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ.**

**باب ۳۶۷: دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ پيالے نه دَ څکلو او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ لوښي بيان.** او دَ ابو بردهؓ بيان دے، ماته عبداللّٰه بن سلام اووے آيا زهٔ دے لوښي کښې په تا اونه څکوم، چه هغے کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څکلے دي.

۵۹۶: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍؓ قَالَ ذُكِرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَاَةٌ مِّنَ الْعَرَبِ فَاَمَرَ اَبَا اُسَيْدٍ السَّاعِدِيَّ اَنْ يُّرْسِلَ اِلَيْهَا فَاَرْسَلَ اِلَيْهَا فَقَدِمَتْ فَنَزَلَتْ فِيْ اُجُمِ بَنِيْ سَاعِدَةَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى جَآءَ هَا فَدَخَلَ عَلَيْهَا فَاِذَا امْرَاَةٌ مُّنَكِّسَةٌ رَاْسَهَا فَلَمَّا كَلَّمَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ فَقَالَ قَدْ اَعَذْتُكِ مِنِّيْ فَقَالُوْا اَتَدْرِيْنَ مَنْ هٰذَا قَالَتْ لَا. قَالُوْا هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ لِيَخْطُبَكِ قَالَتْ كُنْتُ اَنَا اَشْقٰى مِنْ ذٰلِكَ فَاَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ حَتّٰى جَلَسَ فِيْ سَقِيْفَةِ بَنِيْ سَاعِدَةَ هُوَ وَ

۵۹۶: سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي. دَ عربو دَ يوے ښځے ذکر اوشو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ابو اسيد ساعدي ته حکم اوکړ، چه هغه راوغواړي، يو سړے ورپسے ورغے، نو هغه ښځه راغله، او دَ بني ساعده مکاناتو کښې ايساره شوه. بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم بهر ته اووتلو، تردے چه هغه ښځے ته اورسيدلو نو وے ليدل، چه هغے ښځے خپل سر ټيټ کړے وو. کوم وخت چه هغے سره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خبرے اترے اوکړے، نو هغے اووے، زهٔ تاسنه دَ اللّٰه پناه غواړم، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ما تاله پناه درکړله. خلقو ترے تپوس اوکړ، آيا تاته معلومه ده، چه دا څوک وو، هغے اووے، نه. خلقو ورته اووے دا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم وو، چه تاله دَ نکاح پيغام سره راغلے وو، هغے ښځے اووے، زهٔ بدبخته يم. بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په هغه ورځ سقيفه بني ساعده ته تشريف راوړلو، تردے چه حضور او ورسره ملګري کيناستل. بيائے اوفرمائيل، اے سهل مونږ باندے اُوبه اوڅکوه، نو ما دا پيالئے هغے خلقو دَ

نصْحَابِهِ ثُمَّ قَالَ اَسْقِنَا يَا سَهْلُ فَخَرَجْتُ لَهُمْ بِهٰذَا الْقَدَحِ فَأَسْقَيْتُهُمْ فِيهِ فَأَخْرَجَ لَنَا سَهْلٌ ذٰلِكَ الْقَدَحَ فَشَرِبْنَا مِنْهُ قَالَ ثُمَّ اسْتَوْهَبَهُ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بَعْدَ ذٰلِكَ فَوَهَبَهُ لَهُ.

پاره راوړله' او هغې کښې مې هغوئ ته اوبه اوڅکولې. د راوي بيان دے. سهل هغه پيالئے راوښکله' او مونږ هم هغې کښې اوبه اوڅکلې. بيا ذ هغه نه پس حضرت عمر بن عبدالعزيز هغه پيالئے ذ هغه نه اوغوښتله' نو هغه ورته هغه پيالے هبه کړله.

۵۹۷: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَاصِمٍ الْاَحْوَلِ قَالَ رَاَيْتُ قَدَحَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَّ كَانَ قَدِ انْصَدَعَ فَسَلْسَلَهُ بِفِضَّةٍ قَالَ وَهُوَ قَدَحٌ جَيِّدٌ عَرِيْضٌ مِّنْ نُّضَارٍ قَالَ قَالَ اَنَسٌ لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْقَدَحِ اَكْثَرَ مِنْ كَذَا وَ كَذَا قَالَ وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ اَنَّهُ كَانَ فِيْهِ حَلْقَةٌ مِنْ حَدِيْدٍ فَاَرَادَ اَنَسٌ اَنْ يَّجْعَلَ مَكَانَهَا حَلْقَةً مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ فِضَّةٍ فَقَالَ لَهُ اَبُوْ طَلْحَةَ لَا تُغَيِّرَنَّ شَيْئًا صَنَعَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَرَكَهُ.

۵۹۷: حسن بن مدرک. يحيي بن حماد. ابو عوانه. عاصم احول نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے' ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پيالئے انس بن مالکؓ سره اوليده' چه چودلے وَه (پھٹ گیا تھا) او ذ چاندي پتيئ پرے ختلے وے. او دا پيالے ډيره ښه او پلنه' نضار (ذ يو قسم لرګي) جوړه شوے وَه' ذ حضرت انسؓ بيان دے ما دے پيالے کښې په نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ دومره دومره خله (يعني ذ ډير خله) نه زيات څکولے دي' او ذ ابن سيرين بيان دے' چه هغې کښې ذ اُوسپنے يوه حلقه وه. انسؓ اوغوښتل' چه ذ هغې په ځائے ذ سرو' يا سپينو حلقه واچوي' نو ابو طلحه ورته اووے' هغه څيز مه بدلوه' کوم چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم جوړ کړے دے. په دے وجه هغه خپله اراده ترک کړله.

بَابٌ ۳٦٨: شُرْبِ الْبَرَكَةِ وَالْمَاءِ الْمُبَارَكِ.

باب ۳٦٨: ذ متبرک اوبو څکلو بيان.

۵۹۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمُ بْنُ اَبِي الْجَعْدِ

۵۹۸: قتيبه بن سعيد. جرير. اعمش. سالم بن ابي الجعد. جابر بن عبدالله نه دا حديث روايت کوي. هغه بيان اوکه ما خپل ځان نبي صلي الله عليه وسلّم سره

عَنۡ جَابِرِ بۡنِ عَبۡدِ اللّٰهِ هٰذَا الۡحَدِيۡثَ قَالَ رَاَيۡتُنِيۡ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَ قَدۡ حَضَرَتِ الۡعَصۡرُ وَ لَيۡسَ مَعَنَا مَآءٌ غَيۡرَ فَضۡلَةٍ فَجُعِلَ فِيۡ اِنَآءٍ فَاُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بِهٖ فَاَدۡخَلَ يَدَهٗ فِيۡهِ وَ فَرَّجَ اَصَابِعَهٗ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلٰى اَهۡلِ الۡوُضُوۡءِ الۡبَرَكَةُ مِنَ اللّٰهِ فَلَقَدۡ رَاَيۡتُ الۡمَاءَ يَتَفَجَّرُ مِنۡ بَيۡنِ اَصَابِعِهٖ فَتَوَضَّأَ النَّاسُ وَ شَرِبُوۡا فَجَعَلۡتُ لَا اٰلُوۡ مَا جَعَلۡتُ فِيۡ بَطۡنِيۡ مِنۡهُ فَعَلِمۡتُ اَنَّهٗ بَرَكَةٌ قُلۡتُ لِجَابِرٍ كَمۡ كُنۡتُمۡ يَوۡمَئِذٍ قَالَ اَلۡفًا وَّ اَرۡبَعَ مِائَةٍ تَابَعَهٗ عَمۡرٌو بۡنُ مُرَّةَ عَنۡ سَالِمٍ عَنۡ جَابِرٍ خَمۡسَ عَشۡرَةَ مِائَةً وَّ تَابَعَهٗ سَعِيۡدُ ابۡنُ الۡمُسَيَّبِ عَنۡ جَابِرٍ.

اوليدو، دَ مازيګر وخت وو. مونږ سره دَ لږ شان بچ شوي اُوبو نه سِوا هيڅ نه وو، هغه اوبه يو، لوښت کښې کېښودې شوې. او دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې راوړلې شوې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل لاس مبارک هغې کښې کېښودلو خپلې ګوتې مبارکې ئې کُشاده کړې او، وې فرمائيل اودس کونکي راشئ. برکت دَ اللّٰه دَ طرف نه دې نو ما اوليدل، چه اُوبه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ګوتو مُبارکو دَ مينځ نه اُوځي. خلقو اودس اوکهٔ. او، اُوبه ئې اُوڅکلې. څومره چه څما خيټه کښې راتلې شوې، ما ډکولو کښې کوتاهي اونهٔ کړله. په دې چه، ماته پته اولګيده، چه دا برکت ناکې اُوبه دي. ما دَ جابر نه تپوس اوکهٔ، په دغه ورځ تاسو څومره کسان وئې، هغهٔ اووې، يَو، زر څلور سوه سړي وو. عمرو، دَ جابر نه دَدې متابعت کښې روايت کړې دې. او حصين او عمرو بن مرّه په واسطه دَ سالم، جابر، دَ پنځلس سوه تعداد روايت کوي. او سعيد بن مسيب دَ جابر نه ددې متابعت کښې روايت اوکه.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

# كتاب المرضٰى

# (دَ بيمارانو بيان)

بَابٌ ۳۶۹: مَا جَآءَ فِيۡ كَفَّارَةِ الۡمَرَضِ. وَ قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مَنۡ يَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا يُّجۡزَ بِهٖ.

باب ۳۶۹: دَ مرض دَ کفاره کيدو متعلق چه کوم حديثونه وارد شوي دي، دَ هغې بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي قول، کوم سړې چه بدي اوکړي، دَ هغې بدله به ورکولې شي.

۵۹۹: حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ الۡحَكَمُ بۡنُ نَافِعٍ اَخۡبَرَنَا شُعَيۡبٌ عَنِ

۵۹۹: ابواليمان. حکم بن نافع. شعيب. زهري. عروه بن زبير. دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم

الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُصِيْبَةٍ تُصِيْبُ الْمُسْلِمَ اِلَّا كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا عَنْهُ حَتَّى الشَّوْكَةُ يُشَاكُهَا.

ذَ تېر' بي بي عائشې نه روايت كوي. ذ هغې بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هيڅ مصيبت مسلمان ته نه رسي' خو اللّٰه تعالي ذ هغې بدله كښې ذ هغه ګناهونه رژوي (معاف كوي) تردې كه آزغې هم ذ هغه جسم كښې ننوځي.

۶۰۰: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ وَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يُصِيْبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَّلَا وَصَبٍ وَّ لَا هَمٍّ وَّلَا حَزَنٍ وَّ لَا اَذًى وَ لَا غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةَ يُشَاكُهَا اِلَّا كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ.

۶۰۰: عبداللّٰه بن محمد. عبدالملک بن عمرو. زبير بن محمد. محمد بن عمرو بن حلحله. عطاء بن يسار. حضرت ابو سعيد خدريؓ او حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' ذ هغه بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' مسلمان ته هيڅ رنځ و غم' مصيبت يا تكليف نۀ رسي' تردې كه څۀ آزغې ئې هم وجود كښې ننوځي' نو اللّٰه تعالي ذ هغې په ذريعه ذ هغۀ ګناهونه رژوي (لرې كوي).

۶۰۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَالْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ تُفَيِّئُهَا الرِّيْحُ مَرَّةً وَّ تَعْدِلُهَا مَرَّةً وَّ مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالْاَرْزَةِ لَا تَزَالُ حَتّٰى يَكُوْنَ انْجِعَافُهَا مَرَّةً وَّاحِدَةً وَّ قَالَ زَكَرِيَّاءُ حَدَّثَنِيْ سَعْدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ كَعْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۶۰۱: مسدد. يحيٰي. سفيان. سعد. عبداللّٰه بن كعب. كعب. روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ذ مؤمن مثال د پټي د بوټو په شان دې. چه هوائې كله اخوا ديخوا كړه وي. او كله ئې نيغوي. او د منافق مثال د صنوبر ذ اُونې په شان دې. چه هغه هميشه قائمه وي. (نيغه ولاړه وي) تردې چه په يو وار د بيخ نه اُوځي. او د ذكريا بيان دې. ما ته سعد په واسطه ذ ابن كعب' هغه د كعب نه او كعب ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت

وَسَلَّمَ.

٦٠٢ : حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ مِنْ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ مِنْ حَيْثُ أَتَتْهَا الرِّيحُ كَفَأَتْهَا فَإِذَا اعْتَدَلَتْ تَكَفَّأُ بِالْبَلَاءِ وَالْفَاجِرُ كَالْأَرْزَةِ صَمَّاءَ مُعْتَدِلَةً حَتَّى يَقْصِمَهَا اللَّهُ إِذَا شَاءَ.

اوكړه.

٦٠٢ : ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. فليح. هلال بن علي (چه د بني عامر بن لوي يو فرد دے) عطاء بن يسار. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' د مسلمانانو مثال د فصل د بوټو په شان دے. چه د كوم طرف نه هوا راشي هغه كږوي (خكته كوي) او كوم وخت چه هوا اُودريږي' نو هغه بوټي نيغ شي. دغه شان د مصيبت نه بچ كيږي. او بدكار د صنوبر دَ اُونے په شان دے. چه نيغه او سخته قائمه وي. تردے چه كله الله تعالي غواړي. نو هغه راوغرځوي.

٦٠٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ أَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ يَسَارٍ أَبَا الْحُبَابِ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ.

٦٠٣ : عبدالله بن يوسف. مالك. محمد بن عبدالله بن عبدالرحمٰن بن ابي صعصعه. سعيد بن يسار. ابوالحباب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله تعالي چه چا سره دَ ښيګړے اراده كوي' نو هغه مصيبت كښ آخته كوي (آزمائش ہے نشان بندگان محترم).

## باب ٣٧٠: شِدَّةِ الْمَرَضِ.

## باب ٣٧٠: دَ مرض دَ شدّت بيان.

٦٠٤ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ ح وَ حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ

٦٠٤ : قبيصه. سفيان. اعمش. (دويم سند) بشر بن محمد. عبدالله. شعبه. اعمش. ابو وائل. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' هغه اووے' ما هيڅوك دَ حضور صلي

مَا رَأَيْتُ اَحَدًا اَشَدَّ عَلَيْهِ الْوَجَعُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اللّٰه عليه وسلّم نه زيات درد كښې آخته نهٔ دے ليدلے.

۵۶۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهٖ وَهُوَ يُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا وَّ قُلْتُ اِنَّكَ لَتُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا قُلْتُ اِنَّ ذَاكَ بِاَنَّ لَكَ اَجْرَيْنِ قَالَ اَجَلْ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُّصِيْبُهٗ اَذًى اِلَّا حَاتَّ اللّٰهُ عَنْهُ خَطَايَاهُ كَمَا تَحَاتُّ وَرَقُ الشَّجَرِ.

۵۶۰۵: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. عبداللّٰه نه روايت كوي، زهٔ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم. دغه وخت دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ډير تيز بُخار وو (تبه وَه) بيا ما عرض اوكهٔ، آيا ستاسو سخته تبه وَه. بيا ما عرض اوكهٔ، شايد دَ دے وجے نه چه تاسو دوَنړه (دوچنده) آجر بيامومئے حضورؐ اوفرمائيل، او هيڅ مسلمان ته څهٔ تكليف نهٔ رسي، خو اللّٰه تعالٰي دَ هغے په ذريعه دَ هغهٔ گناهونه رژوي، څنګه چه دَ اُونے نه پاڼړے رژيږي.

بَابُ ۳۷۱: اَشَدُّ النَّاسِ بَلَاءً اَلْاَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْاَوَّلُ فَالْاَوَّلُ.

باب ۳۷۱: خلقو كښې په انبياؤ دَ ټولو نه زياته سختي كيږي (بيا دَ مرتبے مطابق) درجه په درجه په ټولو كيږي.

۵۶۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُوْعَكُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ تُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا قَالَ اَجَلْ اِنِّيْ اُوْعَكُ كَمَا يُوْعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ قُلْتُ ذٰلِكَ بِاَنَّ لَكَ اَجْرَيْنِ قَالَ اَجَلْ ذٰلِكَ كَذٰلِكَ مَا مِنْ

۵۶۰۶: عبدان. ابو حمزه. اعمش. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. عبداللّٰه نه روايت كوي. زهٔ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم، هغه وخت دَ حضورؐ سخته تبه وَه. ما عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، ستاسو خو سخته تبه ده. حضورؐ اوفرمائيل، او. ماته تاسو كښې دَ دوو سړو برابر تبه ده. ما عرض اوكهٔ، دا په دے سبب چه تاسوته دوچند اجر دركړے شي. حضورؐ اوفرمائيل، هم دغه خبره ده، كوم مسلمان ته چه دَ ازغي ننوتو يا دَ دے نه

مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ اَذًى شَوْكَةٌ فَمَا فَوْقَهَا اِلاَّ كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا سَيِّاٰتِهٖ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا.

زيات څه تکليف رسي، نو الله تعالىٰ ذ هغې په ذريعه ذ هغه ګناهونه رژوي، څنګه چه ذ ونو نه پاڼې رژيږي.

## بَاب ٣٧٢: وُجُوْبِ عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ.

باب ٣٧٢: ذ مريض ذ عيادت (تپوس) ذ واجب کيدو بيان.

٦٠٧: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَ عُوْدُوا الْمَرِيْضَ وَ فُكُّوا الْعَانِيَ.

٦٠٧: قتيبه بن سعيد. ابو عوانه. منصور. ابو وائل. ابو موسى اشعري نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، په اوږو ډوډي خوروے (بھوکوں کوکھانا کھلاؤ). ذ مريض پښتنه کوے. او قيديان آزادوے.

٦٠٨: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَ نَهَانَا عَنْ سَبْعٍ. نَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْاِسْتَبْرَقِ وَ عَنِ الْقَسِّيِّ وَالْمِيْثَرَةِ وَ اَنْ نَّتْبَعَ الْجَنَائِزَ وَ نَعُوْدَ الْمَرِيْضَ وَ نُفْشِيَ السَّلَامَ.

٦٠٨: حفص بن عمر. شعبه. اشعث بن سليم. معاويه بن سويد بن مقرن. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، مونږ خلقوته حضور صلى الله عليه وسلم ذ اوو خبرو حکم اوکړه. او ذ اوو څيزونو نه ئے منع کړو. ذ سرو زرو ګوته، حرير، ديبج، قسي، استبرق نه ئے منع اوفرمائيله. او جنازو پسے تلل، ذ مريض پښتنه کول، او ذ سلام رائج کولو حکم ئے اوکړه (يعني هر يو ته السلام عليکم وئيل خواه واقف وي يا ناواقفه).

## بَاب ٣٧٣: عِيَادَةِ الْمُغْمٰى عَلَيْهِ.

باب ٣٧٣: ذ بيهوشه سړي ذ عيادت بيان.

۶۰۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ مَرِضْتُ مَرَضًا فَاَتَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ هُمَا مَاشِيَانِ فَوَجَدَانِيْ اُغْمِيَ عَلَيَّ فَتَوَضَّاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَبَّ وَضُوْءَهٗ عَلَيَّ فَاَفَقْتُ فَاِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ اَصْنَعُ مَالِيْ كَيْفَ اَقْضِيْ فِيْ مَالِيْ فَلَمْ يُجِبْنِيْ بِشَيْءٍ حَتّٰى نَزَلَتْ اٰيَةُ الْمِيْرَاثِ.

۶۰۹ : عبدالله بن محمد. سفيان. ابن منكدر. جابر بن عبدالله نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، زهٔ يو خل ناروغه شوم، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او ابوبكرؓ خما تپوس له راغلل. دواړه پياده وو. دواړو زهٔ دَ بيهوشي حالت كښې بيامندم، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اودس اوكړهٔ. بيا دَ اودس نه پاتے شوے اوبه ئے په ما او شيندلے. چه هغے سره ماته هوش راغے، ما اوليدل، چه نبي صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړے دے. ما عرض اوكړهٔ يا رسول الله، زهٔ خپل مال سره څهٔ اوكړم، نو حضورؐ خما دَ خبرے هيڅ جواب رانهٔ كړلو، تردے چه دَ ميراث آيت نازل شو.

ف: بيهوشه مريض باندے دَ اودس نه پاتے اوبه شيندل هم ددے حديث په رڼا، سره يو قسم علاج دے.

باب ۳۷۴: مَنْ يُّصْرَعُ مِنَ الرِّيْحِ.

باب ۳۷۴: دَ هغے سړي دَ فضيلت بيان، چه په هغهٔ مركي راځي (او هغه په هغے صابره وي).

۶۱۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عِمْرَانَ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَاءُ بْنُ اَبِيْ رَبَاحٍ قَالَ قَالَ لِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ اَلَا اُرِيْكَ اِمْرَاَةً مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلٰى قَالَ هٰذِهِ الْمَرْاَةُ السَّوْدَاءُ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِنِّيْ اُصْرَعُ وَ اِنِّيْ اَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللّٰهَ لِيْ قَالَ اِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ الْجَنَّةُ وَ اِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ

۶۱۰ : مسدد. يحيٰي. عمران. ابي بكر. عطاء بن ابي رباح بيان كوي. ماته ابن عباسؓ بيان اوكه. آيا زهٔ تاته يوه جنتي ښځه اونهٔ ښائم ما اووے ولے نه. هغه اووے، دا توره ښځه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوه. او عرض ئے اوكهٔ په ما مركي راځي. او هغے كښې خما ستر پرانستے شي. نو تاسوؐ خما حق كښې دُعا اوكړئے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. كه تهٔ صبر كول غواړے (نو صبر اوكه) او ستا دَ پاره جنت دے. اوكه ته غواړے. نو ستا دَ پاره دُعا كوم. چه تهٔ تندرسته (روغه) شے. هغے عرض اوكهٔ. زه

اللّٰهَ اَنْ يُعَافِيَكِ فَقَالَتْ اَصْبِرُ فَقَالَتْ اِنِّيْ اَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ لَّا اَتَكَشَّفَ فَدَعَا لَهَا.

به صبر کوم. بیائے اووے. دے کښې خما ستر پرانستلے شي. نو تاسوّ راته دُعا اوکړئے. چه ستر به نۀ پرانستلے. حضور صلي الله عليه وسلم هغې ته دُعا اوکړله.

۶۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ اَنَّهُ رَاٰى اُمَّ زُفَرَ تِلْكَ اِمْرَاَةٌ طَوِيْلَةٌ سَوْدَاءُ عَلٰى سِتْرِ الْكَعْبَةِ.

۶۱۱: محمد بن مخلد. ابن جريج. عطاء بيان کوي. ما اُم زفر دَ کعبې پردو سره اوليده چه اوږود قدے او تور رنګے وَه.

باب۳۷۵: فَضْلِ مَنْ ذَهَبَ بَصَرُهٗ.

باب۳۷۵: دَ هغې سړي دَ فضيلت بيان، چه دَ هغۀ بينائي (دَ سترګو نظر) لاړ شي.

۶۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَمْرٍو مَّوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ قَالَ اِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِيْ بِحَبِيْبَتَيْهِ فَصَبَرَ عَوَّضْتُهٗ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ يُرِيْدُ عَيْنَيْهِ تَابَعَهٗ اَشْعَثُ ابْنُ جَابِرٍ وَّ اَبُوْ ظِلَالٍ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۱۲: عبدالله بن يوسف. ليث. ابن الهاد. عمرو (دَ مطلب آزاد کړده غلام) انس بن مالکؓ نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دے ما حضور صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي الله تعالىٰ فرمائي، هر کله چه زۀ خپل بنده دَ هغۀ دَ دوو محبوب څيزونو يعني دوو سترګو په وجه آزمائم، او هغه صبر کوي، نو زۀ دَ هغې په عوض کښې هغۀ له جنت ورکوم.

ف: صابره نابينا دَ پاره جنت دے.

باب۳۷۶: عِيَادَةِ النِّسَآءِ الرِّجَالَ وَ عَادَتْ اُمُّ الدَّرْدَآءِ رَجُلًا مِّنْ اَهْلِ الْمَسْجِدِ مِنَ الْاَنْصَارِ.

باب۳۷۶: دَ ښځو دَ سړو دَ عيادت کولو بيان. او اُم درداءؓ دَ يو انصاري سړي دَ بيماري پښتنه اوکړه چه جمات کښې اوسيدلو.

۶۱۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

۶۱۳: قتيبه. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغې بيان دے، نبي

عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وُعِكَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ بِلَالٌ قَالَتْ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِمَا قُلْتُ يَا اَبَتِ كَيْفَ تَجِدُكَ وَ يَا بِلَالُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَتْ وَ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ اِذَا اَخَذَتْهُ الْحُمّٰى يَقُوْلُ ؎

صلي اللّٰه عليه وسلّم چه مدينې ته تشريف راوړلو، نو حضرت ابوبكرؓ او حضرت بلالؓ سخت تبې اونيول، دَ بي بي عائشې بيان دے. زهٔ دواړوله ورغلم، او تپوس م اوكړ، اے بابا جانه، تاسو څنګه ئے. او اے بلال ته څنګه ئے. او حضرت ابوبكرؓ چه به تبې اونيولو، نو وئيل به ئے.

كُلُّ امْرِئٍ مُصَبَّحٌ فِيْ اَهْلِهٖ
وَالْمَوْتُ اَدْنٰى مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ

هر سړے خپل كوروالو كښې صبا كوي
او مرګ دَ هغهٔ دَ پيزار دَ تسمو نه هم زيات قريب دے

وَ كَانَ بِلَالٌ اِذَا اَقْلَعَتْ عَنْهُ يَقُوْلُ ؎

او بلالؓ چه به تبې پريښودلو، نو وئيل به ئے:

اَلَا لَيْتَ شِعْرِيْ هَلْ اَبِيْتَنَّ لَيْلَةً
بِوَادٍ وَّ حَوْلِيْ اِذْخَرٌ وَّ جَلِيْلُ
وَ هَلْ اَرِدَنْ يَوْمًا مِيَاهُ مَجَنَّةٍ
وَ هَلْ يَبْدُوَنْ لِيْ شَامَةٌ وَّ طَفِيْلُ

كاش چه ما شپه تيره كړے وے داسے څنګل كښې
چه څما څواته اذخر او جليل (يو قسم واښهٔ) وے
او زهٔ دَ مجنه په چينه كوزيدے، او آيا زهٔ به
شامه او طفيل (دَ چينو نومونه) اوليدے شم

قَالَتْ عَائِشَةُ فَجِئْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَيْنَا الْمَدِيْنَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ اَوْ اَشَدَّ اَللّٰهُمَّ وَ صَحِّحْهَا وَ بَارِكْ لَنَا فِيْ مُدِّهَا وَ صَاعِهَا وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ.

دَ بي بي عائشې بيان دے. بيا زهٔ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوم. ما حضورؐ ته بيان اوكهٔ، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اے څما اللّٰه، مونږ ته دَ مدينے محبت عطا كړے، څنګه چه څمونږ مكے سره محبت وو، يا دَ هغے نه زيات محبت راكړے. اے څما اللّٰه، دَ دے آب و هوا تندرسته كړے. او مونږ دَ پاره دَ دے مُد، او صاع (پيمانے) كښې بركت واچوے. او دَ دے څائے نه بخار (تبه) منتقل كړے، جحفه ته ئے اورسوے.

## باب ۳۷۷: عِيَادَةِ الصِّبْيَانِ.

## باب ۳۷۷: دَ بچو دَ بيماري دَ پښتنې بيان.

۶۱۴: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَاصِمٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا

۶۱۴: حجاج بن منهال. شعبه. عاصم. ابو عثمان. اسامه بن زيد نه روايت كوي. د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم يوے لور (صاحبزادي) دَ نبي صلي اللّٰه عليه

عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رضي الله عنه أَنَّ ابْنَةً لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِ وَهُوَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ سَعْدٌ وَ أُبَيٌّ تَحْسِبُ أَنَّ ابْنَتِي قَدْ حُضِرَتْ فَاشْهَدْنَا فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا السَّلَامَ وَ يَقُولُ إِنَّ لِلَّهِ مَا أَخَذَ وَ مَا أَعْطَى وَ كُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى فَلْتَحْتَسِبْ وَ لْتَصْبِرْ فَأَرْسَلَتْ تُقْسِمُ عَلَيْهِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَفْسُهُ تَقَعْقَعُ فَفَاضَتْ عَيْنَا النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ مَا هٰذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ هٰذِهِ رَحْمَةٌ وَ ضَعَهَا اللَّهُ فِي قُلُوبِ مَنْ شَاءَ مِنْ عِبَادِهِ وَلَا يَرْحَمُ اللَّهُ مِنْ عِبَادِهِ إِلَّا الرُّحَمَاءَ.

وسلّم خدمت كښې پيغام أوليږلو (او سعدؓ او ابيؓ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره وو) چه خما ذ خوي مرګ قريب دے. نو تاسو مونږ پله تشريف راوړئ. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته سلام اوليږلو، او وے فرمائيل، ذ الله مرضي ده. چه څهٔ غواړي هغه آخلي او، چه څهٔ غواړي هغه ورکوي. په دے وجه صبر کول پکار دي. او د ثواب أميد ساتل پکار دي. بيائے قسم سره ذ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې يو سړے أوليږلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم أودريدلو، او مونږ هم أودريدلو. نبي صلي الله عليه وسلّم هغه بچے خپلے غيږ كښې واخستلو. ذ هغه ساه په ختو وه. ذ نبي صلي الله عليه وسلّم دواړو سترګو كښې أوښكے راغلے. حضور صلي الله عليه وسلّم ته سعدؓ عرض اوكه. يا رسول الله دا څه دي. (يعني ولے ژاړے) حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل دا رحمت دے. الله تعالىٰ چه د كوم بنده په زړه كښې غواړي اچوي، او الله تعالىٰ په خپلو رحم كونكو بنديانو باندے رحم كوي.

## بَابُ ۳۷۸: عِيَادَةِ الْأَعْرَابِ.

## باب ۳۷۸: ذ اعرابو (بانډيسو) ذ عيادت بيان.

۵۱٦۵: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى أَعْرَابِيٍّ يَعُودُهُ قَالَ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ عَلَى مَرِيضٍ يَعُودُهُ فَقَالَ لَهُ لَا بَأْسَ

۵۱٦۵: معلي بن اسد. عبدالعزيز بن مختار. خالد. عكرمه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم ذ يو اعرابي تپوس له ورغے. او نبي صلي الله عليه وسلّم چه به كله ذ يو مريض پښتنے له تلو، نو فرمائيل به ئے (ذ مريض ذ تسلي ذ پاره) هيڅ حرج نشته كه ذ الله خوښه وي، نو تهٔ به ذ ګناهونو نه پاک شے. هغے اعرابي اووے، تاسو وائے چه دا به م ګناهونو نه

طَهُوْرٌ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ قُلْتَ طَهُوْرٌ كَلَّا بَلْ هِيَ حُمّٰى تَفُوْرُ أَوْ تَثُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ تُزِيْرُهُ الْقُبُوْرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَعَمْ إِذًا.

پاک کړي، هيڅ کله نه، بلکه دے تبے خو په يو بوډا حمله کړے ده، او په هغهٔ به دَ قبرونو زيارت اوکړي، نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دغسے سهي (يعني هم دغسے به کيږي).

## بَابٌ ۳۷۹: عِيَادَةِ الْمُشْرِكِ.

## باب ۳۷۹: دَ مشرک دَ عيادت بيان.

۶۱۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ غُلَامًا لِيَهُوْدَ كَانَ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُهُ فَقَالَ أَسْلِمْ فَأَسْلَمَ وَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيْهِ لَمَّا حُضِرَ أَبُوْ طَالِبٍ جَآءَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۱۲: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت. انسؓ نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے، چه د يهود يو غلام به د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کولو. هغه ناروغه شولو. نو نبي صلي الله عليه وسلّم د هغهٔ پُښتنے له ورغے. او وے فرمائيل. چه مسلمان شه. نو هغه مسلمان شولو. او سعيد بن مسيب دَ خپل پلار نه روايت اُوکړهٔ. کوم وخت چه دَ ابو طالب دَ مرګ وخت قريب شو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم هغهٔ له ورغے.

ف: (۱) بل يو حديث کښ راځي چه دَ يو يهودي خوئ به د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کولو. کوم وخت چه هغه هلک ناروغه شو. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ئے پښتنے له ورغے او ورته ئے اووے چه مسلمان شه، نو هغهٔ خپل پلار ته اوکتل. نو پلار ورته اووے. دَ ابوالقاسم خبره اُومنه، نو دَ يهودي هغه خوئے مسلمان شولو.

(۲) دغسے دَ ابو طالب دَ مرګ متعلق يو بل حديث دے. چه حضور صلي الله عليه وسلّم ورغے ورته ئے اووے. چه کلمه: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اُوايه چه زهٔ خدائے نه ستا دَ پاره ښښنه اوغواړم، دغه وخت ابو طالب سره ابوجهل وغيره هم ناست وو. هغوي ورته اووے. آيا ته دَ عبدالمطلب دين پريږدے. نو ابو طالب اووے، زهٔ دَ عبدالمطلب په دين مرم يعني لا اله الّا الله ئے اُونهٔ وئيلے. او د کُفر حالت کښ وفات شو.

(۳) حضور صلي الله عليه وسلّم دَ درے کسانو د کفر حالت کښ په مرګ افسوس کړے دے. (۱) نوشيروان چه عدل ئے کولو خو کفر کښ وفات شو (۲) امرؤ القيس چه دَ عربو ډير ښهٔ شاعر وو، خو کفر کښ وفات شو. او (۳) ابو طالب چه د حضور صلي الله عليه وسلّم ئے ډيره پالنه کړے وَه او کفر کښ وفات شو.

## بَابٌ ۳۸۰: إِذَا عَادَ مَرِيْضًا فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلّٰى بِهِمْ جَمَاعَةً.

## باب ۳۸۰: کله يو سړے دَ مريض عيادت له لاړ شي، او دَ مانځه وخت شي، نو هلته جماعت سره د مونځ کولو بيان.

۶۱۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِىْ اَبِىْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهِ نَاسٌ يَعُوْدُوْنَهٗ فِىْ مَرَضِهٖ فَصَلّٰى بِهِمْ جَالِسًا فَجَعَلُوْا يُصَلُّوْنَ قِيَامًا فَاَشَارَ اِلَيْهِمُ اجْلِسُوْا فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ اِنَّ الْاِمَامَ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَ اِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَ اِنْ صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ الْحُمَيْدِىُّ هٰذَا الْحَدِيْثُ مَنْسُوْخٌ لِاَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰخِرَ مَا صَلّٰى صَلّٰى قَاعِدًا وَّالنَّاسُ خَلْفَهٗ قِيَامٌ.

۶۱۷ : محمد بن مثنٰي. يحيٰي. هشام دَ خپل پلار نه هغهٔ دَ بي بي عائشې نه روايت كوي. د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم بيماري كښې څنې خلق تپوس د پاره راغلل، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي ته په ناسته مونځ وركړلو. ليكن خلقو په ولاړه مونځ كولو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي ته د ناستې اشاره اوكړه. كوم وخت چه دَ مانځه نه فارغ شو. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اُوفرمائيل. امام دې دَ پاره دې چه دَ هغه اقتداء اوكړې شي. كله چه هغه ركوع اوكړي. نو تاسو ركوع كوئې. چه سَر اُوچت كړي، نو تاسوهم سر اُوچت كړئې. كه هغه په ناسته مونځ دركړي. نو تاسوهم په ناسته مونځ كوئې. ابو عبداللّٰه (بخاريؒ) اووې. دَ حميدي قول دې. چه دا حديث منسوخ دې. څكه چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم آخري كوم مونځ كړې دې. هغه ئې په ناسته كړيدې او خلق حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پسې ولاړ وو.

باب ۳۸۱: وَضْعِ الْيَدِ عَلَى الْمَرِيْضِ.

باب ۳۸۱: په مريض دَ لاس ايښودو بيان.

۶۱۸ : حَدَّثَنَا الْمَكِّىُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا الْجُعَيْدُ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ سَعْدٍ اَنَّ اَبَاهَا قَالَ تَشَكَّيْتُ بِمَكَّةَ شَكْوًا شَدِيْدًا فَجَاءَنِىَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِىْ فَقُلْتُ يَا نَبِىَّ اللّٰهِ اِنِّىْ اَتْرُكُ مَالًا وَّ اِنِّىْ لَمْ اَتْرُكْ اِلَّا ابْنَةً وَّاحِدَةً فَاُوْصِىْ

۶۱۸ : مكي بن ابراهيم. جعيد. عائشه بنت سعد نه روايت كوي، د عائشه بنت سعد پلار اُووې. زهٔ مكه كښې ډير سخت ناروغه شوم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خما پُښتنې له راغې. ما عرض اوكه، اې دَ اللّٰه نبيّ، زهٔ مال پريږدم او مرم، او خما صرف يوه لور ده. نو آيا زهٔ دَ دريمې حصې مال وصيت اوكړم. او دريمه حصه پريږدم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، نه. ما عرض اوكه، دَ نيم مال وصيت اُوكړم، او نيم پريږدم. حضور

يَبْلُغُنِيْ مَالِيْ وَ اَتْرُكُ الثُّلُثَ فَقَالَ لَا قُلْتُ فَاُوْصِيْ بِالنِّصْفِ وَ اَتْرُكُ النِّصْفَ قَالَ لَا قُلْتُ فَاُوْصِيْ بِالثُّلُثِ وَ اَتْرُكُ لَهَا الثُّلُثَيْنِ قَالَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ فِيْ جَبْهَتِهٖ ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلٰى وَجْهِيْ وَ بَطْنِيْ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ اشْفِ سَعْدًا وَّ اَتْمِمْ لَهٗ هِجْرَتَهٗ فَمَازِلْتُ اَجِدُ بَرْدَهٗ عَلٰى كَبِدِيْ فَمَا يُخَالُ اِلَيَّ حَتَّى السَّاعَةِ.

صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' نه. ما تپوس او کۀ. ذ يو تهائي وصيت اوکرم. او دوه تهائي ۲/۳ هغې ذ پاره پريږدم. حضور صلي الله عليه وسلّم اُوفرمائيل ذ يو تهائي وصيت کولے شے. او يو تهائي ۱/۳ مال هم ډير زيات دے. حضور صلي الله عليه وسلّم خپل لاس خما په تندي کېښودلو. بيائے خما په مخ او خيټه لاس مبارک راښکلو. او دُعاء ئے راته اوکړله. اے اللّٰه' سعدٌ له شفاء ورکړے او ذ هغۀ هجرت مکمل کړے. زۀ ذ هغې وخت نه تر اوسه پورے خپل جګر کښ د هغې يخوالے محسوسوم.

۵۶۱۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ دَخَلْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُوْعَكُ فَمَسِسْتُهٗ بِيَدِيْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ تُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجَلْ اِنِّيْ اُوْعَكُ كَمَا يُوْعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ فَقُلْتُ ذٰلِكَ اَنَّ لَكَ اَجْرَيْنِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيْبُهٗ اَذًى مَرَضٌ فَمَا سِوَاهُ اِلَّا حَطَّ اللّٰهُ لَهٗ سَيِّئَاتِهٖ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا.

۵۶۱۹: قتيبه. جرير. اعمش. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي' ذ هغۀ بيان دے' زۀ ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم' کوم وخت چه حضورؐ سخت ناروغه وو. ما حضورؐ خپل لاس سره اوکتلو' نو ما عرض اوکۀ' يا رسول اللّٰه' ستاسوّ خو ډيره تيزه تبه ده. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' او. ماته تاسو کښ ذ دوو سړو برابر تبه ده. بيا ما عرض اوکۀ دا (شايد) په دے وجه چه تاسوّ ذ پاره دوچند اجر دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' او. بيا حضورؐ اوفرمائيل کوم مسلمان ته چه څۀ تکليف اورسي' خواه مرض وي يا ذ دے نه علاوه (څه تکليف وي) نو اللّٰه تعالٰي ذ هغۀ ګناهونه رژوي څنګه چه ذ اُونے نه پانړے رژيږي.

## باب ۳۸۲: مَا يُقَالُ لِلْمَرِيْضِ

باب ۳۸۲: مريض ته څۀ ونيل پکار دي' او هغه

وَ مَا يُجِيبُ.

۶۲۰ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرٰهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهٖ فَمَسِسْتُهُ وَهُوَ يُوعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا فَقُلْتُ إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا وَ ذٰلِكَ أَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ قَالَ أَجَلْ وَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى إِلَّا حَاتَّتْ عَنْهُ خَطَايَاهُ كَمَا تَحَاتُّ وَرَقُ الشَّجَرِ.

۶۲۱ : حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى رَجُلٍ يَعُوْدُهُ فَقَالَ لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَقَالَ كَلَّا بَلْ حُمّٰى تَفُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ كَيْمَا تُزِيْرَهُ الْقُبُوْرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَعَمْ إِذًا.

بَاب ۳۸۳ : عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ رَاكِبًا وَّ مَاشِيًا وَّ رِدْفًا عَلَى الْحِمَارِ.

۶۲۲ : حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

دي څهٔ جواب ورکړي.

۶۲۰ : قبيصه. سفيان. اعمش. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. عبدالله نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ بيماري حالت کښې زهٔ ورغلم. حضورؐ له م لاس وروړلو، نو تبه ئے ډيره تيزه وه. ما عرض اوکهٔ، ستاسو تبه خو ډيره تيزه ده، او دا په دې سبب، چه ستاسو دَ پاره دوچند اجر دے. حضورؐ اوفرمائيل، او. او هر مسلمان ته چه څهٔ تکليف رسي، نو دَ هغهٔ ګناه ورسره رژي، څنګه چه دَ اُونو نه پانړے رژي.

۶۲۱ : اسحٰق. خالد بن عبدالله. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ يو سړي تپوس له ورغے، نو وے فرمائيل، هيڅ حرج نشته، انشاء الله دَ ګناهونونه به پاک شے، هغهٔ اووے، هيڅ کله نه، بلکه دا خو داسے تبه ده، چه يو بوډا ته ختلے ده چه به هغهٔ دَ قبرونو زيارت اوکړي (يعني قبرونو ته ئے اورسي) نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل بنهٔ ده، دغسے سهي.

باب ۳۸۳ : په سورلي يا پياده او په خر چا پسے سوريدل او عيادت له دَ تلو بيان.

۶۲۲ : يحيٰي بن بکير. ليث. عقيل ابن شهاب. عروه نه روايت کوي. اسامه بن زيد هغه ته بيان اوکه. چه نبي صلي الله عليه وسلّم په يو خر سور شولو. چه دَ هغے کته (پالان) دَ فدک څادر

وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلٰى حِمَارٍ عَلٰى إِكَافٍ
عَلٰى قَطِيْفَةٍ فَدَكِيَّةٍ وَّ أَرْدَفَ أُسَامَةَ
وَرَآءَهٗ يَعُوْدُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ قَبْلَ وَقْعَةِ
بَدْرٍ فَسَارَ حَتّٰى مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيْهِ عَبْدُ
اللّٰهِ ابْنُ أُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلَ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ
أَنْ يُسْلِمَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ فِي الْمَجْلِسِ
أَخْلَاطٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُشْرِكِيْنَ
عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالْيَهُوْدِ وَ فِي
الْمَجْلِسِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَلَمَّا
غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّآبَّةِ خَمَّرَ
عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيِّ أَنْفَهٗ بِرِدَائِهٖ لَا
تُغَبِّرُوْا عَلَيْنَا فَسَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ وَقَفَ وَ نَزَلَ
فَدَعَاهُمْ إِلَى اللّٰهِ فَقَرَأَ عَلَيْهِمُ
الْقُرْاٰنَ فَقَالَ لَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ أُبَيِّ
يٰٓأَيُّهَا الْمَرْءُ إِنَّهٗ لَا أَحْسَنَ مِمَّا تَقُوْلُ
إِنْ كَانَ حَقًّا فَلَا تُؤْذِنَا بِهٖ فِيْ مَجْلِسِنَا
وَارْجِعْ إِلٰى رَحْلِكَ فَمَنْ جَآءَكَ
فَاقْصُصْ عَلَيْهِ قَالَ ابْنُ رَوَاحَةَ بَلٰى
يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاغْشَنَا بِهٖ فِيْ مَجَالِسِنَا
فَإِنَّا نُحِبُّ ذٰلِكَ فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُوْنَ
وَالْمُشْرِكُوْنَ وَالْيَهُوْدُ حَتّٰى كَادُوْا
يَتَثَاوَرُوْنَ فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتّٰى
سَكَتُوْا فَرَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَآبَّتَهٗ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى

وو. او اسامه ئے خان پسے ورستو کینولے وو. د جنګ بدر نه مخکښې ذ سعد بن عباده عبادت د پاره اووتلو. روان شولو. تردے چه په یو مجلس تیر شولو. هغوي کښې عبدالله بن اُبي بن سلول وو. او دا ذ هغه د مسلمانیدو نه مخکښې واقعه ده. مجلس کښې مسلمانان، مشرکین، بُت پرستان او یهود ګډ وډ ناست وو. مجلس کښې عبدالله بن رواحهؓ هم وو. ذ سورلي ګرد په مجلس پریوتلو. نو عبدالله بن اُبي خپله پُوزه څادر سره پټه کړه. او وئیلے په مونږ ګرد مه آلوخوه. حضور صلي الله علیه وسلّم سلام اوکړ. او ایسار شولو. او ذ سورلي نه کوز شولو. او هغه خلق ئے الله طرف ته اوبلل. او هغوي ته ئے قرآن واورولو. عبدالله بن اُبي حضور صلي الله علیه وسلّم ته اووے. اے سړیه ته چه څه وائے، زۀ هغه بهتر نۀ ګڼړم. که هغه ټیک وي، نو خما مجلس کښې ماته تکلیف مۀ راکوه. خپل کور ته څه او کوم سړے چه ستا کورته درشي هغۀ ته بیان کوه. ابن رواحهؓ اووے، او. یا رسول الله، تاسو مونږ ته خمونږ مجلسونو کښې راځئے. مونږ خلق دا خوښوو، بیا مسلمانانو مشرکانو او یهودیانو کښې کنځل شروع شو، تردے چه هغوي خپلو کښې جنګ ته تیار شو او نبي صلي الله علیه وسلّم هلته ایسار وو. تردے چه کوم وخت هغه خلق خاموش شو نو نبي صلي الله علیه وسلّم په خپله سورلي سور شولو. او سعد بن عباده پله ئے تشریف یوړلو. او هغۀ ته ئے اوفرمائیل، اے

سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ لَهُ اَیْ سَعْدُ اَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ اَبُوْ حُبَابٍ يُرِيْدُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ قَالَ سَعْدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اعْفُ عَنْهُ وَاصْفَحْ فَلَقَدْ اَعْطَاكَ اللّٰهُ مَا اَعْطَاكَ وَلَقَدِ اجْتَمَعَ اَهْلُ هٰذِهِ الْبَحْرَةِ اَنْ يُّتَوِّجُوْهُ فَيُعَصِّبُوْهُ فَلَمَّا رُدَّ ذٰلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِیْ اَعْطَاكَ اللّٰهُ شَرِقَ بِذٰلِكَ فَذٰلِكَ الَّذِیْ فَعَلَ بِهٖ مَا رَاَيْتَ.

سعد، آیا تا نۀ دي آوریدلي، څۀ چه ابو حباب یعني عبدالله بن اُبي اووي. سعدؓ اووے، یا رسول الله هغۀ معاف کړئ، تاسوؐ له الله هغه څیز درکړے دے، چه صرف تاسو له ئے درکړے دے. دَ دے ښار خلق جمع شوي وو، چه دۀ ته تاج پسر کړي، او پټکے ورته اوتړي. هر کله چه دے دَ هغې حق په سبب، چه تاسو ته درکړے شوے دے پاتے راغے، نو دۀ دا اووے، کوم چه تاسوؐ اولیدل.

٦٢٣ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدٍ هُوَ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ جَآءَ نِیَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِیْ لَيْسَ بِرَاكِبِ بَغْلٍ وَّلَا بِرْذَوْنٍ.

٦٢٣ : عمرو بن عباس. عبدالرحمٰن. سفیان. محمد بن منکدر. حضرت جابرؓ نه روایت کوي، دَ هغۀ بیان دے، ماته نبي صلي الله علیه وسلم څما تپوس دَ پاره راغے، داسے حال کښې، چه نۀ په قچره سور وو او نۀ په اَس.

## باب ٣٨٤: قَوْلِ الْمَرِيْضِ اِنِّیْ وَجِعٌ اَوْ وَارَاْسَاهُ اَوِ اشْتَدَّ بِیَ الْوَجَعُ وَ قَوْلِ اَيُّوْبَ عَلَيْهِ السَّلَامُ اَنِّیْ مَسَّنِیَ الضُّرُّ وَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ.

باب ٣٨٤: دَ مریض: اِنِّیْ وَجِعٌ یا وارَاْسَاهُ یا اِشْتَدَّ بِیَ الْوَجَعُ: وئیل، او دَ حضرت ایوب علیه السلام وئیل، چه ماته بیماري لړیدلے دہ. او تۀ ډیر رحم کونکے ئے.

٦٢٤ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ اَبِیْ نَجِيْحٍ وَّ اَيُّوْبَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَيْلٰی عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ مَرَّ بِیَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا اُوْقِدُ تَحْتَ الْقِدْرِ فَقَالَ اَيُؤْذِيْكَ هَوَآمُّ رَاْسِكَ قُلْتُ نَعَمْ فَدَعَا الْحَلَّاقَ فَحَلَقَهٗ ثُمَّ اَمَرَنِیْ بِالْفِدَآءِ.

٦٢٤ : قبیصه. سفیان. ابن ابي نجیح او ایوب. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي لیلٰي. کعب بن عجره نه روایت کوي، څما خوا کښې نبي صلي الله علیه وسلم تیر شولو، او ما دَ کټوئي لاندے اُور بلولو. حضورؐ اوفرمائیل، آیا تاته سپږے تکلیف درکوي. ما وے جي او. حضورؐ نائي راوغبنتلو، هغۀ څما سر، اوخریلو. بیا حضورؐ ماته دَ فدیے ورکولو حکم راکړلو.

۶۲۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى اَبُوْ زَكَرِيَّآءَ اَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ يَّحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَتْ عَآئِشَةُ وَارَأْسَاهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكِ لَوْ كَانَ وَاَنَا حَيٌّ فَاَسْتَغْفِرَ لَكِ وَ اَدْعُوْ لَكِ فَقَالَتْ عَآئِشَةُ وَاثُكْلِيَاهُ وَاللّٰهِ اِنِّي لَاَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِيْ وَلَوْ كَانَ ذَاكَ لَظَلِلْتَ آخِرَ يَوْمِكَ مُعَرِّسًا بِبَعْضِ اَزْوَاجِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ اَنَا وَ ارَأْسَاهُ لَقَدْ هَمَمْتُ اَوْ اَرَدْتُ اَنْ اُرْسِلَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ وَّ ابْنِهٖ وَ اَعْهَدَ اَنْ يَّقُوْلَ الْقَآئِلُوْنَ اَوْ يَتَمَنَّى الْمُتَمَنُّوْنَ ثُمَّ قُلْتُ يَاْبَى اللّٰهُ وَ يَدْفَعُ الْمُؤْمِنُوْنَ اَوْ يَدْفَعُ اللّٰهُ وَ يَاْبَى الْمُؤْمِنُوْنَ.

۶۲۵: يحيى بن يحيى. ابو زكريا. سليمان بن بلال. يحيى بن سعيد. قاسم بن محمد نه روايت كوي. بي بي عائشے ؓ وئيلے: واراساه: خو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل كه چرے تهٔ دے درد كښې مړه شوے، نو زه به تا د پاره استغفار او دعا كوم. بي بي عائشے ؓ عرض او كړو، افسوس، په خدائے چه، خما خو دا خيال دے، چه تاسو خما مرګ خوښوئے، كه داسے اوشو، نو دَ هغے په دوئمه ورځ به تاسو خپلو نورو بيبيانو سره شپه تيروئے. نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، نه، بلكه زه خپله دَ سر درد كښې آخته يم. او ما اوغوښتل، چه ابوبكر ؓ او دَ هغهٔ ځوئے راوغوارم او هغوي ته وصيت اوكړم، چه څوك ويونكے هيڅ اونهٔ وئيلے شي، اونهٔ څوك آواز كونكے دَ دے آرزو اوكړے شي. بيا ما سوچ اوكړو چه الله تعالٰي (دَ بل چا خلافت) نهٔ خوښوي او مؤمنان به هم دا نامنظور نه كړي. يا دائے اوفرمائيل، چه الله تعالٰي به دفع كړي او مسلمان به هم خوښ نهٔ كړي.

۶۲۶: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُوْعَكُ فَمَسِسْتُهٗ فَقُلْتُ اِنَّكَ لَتُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا قَالَ اَجَلْ كَمَا يُوْعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ قَالَ لَكَ اَجْرَانِ قَالَ نَعَمْ مَا مِنْ مُّسْلِمٍ

۶۲۶: موسٰي. عبدالعزيز بن مسلم. سليمان. ابراهيم تيمي. حارث بن سويد. ابن مسعود ؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. زهٔ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم. ما حضور صلي الله عليه وسلّم لاس سره اُوكتلو (لكه چه څوك دَ چا نبض ګوري) او عرض م اوكړو ستاسو خو تيزه تبه ده. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل او. هر مسلمان ته چه څهٔ تكليف اُورسي. خواه هغه مرض وي، يا دَ دے نه علاوه څهٔ بل قسم تكليف وي.

يُصِيبُهُ اَذًى مَرَضٌ فَمَا سِوَاهُ اِلَّا حَطَّ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهٖ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا.

نو اللّٰه تعالٰي د هغهٔ ګناهونه رژوي څنګه چه ذ اُونو نه پاڼړے رژي.

۶۲۷ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ جَآءَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ مِنْ وَّجَعٍ اشْتَدَّ بِيْ زَمَنَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقُلْتُ بَلَغَ مَا تَرٰى وَ اَنَا ذُوْ مَالٍ وَّلَا يَرِثُنِيْ اِلَّا ابْنَةٌ لِّيْ اَفَاَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لَا. قُلْتُ بِالشَّطْرِ قَالَ لَا' قُلْتُ الثُّلُثُ' قَالَ الثُّلُثُ كَثِيْرٌ اَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَآءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَّتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ وَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا اُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتّٰى مَا تَجْعَلُ فِيْ فِيْ امْرَاَتِكَ.

۶۲۷ : موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالعزيز بن عبداللّٰه بن ابي سلمه. زهري. عامر بن سعد ذ خپل پلار نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څما هغه سختے بيماري کښې چه ماته حجة الوداع کښې لړيدلے وه. څما تپوس له راغلے' ما عرض اوکۀ ماته هغه څيز رارسيدلے دے. چه تاسو ئے وينئے او زهٔ مال واله يم. بس يوه لور څما وارثه ده. آيا زه خپل دوه تهائي (۲/۳) مال وقف کړم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' نه. ما عرض اوکۀ نيم (نصف) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' نه ما عرض اوکۀ. تهائي (۱/۳) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. تهائي هم زياته ده. خپل وارثان مالدار پريښودل ستا د پاره ذ دے نه بهتر دي چه هغ ئے محتاج پريږدے' چه ذ خلقونه سوالونه کوي. او ذ اللّٰه ذ رضامندي د پاره چرته چه څه خرچ کړے. د هغے اجر به درکولے شي. تردے چه هغه نوړے (لُقمه) هم چه ته ئے د خپلے بي بي په خوله کښې اچوے.

## بَاب ۳۸۵: قَوْلِ الْمَرِيْضِ قُوْمُوْا عَنِّيْ.

## باب ۳۸۵: ذ مريض دا وئيل' چه څما نه لرے شئے.

۶۲۸ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ لَمَّا حُضِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۶۲۸ : ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر (دوئيم سند) عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے. کوم وخت چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ وفات وخت قريب شو' نو هغه وخت کور کښې ډير خلق وو'

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فِيْهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمَّ اَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوْا بَعْدَهُ فَقَالَ عُمَرُ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غَلَبَ عَلَيْهِ الْوَجَعُ وَ عِنْدَكُمُ الْقُرْاٰنُ حَسْبُنَا كِتَابُ اللّٰهِ فَاخْتَلَفَ اَهْلُ الْبَيْتِ فَاخْتَصَمُوْا مِنْهُمْ مَنْ يَّقُوْلُ قَرِّبُوْا يَكْتُبْ لَكُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدَهُ وَ مِنْهُمْ مَنْ يَّقُوْلُ مَا قَالَ عُمَرُ فَلَمَّا اَكْثَرُوا اللَّغْوَ وَالْاِخْتِلَافَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْمُوْا قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ اِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ اَنْ يَّكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتَابَ مِنْ اِخْتِلَافِهِمْ وَ لَغَطِهِمْ.

هغوي کښې حضرت عمر بن خطابؓ هم وو. حضورؐ اوفرمائيل (کاغذ) راوړئې' زهٔ ستاسو دَ پاره يو تحرير ليکم' چه دَ هغې نه پس ګمراه نهٔ شئې. حضرت عمرؓ اوفرمائيل' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ درد سخت تکليف دې' او تاسو سره قرآن شته. نو مونږ خلقو دَ پاره دَ خدائې کتاب کافي دې. دغه وخت حاضرينو کښې اختلاف پيدا شو. بعضو وئيلې' څهٔ کاغذ راوړئې حضورؐ له ئې ورکړئې' چه څهٔ تحرير درته اوليکي' چه دَ هغې نه پس تاسو ګمراه نهٔ شئې. او بعضو هغه وئيلې' څهٔ چه حضرت عمرؓ وئيلې وو. څهٔ وخت چه زياته جګړه او شور دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خوا کښې جوړ شو. نو حضورؐ اوفرمائيل' دَ دې ځائې نه لرې شئې. عبيداللّٰه' دَ حضرت ابن عباسؓ قول نقل کوي' هغهٔ اوفرمائيل' دَ ټولو نه زيات مصيبت دا پيښ شو' چه خلقو کښې اختلاف او شور دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او دَ حضورؐ دَ وصيت ليکلو مينځ کښې حائل شولو (يعني په دې سبب حضورؐ هغه تحرير اونهٔ ليکلې شو).

## بَاب ۳۸٦: مَنْ ذَهَبَ بِالصَّبِيِّ الْمَرِيْضِ لِيُدْعٰى لَهٗ.

## باب ۳۸٦: مريض بچې بوتلل' چه هغهٔ دَ پاره دَ صحت دُعا اوکړي.

٦۲۹: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ هُوَ ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنِ الْجُعَيْدِ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ يَقُوْلُ ذَهَبَتْ بِيْ خَالَتِيْ اِلٰى

٦۲۹: ابراهيم بن حمزه! حاتم بن اسمٰعيل. جعيد. سائب نه روايت کوي' هغهٔ به وئيلې. خما ترور (خاله) زهٔ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر کړم. او عرض ئې اوکړهٔ' يا رسول اللّٰه' خما

رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ ابْنَ اُخْتِيْ وَجِعٌ فَمَسَحَ رَاْسِيْ وَ دَعَا لِيْ بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوْئِهٖ وَ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهٖ فَنَظَرْتُ اِلٰى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ.

خورئي (دَ خور خوئ) ته دَ درد تکليف دے، نو حضورٌ خما په سر لاس مبارک رابنکلو. او ما دَ پاره ئے دَ برکت دُعا اوکړله. بيائے اودس اوکۀ، دَ حضورٌ دَ اودس نه بچ شوے اُوبه ما اوځکلے. او دَ حضورٌ ورستو اودريدم، نو ما دَ حضورٌ دَ دواړو اوږو (شانوں) مينځ کښ مُهرِ نبوت اوليدلو، چه دَ سپرکټ دَ زونډي په شان وو.

## بَابٌ ٣٨٧: تَمَنِّى الْمَرِيْضِ الْمَوْتَ.

## بــاب ٣٨٧: دَ مـريـض دَ مـرگ آرزو کول.

٦٣٠: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتُ الْبُنَانِيُّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَمَنَّيَنَّ اَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ اَصَابَهُ فَاِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَاعِلًا فَلْيَقُلِ اللّٰهُمَّ اَحْيِنِيْ مَا كَانَتِ الْحَيٰوةُ خَيْرًا لِّيْ وَ تَوَفَّنِيْ اِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِّيْ.

٦٣٠: آدم. شعبه. ثابت بناني. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو کښ دے څوک دَ مرگ خواهش (آرزو) دَ هغے مصيبت نه نۀ کوي، چه هغۀ ته رسيدلے وي، اوکه داسے کول ضروري گڼړي، نو داسے دے اووائي، چه اے اللّٰه، څو پورے چه ځما ژوند ما دَ پاره بهتر دے، هغه وخته پورے ما ژوندے اوساتے، او ماله وفات راکړے، کله چه مرگ ما دَ پاره بهتر وي.

٦٣١: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلٰى خَبَّابٍ نَّعُوْدُهٗ وَ قَدِ اكْتَوٰى سَبْعَ كَيَّاتٍ فَقَالَ اِنَّ اَصْحَابَنَا الَّذِيْنَ سَلَفُوْا مَضَوْا وَ لَمْ تَنْقُصْهُمُ الدُّنْيَا وَ اِنَّا اَصَبْنَا مَا لَا نَجِدُ لَهٗ مَوْضِعًا اِلَّا التُّرَابَ وَ لَوْلَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا اَنْ نَّدْعُوَ بِالْمَوْتِ

٦٣١: آدم. شعبه. اسمٰعيل بن ابي خالد. قيس بن ابي حازم نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے. مونږ دَ خبابؓ تپوس له ورغلو، هغه په خپل بدن اوه ځايه داغونه لږولے وو. هغه اووے، ځمونږ کوم ملگري چه تير شول (گزرگئے) دُنيا دَ هغوي په عمل کښ هيڅ کمے اونۀ کۀ، او ما سره دومره مال دے، چه دَ هغے دَ ايښودو دَ پاره سِوا دَ خاورونه زۀ بل ځائے نه بيا مومم. اوکه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ دَ مرگ دَ آرزو کولو نه، نۀ وے منع کړے، نو ما به دَ دے دُعا کړے وه بيا زۀ دَ هغۀ تپوس له

لَنَعُوْدُهٗ بِهٖ ثُمَّ اَتَيْنَاهُ مَرَّةً اُخْرٰى وَهُوَ يَبْنِيْ حَائِطًا لَّهٗ فَقَالَ اِنَّ الْمُسْلِمَ يُؤْجَرُ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ يُنْفِقُهٗ اِلَّا فِيْ شَيْءٍ يَجْعَلُهٗ فِيْ هٰذَا التُّرَابِ.

په دوئيم وار ورغلم، ليکن داسې حال کښې، چه هغهٔ د خپل باغ ديوال جوړولو، نو هغهٔ اووې، مسلمانانو ته هر هغه خيز کښې اَجر حاصليږي، چه هغوي ئې خرچ کړي، سوا دَ هغې خيز نه چه دې خاورو کښې اوغرخوي.

٦٣٢ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ عُبَيْدٍ مَّوْلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَنْ يُّدْخِلَ اَحَدًا عَمَلُهُ الْجَنَّةَ قَالُوْا وَ لَا اَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَا وَ لَا اَنَا اِلَّا اَنْ يَّتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ بِفَضْلٍ وَّ رَحْمَةٍ فَسَدِّدُوْا وَ قَارِبُوْا وَ لَا يَتَمَنَّيَنَّ اَحَدُكُمُ الْمَوْتَ اِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهٗ اَنْ يَّزْدَادَ خَيْرًا وَّ اِمَّا مُسِيْئًا فَلَعَلَّهٗ اَنْ يَّسْتَعْتِبَ.

٦٣٢ : ابواليمان. شعيب. زهري. ابو عبيد (د عبدالرحمٰن بن عوف آزاد کرده غُلام) نه روايت کوي، ابوهريرةؓ اووې، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، هيڅوک به دَ هغهٔ عمل جنت کښې داخل نه کړي. خلقو عرض اوکهٔ، تاسوؐ هم نه، يا رسول الله. حضورؐ اوفرمائيل، نه، زهٔ هم نه، خو دا چه الله تعالٰي ما د خپل فضل او رحمت لمن کښې پټ کړي (ڈهانپ لے) په دې وجه تاسو ميانه روي اختياروئې. او د الله تعالٰي نزديکت طلب کوئې. او تاسو کښې دې هيڅوک د مرگ خواهش نهٔ کوي (چه خدايه ما مړ کړې) ځکه چه يا به نيکوکار وي، نو اميد دې، چه الله تعالٰي دَ هغهٔ نيکئ کښې اضافه اوکړي، او که بدکار دې، نو اميد دې، چه توبه اوباسي.

٦٣٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عَبَّادِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ مُسْتَنِدٌ اِلَيَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَ اَلْحِقْنِيْ بِالرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى.

٦٣٣ : عبدالله بن ابي شيبه. ابو اسامه. هشام. عباد بن عبدالله بن زبير. بي بي عائشې نه روايت کوي، هغې اووې، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه داسې حال کښې، چه ماته ئې تکيه وهلې وه، واوريدل، چه اې خُما الله، ما اوبښې او په ما رحم اوکړې، او ما رفيق اعلي سره ملګرې کړې.

## باب ٣٨٨: دُعَاءِ الْعَائِدِ

## باب ٣٨٨: دَ عيادت کونکي دَ مريض دَ پاره

لِلْمَرِيْضِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ بِنْتُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهَا اَللّٰهُمَّ اشْفِ سَعْدًا قَالَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دُعا كول. او عائشے بنت سعد دَ خپل پلار نه نقل اوكړ، چه يا اللّٰه، سعد له شفاء وركړے. دا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے وو.

۶۳۴ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اَتٰى مَرِيْضًا اَوْ اُتِيَ بِهٖ قَالَ اَذْهِبِ الْبَاْسَ رَبَّ النَّاسِ اشْفِ وَ اَنْتَ الشَّافِيْ لَا شِفَآءَ اِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَآءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا قَالَ عَمْرُو بْنُ اَبِيْ قَيْسٍ وَ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ وَ اَبِي الضُّحٰى اِذَا اُتِيَ بِالْمَرِيْضِ وَ قَالَ جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى وَحْدَهٗ وَ قَالَ اِذَا اَتٰى مَرِيْضًا.

۶۳۴ : موسي بن اسماعيل. ابو عوانه. منصور. ابراهيم. مسروق. بي بي عائشے نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه به دَ يو مريض تپوس له ورتلو، يا حضورٌ له به څوك مريض راوستے شو، نو حضورٌ به فرمائيل، اے دَ بني آدمو پروردګاره، تكليف ئے لرے كړے. شفاء وركړے، تهٔ شفاء وركونكے ئے. ستا شفاء شفاء ده، داسے شفاء چه مرض پرے نهٔ ږدي. عمرو بن ابي قيس او ابراهيم بن طهمان دَ منصور نه هغهٔ دَ ابراهيم او ابوالضحي نه: اِذَا اَتٰى مريضًا (يعني چه كله به ئے يو مريض ته تشريف يوړلو) الفاظ نقل كړے دے.

## بَابُ ۳۸۹: وُضُوْءِ الْعَائِدِ لِلْمَرِيْضِ.

## باب ۳۸۹: دَ عيادت كونكي دَ مريض دَ پاره اودس كول.

۶۳۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا مَرِيْضٌ فَتَوَضَّاَ فَصَبَّ عَلَيَّ اَوْ قَالَ صُبُّوْا عَلَيْهِ فَعَقَلْتُ فَقُلْتُ لَا يَرِثُنِيْ اِلَّا كَلَالَةٌ فَكَيْفَ الْمِيْرَاثُ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ

۶۳۵ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن منكدر. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، ما پله حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو دغه وخت زهٔ ناروغه ووم. حضورٌ اودس اوكړ، اوبه ما ئے اُوبه اُوشيندلے، يا حكم ئے اوكړ، چه په دهٔ (دَ اودس نه بچ شوے) اوبه اوشيندئے، نو ماته هوش راغے، ما عرض اوكه چه دَ كلاله نه سوا خما هيڅوك وارث نشته، نو ميراث به څنګه تقسيم كړے شي. هغه وخت دَ

الْفَرَائِضِ. ميراث آيت نازل شولو.

ف: كلاله: هغه سړے چه ذ هغهٔ وارثانو كښې پلار او خوئے نهٔ وي (۲) ضعيف (۳) بيلات واله.

## باب ۳۹۰: مَنْ دَعَا بِرَفْعِ الْوَبَاءِ وَالْحُمّٰى.

## باب ۳۹۰: وبا او بخار دفع كيدلو ذ پاره ذ دُعا كولو بيان.

۶۳۶: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُعِكَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ بِلَالٌ قَالَتْ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِمَا فَقُلْتُ يَا اَبَتِ كَيْفَ تَجِدُكَ وَ يَا بِلَالُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَتْ وَ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ اِذَا اَخَذَتْهُ الْحُمّٰى يَقُوْلُ ؎

كُلُّ امْرِىءٍ مُّصَبَّحٌ فِىْ اَهْلِهٖ
وَالْمَوْتُ اَدْنٰى مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ

وَ كَانَ بِلَالٌ اِذَا اُقْلِعَ عَنْهُ يَرْفَعُ عَقِيْرَتَهٗ فَيَقُوْلُ ؎

اَلَا لَيْتَ شِعْرِىْ هَلْ اَبِيْتَنَّ لَيْلَةً
بِوَادٍ وَّ حَوْلِىْ اِذْخِرٌ وَّ جَلِيْلُ
وَهَلْ اَرِدَنْ يَّوْمًا مِيَاهَ مَجَنَّةٍ
وَهَلْ يَبْدُوَنْ لِىْ شَامَةٌ وَّ طَفِيْلُ

قَالَ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ اللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَيْنَا الْمَدِيْنَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ اَوْ اَشَدَّ وَ صَحِّحْهَا

۶۳۶: اسماعيل. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشے نه روايت کوي، ذ هغے بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه مدينے ته تشريف راوړلو، نو حضرت ابوبکر او حضرت بلال سختے تبے اونيول. ذ بي بي عائشے بيان دے، زهٔ هغے دواړو له ورغلم، او ما ترے تپوس اوکهٔ، چه اے بابا جانه، ستاسو څهٔ حال دے (څنګه يئے) او اے بلال، تهٔ څنګه ئے. او حضرت ابوبکر چه به تبے اونيولو، نو وئيل به ئے:

هر سړے خپل کور والو کښې صبا کوي
حالانکه مرګ ذ هغهٔ ذ پيزار ذ تسمے نه هم زيات قريب دے

او ذ حضرت بلال چه به تبه کوزه شوه، نو اوچت آواز سره به ئے وئيلے:

کاش چه ما شپه داسے وادي کښې تيره کړے وے
چه خما خواوشا کښې اذخر او جليل (وابنه) وے
او آيا زهٔ به يو ورځ ذ مجنه په چينه کوز شمه
او آيا شامه او طفيل به زهٔ اُوليدے شم

ذ بي بي عائشے بيان دے، زهٔ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوم. او حضور ته م دغه بيان اوکهٔ، نو حضور اوفرمائيل، يا اللّٰه، خمونږ زړونو کښې ذ مدينے محبت پيدا کړے، څنګه چه خمونږ مکے سره محبت وو، يا ددے نه زيات. او ذ مدينے آب و هوا صحت منده

وَ بَارِكْ لَنَا فِيْ صَاعِهَا وَ مُدِّهَا وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ.

جوړه کړې. او مونږ ډ پاره ډدې صاع او مد (پیمانې) کښې برکت واچوې، او ډ دې ځائې تبه منتقل کړې، جحفه ته ئې اُورسوې.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ الطِّبِّ

# (ډ طب بیان)

**باب ۳۹۱:** مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ دَآءً اِلَّا اَنْزَلَ لَهٗ شِفَآءً.

**باب ۳۹۱:** اللّٰه تعالیٰ چه کومې بیمارئ پیدا کړې، هغې ډ پاره ئې شفاء هم پیدا کړه.

**۶۳۷:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءُ بْنُ اَبِيْ رَبَاحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ دَآءً اِلَّا اَنْزَلَ لَهٗ شِفَآءً.

**۶۳۷:** محمد بن مثنیٰ. ابو احمد زبیري. عمر بن سعید بن ابي حسین. عطاء بن ابي رباح. حضرت ابي هریرهؓ نه روایت کوي، ډ هغه بیان دے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي، اللّٰه تعالیٰ هیڅ داسې بیماري نه ده پیدا کړې، خو ډ هغې ډ پاره ئې شفاء هم پیدا کړه.

**باب ۳۹۲:** هَلْ يُدَاوِى الرَّجُلُ الْمَرْاَةَ اَوِ الْمَرْاَةُ الرَّجُلَ.

**باب ۳۹۲:** آیا سړے ډ ښځې یا ښځه ډ سړي علاج کولې شي.

**۶۳۸:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا بِشْرُ ابْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ خَالِدِ بْنِ ذَكْوَانَ عَنْ رُبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَآءَ قَالَتْ كُنَّا نَغْزُوْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْقِى الْقَوْمَ وَ نَخْدُمُهُمْ وَ نَرُدُّ الْقَتْلٰى وَ الْجَرْحٰى اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

**۶۳۸:** قتیبه بن سعید. بشر بن مفضل. خالد بن ذکوان. ربیعه بنت معوذ بن عفراءؓ نه روایت کوي، هغې اووې مونږ زنانه به حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره جهاد کښې شریکیدلو. په قوم به مو اوبه څکولې، او ډ هغوي خدمت به مو کولو، او مړي او زخمیان به مو مدینې ته راوستل.

**باب ۳۹۳:** اَلشِّفَاءُ فِيْ ثَلٰثٍ.

**باب ۳۹۳:** شفاء درې څیزونو کښې ده.

**۶۳۹:** حَدَّثَنِي الْحُسَيْنُ

**۶۳۹:** حسین. احمد بن منیع. مروان بن

حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مَنِيْعٍ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ حَدَّثَنَا سَالِمُ الْاَفْطَسُ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ الشِّفَاءُ فِيْ ثَلٰثَةٍ شَرْبَةِ عَسَلٍ وَّ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ وَّ كَيَّةِ نَارٍ وَّ اَنْهٰى اُمَّتِيْ عَنِ الْكَيِّ رَفَعَ الْحَدِيْثَ وَ رَوَاهُ الْقُمِّيُّ عَنْ لَيْثٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَسَلِ وَالْحَجْمِ.

شجاع. سالم. افطس. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے' شفاء درے ځيزونو كښې ده (۱) شات څكل (۲) ښكر لږول (۳) اُور سره داغ لږول. او زهٔ خپل اُمت دَ داغلولو نه منع كوم. دا حديث نے مرفوعاً هم نقل كړے دے' او قمي دَ ليث نه' هغهٔ دَ مجاهد نه' هغهٔ دَ ابن عباسؓ نه او ابن عباسؓ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دَ شاتو او دَ ښكر لږولو متعلق روايت كړے دے.

۰ ٦۴ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا سُرَيْجُ بْنُ يُوْنُسَ اَبُو الْحَارِثِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ ابْنُ شُجَاعٍ عَنْ سَالِمِ الْاَفْطَسِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشِّفَاءُ فِيْ ثَلٰثَةٍ فِيْ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ اَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ اَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ وَّ اَنْهٰى اُمَّتِيْ عَنِ الْكَيِّ.

۰ ٦۴ : محمد بن عبدالرحيم. سريج بن يونس. ابوالحارث. مروان بن شجاع. سالم. افطس. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' شفاء درے ځيزونو كښې ده (۱) ښكر لږول (۲) شات څكل (۳) اُور سره داغ لږول' او زهٔ خپل اُمت دَ داغ لږولو نه منع كوم.

ف: ښكر لږول: يوځائے پۀ وهل اوچقول او پرے دَ پاسه ښكر لږول.

## باب ۳۹۴: اَلدَّوَاءِ بِالْعَسَلِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فِيْهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ.

## باب ۳۹۴: شاتو (شهد) سره دَ علاج كولو بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي قول چه دے كښې خلقو د پاره شفاء ده.

۱ ٦۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ الْحَلْوَآءُ وَالْعَسَلُ.

۱ ٦۴ : علي بن عبداللّٰه. ابو اسامه. هشام. دَ خپل پلار نه. هغهٔ دَ بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به خوږ ځيز او شات ډير خوښول.

۶۴۲ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْغَسِيْلِ عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنْ كَانَ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ اَدْوِيَتِكُمْ اَوْ يَكُوْنُ فِيْ شَيْءٍ مِنْ اَدْوِيَتِكُمْ خَيْرٌ فَفِيْ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ اَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ اَوْ لَذْعَةٍ بِنَارٍ تُوَافِقُ الدَّآءَ وَ مَا اُحِبُّ اَنْ اَكْتَوِيَ.

۶۴۲ : ابو نعيم. عبدالرحمٰن بن غسيل. عاصم بن عمر بن قتاده. جابر بن عبدالله نه روايت كوي، ده هغه بيان دے، ما د حضور صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، ستاسو دارو كښې كه څه بښيګړه وي، نو ښكر لږولو، يا شات څكلو يا اور سره داغ لږولو كښې ده، هر كله چه د بيمارۍ موافق وي. او زه داغ لږول نه خوښوم.

۶۴۳ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ رَجُلًا اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَخِيْ يَشْتَكِيْ بَطْنَهُ فَقَالَ اسْقِهِ عَسَلًا ثُمَّ اَتَى الثَّانِيَةَ فَقَالَ اسْقِهِ عَسَلًا ثُمَّ اَتَاهُ فَقَالَ فَعَلْتُ فَقَالَ صَدَقَ اللّٰهُ وَ كَذَبَ بَطْنُ اَخِيْكَ اَسْقِهِ عَسَلًا فَسَقَاهُ فَبَرَاَ.

۶۴۳ : عياش بن وليد. عبدالاعلٰي. سعيد. قتاده. ابوالمتوكل. ابو سعيد نه روايت كوي، يو سړے د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو او عرض ئے اوكه. څما د ورور د خيټې بيماري ده، حضورؐ اوفرمائيل، په هغهٔ شات اوڅكوه. بيا په دويم وار راغے، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل په هغهٔ شات اوڅكوه. بيا په دريم وار راغے. او عرض ئے اوكهٔ، چه ما پرے شات اوڅكول (خو فائده ورته اونهٔ شوله) حضورؐ ورته اوفرمائيل، الله ريښتنے دے، او ستا د ورور خيټه دروغجنه ده، په هغهٔ شات اوڅكوه، هغهٔ پرے شات اوڅكول، نو هغه تندرست شولو.

ف : دے حديث نه معلومه شوه چه په څلورم ځل شات څكلو سره ئے د خيټے بيماري ښهٔ شوله. داسے مريض دے دارو استعمالوي، انشاء الله چه روغ شي.

باب ۳۹۵ : الدَّوَآءِ بِاَلْبَانِ الْاِبِلِ.

باب ۳۹۵ : د اُوښے پيؤ سره د علاج كولو بيان.

۶۴۴ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ

۶۴۴ : مسلم بن ابراهيم. سلام بن مسكين.

اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ مِسْكِيْنٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ نَاسًا كَانَ بِهِمْ سَقَمٌ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اٰوِنَا وَ اَطْعِمْنَا فَلَمَّا صَحُّوْا قَالُوْا اِنَّ الْمَدِيْنَةَ وَ كِمَةٌ وَ اَنْزَلَهُمُ الْحَرَّةَ فِيْ ذَوْدٍ لَهُ فَقَالَ اشْرَبُوْا اَلْبَانَهَا فَلَمَّا صَحُّوْا قَتَلُوْا رَاعِيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوْا ذَوْدَهُ فَبَعَثَ فِيْ اٰثَارِهِمْ فَقَطَعَ اَيْدِيَهُمْ وَ اَرْجُلَهُمْ وَ سَمَرَ اَعْيُنَهُمْ فَرَاَيْتُ الرَّجُلَ مِنْهُمْ يَكْدِمُ الْاَرْضَ بِلِسَانِهٖ حَتّٰى يَمُوْتَ قَالَ سَلَّامٌ فَبَلَغَنِيْ اَنَّ الْحَجَّاجَ قَالَ لِاَنَسٍؓ حَدِّثْنِيْ بِاَشَدِّ عُقُوْبَةٍ عَاقَبَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثَهُ بِهٰذَا فَبَلَغَ الْحَسَنَ فَقَالَ وَدِدْتُ اَنَّهُ لَمْ يُحَدِّثْهُ.

ثابت. انس نه روايت كوي. ذ خنو خلقو مرض وو' نو هغوي عرض اوكۀ' يا رسول الله' مونږ له پناه راكړئے' او خوراك راكړئے. كوم وخت چه هغوي تندرست شو' نو عرض ئے اوكۀ' ذ مدينے آب و هوا خمونږ ناموافق ده' نو حضورﷺ هغوي مقام حره ته اوښانو سره اوليږل' او ورته ئے اوفرمائيل' ذ دوي پئے څكئے' كوم وخت چه هغوي تندرست شو' نو ذ نبي صلي الله عليه وسلّم گوارچي ئے قتل كۀ. او اوښان ئے اوتښتول. حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي پسے سړي اوليږل' هغوي ئے گرفتار كړل' لاس پښے ئے ترے پريكړل' او ستركو كښې ئے ورله (گرم) سلايان اوگرځول. ما هغوي كښې يو سړے اوليد' چه زمكه ئے خپلے ژبے سره ختله' تر دے چه مړ شولو. سلام بيان اوكۀ' ماته خبر راغلے دے' چه حجاج انسؓ ته اووے' چه ماته ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ سخت ترين سزا متعلق حديث بيان كه. هغۀ ورته دا حديث بيان كۀ' كوم وخت چه حسن بصري خبر شو' نو وئيلے كاش' چه هغۀ دا حديث نۀ وے بيان كړے.

## بَابُ ۳۹۶: اَلدَّوَآءِ بِاَبْوَالِ الْاِبِلِ.

## باب ۳۹۶: ذ اُوښ متيازو (پيشاب) سره ذ علاج كولو بيان.

۶۲۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ نَاسًا اجْتَوَوْا فِي الْمَدِيْنَةِ فَاَمَرَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَلْحَقُوْا بِرَاعِيْهِ يَعْنِي الْاِبِلَ فَيَشْرَبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَ اَبْوَالِهَا فَلَحِقُوْا بِرَاعِيْهِ فَشَرِبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَ

۶۲۵: موسٰي بن اسمٰعيل. همام. قتاده. انس نه روايت كوي' په خنو خلقو ذ مدينے آب و هوا راست رانغله' نو هغوي ته نبي صلي الله عليه وسلّم حكم اوكۀ' چه ذ اوښانو گوارچي سره يو ځائے شي. او ذ اُوښانو پئے او متيازے دے څكي' حتي چه هغوي تندرست شي. نو هغوي ذ اوښانو گوارچي سره يو ځائے شو. ذ اوښانو پئے او متيازے ئے څكلے'

اَبْوَالِهَا حَتّٰى صَلُحَتْ اَبْدَانُهُمْ فَقَتَلُوا الرَّاعِيَ وَ سَاقُوا الْاِبِلَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ فِيْ طَلَبِهِمْ فَجِيْءَ بِهِمْ فَقَطَعَ اَيْدِيَهُمْ وَ اَرْجُلَهُمْ وَ سَمَرَ اَعْيُنَهُمْ قَالَ قَتَادَةُ فَحَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ اَنَّ ذٰلِكَ كَانَ قَبْلَ اَنْ تَنْزِلَ الْحُدُوْدُ.

تر دې چه هغوي صحت مند شو، نو ګوارچي ئې قتل كڅ، او اُوښان ئې ځان سره اوتښتول. كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم خبر شو، نو ذ هغوي تلاش پسې ئې سړي اوليږل، هغوي ئې اونيول ذ هغوي لاس پښې ئې پريکړې، او ذ هغوي په سترګو كښې ئې سلايان اوګرځول، ذ قتاده بيان دې، ماته محمد بن سيرين اووې، چه دا ذ حدودو ذ آيتونو ذ نازليدلو نه ذ مخكښې واقعه ده.

بَابُ ۳۹۷: اَلْحَبَّةِ السَّوْدَآءِ.

باب ۳۹۷: كالا دانه (كلونجي) سره ذ علاج كولو بيان.

ف: (۱) كالا دانه: توره دانه. ذ سپيلني تخم. (۲) كلونجي: تور وانجو: يو قسم توره درې ګوټه خوشبوداره دانه، ذ يو بوټي تخم دې. ذ مسالو، آچارونو او خوړو چټنيانو كښې اچولې شي، په دارو كښې استعماليږي.

(اُردو پشتو لُغت مرکزی اُردو بورڈ لاہور۔جلد دوئم ص ۱۸۳۵ و ص ۱۹۴۳)

۶۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ خَالِدِ ابْنِ سَعْدٍ قَالَ خَرَجْنَا وَ مَعَنَا غَالِبُ ابْنُ اَبْجَرَ فَمَرِضَ فِي الطَّرِيْقِ فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ وَهُوَ مَرِيْضٌ فَعَادَهُ ابْنُ اَبِيْ عَتِيْقٍ فَقَالَ لَنَا عَلَيْكُمْ بِهٰذِهِ الْحُبَيْبَةِ السَّوْدَآءِ فَخُذُوْا مِنْهَا خَمْسًا اَوْ سَبْعًا فَاسْحَقُوْهَا ثُمَّ اقْطُرُوْهَا فِيْ اَنْفِهٖ بِقَطَرَاتِ زَيْتٍ فِيْ هٰذَا الْجَانِبِ وَ فِيْ هٰذَا الْجَانِبِ فَاِنَّ عَآئِشَةَ حَدَّثَتْنِيْ اَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ هٰذِهِ الْحَبَّةَ السَّوْدَآءَ

۶۴۶: عبدالله بن ابي شيبه. عبيدالله. اسرائيل. منصور. خالد بن سعدؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دې. مونږ خلق روان شو، او غالب بن ابجر هم مونږ سره وو. هغه لار كښې ناروغه شو. چه مونږ مدينې ته اورسيدو، نو هغه ناروغه وو. ابن ابي عتيق ذ هغه پښتنې له راغې، او وئيلې چه دا تورې دانې اختيار كړئې. ذ هغې پنځه يا اوه دانې كِس كړئې. بيا ذ زيتون تيلو سره څو قطرو سره دا ذ هغه په پوزه كښې دې طرف او هغې طرف ته واچوئې. ځكه چه بي بي عائشہؓ ماته وئيلې دي، چه هغې ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلې دي، چه دا توره دانه بغير ذ سام نه ذ تمامي مرضونو علاج دې. ما تپوس اوكڅ، چه

شِفَآءٌ مِنْ كُلِّ دَآءٍ اِلَّا مِنَ السَّامِ قُلْتُ وَمَا السَّامُ قَالَ الْمَوْتُ.

سام څه ته وائي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، مرګ.

ف: خني بيمارئ سپيلني لوګے کولو سره هم خي.

۶۴۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ وَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَخْبَرَهُمَا اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِي الْحَبَّةِ السَّوْدَآءِ شِفَآءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ اِلَّا السَّامَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَالسَّامُ الْمَوْتُ وَالْحَبَّةُ السَّوْدَآءُ الشُّوْنِيْزُ.

۶۴۷: يحيي بن بکير. عقيل. ابن کتاب. ابو سلمه او سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، ما ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، چه توره دانه کښې سِوا ذ سام (مرګ) نه ذ ټولو امراضو شفاء ده. ابن شهاب اووے، ذ سام نه مرګ مراد دے. او ذ تورے دانے نه مراد کلونجي ده.

## بَابٌ ۳۹۸: التَّلْبِيْنَةِ لِلْمَرِيْضِ.

## باب ۳۹۸: ذ مريض ذ پاره ذ تلبينه بيان.

۶۴۸: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تَاْمُرُ بِالتَّلْبِيْنِ لِلْمَرِيْضِ وَ لِلْمَحْزُوْنِ عَلَى الْهَالِكِ وَ كَانَتْ تَقُوْلُ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ التَّلْبِيْنَةَ تَجِمُّ فُؤَادَ الْمَرِيْضِ وَ تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ.

۶۴۸: حبان بن موسي. عبدالله. يونس بن زيد. عقيل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي چه هغے به مريض ذ پاره او مړو (مرنے والوں) په وجه ذ غم زپلو خلقو ذ پاره ذ تلبينے حکم ورکولو. او وئيل به ئے، ما ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي، چه تلبينه ذ مريض زړة ته راحت رسوي. او بعضے غم لرے کوي.

ف: تلبينه: ذ پيو، شاتو، او ذ غنمو يا ذ وربشو ذ بُوسَکي (اُوړهٔ چاڼړلو نه پس چه کووم بُوس يا بُوسَکي وُخي) نه جوړولے شي.

۶۴۹ : حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَآءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تَاْمُرُ بِالتَّلْبِيْنَةِ وَ تَقُوْلُ هُوَ الْبَغِيْضُ النَّافِعُ.

۶۴۹ : فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام. دَ خپل پلار نه. هغهٔ دَ بي بي عائشے نه روايت کوي، چه بي بي عائشے به مونږ خلقوته دَ تلبينے حکم کولو، او فرمائيل به ئے، چه دا نفع رسونکے دے، اګر که ناخوښه وي.

## باب ۳۹۹: السَّعُوْطِ.

## باب ۳۹۹: پوزه کښ دَ دارو اچولو بيان.

۶۵۰ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِحْتَجَمَ وَ اَعْطَى الْحَجَّامَ اَجْرَهُ وَاسْتَعَطَ.

۶۵۰ : معلي بن اسد. وهيب. ابن طاوس. حضرت ابن عباس نه روايت کوي دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ښکر اولږولو، او ښکر لږونکي ته ئے دَ هغے اجرت ورکهٔ، او پوزه کښ ئے دارو واچول.

## باب ۴۰۰: السَّعُوْطِ بِالْقُسْطِ الْهِنْدِيِّ الْبَحْرِيِّ وَهُوَ الْكُسْتُ مِثْلُ الْكَافُوْرِ وَالْقَافُوْرِ مِثْلُ كُشِطَتْ وَ قُشِطَتْ نُزِعَتْ وَ قَرَاَ عَبْدُ اللّٰهِ قُشِطَتْ.

## باب ۴۰۰: دريائي قسط هندي پوزه کښ اچول. کست هم دے ته وائي، څنګه چه کافور (قافور) وئيلے شي. دغه شان کشطت: نزعت معني دي. عبداللّٰه بن مسعودؓ قشطت وئيلے دے.

۶۵۱ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ عَلَيْكُمْ بِهٰذَا الْعُوْدِ الْهِنْدِيِّ فَاِنَّ فِيْهِ سَبْعَةَ اَشْفِيَةٍ يُسْتَعَطُ بِهٖ مِنَ الْعُذْرَةِ وَ يُلَدُّ بِهٖ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ وَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِابْنٍ لِّيْ لَمْ يَاْكُلِ الطَّعَامَ فَبَالَ عَلَيْهِ

۶۵۱ : صدقه بن فضل. ابن عيينه. زهري. عبيداللّٰه. ام قيس بنت محصن نه روايت کوي، هغے اُووے، ما دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، تاسو دا عود هندي اختيار کړئے. دے کښ اوه قِسمه علاج دے. مرض عذره کښ پوزه کښ اچولے شي، ذات الجنب کښ جونيلے شي. او ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ خپل خوئے حاضر کهٔ، چه لا ډوډي خوړل ئے نهٔ وو شروع کړے، هغهٔ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په کپړو واړهٔ بول اوکړل، حضورؐ اوبه راوغښتلے

لَدَغَا بِمَآءٍ فَرُشَّ عَلَيْهِ. — اوپه هغې ئے توئے کړے (او نوسلے).

ف: ذات الجنب: دَ تشي يا دَ ترخ دَ لاندے يو ارخ ته دَ پښتو بربېښ.

١. ددے نه مراد دلته حقيقي ذات الجنب (نمونيه) نه ده بلکه په سينه کښے غليظ او فاسد رياح جمع کېدلو سره چه کوم تکليف وي دَ هغے دَ پاره دا لفظ استعمال کړے شوے دے عود هندي په دے کښے مفيد دے. په نمونيه کښے ددے استعمال مضر وي.

باب ۴۰۱: اَیَّ سَاعَةٍ يَحْتَجِمُ وَ اَحْتَجَمَ اَبُوْ مُوْسٰى لَيْلًا.

باب ۴۰۱: کوم وخت دے ښکر اولږوي (پچھنے لگوائيں) او ابو موسي دَ شپے ښکر اُولږولو.

٦٥٢: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اِحْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَائِمٌ.

٦٥٢: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم دَ روژے حالت کښې ښکر اولږولو.

باب ۴۰۲: اَلْحَجْمِ فِي السَّفَرِ وَ الْاِحْرَامِ قَالَهُ ابْنُ بُحَيْنَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۰۲: سفر او احرام حالت کښې دَ ښکر لږولو (وينه اوبښکلو) بيان. ابن بحينه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا روايت کړے دے.

٦٥٣: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاوُسٍ وَّ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

٦٥٣: مسدد. سفيان. عمرو. طاؤس او عطاء. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم دَ احرام حالت کښې ښکر اولږولو.

باب ۴۰۳: اَلْحِجَامَةِ مِنَ الدَّاءِ.

باب ۴۰۳: دَ بيماري په سبب ښکر لږول.

٦٥۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّهُ سُئِلَ عَنْ اَجْرِ الْحَجَّامِ فَقَالَ احْتَجَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَمَهُ اَبُوْ

٦٥۴: محمد بن مقاتل. عبدالله. حميد طويل. انسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ نه دَ ښکر لږونکي دَ مزدوري متعلق تپوس اوشو، نو هغهٔ اووے، نبي صلي الله عليه وسلّم ښکر اولږولو، ابو طيبه حضورؐ ته ښکر اولږولو او حضورؐ هغهٔ له دوه صاع (پيمانه) غله

طَيْبَةَ وَ اَعْطَاهُ صَاعَيْنِ مِنْ طَعَامٍ وَ كَلَّمَ مَوَالِيَهُ فَخَفَّفُوْا عَنْهُ وَ قَالَ اِنَّ اَمْثَلَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ الْحِجَامَةُ وَالْقُسْطُ الْبَحْرِيُّ وَ قَالَ لَا تُعَذِّبُوْا صِبْيَانَكُمْ بِالْغَمْزِ مِنَ الْعُذْرَةِ وَ عَلَيْكُمْ بِالْقُسْطِ.

ورکړله. او ذَ هغهٔ مالکانو سره ئے روزانه آخستونکي رقم کښې ذَ تخفیف کولو متعلق خبرے اترے اوکړے نو هغوي هغې کښې تخفیف (کمے) اوکهٔ. اووے فرمائیل' بهترین علاج چه تاسو کوئے هغه ښکر لږول او قسط بحري دے. او وے فرمائیل' خپلو بچو له تالو دباؤ کولو سره تکلیف مهٔ ورکوئے. او تاسو قسط استعمالوئے.

٦٥٥ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ تَلِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو وَّ غَيْرُهُ اَنَّ بُكَيْرًا حَدَّثَهُ اَنَّ عَاصِمَ بْنَ عُمَرَ بْنَ قَتَادَةَ حَدَّثَهُ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَادَ الْمُقَنَّعَ ثُمَّ قَالَ لَا اَبْرَحُ حَتّٰى تَحْتَجِمَ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ فِيْهِ شِفَآءً.

٦٥٥ : سعید بن تلید. ابن وهب. عمرو وغیره. بکیر. عاصم بن عمر بن قتاده. جابر بن عبدالله نه روایت کوي' د هغه بیان دے چه هغه ذَ مقنع د عیادت د پاره لاړلو نو وئیلے زه هغه پورے نه ځم' څو پورے چه ته ښکر اونه لګوے ځکه چه ما د حضور صلي الله علیه وسلّم نه آوریدلے دي' چه دے کښې شفاء ده.

باب ۴۰۴ : الْحِجَامَةِ عَلَى الرَّأْسِ.

باب ۴۰۴ : سر کښې ذَ ښکر لږولو (وینه اُوښکلو) بیان.

٦٥٦ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمٰنُ عَنْ عَلْقَمَةَ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ الْاَعْرَجَ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بُحَيْنَةَ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ بِلَحْيِ جَمَلٍ مِّنْ طَرِيْقِ مَكَّةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فِيْ وَسْطِ رَاْسِهِ وَ قَالَ الْاَنْصَارِيُّ اَخْبَرَنَا هِشَامُ ابْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٦٥٦ : اسمٰعیل. سلیمان. علقمه. عبدالرحمٰن. اعرج. عبدالله بن بحینه نه روایت کوي' هغهٔ اووے' حضور صلي الله علیه وسلّم مقامي لحي جمل کښې چه ذَ مکے په لار دے. ذَ احرام حالت کښې خپل درمیاني سر کښې ښکر اولږولو. او انصاري بیان اوکهٔ' چه ماته هشام بن حسان' هغه ذَ عکرمه نه عکرمه ذَ حضرت ابن عباسؓ نه روایت اوکه' چه حضور صلي الله علیه وسلّم خپل سر مبارک کښې ښکر

اِحْتَجَمَ فِيْ رَأْسِهٖ.

اولږولو.

بَابٌ ۴۰۵: اَلْحَجْمُ مِنَ الشَّقِيْقَةِ وَالصُّدَاعِ.

باب ۴۰۵: د نيم سر درد (نيم سيري) يا ذ پوره سر درد کښې د ښکر لږولو (وينه اوښکلو) بيان.

٦۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَأْسِهٖ وَهُوَ مُحْرِمٌ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهٖ بِمَاءٍ يُقَالُ لَهُ لَحْيُ جَمَلٍ وَ قَالَ مُحَمَّدُ ابْنُ سَوَاءٍ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فِيْ رَأْسِهٖ مِنْ شَقِيْقَةٍ كَانَتْ بِهٖ.

٦۵۷: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. هشام. عكرمه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ سر ذ درد په سبب ذ احرام حالت کښې ښکر اولږولو. دغه وخت حضورؐ هغے اوبو سره وو، چه هغے ته لحي جمل وئيلے شي. او محمد بن سواء بيان اوكهٔ، چه مونږ ته هشام، هغهٔ ذ عكرمه نه، هغهٔ ذ ابن عباسؓ نه روايت اوكهٔ، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ نيم سيري ذ درد په سبب ذ احرام حالت کښې ښكر اولږولو.

٦۵۸: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْغَسِيْلِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنْ كَانَ فِيْ شَيْءٍ مِنْ اَدْوِيَتِكُمْ خَيْرٌ فَفِيْ شَرْبَةِ عَسَلٍ اَوْ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ اَوْ لَذْعَةٍ مِنْ نَارٍ وَمَا اُحِبُّ اَنْ اَكْتَوِيَ.

٦۵۸: اسمٰعيل بن ابان. ابن غسيل. عاصم بن عمر. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، كه ستاسو دارو کښې څهٔ څيز کښې ښيګړه شته، لو شات څکلو کښې يا ښکر لږولو کښې يا اُور سره داغلو کښې ده، او زه داغ لږول نهٔ خوښوم.

بَابٌ ۴۰٦: اَلْحَلْقِ مِنَ الْاَذٰى.

باب ۴۰٦: ذ تکليف ذ وجے نه ذ سر خريلو بيان.

٦۵۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا

٦۵۹: مسدد. حماد. ايوب. مجاهد. ابن ابي ليلٰي. كعب بن عجرةؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. ما

عَنِ ابْنِ اَبِیْ لَیْلٰی عَنْ کَعْبٍ هُوَابْنُ عُجْرَةَ قَالَ اَتٰی عَلَیَّ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَیْبِیَّةِ وَ اَنَا اُوْقِدُ تَحْتَ بُرْمَةٍ وَّالْقَمْلُ تَتَنَاثَرُ عَنْ رَّاْسِیْ فَقَالَ اَیُؤْذِیْكَ هَوَامُّكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاحْلِقْ وَ صُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ اَوْ اَطْعِمْ سِتَّةً اَوِ انْسُكْ نَسِیْكَةً قَالَ اَیُّوْبُ لَا اَدْرِیْ بِاَیَّتِهِنَّ بَدَاَ.

پـلـه حـضـور صـلـي الله علیه وسلّم ذَ حدیبیه زمانه کښ تشریف راوړلو، داسې حال کښ چه ما ذَ کټوئې لاندې اُور بـل کـړې وو. او خـمـا ذَ سـر نـه سپږې ډُوړېدلې. حـضـورؐ اُوفـرمـائـیل. دا سپږې تاته تکلیف درکوي، ما عـرض اوکړ، جي. او. حضورؐ اوفرمائیل. سر اوخریه، او درې روژې اونیسـه، یا په شپږو مسکینانو طعام اوخوروه یا قـربـانـي اوکړه. ایوب اووې. ماتـه یاد نهٔ دي، چه مخکښې ئې څهٔ فرمائیلي وو.

بَابُ ۴۰۷: مَنِ اكْتَوٰی اَوْ كَوٰی غَیْرَهٗ وَ فَضْلِ مَنْ لَّمْ یَكْتَوِ.

باب ۴۰۷: ذَ هغې سړي بیان، چه خپله داغ اولګوي یا بل چاتـه داغ اولګوي او ذَ هغې سړي ذَ فضیلت بیان چه داغ اونه لګوي.

۶۶۰ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِیْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سُلَیْمٰنَ بْنِ الْغَسِیْلِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْ كَانَ فِیْ شَیْءٍ مِّنْ اَدْوِیَتِكُمْ شِفَآءٌ فَفِیْ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ اَوْ لَذْعَةٍ بِنَارٍ وَّ مَا اُحِبُّ اَنْ اَكْتَوِیَ.

۶۶۰ : ابـوالـولـید. هشـام بـن عبـدالـملک. عبـدالـرحـمٰـن بـن سـلیـمـان بـن غسـیـل. عـاصـم بـن عـمـر بـن قتـاده. حـضـرت جـابرؓ نـه روایت کوي. ذَ هغـهٔ بیـان دې. حـضـور صـلـي الـلّٰـه عـلیـه وسلّم اوفـرمـائـیل، کـه ستـاسـو دارو کـښ څه څیز کښ شـفـاء شتـه، نـو هـغـه ښکر لـږولـو یـا اُور سره داغ ورکـولـو کـښ ده. او زهٔ داغ ورکـول نهٔ خوښوم.

۶۶۱ : حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَیْسَرَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَیْلٍ حَدَّثَنَا حُصَیْنٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَیْنٍؓ قَالَ لَا رُقْیَةَ اِلَّا مِنْ عَیْنٍ اَوْ حُمَةٍ فَذَكَرْتُهٗ لِسَعِیْدِ بْنِ جُبَیْرٍ فَقَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍؓ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ

۶۶۱ : عـمـران بـن میسـره. ابن فضیل. حصین. عامر. عمران بن حصینؓ نه روایت کوي، ذَ هغهٔ بیان دې، چه بد نظر یا زهریله ځناور (مار، لړم وغیره) ذَ چیچلو نه سِوا (په هیڅ څیز) منتر جائز نهٔ دې. ما سعید بن جبیر ته دا بیان اوکړ، نو هغهٔ اووې مونږ ته ابن عباسؓ حدیث بیان کړ، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، خما مـخکښې څو اُمتونه پیش کړې شو. یو یا دوه نبیان تیر

وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْاُمَمُ فَجَعَلَ النَّبِيُّ وَالنَّبِيَّانِ يَمُرُّوْنَ مَعَهُمُ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ لَيْسَ مَعَهٗ اَحَدٌ حَتّٰى رُفِعَ لِيْ سَوَادٌ عَظِيْمٌ قُلْتُ مَا هٰذَا؟ اُمَّتِيْ هٰذِهٖ؟ قِيْلَ هٰذَا مُوْسٰى وَ قَوْمُهٗ قِيْلَ انْظُرْ اِلَى الْاُفُقِ فَاِذَا سَوَادٌ يَمْلَأُ الْاُفُقَ ثُمَّ قِيْلَ لِيَ انْظُرْ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا فِيْ اٰفَاقِ السَّمَآءِ فَاِذَا سَوَادٌ قَدْ مَلَأَ الْاُفُقَ قِيْلَ هٰذِهٖ اُمَّتُكَ وَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ هٰؤُلَآءِ سَبْعُوْنَ اَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ ثُمَّ دَخَلَ وَلَمْ يُبَيِّنْ لَهُمْ فَاَفَاضَ الْقَوْمُ وَ قَالُوْا نَحْنُ الَّذِيْنَ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَاتَّبَعْنَا رَسُوْلَهٗ فَنَحْنُ هُمْ اَوْ اَوْلَادُنَا الَّذِيْنَ وُلِدُوْا فِي الْاِسْلَامِ فَاِنَّا وُلِدْنَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ فَقَالَ هُمُ الَّذِيْنَ لَا يَسْتَرْقُوْنَ وَ لَا يَتَطَيَّرُوْنَ وَ لَا يَكْتَوُوْنَ وَ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ فَقَالَ عُكَاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ اَمِنْهُمْ اَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ فَقَالَ اٰخَرُ فَقَالَ اَمِنْهُمْ اَنَا قَالَ سَبَقَكَ عُكَاشَةُ.

شو. هغوي سره جماعت وو. او يو نبي سره هيڅوک سړے نه وو. تردے چه خما مخکښ يو لوئے جماعت پيش کړے شو. ما تپوس اوکه، دا څهٔ دي، آيا دا خما اُمت دے. جواب راکړے شو. دا موسيٰ دے، او دَ هغهٔ قوم دے. او اوئيلے شو. اُفق طرف ته اُوګوره، نو اوليدے شو چه يو جماعت آسمان ګير کړے دے. بيا ماته اووئيلے شو. اخوا ديخوا اوګوره. ما اوکتل چه يو جماعت دَ آسمان اُفق ګير کړيدے. او وئيلے شو، دا ستا اُمت دے. او دوي کښې به اويا زره بے حسابه جنت کښې داخليږي. بيائے دننه تشريف يوړلو، او دائے اونهٔ ښودل چه هغه کوم خلق دي، نو خلقو بحث شروع کړو. او وئيلے، چه هغه مونږ يُو، په دے چه مونږ په الله ايمان راوړے دے. او دَ هغهٔ دَ رسول متابعت مو اوکهٔ، يا خمونږ آولاد دے، چه اسلام کښې پيدا شو، ځکه چه مونږ خو جاهليت کښې پيدا شو. نبي صلي الله عليه وسلّم چه دَ دے نه خبر شو، نو راووتو او وے فرمائيل، دا هغه خلق دي چه منتر نهٔ کوي، او نهٔ بدفالي کوي، او نهٔ داغ لږوي، او په خپل رب بهروسه لري. عکاشه بن محصن عرض اوکهٔ، يا رسول الله، آيا زهٔ هم دَ دے خلقو نه يم، حضورٌ ورته اوفرمائيل، او، بيا بل پاسيدو او وے فرمائيل آيا زهٔ ددوي نه يم. حضورٌ ورته اوفرمائيل عکاشه تانه نمبر يوړلو (سبقت کر گیا).

## بَابٌ ۴۰۸: اَلْاِثْمِدِ وَالْكُحْلِ. مِنَ الرَّمَدِ فِيْهِ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ.

## باب ۴۰۸: ستر که کښې دَ تکليف په وخت د اثمد او سُرمه (رانجو) لږولو بيان. دے باب کښې اُم عطيهٌ روايت دے.

٦٦٢: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

٦٦٢: مسدد. يحيٰي. شعبه. حميد بن نافع.

يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَؓ اَنَّ امْرَاَةً تُوُفِّيَ زَوْجُهَا فَاشْتَكَتْ عَيْنُهَا فَذَكَرُوْهَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرُوْا لَهُ الْكُحْلَ وَ اَنَّهُ يُخَافُ عَلٰى عَيْنِهَا فَقَالَ لَقَدْ كَانَتْ اِحْدَاكُنَّ تَمْكُثُ فِيْ بَيْتِهَا فِيْ شَرِّ اَحْلَاسِهَا اَوْ فِيْ اَحْلَاسِهَا فِيْ شَرِّ بَيْتِهَا فَاِذَا مَرَّ كَلْبٌ رَمَتْ بَعْرَةً فَلَا اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا.

زینب. اُم سلمهؓ نه روایت کوي، دَ یوې ښځې خاوند مړ شولو. دَ هغې سترګه کښې تکلیف پیدا شو، نو خلقو دا واقعه حضور صلي الله علیه وسلّم ته بیان کړه، چه دَ هغې دَ سترګې (دَ ضائع کیدو) خطره ده. حضورؐ ورته اوفرمائیل، تاسو کښې یوه ښځه به خپل کور کښې دَ ټولو نه دَ خراب قسم لباس کښې یا (دائې اوفرمائیل) دَ ټولو نه خراب کور کښې خپل لباس کښې پرته وه. کله چه به یو سپې به (کُتا) تیریدلو. نو هغې به پرې پچه ویشتله. نو آیا هغه اوس څلور میاشتې او لس ورځې صبر نشي کولې.

## باب ۴۰۹: اَلْجُذَامِ. وَ قَالَ عَفَّانُ.

باب ۴۰۹: دَ جُذام بیان. او عفان اووې.

٦٦٣: حَدَّثَنَا سَلِيْمُ بْنُ حَيَّانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَاءَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَؓ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوٰى وَ لَا طِيَرَةَ وَ لَا هَامَةَ وَلَا صَفَرَ وَ فِرَّ مِنَ الْمَجْذُوْمِ كَمَا تَفِرُّ مِنَ الْاَسَدِ.

٦٦٣: چه مونږ ته سلیم بن حیان. هغهٔ دَ سعید بن میناء نه حدیث بیان کهٔ، وئیلې، ما دَ ابوهریرهؓ نه واوریدل، چه حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ بیماري لږیدل، بدفالي او دَ هامه نحوست او صفر جوړول هیڅ څیزنهٔ دې. او جذامي نه داسې تښته څنګه چه امزري نه تښتې.

۱. یو طرفته خو رسول الله صلي الله علیه وسلّم په بیمارۍ کښې د تعدیې (یو بل ته لګیدلو) تردید اوفرمائیلو. بل طرفته د احادیثو نه په صراحت سره معلومیږي چه په بیمارئ کښې تعدیه کیږي. بعضو محدثینو وئیلي دي چه اصلاً او طبعًا په بیمار کښې تعدیه نه کیږي، کوم ځائې چه د تعدیې نه کیدلو صراحت دې هلته همدا مراد دې لیکن د الله تعالیٰ په حکم سره او د هغهٔ په تخلیق سره تبعًا بیمار کښې تعدیه کیږي. او کوم ځائې چه دا ویلې شوي دي چه دَ جذام بیماري والا نه ځان ساتئ په هغې کښې همدا خبره د نظر وړاندې ساتلې شوې ده. ددې کوم جواب چه ابن قیمؒ په "زاد المعاد" کښې ورکړې دې هغه زړه ته لګي. هغوي لیکلي دي چه په احادیثو د تعدیې نه انکار د اَوهام پرستۍ ختمولو د پاره کړې شوې دې. یعني دا ګنړي چه بیماري الوزي او نورو ته لګي څنګه چه د هندوستان هندوان هم دا اعتقاد لري نو دا غلط دي او په بیمارو کښې تعدیه په دې حیثیت سره قطعاً نیشته، اصلاً د تعدیې انکار مقصود نه دې. الله

تعالٰي په ډيرو بيمار کښې تعديه پيدا کړې ده' دې د پاره په دې باب کښې اوهام پرستي کول نه دي پکار' البته ذيو سبب په حيثيت سره دا منل پکار دي او په دې سلسله کښې مناسب پرهيز هم کول پکار دي. د "هامه" اعتقاد په عربو کښې دا شان وو چه هغوئ به د بعضو مارغانو متعلق دا ګنړل چه هغوئ په کوم ځائے کښې کيني او نعرے اووهي نو هغه ځائے ويجاړيږي. شريعت ددې ترديد اوکړو چه جوړيدل او ورانيدل د يو مارغه په آواز سره نه کيږي بلکه د الله تعالٰي په مشيت سره کيږي.

## بـاب ۴۱۰: الْمَنُّ شِفَاءٌ لِّلْعَيْنِ.

## بـاب ۴۱۰: مَنّ سترګے ذ پـاره شفـاء ده.

ف: مَنّ: يو قسم شبنم. ترنجبين.

۶۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ حُرَيْثٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْكَمْاَةُ مِنَ الْمَنِّ وَ مَاؤُهَا شِفَاءٌ لِّلْعَيْنِ قَالَ شُعْبَةُ وَ اَخْبَرَنِي الْحَكَمُ بْنُ عُتَيْبَةَ عَنِ الْحَسَنِ الْعُرَنِيِّ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ شُعْبَةُ لَمَّا حَدَّثَنِي بِهِ الْحَكَمُ لَمْ اُنْكِرْهُ مِنْ حَدِيْثِ عَبْدِ الْمَلِكِ.

۶۶۴: محمد بن مثنٰي. غندر. شعبه. عبدالملک. عمرو بن حريث. سعيد بن زيد نه روايت کوي' ذ هغهٔ بيان دے' ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل (ذ مار چترئ) خريړے (دا يو قسم دروني وي) ذ مَنّ نه وي. او ذ هغے اُوبه سترګو ذ پاره شفاء ده. شعبه اوويے' ماته حکم ذ عتيبه په واسطه ذ حسن عرفي' عمرو بن حريث. سعيد بن زيد. ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت اوکهٔ. شعبه اوويے' کوم وخت چه حکم دا حديث ماته بيان کهٔ' نو ما ذ عبدالملک ذ حديث نه ذ دے انکار اونه کهٔ.

## باب ۴۱۱: اَللَّدُوْدِ.

## باب ۴۱۱: خوله کښې يو طرف ته ذ دارو ايښودو بيان.

۶۶۵: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي مُوْسَى بْنُ اَبِيْ عَائِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ

۶۶۵: علي بن عبدالله. يحيٰي بن سعيد. سفيان. موسٰي بن ابي عائشه. عبيدالله بن عبدالله بن عباس او عائشےؓ نه روايت کوي. حضرت ابوبکرؓ نبي صلي الله عليه وسلّم بنکل کړلو (بوسه ليا) هر کله چه حضورؐ وفات شوے وو. ذ بي بي عائشےؓ بيان دے' مونږ ذ حضور صلي

ابْنِ عَبَّاسٍ وَ عَائِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مَيِّتٌ قَالَ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَدَدْنَاهُ فِيْ مَرَضِهِ فَجَعَلَ يُشِيْرُ اِلَيْنَا اَنْ لَا تَلُدُّوْنِيْ قُلْنَا كَرَاهِيَةَ الْمَرِيْضِ لِلدَّوَآءِ فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ اَلَمْ اَنْهَكُمْ اَنْ تَلُدُّوْنِيْ قُلْنَا كَرَاهِيَةَ الْمَرِيْضِ لِلدَّوَآءِ فَقَالَ لَا يَبْقٰى فِي الْبَيْتِ اَحَدٌ اِلَّا لُدَّ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَّا الْعَبَّاسَ فَاِنَّهٗ لَمْ يَشْهَدْكُمْ.

اللّٰه عليه وسلّم خوله مبارکه کښې دارو واچول. حضورٌ اشارے سره مونږ ته اوفرمائيل' چه ځما خوله کښې دارو مهٔ اچوئے. خو مونږ خيال اوکړ' چه مريض دوائي بده ګنړي (نو دوائي مو ورواچوله) کوم وخت چه حضورٌ روغ شولو' نو وے فرمائيل' آيا ما تاسو دَ دارو اچولو نه منع کړے نهٔ وئے. مونږ عرض اوکړ' مونږ خو دَ عامو مريضانو په شان کراهت ګنړلو. حضورٌ ورته اوفرمائيل' کور کښې به هيڅوک خما مخکښې دَ دوائي څکولونه نهٔ بچ کيږي' سِوا دَ عباسٌ نه' چه هغه دے کښې شريک نهٔ وو. (باقي ټولوته دِ خوله کښې دوائي واچولے شي)۔

۶۶۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اُمِّ قَيْسٍ قَالَتْ دَخَلْتُ بِابْنٍ لِّيْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَدْ اَعْلَقْتُ عَنْهُ مِنَ الْعُذْرَةِ فَقَالَ عَلٰى مَا تَدْغَرْنَ اَوْلَادَ كُنَّ بِهٰذَا الْعِلَاقِ عَلَيْكُنَّ بِهٰذَا الْعُوْدِ الْهِنْدِيِّ فَاِنَّ فِيْهِ سَبْعَةَ اَشْفِيَةٍ مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ يُسْعَطُ مِنَ الْعُذْرَةِ وَ يُلَدُّ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ فَسَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يَقُوْلُ بَيَّنَ لَنَا اثْنَيْنِ وَلَمْ يُبَيِّنْ لَنَا خَمْسَةً قُلْتُ لِسُفْيَانَ فَاِنَّ مَعْمَرًا يَقُوْلُ اَعْلَقْتُ عَلَيْهِ قَالَ لَمْ يَحْفَظْ اِنَّمَا قَالَ اَعْلَقْتُ عَنْهُ حَفِظْتُهٗ مِنْ فِيِّ الزُّهْرِيِّ وَ وَصَفَ سُفْيَانُ الْغُلَامَ يُحَنَّكُ بِالْاَصْبَعِ وَ

۶۶۲: علي بن عبداللّٰه. سفيان. زهري. عبيداللّٰه. اُم قيس نه روايت کوي' ما خپل ځوئے دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر کړلو. دَ عذره بيماري په سبب ما دَ هغهٔ تالو دباؤ کړے وو. حضورٌ اوفرمائيل' چه غاړه دباؤ کولو سره ولے خپلو بچو له تکليف ورکوئے. تاسو دا قسط هندي استعمالوئے' ځکه چه دے کښې دَ اوه قسمه بيمارو نه شفاء ده. منجمله دَ هغے نه ذات الجنب دے. د عذره بيماري کښې پوزه کښې او ذات الجنب کښې خوله کښې اچول پکار دي. ما دَ زهري نه واوريدل' چه مونږ ته ئے دَ دوو بيان اوکړ' او دَ باقي پنځو بيان ئے اونهٔ کړ. دَ علي بن عبداللّٰه بيان دے' چه ما سفيان ته اووے' چه معمر دَ: علقت عليه لفظ بيانولو' نو هغهٔ اووے' معمر ته ياد نهٔ دي پاتے شوے. ما دَ زهري دَ خولے نه آوريدلے دي' چه هغهٔ: اعلقت عنه: وئيلے او سفيان دَ هغے هلک حالت بيان کړ' چه ګوتو سره دَ هغهٔ تالو دباؤ کړے شوے وو. او سفيان خپله

أَدْخَلَ سُفْيَانُ فِي حَنَكِهِ إِنَّمَا يَعْنِيُ رَفَعَ حَنَكِهِ بِإِصْبَعِهِ وَ لَمْ يَقُلْ أَعْلِقُوا عَنْهُ شَيْئًا.

خوله کښې ګوته ورکړه' وې بنودل' یعنې خپلې ګوتې سره ئې خپل تالو اوچت کړلو' او: ذَ اعلقوا عنه شیئًا: هیڅوک قائل نهٔ دې.

## باب ۴۱۲:

## باب ۴۱۲: (دا باب بې عنوانه دې).

۶۶۷: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَ يُونُسُ قَالَ الزُّهْرِيُّ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاشْتَدَّ وَجَعُهُ اسْتَأْذَنَ أَزْوَاجَهُ فِيَّ أَنْ يُمَرَّضَ فِي بَيْتِي فَأَذِنَّ لَهُ فَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ فِي الْأَرْضِ بَيْنَ عَبَّاسٍ وَ آخَرَ فَأَخْبَرْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَنِ الرَّجُلُ الْآخَرُ الَّذِيْ لَمْ تُسَمِّ عَائِشَةُ قُلْتُ لَا قَالَ هُوَ عَلِيٌّ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا دَخَلَ بَيْتَهَا وَاشْتَدَّ بِهِ وَجَعُهُ هَرِيْقُوا عَلَيَّ مِنْ سَبْعِ قِرَبٍ لَمْ تُحْلَلْ أَوْ كِيَتُهُنَّ لَعَلِّيْ أَعْهَدُ إِلَى النَّاسِ قَالَتْ فَأَجْلَسْنَاهُ فِي مِخْضَبٍ لِحَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ طَفِقْنَا

۶۶۷: بشر بن محمد. عبدالله. معمر. او یونس. زهري. عبیدالله بن عبدالله بن عتبهؓ نه روایت کوي' دَ بي بي عائشےؓ بیان دے' کوم وخت چه دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم بیماري او تکلیف زیات شو. نو دَ خپلو بیبیانو نه ئې اجازت واخست چه دَ مرض حالت کښې دِ خما (عائشےؓ) کور کښې وي' نو ټولو (بیبیانو) اجازت ورکړلو. حضورؐ دَ دوو سړو په تکیه داسې اووتلو' چه دواړه پښې مبارکې ئې په زمکه راښکلې شوې. عباسؓ او یو بل سړے وو. ما ابن عباسؓ ته دا بیان اوکړ' نو هغهٔ اوویے' آیا تا ته معلومه ده' چه هغه دویم سړے څوک وو' چه بي بي عائشےؓ دَ هغهٔ نوم وانهٔ خست. ما اوویے' نه. هغهٔ ورته اوویے' هغه حضرت علي کرم الله وجهه وو. دَ بي بي عائشےؓ بیان دے. نبي صلي الله علیه وسلّم دَ هغې کور کښې داخل شو. او دَ حضور صلي الله علیه وسلّم تکلیف ډیر زیات شولو' نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. په ما اوه مشکه اوبه اوبهیوئې' چه دَ هغې خولې (لا) پرانستې شوې نه دي (یعني پوره ډک وي) شاید چه زهٔ خلقو ته نصیحت اوکړے شم. بي بي عائشےؓ اوویے. مونږ حضور صلي الله علیه وسلّم دَ بي بي حفصےؓ په لګن کښې کینولو. بیا مونږ په حضور صلي الله علیه وسلّم دَ هغې مشکونو نه اوبه بهیولې' تردې چه حضور صلي الله علیه وسلّم

نَصَبَّ عَلَيْهِ مِنْ تِلْكَ الْقِرَبِ حَتّٰى جَعَلَ يُشِيْرُ اِلَيْنَا اَنْ قَدْ فَعَلْتُنَّ قَالَتْ وَ خَرَجَ اِلَى النَّاسِ فَصَلّٰى لَهُمْ وَ خَطَبَهُمْ.

اشارے سره اوفرمائيل، چه تاسو خپل كار پوره كړلو (يعني بس دے) بيائے خلقو پله تشريف يوړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي ته مونځ وركړلو، او خطبه ئے وركړله.

باب ۴۱۳: اَلْعُذْرَةِ.

باب ۴۱۳: دَ عذره بيان.

۶۶۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ اُمَّ قَيْسٍ بِنْتَ مِحْصَنِ الْاَسَدِيَّةَ اَسَدَ خُزَيْمَةَ وَ كَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ الْاُوَلِ اللَّاتِيْ بَايَعْنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ اُخْتُ عُكَّاشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِابْنٍ لَهَا قَدْ اَعْلَقَتْ عَلَيْهِ مِنَ الْعُذْرَةِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مَا تَدْغَرْنَ اَوْلَادَ كُنَّ بِهٰذَا الْعِلَاقِ عَلَيْكُمْ بِهٰذَا الْعُوْدِ الْهِنْدِيِّ فَاِنَّ فِيْهِ سَبْعَةَ اَشْفِيَةٍ مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ يُرِيْدُ الْكُسْتَ وَهُوَ الْعُوْدُ الْهِنْدِيُّ وَ قَالَ يُوْنُسُ وَ اِسْحٰقُ بْنُ رَاشِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَلَّقَتْ عَلَيْهِ.

۶۶۸: ابواليمان. شعيب. زهري. عبيدالله بن عبدالله. ام قيس بنت محصن اسديه نه چه اسد خزيمه نه وه، او دَ اولين مهاجرينو ښځو نه وه، چه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه ئے بيعت كړے وو، او دَ عكاشه خور وه، روايت كوي، دَ هغے بيان دے، چه هغے دَ حضورصلي الله عليه وسلّم خدمت كښ خپل ځوئے حاضر كړلو، چه دَ عذره دَ وجے نه دَ هغهٔ تالو دباؤ كړے شوے وو. نو حضورؐ اوفرمائيل ولے تاسو دَ خپلو بچو تالو دباؤ كوئے، او هغوي ته تكليف رسوئے. دا عود هندي استعمالوئے ځكه چه دے كښ دَ اوه قسمه مرضونو علاج دے. منجملهٔ دَ هغے نه ذات الجنب دے، عودِ هندي دَ هغوي مراد كُست وو. او يونس او اسحاق بن راشد دَ زهري نه دَ: علقت عليه: لفظ روايت كړلو.

باب ۴۱۴: دَوَاءِ الْمَبْطُوْنِ.

باب ۴۱۴: دَ دستونو دَ علاج بيان.

۶۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۶۶۹: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. قتاده. ابوالمتوكل. ابو سعيد نه روايت كوي. يو سړے دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو. او عرض ئے اوكړ، ځما دَ ورور دستونه كيږي.

وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اَخِي اسْتَطْلَقَ بَطْنُهُ فَقَالَ اسْقِهِ عَسَلًا فَسَقَاهُ فَقَالَ اِنِّيُ سَقَيْتُهُ فَلَمْ يَزِدْهُ اِلَّا اسْتِطْلَاقًا فَقَالَ صَدَقَ اللّٰهُ وَ كَذَبَ بَطْنُ اَخِيْكَ تَابَعَهُ النَّضْرُ عَنْ شُعْبَةَ.

حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' په هغهٔ شات اوڅکوه. هغهٔ پرے اوڅکول' خو هغے سره دستونه لا زيات شو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' اللّٰه ريښتنے دے' او ستا دَ وروړ خيټه دروغجنه ده.

## بـاب ۵ ۱ ۴: لَا صَفَرَ وَهُوَ دَآءٌ يَأْخُذُ الْبَطْنَ.

## باب ۵ ۱ ۴: صفر هيڅ څيز نهٔ دے' او دا يوه بيماري ده' چه خيټه کښې پيدا کيږي.

۶۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيُ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَغَيْرُهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى وَ لَا صَفَرَ وَ لَا هَامَةَ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا بَالُ اِبِلِيُ تَكُوْنُ فِي الرَّمْلِ كَاَنَّهَا الظِّبَآءُ فَيَاْتِي الْبَعِيْرُ الْاَجْرَبُ فَيَدْخُلُ بَيْنَهَا فَيُجْرِبُهَا فَقَالَ فَمَنْ اَعْدَى الْاَوَّلَ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ عَنْ اَبِيُ سَلَمَةَ وَ سِنَانِ ابْنِ اَبِيُ سِنَانٍ.

۶۷۰: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن وغيره. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دَ مرض بل ته لګيدل' او صفر' او هامه هيڅ څيز نه دے. يو اعرابي عرض اوکهٔ' يا رسول اللّٰه' بيا څما دَ اُوښانو حالت ولے وي' چه هغه شړو کښې دَ اوسو په شان وي' يو خارشي اُوښ راشي' او هغوي کښې داخل شي' او هغوي ټول خارشي کړي (يعني په ټولو خارښ اولږي) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' نو بيا ورومبني ته دَ کوم ځائے نه (خارښ) راغلے وو. زهري دا دَ ابو سلمه نه او سنان بن ابي سنان نه روايت کهٔ.

## باب ۶ ۱ ۴: ذَاتِ الْجَنْبِ.

## باب ۶ ۱ ۴: ذات الجنب (دَ پښتئ دَ بيماري) بيان.

۶۷۱: حَدَّثَنِيُ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَتَّابُ بْنُ بَشِيْرٍ عَنْ اِسْحٰقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيُ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ اُمَّ قَيْسٍ بِنْتَ مِحْصَنٍ وَ كَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ الْاُوَلِ اللَّاتِيُ

۶۷۱: محمد. عتاب بن بشير. اسحٰق. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. اُم قيس بنت محصن' چه دَ ورمبنو مهاجرينو ښځو نه وَه. او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په لاس مبارک ئے بيعت کړے وو. او هغه دَ عکاشه بن محصنؓ خور هم وه' دَ هغے نه روايت

بَايَعْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ أُخْتُ عُكَاشَةَ ابْنِ مِحْصَنٍ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا أَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِابْنٍ لَهَا قَدْ عَلَّقَتْ عَلَيْهِ مِنَ الْعُذْرَةِ فَقَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا تَدْغَرُوْنَ أَوْلَادَكُمْ بِهٰذِهِ الْأَعْلَاقِ عَلَيْكُمْ بِهٰذَا الْعُوْدِ الْهِنْدِيِّ فَإِنَّ فِيْهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ يُرِيْدُ الْكُسْتَ يَعْنِي الْقُسْطَ قَالَ وَهِيَ لُغَةٌ.

كوي، ذَ هغې بيان دې، چه هغې خپل ځوئې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر كړلو چه ذ هغه تالو ئې ذ عذره (بيماري) په وجه دباؤ كړې وو. حضورﷺ ورته اوفرمائيل، ذَ اللّٰه نه اويريږئې. په څه بنا تاسو ذخپلو بچو تالو دباؤ كوئې. او هغوي له تكليف وركوئې. تاسو دا عود هندي استعمالوئې. دې كښې ذ اوه قسمه مرضونو علاج دې. منجمله ذ هغې نه ذات الجنب دې (عود هندي نه) ذ حضورﷺ مراد كُست وو، يعني قُسط، اوهغهٔ اووې، ذ لُغت ذ مخه دواړه مستعمل دي.

۶۷۲: حَدَّثَنَا عَارِمٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ قَالَ قُرِئَ عَلٰى أَيُّوْبَ مِنْ كُتُبِ أَبِيْ قِلَابَةَ مِنْهُ حَدَّثَ بِهِ وَمِنْهُ مَا قُرِئَ عَلَيْهِ وَكَانَ هٰذَا فِي الْكِتَابِ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ وَأَنَسَ بْنَ النَّضْرِ كَوَيَاهُ وَكَوَاهُ أَبُوْ طَلْحَةَ بِيَدِهٖ وَقَالَ عَبَّادُ بْنُ مَنْصُوْرٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَذِنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ بَيْتٍ مِّنَ الْأَنْصَارِ أَنْ يَّرْقُوْا مِنَ الْحُمَةِ وَالْأُذُنِ قَالَ أَنَسٌ كُوِيْتُ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيٌّ وَشَهِدَنِيْ أَبُوْ طَلْحَةَ وَأَنَسُ بْنُ النَّضْرِ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأَبُوْ طَلْحَةَ كَوَانِيْ.

۶۷۲: عارم. حماد نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې. ذ ابو قلابه ذ كتابونو نه ذَ ايوب مخكښې حديث واورولې شو. او هغې كښې بعضې هغه وو، چه هغهٔ بيان كړې وو او بعضې هغه اوو، چه ذ هغهٔ مخكښې آورولې شوې وو. او دغې كتاب كښې ذَ انس نه روايت وو، چه ابو طلحه او انس هغهٔ ته داغ اولږولو. او عباد بن منصور په واسطه ذَ ايوب، ابو قلابه، انس بن مالک نه روايت اوكهٔ، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذيو انصاري كور والو ته ذَ زهريلا ځناورو (مار، لړم وغيره) ذ چيچلو په حقله او ذَ غوږ تكليف كښې ذَ منتر (دَم چُف) كولو اجازت وركړلو. انس بيان اوكهٔ. ماته ذ ذات الجنب بيماري كښې ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ژوند كښې داغ اولګولې شو. او ما سره ابو طلحه او انس بن نضر او زيد بن ثابت موجود وو. او ابو طلحه ماته داغ اولګولو.

## بَابُ ۴۱۷: حَرْقِ الْعَصِيْرِ

## باب ۴۱۷: ذ ويښې بنديدو ذ پاره ذ چټائي ذ

لِيَشُدَّ بِهِ الدَّمَ.

سوزولو بيان.

٦٧۳ : حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقَارِيُّ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ السَّاعِدِيِّ قَالَ لَمَّا كُسِرَتْ عَلٰى رَأْسِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْضَةُ وَ أُدْمِيَ وَجْهُهُ وَ كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ وَ كَانَ عَلِيٌّ يَخْتَلِفُ بِالْمَآءِ فِي الْمِجَنِّ وَ جَآءَتْ فَاطِمَةُ تَغْسِلُ عَنْ وَجْهِهِ الدَّمَ فَلَمَّا رَأَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ الدَّمَ يَزِيْدُ عَلَى الْمَآءِ كَثْرَةً عَمَدَتْ إِلٰى حَصِيْرٍ فَأَحْرَقَتْهَا وَ أَلْصَقَتْهَا عَلٰى جُرْحِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَقَأَ الدَّمُ.

٦٧۳ : سعيد بن عفير. يعقوب بن عبدالرحمن قاري. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په سر مبارك خود (جنګي ټوپي) ماته شوه. او ذ حضورؐ په مخ مبارك وينے راماتے شوے. او ذ حضورؐ رباعي (غابش) مات شولو. حضرت علي كرم اللّٰه وجهه به ذ يو ډهال نه برابر اوبه اچولے. او بي بي فاطمےؓ به ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ مخ مبارك نه وينه وينځله. بي بي فاطمےؓ چه اوليدل، چه اوبو سره وينه زياتيږي، نو يوه چټائي (پوزكے) ئے اوسوزولو. او ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په زخمونو ئے اولږوله، چه هغے سره وينه بهيدل بند شو.

باب ۴۱۸ : اَلْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ.

باب ۴۱۸ : بخار د جهنم بړاس دے.

٦٧۴ : حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاطْفِئُوْهَا بِالْمَآءِ قَالَ نَافِعٌ وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَقُوْلُ اكْشِفْ عَنَّا الرِّجْزَ.

٦٧۴ : يحيي بن سليمان. ابن وهب. مالك. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل تبه ذ جهنم بړاس دے، په دے وجه ددے ګرمي اُوبو سره مړه كړئے. او نافع اووے، عبداللّٰه وئيلے، مونږ نه مصيبت لرے كړے.

٦٧۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ

٦٧۵ : عبداللّٰه بن مسلمه. مالك. هشام. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابوبكرؓ نه

فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ اَنَّ اَسْمَآءَ بِنْتَ اَبِيْ بَكْرٍ كَانَتْ اِذَا اُتِيَتْ بِالْمَرْأَةِ قَدْ حُمَّتْ تَدْعُوْ لَهَا اَخَذَتِ الْمَآءَ فَصَبَّتْهُ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ جَيْبِهَا قَالَتْ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْمُرُنَا اَنْ نَّبْرُدَهَا بِالْمَآءِ.

روايت كوي، هغې اوويل، كله چه به يوه ښځه ذ تبې حالت كښې هغې ته ذ دُعا ذ پاره راوستلې شوه، نو هغې به اُوبه آخستلې، او هغه به ئې ذ هغې گريوان كښې اچولې، او وئيل به ئې چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به مونږ ته ذ اُوبو په ذريعه ذ يخولو حكم راكولو.

٦٧٦ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَابْرُدُوْهَا بِالْمَاءِ.

٦٧٦ : محمد بن مثنٰي. يحيٰي. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي. وئيلې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې دي، چه بخار ذ جهنم بړاس دې، په دې وجه دا اُوبو سره يخه كړئې.

٦٧٧ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهٖ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَابْرُدُوْهَا بِالْمَآءِ.

٦٧٧ : مسدد. ابوالاحوص. سعيد بن مسروق. عبايه بن رفاعه. ذ خپل نيكهٔ (دادا) رافع بن خديج نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې، ما ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلې دي، چه بخار ذ جهنم بړاس دې نو دا اوبو سره يخه كړئې.

باب ۴۱۹ : مَنْ خَرَجَ مِنْ اَرْضٍ لَّا تُلَايِمُهٗ.

باب ۴۱۹ : داسې زمكې نه د وتلو بيان چه د هغې آب و هوا ښهٔ نه وي.

٦٧٨ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ اَنَّ نَاسًا اَوْ رِجَالًا مِّنْ عُكْلٍ وَّ عُرَيْنَةَ قَدِمُوْا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَكَلَّمُوْا

٦٧٨ : عبدالاعلٰي بن حماد. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې، ذ عكل او عرينه (قبيلو) ځنې خلق ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او ذ اسلام كلمه ئې اووې، او عرض ئې اوكړ، اې ذ اللّٰه نبيّ، مونږ خاروو واله وو. زميداري كونكي نهٔ وو، او ذ مدينې آب و هوا

بِالْإِسْلَامِ وَ قَالُوْا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ إِنَّا كُنَّا أَهْلَ ضَرْعٍ وَ لَمْ نَكُنْ أَهْلَ رِيْفٍ وَاسْتَوْخَمُوْا الْمَدِيْنَةَ فَأَمَرَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَوْدٍ وَ بِرَاعٍ وَّ أَمَرَهُمْ أَنْ يَّخْرُجُوْا فِيْهِ فَيَشْرَبُوْا مِنْ أَلْبَانِهَا وَ أَبْوَالِهَا فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى كَانُوْا بِنَاحِيَةِ الْحَرَّةِ كَفَرُوْا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَ قَتَلُوْا رَاعِيَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِي آثَارِهِمْ وَ أَمَرَ بِهِمْ فَسَمَرُوْا أَعْيُنَهُمْ وَ قَطَعُوْا أَيْدِيَهُمْ وَ تُرِكُوْا فِيْ نَاحِيَةِ الْحَرَّةِ حَتّٰى مَاتُوْا عَلٰى حَالِهِمْ.

په هغې خلقو راست رانغله، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغې خلقو ذ پاره ذ اُوښانو ذ يوې ګلې او ذ ګوارچي ذ ورکولو حکم اوکهٔ. او هغوي ته ئې حکم اوکهٔ، چه ذي ځارورو سره دې اوسي، او ذ هغوي پئې اومتيازې دې ځکي، هغه خلق روان شو، ترديې چه کوم وخت ذ حره اطرافو ته اورسيدل، نو مرتد شول، او ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ګوارچي ئې قتل کړلو، او اُوښان ئې اوتښتول. نبي صلي الله غليه وسلّم ته چه دا خبر اورسيد، نو هغوي پسې ئې څو سړي اوليږل (کوم وخت چه هغه خلق نيولې راوستې شو) حضور صلي الله عليه وسلّم ذ هغوي متعلق حکم ورکړلو، نو ذ هغوي سترګو کښې سلائي اوګرځولې شو. او ذ هغوي لاسونه پريکړې شو، او ذ حره علاقه کښې پريښودې شو، ترديې چه هغه حال کښې مړهٔ شو.

## بَابٌ ٤٢٠: مَا يُذْكَرُ فِي الطَّاعُوْنِ.

باب ۴۲۰: ذ طاعون متعلق چه کوم روايتونه منقول دي، ذ هغې بيان.

٦٧٩: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ حَبِيْبُ بْنُ أَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ إِبْرٰهِيْمَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ يُحَدِّثُ سَعْدًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا سَمِعْتُمْ بِالطَّاعُوْنِ بِأَرْضٍ فَلَا تَدْخُلُوْهَا وَ إِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَّ أَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوْا مِنْهَا فَقُلْتُ أَنْتَ سَمِعْتَهُ يُحَدِّثُ سَعْدًا وَّلَا يُنْكِرُهُ قَالَ نَعَمْ.

۶۷۹: حفص بن عمر. شعبه. حبيب بن ابي ثابت. ابراهيم بن سعد. اسامه بن زيدٌ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کله چه تاسو ذ يو ځائې متعلق واورئې، چه هلته طاعون دې، نو هلته مهٔ ځئې او هر کله چه تاسو يو ځائې کښې يئې، او هلته طاعون خور شي، نو ذ هغې ځائې نه مهٔ اُوځئې. ما تپوس اوکهٔ، تا اسامه نه ذ سعد نه دا حديث بيانول واوريدل، او هغهٔ ذ دې نه انکار اونه کهٔ، نو هغهٔ اووې، او.

٦٨٠ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيْدِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ خَرَجَ اِلَى الشَّامِ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِسَرْغَ لَقِيَهُ اُمَرَآءُ الْاَجْنَادِ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ وَ اَصْحَابُهُ فَاَخْبَرُوْهُ اَنَّ الْوَبَآءَ قَدْ وَقَعَ بِاَرْضِ الشَّامِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَقَالَ عُمَرُ ادْعُ لِيَ الْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ فَدَعَاهُمْ فَاسْتَشَارَهُمْ وَ اَخْبَرَهُمْ اَنَّ الْوَبَآءَ قَدْ وَقَعَ بِالشَّامِ فَاخْتَلَفُوْا فَقَالَ بَعْضُهُمْ قَدْ خَرَجْتَ لِاَمْرٍ وَّلَا نَرٰى اَنْ تَرْجِعَ عَنْهُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ مَعَكَ بَقِيَّةُ النَّاسِ وَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا نَرٰى اَنْ تُقْدِمَهُمْ عَلٰى هٰذَا الْوَبَآءِ فَقَالَ ارْتَفِعُوْا عَنِّيْ ثُمَّ قَالَ ادْعُوْا لِيَ الْاَنْصَارَ سَبِيْلَ الْمُهَاجِرِيْنَ وَاخْتَلَفُوْا كَاخْتِلَافِهِمْ فَقَالَ ارْتَفِعُوْا عَنِّيْ ثُمَّ قَالَ ادْعُوْا لِيْ مَنْ كَانَ هٰهُنَا مِنْ مَّشْيَخَةِ قُرَيْشٍ مِنْ مُّهَاجِرَةِ الْفَتْحِ

٦٨٠ : عبدالله بن یوسف. مالک. ابن شهاب. عبدالحمید بن عبدالرحمٰن بن زید بن خطاب. عبدالله بن عبدالله بن حارث بن نوفل. عبدالله بن عباسؓ نه روایت کوي، حضرت عمرؓ بن خطاب شام د پاره اووتلو، تردې چه کوم وخت مقام سرغ ته اورسيد نو هغه سره دَ لښکر اميران يعني ابو عبيده بن جراح او د هغهٔ ملګري يوځائے شول. او بيان ئے اوکۀ چه ملک شام کښې وَبا خوره شوې ده. دَ ابن عباسؓ بيان دے. حضرت عمرؓ اوفرمائيل، ماته اولين مهاجرين راولئے، نو هغه خلق راوغښتلے شو. هغوي سره ئے مشوره اوکړه. او وئيلے، چه شام کښې وبا خوره شوې ده. هغې خلقو کښې اختلاف پيدا شو، بعضو اووے، دَ کوم کار دَ پاره چه راوتلے يُو، دَ هغې نه واپس کيدل مناسب نۀ دي. او بعضو اووے، چه تاسو سره دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم صحابهٔؓ او لوئے لوئے خلق دي، په دے وجه خمونږ دے وَبا طرف ته پيش قدمي کول مناسب نۀ دي هغهٔ اوفرمائيل، تاسو خلق خما نه لاړ شئے. بيائے اوفرمائيل، ماته انصار راولئے. ما هغوي راوغوښتل. هغوي سره ئے مشوره اوکړه نو هغے خلقو کښې دَ مهاجرينو په شان اختلاف پيدا شو. او دَ هغوي طريقه ئے اختيار کړله، نو حضرت عمرؓ اوفرمائيل، خما نه لاړ شئے. بيائے اوفرمائيل، دَ قريشو هغه بوډاګان راوغواړئے، چه هغوي دَ مکے دَ فتح دَ پاره هجرت کړے وو، نو ما هغوي راوغوښتل. دے معامله کښې هغوي کښې چا دوو کښې هم اختلاف نۀ وو. او وئيلے، چه خلق هلته مه بوځه او دے وباء باندے پيش قدمي کول خمونږ خيال کښې

فَدَعَوْتُهُمْ فَلَمْ يَخْتَلِفْ مِنْهُمْ عَلَيْهِ رَجُلَانِ فَقَالُوْا نَرٰى اَنْ تَرْجِعَ بِالنَّاسِ وَلَا تُقْدِمَهُمْ عَلٰى هٰذَا الْوَبَآءِ فَنَادٰى عُمَرُ فِي النَّاسِ اِنِّيْ مُصَبِّحٌ عَلٰى ظَهْرٍ فَاَصْبَحُوْا عَلَيْهِ قَالَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ اَفِرَارًا مِنْ قَدَرِ اللّٰهِ فَقَالَ عُمَرُ لَوْ غَيْرُكَ قَالَهَا يَا اَبَا عُبَيْدَةَ نَعَمْ نَفِرُّ مِنْ قَدَرِ اللّٰهِ اِلٰى قَدَرِ اللّٰهِ اَرَءَيْتَ لَوْ كَانَ لَكَ اِبِلٌ هَبَطَتْ وَادِيًا لَّهٗ عُدْوَتَانِ اِحْدٰهُمَا خَصِبَةٌ وَّالْاُخْرٰى جَدْبَةٌ اَلَيْسَ اِنْ رَعَيْتَ الْجَدْبَةَ رَعَيْتَهَا بِقَدَرِ اللّٰهِ قَالَ فَجَآءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ عَوْفٍ وَّ كَانَ مُتَغَيِّبًا فِيْ بَعْضِ حَاجَتِهٖ فَقَالَ اِنَّ عِنْدِيْ فِيْ هٰذَا عِلْمًا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا سَمِعْتُمْ بِهٖ بِاَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوْا عَلَيْهِ وَ اِذَا وَقَعَ بِاَرْضٍ وَ اَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوْا فِرَارًا مِنْهُ قَالَ فَحَمِدَ اللّٰهَ عُمَرُ ثُمَّ انْصَرَفَ.

مناسب نهٔ دي. حضرت عمرؓ خلقو کښې اعلان اوکهٔ، چه زهٔ به صبا له روانګئ دَ پاره سوريږم، نو خلق سحر وخت کښې حضرت عمرؓ له راغلل. ابو عبيده بن جراح اووے، آيا دَ اللّٰه دَ تقدير نه تيښته کوے. حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل، اے عبيدهٔؓ کاش، ستانه علاوه بل سړي داسے وئيلے وے، هاؤ مونږ دَ تقدير الٰهي نه تقدير الٰهي طرف ته تيښته کوو. دا راته اووايه، که تاسره اُوښان وي، او ته يو وادي کښې کوز شے، چه هغے کښې دوه ميدانه وي، يو خو سرسبز او شاداب وي او دوئم خشک وي، نو آيا دا واقعه نهٔ ده، که سرسبز ميدان کښې اوښان څروے، نو تقدير الٰهي سره، او که خشک ميدان کښې څروے. نو هم دَ تقدير الٰهي په سبب. دَ راوي بيان دے، چه عبدالرحمٰن بن عوف راغے، او هغهٔ دَ څهٔ ضرورت په سبب موجود نهٔ وو. هغهٔ اووے. دَ دے متعلق ماسره علم شته، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه هر کله تاسو دَ يو ځائے متعلق واورئے، چه هلته وبا خوره شوے ده، نو هلته مهٔ ځئے. او هر کله چه يو ځائے کښې وبا خوره شي او تاسو هلته موجود يئے نو دَ هغے ځائے نه په تيښته مهٔ اوځئے. دَ راوي بيان دے. حضرت عمرؓ دَ خدائے شکر ادا کهٔ. بيا دَ هغے ځائے نه واپس شولو.

۶۸۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ عُمَرَ خَرَجَ اِلَى الشَّامِ فَلَمَّا كَانَ بِسَرْغَ بَلَغَهٗ اَنَّ الْوَبَآءَ قَدْ وَقَعَ بِالشَّامِ فَاَخْبَرَهٗ عَبْدُ

۶۸۱ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. عبداللّٰه بن عامر نه روايت کوي. حضرت عمرؓ شام طرف ته روان شو. کوم وخت چه مقام سرغ ته اورسيد، نو خبر شولو چه شام کښې وبا خوره شوے ده، نو هغهٔ ته عبدالرحمٰن بن عوف اووے، رسول اللّٰه صلي

الرَّحْمٰنِ ابْنُ عَوْفٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا سَمِعْتُمْ بِهٖ بِاَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوْا عَلَيْهِ وَ اِذَا وَقَعَ بِاَرْضٍ وَّ اَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوْا فِرَارًا مِّنْهُ.

اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، هر كله چه تاسو ذ يو ځائے متعلق واورئے چه هلته وَبا خوره شوے ده، نو هلته مه ورځئے، او هر كله چه يو ځائے كښې وَبا خوره شي او تاسو هلته موجود يئے نو ذ هغه ځائے نه په تيښته مه اوځئے.

٦٨٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نُعَيْمٍ الْمُجْمِرِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ الْمَسِيْحُ وَلَا الطَّاعُوْنُ.

٦٨٢ : عبداللّٰه بن يوسف. مالك. نعيم. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي: ذ هغه بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، مدينه كښې به مسيح دجّال او طاعون نه داخليږي.

٦٨٣ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ حَدَّثَتْنِيْ حَفْصَةُ بِنْتُ سِيْرِيْنَ قَالَتْ قَالَ لِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ يَحْيٰى بِمَا مَاتَ قُلْتُ مِنَ الطَّاعُوْنِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ لِّكُلِّ مُسْلِمٍ.

٦٨٣ : موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. عاصم. بنت سيرين. انس بن مالك نه روايت كوي: هغه ما نه تپوس اوكړ، چه يحيي كوم مرض نه وفات شولو. ما جواب وركړ: ذ طاعون مرض نه. نو هغه بيان اوكړ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، طاعون هر مسلمان ذ پاره شهادت دے.

٦٨٤ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَبْطُوْنُ شَهِيْدٌ وَالْمَطْعُوْنُ شَهِيْدٌ.

٦٨٤ : ابو عاصم. مالك. سُمي. ابو صالح. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي: ذ هغه بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دست او طاعون سره چه مړ شي نو هغه (مسلمان) شهيد دے.

باب ٤٢١ : اَجْرِ الصَّابِرِ فِي الطَّاعُوْنِ.

باب ٤٢١ : طاعون كښې ذ صبر كونكو ذ اجر بيان.

٦٨٥ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا دَاوٗدُ بْنُ اَبِي الْفُرَاتِ

٦٨٥ : اسحاق. حبان. داؤد بن ابي الفرات. عبداللّٰه بن بريده. يحيي بن يعمر.

حدثنا عبد الله بن بريدة عن يحيى بن يعمر عن عائشة زوج النبي صلى الله عليه وسلم انها اخبرتنا انها سالت رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الطاعون فاخبرها نبي الله صلى الله عليه وسلم كان انه عذابا يبعثه الله على من يشاء فجعله الله رحمة للمؤمنين فليس من عبد يقع الطاعون فيمكث في بلده صابرا يعلم انه لن يصيبه الا ما كتب الله له الا كان له مثل اجر الشهيد تابعه النضر عن داود.

ذ نبي صلي الله عليه وسلم تبر بي بي عائشې نه روايت كوي، د هغې بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم نه ذ طاعون متعلق تپوس 'وشو' نو حضور ورته اووے. دا يو عذاب وو، چه الله تعالي به چا غوښتلو' هغه ته ئې لېږلو ليكن الله تعالي د مسلمانانو د پاره دا رحمت جوړ كړے دے. نو هيڅ بنده داسے نشته، چه طاعون خور شي او هغه هغې ښهر كښې په دے خيال ايسار شي، چه هيڅ مصيبت سري ته نۀ رسي، خو هغه چه الله تعالي ليكلے وي، نو هغۀ ته ذ شهيد برابر اجر رسي. نضر ذ داؤد نه ذ دے متابعت كښې روايت كړے دے.

## باب ٢٢٢: الرقى بالقرآن و المعوذات.

## باب ٢٢٢: قرآن او معوذات (سورة فلق او ناس) لوستو سره ذ دم كولو بيان.

٦٨٦: حدثني ابراهيم بن موسى اخبرنا هشام عن معمر عن الزهري عن عروة عن عائشة ان النبي صلى الله عليه وسلم كان ينفث على نفسه في المرض الذي مات فيه بالمعوذات فلما ثقل كنت انفث عليه بهن و امسح بيد نفسه لبركتها فسألت الزهري كيف ينفث فقال كان ينفث على يديه ثم يمسح بهما وجهه.

٦٨٦: ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، ذ هغې بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلم چه كوم مرض كښې وفات شو. هغې كښې به ئې په خان معوذات (سورة فلق او ناس) چُف كول. كوم وخت چه به حضورٌ ته زيات تكليف شو، نو دا سورتونه به ما لوستل، او په حضورٌ به م دم كول، او ذ حضورٌ لاس مبارك به م ذ حضورٌ په جسم مبارك ذ بركت ذ پاره كرخولو. ما ذ زهري نه تپوس اوكۀ، چه څنګه ئې دم كولو، هغۀ اووے، په دواړو لاسونو به ئې چُف كولو. بيابه ئې هغه دواړه په خپل مخ رابنكل.

بـاب ۴۲۳: الرُّقَى بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۸۷: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَوْا عَلَى حَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَلَمْ يَقْرُوهُمْ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ إِذَا لُدِغَ سَيِّدُ أُولٰئِكَ فَقَالُوا هَلْ مَعَكُمْ مِنْ دَوَاءٍ أَوْرَاقٍ فَقَالُوا إِنَّكُمْ لَمْ تَقْرُونَا وَ لَا نَفْعَلُ حَتّٰى تَجْعَلُوا لَنَا جُعْلًا فَجَعَلُوا لَهُمْ قَطِيعًا مِنَ الشَّاءِ فَجَعَلَ يَقْرَأُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَ يَجْمَعُ بُزَاقَهُ وَ يَتْفِلُ فَبَرَأَ فَأَتَوْا بِالشَّاءِ فَقَالُوا لَا نَأْخُذُهُ حَتّٰى نَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلُوهُ فَضَحِكَ وَ قَالَ وَ مَا أَدْرَاكَ أَنَّهَا رُقْيَةٌ خُذُوهَا وَاضْرِبُوا لِي بِسَهْمٍ.

باب ۴۲۳: سورۀ فاتحه لوستلو سره دَ دم کولو بیان. او ابن عباسؓ دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه هم روایت کړے دے.

۶۸۷: محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابوبشر. ابو متوکل. ابو سعید خدري نه روایت کوي، دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ صحابهؓ ؤ یو څو کسان دَ عربو یو قبیلے ته اُورسیدل. دَ قبیلے خلقو دَ هغوي میلمستیا اونۀ کړله، دغه خلق لا دغلته کښې وو، چه دَ هغے قبیلے سردار مار اُوخوړلو. نو هغوي تپوس اوکۀ، چه تاسو سره څۀ دارو یا څوک دَم چُف کونکے شته. نو هغے خلقو ورته اووے، چه تاسو خمونږ میلمستیا اونۀ کړله. په دے وجه مونږ هیڅ نۀ کوو. څو پورے چه تاسو مونږ دَ پاره څۀ (اُجرت) مقرر نۀ کړئے. په دے خبره هغے خلقو دَ یو څو چیلو (بکریوں) ورکول منظور کړل. نو هغوي سورۀ فاتحه لوستل شروع ک ړل. توکانړے ئے جمع کړلے، په هغه ئے اوغرخولے (یعني په مار خوړلي ئے خپلے لاړے پورے کړے) نو هغه سړے روغ شولو. بیا هغۀ چیلے راوستے. نو هغوي ورته اووے، مونږ دا نۀ آخلو، څو پورے چه دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه تپوس اونۀ کړو. هغے خلقو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه ددے متعلق تپوس اوکۀ، نو حضورؐ په خندا شو، او، وے فرمائیل، تاسو ته څنګه معلومه شوه، چه سورۀ فاتحه منتر دے. تاسو دا (چیلئے) واخلئے. او ما دَ پاره په کښې هم یوه حصه او کړئے.

بـاب ۴۲۴: الشَّرْطِ فِي الرُّقْيَةِ بِقَطِيعٍ مِنَ الْغَنَمِ.

باب ۴۲۴: منتر لوستو کښې دَ څو چیلو دَ شرط لږولو بیان.

۶۸۸ : حَدَّثَنِي سِيدَانُ بْنُ مُضَارِبٍ اَبُو مُحَمَّدٍ الْبَاهِلِيُّ حَدَّثَنَا اَبُو مَعْشَرٍ الْبَصَرِيُّ هُوَ صَدُوقٌ يُوْسُفُ بْنُ يَزِيْدَ الْبَرَّاءُ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ الْاَخْنَسِ اَبُوْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ نَفَرًا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرُّوْا بِمَاءٍ فِيْهِمْ لَدِيْغٌ اَوْ سَلِيْمٌ فَعَرَضَ لَهُمْ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ الْمَاءِ فَقَالَ هَلْ فِيْكُمْ مِنْ رَّاقٍ اِنَّ فِي الْمَاءِ رَجُلًا لَدِيْغًا اَوْ سَلِيْمًا فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَرَاَ بِفَاتِحَةِ الْكِتٰبِ عَلٰى شَاءٍ فَبَرَاَ فَجَاءَ بِالشَّاءِ اِلٰى اَصْحَابِهٖ فَكَرِهُوْا ذٰلِكَ وَ قَالُوْا اَخَذْتَ عَلٰى كِتَابِ اللّٰهِ اَجْرًا حَتّٰى قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخَذَ عَلٰى كِتَابِ اللّٰهِ اَجْرًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَحَقَّ مَا اَخَذْتُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ.

۶۸۸ : سيدان بن مضارب. ابو محمد باهلي. ابو معشر بصري. يوسف بن يزيد براء. عبيدالله بن اخنس ابو مالک. ابن ابي مليكه. ابن عباسؓ نه روايت كوي د هغهٔ بيان دے، ذ نبي صلي الله عليه وسلم د اصحابو نه څو كسان اوبو سره اوسيدونكو باندے تير شو، چه هغوي كښې يو سړے مار خوړلے وو (راوي يا سليم لفظ ئے بيان كړلو) اوبو سره اوسيدونكو كښې يو سړے، دغے اصحابوؓ له ورغے، او ورته ئے اووے، چه تاسو كښې منتر (دَم چُف) كونكے شته. اُوبو كښې يو سړے مار يا لړم خوړلے دے. (مار خوړلے ئے لديغ يا سليم روايت كړلو). يو صحابيؓ ورغے، او ذَ چيلو (بكريوں) په شرط ئے پرے سورهٔ فاتحه اولوسته، نو هغه (مار خوړلے) سړے روغ شولو، او هغه صحابهؓ ؤ چيلئے (بكرياں) راوستے. ليكن هغوي دا مكروهه اوګنړلے. او، وئيلے، چه تا په كتاب اللّٰه اجرت واخستلو، تر دے چه هغه خلق مدينے ته راورسيدل، نو هغوي عرض او كړ، يا رسول اللّٰه، دهٔ په كتاب اللّٰه اجرت واخستلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په كومو څيزونو چه اجرت اخستل جائز دي، هغے كښې ذ ټولو نه مستحق كتاب الله دے.

## باب ۴۲۵ : رُقْيَةِ الْعَيْنِ.

## باب ۴۲۵ : نظر لربيدو سره ذَ منتر لوستو بيان.

۶۸۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ شَدَّادٍ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَ اَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ اَمَرَ اَنْ

۶۸۹ : محمد بن كثير. سفيان. سعيد بن خالد. عبداللّٰه بن شداد. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، ماته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حكم راكړ. يا دا بيان ئے او كړ، چه حضورؐ بد نظر لربيدو باندے ذَ منتر چُف كولو

يُسْتَرْقَى مِنَ الْعَيْنِ.

حکم اوكهٔ.

۵۶۹۰: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ وَهْبِ بْنِ عَطِيَّةَ الدِّمَشْقِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً فِي وَجْهِهَا سَفْعَةٌ فَقَالَ اسْتَرْقُوا لَهَا فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ وَ قَالَ عُقَيْلٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابَعَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَالِمٍ عَنِ الزُّبَيْدِيِّ.

۵۶۹۰: محمد بن خالد. محمد بن وهب بن عطيه دمشقي. محمد بن حرب. محمد بن وليد زبيدي. زهري. عروه بن زبير. زينب بنت ابي سلمه. بي بي اُم سلمهؓ نه روايت كوي. هغې اووې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغې كور كښې يوه جينئ اوليده، چه ذ هغې په مخ نښې وې. حضورؐ اوفرمائيل، په دې دم ځف اوكړئې، ځكه چه دې ته بد نظر لړيدلې دې. او عقيل ذ زهري نه روايت اوكهٔ، چه ماته عروه او هغه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړې دې. عبداللّٰه بن سالم ذ زبيدي نه ذ دې متابع روايت اوكهٔ.

## بَاب ۴۲۶: اَلْعَيْنُ حَقٌّ.

## باب ۴۲۶: نظر لړيدل حق دي.

۵۶۹۱: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَيْنُ حَقٌّ وَّ نَهٰى عَنِ الْوَشْمِ.

۵۶۹۱: اسحٰق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه ذ نظر لړيدل حق دي. او د خال (يا نښې) جوړولونه ئې منع فرمائيلې ده.

## بَاب ۴۲۷: رُقْيَةِ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ.

## باب ۴۲۷: مار، لړم چيچلو سره ذ منتر لوستو بيان.

۵۶۹۲: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ

۵۶۹۲: موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. سليمان شيباني. عبدالرحمٰن بن اسود. ذ خپل پلار (اسودؒ) نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې. ذ بي بي عائشېؓ نه ذ زهريله ځناور ذ چيچلو د منتر (ذم ځف) متعلق تپوس

سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الرُّقْيَةِ مِنَ الْحُمَةِ فَقَالَتْ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّقْيَةَ مِنْ كُلِّ ذِيْ حُمَةٍ.

اوكـهٔ، نـو هـغهٔ اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د هـر زهـريـلـه ځـناور په چيچلو دَ منتر (دم چُف) اجازت ور كړے دے.

## الحمد للّٰه والشكر للّٰه درويشتمه پاره ختمه شوه




شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

تاج کتب خانه رجسټرډ

C-17

# تاج البخاري پاره ۲۴ دمضامينو فهرست


| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۴۲۸. | د نبي کريمؐ دَم کؤل | ۳۶۶۸ |
| ۴۲۹. | د مؤلو وخت کښې توکل | ۳۶۶۹ |
| ۴۳۰. | په تکليف کښې دمؤل | ۳۶۷۲ |
| ۴۳۱. | ښځه چه په سرې بانډې دم اچوي | ۳۶۷۲ |
| ۴۳۲. | چا چه د مؤل اونه کړل | ۳۶۷۳ |
| ۴۳۳. | شګون | ۳۶۷۴ |
| ۴۳۴. | فال | ۳۶۷۴ |
| ۴۳۵. | دَ هامې هيڅ اصل نيشته | ۳۶۷۵ |
| ۴۳۶. | کهانت | ۳۶۷۵ |
| ۴۳۷. | جادو | ۳۶۷۷ |
| ۴۳۸. | شرک او جادو | ۳۶۷۹ |
| ۴۳۹. | آيا جادو ويستې کيدې شي | ۳۶۷۹ |
| ۴۴۰. | جادو | ۳۶۸۱ |
| ۴۴۱. | بعضې تقريرونه هم جادو وي | ۳۶۸۲ |
| ۴۴۲. | عجوې سره د جادو علاج | ۳۶۸۳ |
| ۴۴۳. | د هامې اصل نيشته | ۳۶۸۳ |
| ۴۴۴. | مرضونه يو بل ته لګيدل | ۳۶۸۵ |
| ۴۴۵. | نبي کريمؐ په زهرو ورکولو الخ | ۳۶۸۶ |
| ۴۴۶. | زهر څکل | ۳۶۸۷ |
| ۴۴۷. | دَ خرې پي | ۳۶۸۸ |
| ۴۴۸. | کله چه په لوښي کښې مچ پروځي | ۳۶۸۹ |
| | كتاب اللباس | |
| ۴۴۹. | زينت چا حرام کړې دې | ۳۶۸۹ |
| ۴۵۰. | د تکبر نه بغير | ۳۶۹۰ |
| ۴۵۱. | جامه راټولول | ۳۶۹۱ |
| ۴۵۲. | کومه چه دَ ګيټو نه ښکته وي | ۳۶۹۱ |
| ۴۵۳. | د تکبر په وجې سره جامه راښکل | ۳۶۹۲ |
| ۴۵۴. | جالر دار لنګ | ۳۶۹۴ |
| ۴۵۵. | څادر | ۳۶۹۵ |
| ۴۵۶. | قميص اغوستل | ۳۶۹۵ |
| ۴۵۷. | د قميص ګيروان په سينه بانډې | ۳۶۹۷ |
| ۴۵۸. | د تنګو لستونړو جُبه اغوستل | ۳۶۹۸ |
| ۴۵۹. | په غزا کښې د وَړني جُبه | ۳۶۹۸ |
| ۴۶۰. | قُبا او ريښمي فروج | ۳۶۹۹ |
| ۴۶۱. | توپۍ | ۳۷۰۰ |
| ۴۶۲. | پرتوګونه | ۳۷۰۰ |
| ۴۶۳. | پټکي | ۳۷۰۱ |
| ۴۶۴. | سر پټول | ۳۷۰۱ |
| ۴۶۵. | خَود (د اوسپنې توپۍ) | ۳۷۰۳ |
| ۴۶۶. | کرښو والا څادر | ۳۷۰۴ |
| ۴۶۷. | څادرونه او کمبلونه | ۳۷۰۷ |
| ۴۶۸. | ګوټ وهلو سره ناسته | ۳۷۰۸ |
| ۴۶۹. | پوړې جامې سره ملا او خپې تړل | ۳۷۰۹ |
| ۴۷۰. | خميصه | ۳۷۱۰ |
| ۴۷۱. | شنې جامې | ۳۷۱۱ |
| ۴۷۲. | سپينې جامې | ۳۷۱۲ |
| ۴۷۳. | ريښم اغوستل | ۳۷۱۳ |
| ۴۷۴. | اغوستو نه بغير ريښم بدن سره لږول | ۳۷۱۷ |
| ۴۷۵. | ريښم غوړول | ۳۷۱۷ |
| ۴۷۶. | قيمتي جامه اغوستل | ۳۷۱۷ |
| ۴۷۷. | د خارښ په وجې سره د ريښمو استعمال | ۳۷۱۸ |
| ۴۷۸. | ريښم ښځو د پاره | ۳۷۱۸ |
| ۴۷۹. | د جامو او بسترو په معامله کښې | ۳۷۲۰ |
| ۴۸۰. | نوې جامه اغوستونکې به څه دعا کوي؟ | ۳۷۲۲ |
| ۴۸۱. | سړو د پاره د زعفرانو استعمال | ۳۷۲۳ |
| ۴۸۲. | زعفرانو سره رنګ شوې جامه | ۳۷۲۳ |
| ۴۸۳. | سُره جامه | ۳۷۲۳ |
| ۴۸۴. | د سور رنګ ميثره | ۳۷۲۴ |
| ۴۸۵. | د باغت والا او بې | ۳۷۲۴ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | د باغته پیزار | |
| ۴۸۶. | مخکښې په ښي خپه کښې پیزار اچول | ۳۷۲۶ |
| ۴۸۷. | مخکښې دِ د ګسې ښپې پیزار اوباسي | ۳۷۲۶ |
| ۴۸۸. | صرف يوې خپې کښې دِ پیزار نه اچوي | ۳۷۲۶ |
| ۴۸۹. | دوه تسمې په يوه چپله کښې | ۳۷۲۷ |
| ۴۹۰. | د څرمنې سره خيمه | ۳۷۲۷ |
| ۴۹۱. | په پُوزَکي بانديې کيناستل | ۳۷۲۸ |
| ۴۹۲. | کومه کپړه کښې چه د سرو زرو تنړئي لګيدلې وي | ۳۷۲۹ |
| ۴۹۳. | د سرو زرو ګوتمې | ۳۷۲۹ |
| ۴۹۴. | د چاندئ ګوتمې | ۳۷۳۰ |
| ۴۹۵. | باب ۴۹۵ | ۳۷۳۱ |
| ۴۹۶. | د ګوتمې غمې | ۳۷۳۲ |
| ۴۹۷. | د اوسپنې ګوته | ۳۷۳۳ |
| ۴۹۸. | په ګوته بانديې نقش | ۳۷۳۴ |
| ۴۹۹. | په قچه ګوته کښې ګوتمه | ۳۷۳۵ |
| ۵۰۰. | مهر لګولو د پاره ګوته | ۳۷۳۵ |
| ۵۰۱. | د ګوتې غمې تَلې طرفته ساتل | ۳۷۳۵ |
| ۵۰۲. | څوک سړې دِ په خپلې ګوتې بانديې نقش نه جوړوي | ۳۷۳۶ |
| ۵۰۳. | د ګوتې نقش په درې کرښو کښې | ۳۷۳۶ |
| ۵۰۴. | ښځو د پاره ګوته اچول | ۳۷۳۷ |
| ۵۰۵. | ښځو د پاره هار | ۳۷۳۷ |
| ۵۰۶. | هار سوالي اخستل | ۳۷۳۸ |
| ۵۰۷. | والئ | ۳۷۳۸ |
| ۵۰۸. | ماشومانو د پاره هار | ۳۷۳۹ |
| ۵۰۹. | د ښځو چال ډهال والا سړي (ښځونک) | ۳۷۴۰ |
| ۵۱۰. | داسې سړي د کورونو نه ويستل | ۳۷۴۰ |
| ۵۱۱. | بريت کمؤل | ۳۷۴۱ |
| ۵۱۲. | نوکونه پريکول | ۳۷۴۲ |
| ۵۱۳. | ګيره اوکدؤل | ۳۷۴۲ |
| ۵۱۴. | د بوډا والي متعلق روايات | ۳۷۴۳ |
| ۵۱۵. | خضاب | ۳۷۴۴ |
| ۵۱۶. | کولکوتي ويښته | ۳۷۴۴ |
| ۵۱۷. | ويښتهٔ سَره انښلول | ۳۷۴۸ |
| ۵۱۸. | په مينځ کښې لاره ويستل | ۳۷۴۹ |
| ۵۱۹. | ګيسُو | ۳۷۵۰ |
| ۵۲۰. | قزع | ۳۷۵۰ |
| ۵۲۱. | د ښځې خپل خاوند له خوشبوئي لګول | ۳۷۵۱ |
| ۵۲۲. | سر او ګيره کښې خوشبوئ | ۳۷۵۲ |
| ۵۲۳. | ګومنز کؤل | ۳۷۵۲ |
| ۵۲۴. | د حيض والا ښځې ګومنز کول | ۳۷۵۲ |
| ۵۲۵. | ګومنز کول | ۳۷۵۳ |
| ۵۲۶. | د مشکو باره کښې روايات | ۳۷۵۳ |
| ۵۲۷. | کوم قسمه خوشبوئي خوښه کړې شوې ده | ۳۷۵۳ |
| ۵۲۸. | چا چه ذ خوشبوئي نه انکار اونه کړو | ۳۷۵۴ |
| ۵۲۹. | ذريره | ۳۷۵۴ |
| ۵۳۰. | ښائست د پاره غاښونه کولاؤل | ۳۷۵۴ |
| ۵۳۱. | په ويښتو کښې بيل مصنوعي ويښته لګول | ۳۷۵۵ |
| ۵۳۲. | د مخ نه ويښته شوکونکې ښځې | ۳۷۵۷ |
| ۵۳۳. | مصنوعي ويښته لګونکې ښځې | ۳۷۵۸ |
| ۵۳۴. | خال لګونکې ښځه | ۳۷۵۹ |
| ۵۳۵. | خالونه لګونکې ښځې | ۳۷۶۰ |
| ۵۳۶. | تصويرونه | ۳۷۶۱ |
| ۵۳۷. | تصويرونه جوړولو بانديې عذاب | ۳۷۶۱ |
| ۵۳۸. | تصويرونه ماتؤل | ۳۷۶۲ |
| ۵۳۹. | تصويرونه ښهو لاندې کؤل | ۳۷۶۳ |
| ۵۴۰. | دَ تصويرونو کراهت بيان | ۳۷۶۴ |
| ۵۴۱. | تصوير والا جامو کښې د مونځ کراهت | ۳۷۶۵ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۴۲ | فرښتې هغه کور کښې نه داخلیږي چه پکښې تصویر وي | ۳۷۶۵ |
| ۵۴۳ | تصویر والا کور کښې دَ داخلې ممانعت | ۳۷۶۵ |
| ۵۴۴ | تصویر جوړونکي باندې لعنت | ۳۷۶۶ |
| ۵۴۵ | کوم سړې چه تصویر جوړوي | ۳۷۶۷ |
| ۵۴۶ | په سورلۍ باندې روستو کینول | ۳۷۶۷ |
| ۵۴۷ | په یوې سورلۍ باندې درې کسان | ۳۷۶۷ |
| ۵۴۸ | د سورلۍ د مالک په سورلۍ باندې مخکښې کینول | ۳۷۶۸ |
| ۵۴۹ | په سورلۍ باندې یو سړي د بل پسې ناسته | ۳۷۶۸ |
| ۵۵۰ | په سورلۍ باندې ښځه د سړي نه روستو کیناستل | ۳۷۶۹ |
| ۵۵۱ | نیغ سملاستل | ۳۷۷۰ |
| | کتاب الادب | |
| ۵۵۲ | مور پلار متعلق | ۳۷۷۰ |
| ۵۵۳ | د ښې معاملې مستحق | ۳۷۷۱ |
| ۵۵۴ | د مور پلار اجازت نه بغیر جهاد | ۳۷۷۱ |
| ۵۵۵ | هیڅوک دِ مور پلار ته بد رد نهٔ وائي | ۳۷۷۲ |
| ۵۵۶ | چاچه مور پلار سره نیکه معامله اوکړه | ۳۷۷۲ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۵۷ | د مور پلار نافرماني | ۳۷۷۴ |
| ۵۵۸ | مشرک پلار سره صله رحمي | ۳۷۷۶ |
| ۵۵۹ | مور سره د ښځې صله رحمي | ۳۷۷۶ |
| ۵۶۰ | مشرک رور سره صله رحمي | ۳۷۷۷ |
| ۵۶۱ | د صله رحمۍ فضیلت | ۳۷۷۷ |
| ۵۶۲ | د خپلوۍ پریکونکي ګناه | ۳۷۷۸ |
| ۵۶۳ | د چا په رزق کښې چه فراخي اوکړې شوه | ۳۷۷۸ |
| ۵۶۴ | چا چه صله رحمي اوکړه | ۳۷۷۹ |
| ۵۶۵ | صله رحمۍ سره د رحم سیرابي کیږي | ۳۷۸۰ |
| ۵۶۶ | بدله ورکول صله رحمي نه ده | ۳۷۸۱ |
| ۵۶۷ | چا چه د شرک په حالت کښې صله رحمي اوکړه | ۳۷۸۱ |
| ۵۶۸ | د بل بچي نه خان سره لوبوته پریښودو | ۳۷۸۲ |
| ۵۶۹ | ماشوم سره رحم کول | ۳۷۸۳ |
| ۵۷۰ | د رحمت سل حصې شوې دي | ۳۷۸۵ |
| ۵۷۱ | اولاد دَ روزۍ د ویرې نه وژل | ۳۷۸۶ |
| ۵۷۲ | ماشوم په غیږ کښې اخستل | ۳۷۸۶ |
| ۵۷۳ | ماشوم په پتون باندې کینول | ۳۷۸۷ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۷۴ | عهد پورا کول دَ ایمان جز دې | ۳۷۸۷ |
| ۵۷۵ | د یتیم پرورش کونکي فضیلت | ۳۷۸۸ |
| ۵۷۶ | د کونډو د پاره کوشش کونکي | ۳۷۸۸ |
| ۵۷۷ | مسکین دَ پاره کوشش کونکي | ۳۷۸۹ |
| ۵۷۸ | په انسانانو او خناورو باندې رحم | ۳۷۸۹ |
| ۵۷۹ | د ګاونډي باره کښې وصیت | ۳۷۹۱ |
| ۵۸۰ | د چا ګاونډیان چه د هغه د شر نه محفوظ نه وي | ۳۷۹۲ |
| ۵۸۱ | ګاونډۍ د پاره دِ څه څیز معمولي نه ګڼړي | ۳۷۹۳ |
| ۵۸۲ | په الله او آخرت باندې ایمان | ۳۷۹۳ |
| ۵۸۳ | د ګاونډي حق | ۳۷۹۴ |
| ۵۸۴ | هره نیکړه صدقه ده | ۳۷۹۴ |
| ۵۸۵ | خوږ ژباني | ۳۷۹۵ |
| ۵۸۶ | معاملاتو کښې نرمي | ۳۷۹۵ |
| ۵۸۷ | د مومنانو خپل مینځ کښې تعاون | ۳۷۹۶ |
| | تمت | |

# شليريشتمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب۴۲۸: رُقْيَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۹۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَ ثَابِتٌ عَلٰى اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَقَالَ ثَابِتٌ يَا اَبَا حَمْزَةَ اِشْتَكَيْتُ فَقَالَ اَنَسٌ اَلَا اَرْقِيْكَ بِرُقْيَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَلٰى قَالَ اَللّٰهُمَّ رَبَّ النَّاسِ مُذْهِبَ الْبَاْسِ اشْفِ اَنْتَ الشَّافِيْ وَ لَا شَافِيَ اِلَّا اَنْتَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا.

۶۹۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَوِّذُ بَعْضَ اَهْلِهٖ يَمْسَحُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى وَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ رَبَّ النَّاسِ اَذْهِبِ الْبَاْسَ اشْفِهٖ وَ اَنْتَ الشَّافِيْ لَا شِفَاءَ اِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا قَالَ سُفْيَانُ حَدَّثْتُ بِهٖ مَنْصُوْرًا فَحَدَّثَنِيْ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهٗ.

۶۹۵: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ

باب۴۲۸: دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ دمؤلو بيان.

۶۹۳: مسدد. عبدالوارث. عبدالعزيز لـه روايت كوي، دَ هغـهٔ بيـان دے. زهٔ او ثابت انس بن مـالكؓ لـه ورغـلو، نو ثـابـت اووے، اے ابو حمزه، زهٔ نـاروغـه شوے يم. نو، انس اووے آيـا زهٔ بـه تـا دَ رسـول الـلّٰـه صـلي الـلّٰـه عليـه وسلّم دَم چُف كـرم. هغـهٔ اووے، او. انـس اووے اے الـلّٰـه، دَ خلقو معبوده، سختـي لـرے كـونكيـه، شفـاء راكـړے، تـهٔ شفـاء وركـونكـے ئـے، داسـے شفـاء راكـړے، چـه بيماري پاتـے نهٔ كړي.

۶۹۴: عـمـرو بـن عـلـي. يحيٰي. سفيـان. سليمان. مسلم. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيـان دے، حضـور صلي الله عليه وسلّم به تعوّذ لوستـو سره دَ خپلو بيبيانو دَ تكليف په ځائے خپل ښے لاس كـرځـولـو، اوفـرمـائيـل بـه ئـے، اے الـلّٰـه، دَ خلقو پـروردگـاره، تكليف لرے كړے. ده له شفاء وركړے، او تـهٔ شفـاء (تندرستي) وركونكے ئے. شفاء ستا ده، داسے شفـاء وركـړے، چـه نـاروغتيا پرے نه ږدي. سفيان بيان اوكـه. مـا دا روايـت منـصـور ته بيان كهٔ، نو هغهٔ ماته په واسـطه دَ ابراهيم، مسروق، بي بي عائشےؓ دا شان روايت اوكهٔ.

۶۹۵: احـمـد بـن ابـي رجـاء. نـضـر. هـشـام

رَجَآءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ اَخْبَرَنِیْ اَبِیْ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ یَرْقِیْ یَقُوْلُ اَمْسَحِ الْبَاْسَ رَبَّ النَّاسِ بِیَدِكَ الشِّفَآءُ لَا کَاشِفَ لَهٗ اِلَّا اَنْتَ.

بن عروه. عروه بي بي عائشې نه روایت کوي. ذ هغې بیان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم به فرمائیل: امسح الباس الخ: یعنې اې ذ خلقو پروردګاره، دا تکلیف دفع کړې، شفاء ستا لاس کښې ده. ذ دې تکلیف لرې کونکې ته ئې.

۲۹۶: حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ قَالَ حَدَّثَنِیْ عَبْدُ رَبِّهٖ بْنُ سَعِیْدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ یَقُوْلُ لِلْمَرِیْضِ بِسْمِ اللّٰهِ تُرْبَةُ اَرْضِنَا بِرِیْقَةِ بَعْضِنَا یَشْفِیْ سَقِیْمَنَا بِاِذْنِ رَبِّنَا.

۲۹۶: علي بن عبداللّٰه. سفیان. عبد ربه بن سعید. عمره. بي بي عائشې نه روایت کوي، وائي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به مریض ذ پاره دا دُعا کوله: تُرْبَةُ اَرْضِنَا بِرِیْقَةِ بَعْضِنَا یَشْفِیْ سَقِیْمَنَا بِاِذْنِ رَبِّنَا.

۲۹۷: حَدَّثَنِیْ صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُیَیْنَةَ عَنْ عَبْدِ رَبِّهٖ بْنِ سَعِیْدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ فِی الرُّقْیَةِ تُرْبَةُ اَرْضِنَا وَرِیْقَةُ بَعْضِنَا یُشْفٰی سَقِیْمُنَا بِاِذْنِ رَبِّنَا.

۲۹۷: صدقه بن فضل. ابن عیینه. عبد ربه بن سعید. عمره. بي بي عائشې نه روایت کوي، هغې اووې، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به دم کولو کښې دا دُعا لوستله: تُرْبَةُ اَرْضِنَا وَرِیْقَةُ بَعْضِنَا یُشْفٰی سَقِیْمُنَا بِاِذْنِ رَبِّنَا.

## باب ۴۲۹: النَّفْثِ فِی الرُّقْیَةِ.

## باب ۴۲۹: ذ منتر په وخت د توکلو بیان.

۲۹۸: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ عَنْ یَحْیَی بْنِ سَعِیْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا قَتَادَةَ یَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ الرُّؤْیَا مِنَ اللّٰهِ

۲۹۸: خالد بن مخلد. سلیمان. یحیٰي بن سعید. ابو سلمه. ابو قتاده نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دې، ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل، چه رویا (ښه خوب) ذ اللّٰه ذ طرف نه دې. او حُلم (خراب خوب) د شیطان د طرف نه دې. هر کله چه

وَالْحُلُمُ مِنَ الشَّيْطٰنِ فَاِذَا رَاٰى اَحَدُكُمْ شَيْئًا يَّكْرَهُهُ فَلْيَنْفِثْ حِيْنَ يَسْتَيْقِظُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَّ يَتَعَوَّذُ مِنْ شَرِّهَا فَاِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ وَ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ وَ اِنْ كُنْتُ لَاَرَى الرُّؤْيَا اَثْقَلَ عَلَيَّ مِنَ الْجَبَلِ فَمَا هُوَ اِلَّا اَنْ سَمِعْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ فَمَا اُبَالِيْهَا.

تاسو كښې څوک سړے داسے خوب اُووينې. چه هغه بد ګنړي. نو درے ځله دے اُوتوكي، كوم وخت چه د خوب نه بيدار شي. او د هغې د بدئ نه دے پناه اوغواړي. نو بيا به هيڅ نقصان ورته نه رسي. او ابو سلمه اووے كه زهٔ خوب اووينم چه د غر نه هم په ما زيات درونډ، وي، نو ددے حديث ذ آوريدو په بنا زهٔ ذ هغې پرواه نهٔ كوم.

۶۹۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَوٰى اِلٰى فِرَاشِهٖ نَفَثَ فِيْ كَفَّيْهِ بِقُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ وَّ بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ جَمِيْعًا ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهٗ وَ مَا بَلَغَتْ يَدَاهُ مِنْ جَسَدِهٖ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَلَمَّا اشْتَكٰى كَانَ يَأْمُرُنِيْ اَنْ اَفْعَلَ ذٰلِكَ بِهٖ قَالَ يُوْنُسُ كُنْتُ اَرَى ابْنَ شِهَابٍ يَّصْنَعُ ذٰلِكَ اِذَا اَتٰى اِلٰى فِرَاشِهٖ.

۶۹۹ : عبدالعزيز بن عبدالله اُويسي. سليمان. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. هغې اووے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه به خپلے بسترے ته تشريف اُوړلو. نو په خپلو لاسونو به ئے سورة قل هو الله او معوذتين (سورة فلق او سورة الناس) دَم كول. بيا به ئے هغه دواړه په خپل مخ راښكل. او ذ جسم كومے حصے ته چه به رسيدل. په هغې به ئے راښكل. ذ بي بي عائشےؓ بيان دے. كوم وخت چه به حضورؐ ناروغه شولو نو ماته به ئے ذ دغسے كولو حكم راكولو. يونس اووے، ما ابن شهاب كوم وخت چه به هغه خپلے بسترے ته تلو، په دغسے كولو ليدلے دے.

۷۰۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ اَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ رَهْطًا مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلَقُوْا فِيْ سَفْرَةٍ سَافَرُوْهَا

۷۰۰ : موسي بن اسماعيل. ابو عوانه. ابو بشر. ابوالمتوكل. ابو سعيدؓ نه روايت كوي. وئيلے ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم د صحابهؓ يو جماعت سفر د پاره روان شو. دا خلق د عربو يوے قبيلے سره ايسار شو. او د هغوي نه ئے ميلمستيا طلب كړه. ليكن هغې خلقو ذ ميلمستيا وركولو نه انكار اوكړ (اوشوه داسے چه) ذ هغې

حَتّٰى نَزَلُوْا بِحَيٍّ مِّنْ اَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَاسْتَضَافُوْهُمْ فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمْ فَلُدِغَ سَيِّدُ ذٰلِكَ الْحَيِّ فَسَعَوْا لَهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ لَّا يَنْفَعُهٗ شَيْءٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَوْ اَتَيْتُمْ هٰؤُلَاءِ الرَّهْطِ الَّذِيْنَ قَدْ نَزَلُوْا بِكُمْ لَعَلَّهٗ اَنْ يَّكُوْنَ عِنْدَ بَعْضِهِمْ شَيْءٌ فَاَتَوْهُمْ فَقَالُوْا يٰاَيُّهَا الرَّهْطُ اِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ فَسَعَيْنَا لَهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ لَّا يَنْفَعُهٗ شَيْءٌ فَهَلْ عِنْدَ اَحَدٍ مِّنْكُمْ شَيْءٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ نَعَمْ وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَرَاقٍ وَّلٰكِنَّ وَاللّٰهِ لَقَدِ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَلَمْ تُضَيِّفُوْنَا فَمَا اَنَا بِرَاقٍ لَّكُمْ حَتّٰى تَجْعَلُوْا لَنَا جُعْلًا فَصَالَحُوْهُمْ عَلٰى قَطِيْعٍ مِّنَ الْغَنَمِ فَانْطَلَقَ فَجَعَلَ يَتْفُلُ وَ يَقْرَاُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ حَتّٰى فَكَاَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَانْطَلَقَ يَمْشِيْ مَا بِهٖ قَلَبَةٌ قَالَ فَاَوْفَوْهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِيْ صَالَحُوْهُمْ عَلَيْهِ فَقَالَ بَعْضُهُمُ اقْسِمُوْا فَقَالَ الَّذِيْ رَقٰى لَا تَفْعَلُوْا حَتّٰى نَاْتِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَذْكُرَ لَهُ الَّذِيْ كَانَ فَنَنْظُرَ مَا يَاْمُرُنَا فَقَدِمُوْا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوْا لَهٗ فَقَالَ مَا يُدْرِيْكَ اِنَّهَا رُقْيَةٌ اَصَبْتُمْ

قبيلې سردار مار يا لړم اوخوړلو. خلقو خپل وَس اوكړ خو څۀ فائده ئې اونۀ شوه نو چا اووې‘ دا جماعت چه راغلې دې‘ او تاسو سره ايسار شوې دې‘ تاسو دوي له ورشئې‘ شايد چه دوي كښې چاسره دارو‘ وي‘ لو هغوي ورغلل‘ ورته ئې اووې‘ اې خلقو څمونږ سردار مار خوړلې دې. مونږ خپل وَس اوكړ‘ خو څۀ ښكره لې اوله شوله. تاسو كښې چاسره څه (دارو‘ دُرمل) شته دَ صحابه ؤ جماعت كښې چا اووې‘ او په خدائې چه ماله منتر (دَم دُرهـه) راځي. ليكن مونږ خلقو تاسوله ميلمستيا اوغوښتله‘ او تاسو رانۀ كړله‘ په دې وجه په خدائې مِ دې قسم وي‘ چه زۀ به درباندې دم وانۀ چوم‘ څو پورې چه تاسو دَ هغې معاوضه مقرر نۀ كړئې‘ نو هغه خلق دَ يو څو چيلو (بكرياں) په وركولو راضي شو. دا صحابي روان شو. او: الحمد لله ربّ العٰلمين: ئې پړې سره د تو كاڼرو چُف كړلو‘ تردې چه هغه ښۀ شولو‘ داسې كرځيدلو‘ لكه چه څۀ هډو چيچلې نۀ وي. په كوم شرط چه هغې خلقو رضامندي ظاهره كړې وَه‘ هغه شرط ئې پوره كۀ (يعني چيلئ ئې وركړلې) چا اووې. دا تقسيم كړئې‘ چاچه پرې دَم اچولې وو‘ هغۀ اووې‘ داسې مۀ كوئې څو پورې چه مونږ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر نۀ شو‘ او دا حال ورته بيان نۀ كړو‘ او معلومه نۀ كړو‘ چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته څۀ حكم راكوي نو مونږ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. حضورؐ ته مو حال بيان كۀ‘ نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل‘ تاته څنګه علم اوشو‘ چه دا منتر دې‘ تا ټيک كار اوكۀ‘ دا تقسيم كړه‘ او څما هم

اِقْسِمُوْا وَاضْرِبُوْا لِيْ مَعَكُمْ بِسَهْمٍ.

يو حصه مقرر كړه.

بـاب ۴۳۰: مَسْحِ الرَّاقِي الْوَجَعَ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى.

باب ۴۳۰: ذَ تكليف په مقام ذَ منتر كونكي ښي لاس كرځول.

۵۷۰۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ بَعْضَهُمْ يَمْسَحُهُ بِيَمِيْنِهِ اَذْهِبِ الْبَاْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ اَنْتَ الشَّافِيُ لَا شِفَاءَ اِلَّا شِفَاءُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا فَذَكَرْتُهُ لِمَنْصُوْرٍ فَحَدَّثَنِيْ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ بِنَحْوِهِ.

۵۷۰۱: عبدالله بن ابي شيبه. يحيٰي. سفيان. اعمش. مسلم. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغے اووے، حضور صلي الله عليه وسلّم به ذَ خپلو بعضے بيبيانو ذَ تكليف په مقام لاس كرځولو، او فرمائيل به ئے: اذهب الباس، ربّ الناس واشف انت الشافي لا شفاء الّا شفاءك. شفاء لا يغادر سقما: ما دا منصور ته بيان كړلو، نو هغهٔ ماته په واسطه ذَ ابراهيم، مسروق، بي بي عائشےؓ دا شان روايت اوكهٔ.

باب ۴۳۱: فِي الْمَرْاَةِ تَرْقِي الرَّجُلَ.

باب ۴۳۱: ذَ ښځے په سړي ذَ دَم چُف كولو بيان.

۵۷۰۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْفُثُ عَلٰى نَفْسِهِ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ قُبِضَ فِيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ فَلَمَّا ثَقُلَ كُنْتُ اَنَا اَنْفِثُ عَلَيْهِ بِهِنَّ فَاَمْسَحُ بِيَدِ نَفْسِهِ لِبَرَكَتِهَا فَسَاَلْتُ ابْنَ شِهَابٍ كَيْفَ كَانَ يَنْفِثُ قَالَ يَنْفِثُ عَلٰى يَدَيْهِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ.

۵۷۰۲: عبدالله بن محمد جعفي. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذَ هغے بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم چه كوم مرض كښې وفات شو. هغے كښې به حضورؐ په ځان معوذات (سورهٔ فلق او سورهٔ ناس) چُف كول، كوم وخت چه تكليف ئے زيات شو، نو ما (عائشےؓ) به په حضورؐ دا دم اچولو. او ذَ بركت په سبب به مِ ذَ حضورؐ لاس مبارك كرځولو. ما ذَ ابن شهاب نه تپوس اوكهٔ، چه څنګه ئے پرے دَم اچولو، نو هغهٔ اووے، چه په خپل لاس به ئے دَم اچولو. بيا به ئے هغه په مخ راښكلو.

باب ۲۴۳۲: مَنْ لَمْ يَرْقِ.

۷۰۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْاُمَمُ فَجَعَلَ يَمُرُّ النَّبِيُّ مَعَهُ الرَّجُلُ وَالنَّبِيُّ مَعَهُ الرَّجُلَانِ وَالنَّبِيُّ مَعَهُ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ لَيْسَ مَعَهُ اَحَدٌ وَ رَاَيْتُ سَوَادًا كَثِيْرًا سَدَّ الْاُفُقَ فَرَجَوْتُ اَنْ يَّكُوْنَ اُمَّتِيْ فَقِيْلَ هٰذَا مُوْسٰى وَ قَوْمُهٗ ثُمَّ قِيْلَ لِيْ اُنْظُرْ فَرَاَيْتُ سَوَادًا كَثِيْرًا سَدَّ الْاُفُقَ فَقِيْلَ لِيْ اُنْظُرْ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَرَاَيْتُ سَوَادًا كَثِيْرًا سَدَّ الْاُفُقَ فَقِيْلَ هٰؤُلَآءِ اُمَّتُكَ وَ مَعَ هٰؤُلَآءِ سَبْعُوْنَ اَلْفًا يَّدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ وَلَمْ يُبَيَّنْ لَهُمْ فَتَذَاكَرَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اَمَّا نَحْنُ فَوُلِدْنَا فِي الشِّرْكِ وَلٰكِنَّا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَلٰكِنَّ هٰؤُلَآءِ هُمْ اَبْنَآؤُنَا فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هُمُ الَّذِيْنَ لَا يَتَطَيَّرُوْنَ وَ لَا يَسْتَرْقُوْنَ وَ لَا يَكْتَوُوْنَ وَ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ فَقَامَ عُكَاشَةُ ابْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ

باب ۲۴۳۲: دَ هغې سړي بيان چه دم دُرهه نه کوي.

۷۰۳: مسدد. حصين بن نمير. حصين بن عبدالرحمٰن. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. يو ورځ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ پله تشريف راوړلو او، وے فرمائيل، خُما مخے ته امتونه پيش کړے شو، او خما مخے ته نبيان تير شو، يو سره صرف يو سړے، او دويم سره دوه سړي. او يو نبي سره يو جماعت وو، او يو نبي داسے هم وو، چه هغهٔ سره هيڅوک نهٔ وو. او ما يو لوئے جماعت اوليد: چه افق پورے خور شوے وو، ما خواهش اوکهٔ، چه دا خما اُمت وے، نو راته اووئيلے شو، چه دا موسٰيؑ او دَ هغهٔ قوم دے. بيا ماته اووئيلے شو، اخوا ديخوا اوګوره، نو ما يو لوئے جماعت اوليد، چه افق پورے خور شوے وو. ماته اووئيلے شو، چه دا ستا اُمت دے، او دوي کښې به اويا زره بے حسابه جنت له خي (اللّٰه پاک دے مونږ هم دَ دوي نه کړي. اللّٰهم آمين) خلق جدا شو، او حضورؐ هغوي ته بيان اونهٔ کهٔ، چه هغه کوم خلق دي. دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ خپلو کښې خبرے اترے کولے. چا، اووے، چه مونږ خو دَ شرک په زمانه کښې پيدا شو. بيا اللّٰه او دَ هغهٔ په رسول مو ايمان راوړلو، (نو مونږ دَ هغوي نه، نهٔ شو کيدے) بلکه هغه به خمونږ اولاد وي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته چه دا خبر اُورسيد، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا به هغه خلق وي چه فال نهٔ مني، او نهٔ منتر وائي، او نهٔ داغ لږوي، او په خپل پروردګار بهروسه لري. عکاشه بن محصن اودريد او عرض ئے اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، يا زهٔ دَ دوي نه

مِنْهُمْ اَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ فَقَامَ اٰخَرُ فَقَالَ اَمِنْهُمْ اَنَا فَقَالَ سَبَقَكَ بِهَا عُكَاشَةُ.

**بَاب ٤٣٣: اَلطِّيَرَةِ.**

٧٠٤: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى وَلَا طِيَرَةَ وَالشُّؤْمُ فِيْ ثَلٰثٍ فِي الْمَرْاَةِ وَالدَّارِ وَ الدَّابَّةِ.

٧٠٥: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا طِيَرَةَ وَ خَيْرُهَا الْفَالُ قَالُوْا وَ مَا الْفَالُ قَالَ الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا اَحَدُكُمْ.

**بَاب ٤٣٤: اَلْفَالِ.**

٧٠٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا طِيَرَةَ وَ خَيْرُهَا الْفَالُ قَالَ وَمَا الْفَالُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

يم، حضورﷺ ورته اوفرمائيل، او. بيا يو بل سړي اودريد او تپوس ئې اوكړ، آيا زه هم د دوي نه يم. حضورﷺ ورته اوفرمائيل، عكاشه تانه مخكښې شولو.

**باب ٤٣٣: د شكون آخستو بيان.**

٧٠٤: عبدالله بن محمد. عثمان بن عمر. يونس. زهري. سالم. ابن عمرؓ نه روايت كوي. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، د مرض د يو بل ته لېږدل او فال اخستل هيڅ څيز نۀ دے. او سپيرۀ والے (نحوست) درے څيزونو كښې دے (١) ښځې (٢) كور (٣) او خناور كښې (يعني كه نحوست وي، نو دے درے څيزونو كښې به وي).

٧٠٥: ابواليمان. شعيب. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، شكون اخستل هيڅ څيز نۀ دے. دے كښې بهتره طريقه فال دے. خلقو عرض اوكۀ، فال څۀ څيز دے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، ښۀ خبره چه تاسو نه څوك واوري.

**باب ٤٣٤: د فال بيان.**

٧٠٦: عبدالله بن محمد. هشام. معمر. زهري. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغۀ اووے، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، شكون اخستل هيڅ څيز نۀ دے. او دے كښې بهتره طريقه فال دے. خلقو عرض اوكۀ. فال څۀ څيز دے، يا رسول

قَالَ الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا اَحَدُكُمْ.

اللّٰه، حضورؐ ورته اوفرمائيل ښه خبره چه تاسو څوک واوري.

۷۰۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى وَلَا طِيَرَةَ وَ يُعْجِبُنِي الْفَالُ الصَّالِحُ الْكَلِمَةُ الْحَسَنَةُ.

۷۰۷: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ مرض يو نه بل ته لريدل او شکون اخستل هيڅ څيز نهٔ دے، او خما ښهٔ فال يعني بهترينه خبره خوښه ده.

باب ۴۳۵: لَا هَامَةَ.

باب ۴۳۵: هامه هيڅ څيز نهٔ دے.

۷۰۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَكَمِ حَدَّثَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا اِسْرَائِيْلُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى وَلَا طِيَرَةَ وَلَا هَامَةَ وَلَا صَفَرَ.

۷۰۸: محمد بن حکم. نضر. اسرائيل. ابو حصين. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ مرض يو نه بل ته لريدل، شکون اخستل، (يعني اُلو. ګونګے مارغه) او صفر هيڅ څيز نه دے.

باب ۴۳۶: اَلْكَهَانَةِ.

باب ۴۳۶: ذ کهانت بيان.

۷۰۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى فِيْ امْرَاَتَيْنِ مِنْ هُذَيْلٍ اقْتَتَلَتَا فَرَمَتْ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى بِحَجَرٍ فَاَصَابَ بَطْنَهَا وَ هِيَ حَامِلٌ فَقَتَلَتْ وَلَدَهَا الَّذِيْ فِيْ بَطْنِهَا فَاخْتَصَمُوْا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَضٰى اَنَّ دِيَةَ مَا

۷۰۹: سعيد بن عفير. ليث، عبدالرحمٰن بن خالد. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هذيل ذ دوو جګړ مارو ښځو متعلق فيصله اوکړه، هغې کښې يوې بله په کانړي اوويشتله، چه ذ هغې خيټه پرے اولږيده او هغه حامله وَه. (ذ کانړي په وجه) ذ خيټے بچے مړ شولو. ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې مقدمه پيش کړے شوه. نو حضورؐ فيصله اوکړه چه ذ خيټے د ماشوم

فِيْ بَطْنِهَا غُرَّةٌ عَبْدٌ اَوْ اَمَةٌ فَقَالَ وَلِيُّ الْمَرْاَةِ الَّتِيْ غُرِمَتْ كَيْفَ اُغْرَمُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ لَاشَرِبَ وَلَا اَكَلَ وَلَا نَطَلَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ فَمِثْلُ ذٰلِكَ بَطَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هٰذَا مِنْ اِخْوَانِ الْكُهَّانِ.

تاوان يو غلام يا وينزه ده. دَ قاتلې ښځې وارث اووې' يا رسول اللّٰه' زۀ دَ هغې بچي ديت (خون بَها) څرنګ ورکړم چه هغه نۀ څکل' نۀ خوړل' نه ئې خبره کړې ده' او نه ئې چغه وهلې ده. دَ داسې بچي ديت خو دَ معافئ قابل دې. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دا خو دَ کاهنانو ورور دې.

۵۱۷۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ امْرَاَتَيْنِ رَمَتْ اِحْدٰهُمَا الْاُخْرٰى بِحَجَرٍ فَطَرَحَتْ جَنِيْنَهَا فَقَضٰى فِيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ اَوْ وَلِيْدَةٍ وَّ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى فِي الْجَنِيْنِ يُقْتَلُ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ اَوْ وَلِيْدَةٍ فَقَالَ الَّذِيْ قُضِيَ عَلَيْهِ كَيْفَ اَغْرَمُ مَالَا اَكَلَ وَلَا شَرِبَ وَلَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ وَمِثْلُ ذٰلِكَ بَطَلَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هٰذَا مِنْ اِخْوَانِ الْكُهَّانِ.

۵۱۷۰: قتيبه. مالک. ابن شهاب. ابن سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دې. دوو ښځو کښې يوې بلې په کاڼړي اوويشتله' هغې سره دَ هغې دَ خېټې بچې مړ شولو' نو دَ هغې بدله کښې حضور صلي الله عليه وسلّم دَ يوې وينزې يا غلام دَ تاوان ورکولو حکم اوکۀ. او ابن شهاب نه په واسطه دَ سعيد بن مسيب منقول دي' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ هغې دَ خېټې دَ بچي دَ قتل بدله کښې دَ يو غلام يا وينزې تاوان کښې دَ ورکولو حکم اوکړلو. دَ چا خلاف چه فيصله شوې وَه' هغۀ عرض اوکۀ' زۀ دا تاوان څنګه ورکړم' چه هغې بچي نۀ خوړل' نۀ څکل' نۀ وئيل کړې وي' او نۀ ئې چغه اوښکلې ده' داسې خون خو دَ معافي قابل دې' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دا خو دَ کاهنانو ورور دې.

۵۱۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ

۵۱۷۱: عبداللّٰه بن محمد. ابن عيينه. زهري. ابوبکر بن عبدالرحمٰن بن حارث. ابو مسعودؓ نه روايت کوي' دَ هغۀ بيان دې' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ سپي (کتے) قيمت دَ زنا کارې ښځې خرچي (اُجرت) او دَ کاهن

ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ مَهْرِ الْبَغِيِّ وَ حُلْوَانِ الْكَاهِنِ.

دَ متهاني نه (چه هغه ته أجرت كښې وركړے شي) منع فرمائيلے ده.

۲۱۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ يَّحْيَى بْنِ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسٌ عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ لَيْسَ بِشَيْءٍ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهُمْ يُحَدِّثُوْنَا اَحْيَانًا بِشَيْءٍ فَيَكُوْنُ حَقًّا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا مِنَ الْجِنِّيِّ فَيَقُرُّهَا فِيْ اُذُنِ وَلِيِّهٖ فَيَخْلُطُوْنَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ. قَالَ عَلِيٌّ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ مُرْسَلٌ اَلْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ ثُمَّ بَلَغَنِيْ اَنَّهٗ اَسْنَدَهٗ بَعْدُ.

۲۱۷: علي بن عبداللّٰه. هشام بن يوسف. معمر. زهري. يحيي بن عروه بن زبير. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے. څنو خلقو د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د كاهنانو متعلق تپوس اوكۀ، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا هيڅ څيز نۀ دے خلقو عرض اوكۀ، يا رسول اللّٰه، دا خلق كله داسے خبره اوكړي، چه بالكل صحيح وي، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا خبره دَ اللّٰه تعالٰي دَ طرف نه وي، چه هغه شيطان واوري، نو هغے كښې په سوونو دروغ يوځائے كړي، او دَ ملګرو (كاهنانو) په غوږ كښې ئے اووائي. علي (بن عبداللّٰه) بيان اوكۀ، چه عبدالرزاق: الكلمة من الحق: مرسلاً روايت اوكۀ. بيا ماته معلومه شوه، چه هغه دا موصولاً بيان كۀ.

بَاب۴۳۷: السِّحْرِ. وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ وَ مَا اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَ مَارُوْتَ وَ مَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَا اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَ زَوْجِهٖ وَ مَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَ يَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَ لَا يَنْفَعُهُمْ وَ لَقَدْ عَلِمُوْا

باب۴۳۷: دَ جادو بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي قول، ليكن شيطانانو انكار اوكۀ هغوي خلقو ته جادو ښائي. او كوم څيز چه دوو فريښتو هاروت او ماروت بانديے بابل كښې نازل شو، او هغوي دواړو به هيچا ته ښودنه نۀ كوله، تردے چه ورته به ئے اووے، مونږ فتنه يو، نو كفر مۀ كوئے، نو خلق دے دواړو نه دا څيز زده كوي، چه دَ هغے په ذريعه دَ سړي او دَ ښځے په مينځ كښې جدائي راولي، او هغوي دَ اللّٰه دَ مرضئ نه بغير هيچا ته نقصان نشي رسولے. او خلق هغه څيز زده كوي، چه هغوي

لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهُ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ○ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ لَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ اَتٰى وَ قَوْلِهٖ اَفَتَاْتُوْنَ السِّحْرَ وَ اَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ○ وَ قَوْلِهٖ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى وَ قَوْلِهٖ وَ مِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِى الْعُقَدِ وَالنَّفَّاثَاتُ السَّوَاحِرُ تُسْحَرُوْنَ تُعَمَّوْنَ.

ته نقصان اورسوي' او هغوي ته نفع اونهٔ رسوي. او کومو خلقو چه دا آخستے دے. هغوي پوهيږي' چه آخرت کښې دَ هغوي هيڅ حصه نشته' او دَ الله تعالیٰ قول: ولا يفلح الساحر حيث اتیٰ: او دَ الله تعالیٰ قول: يخيل اليه من سحرهم انها تسعیٰ: او دَ الله تعالیٰ قول: وَ مِنْ شر النّفّاثات فی العقد: او نفاثات معنې دَ جادوګرو ښځو دي (چه ګنډه جوړوي) او: تسحرون معنې دي: تعمّون.

۷۱۳: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ سَحَرَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مِنْ بَنِىْ زُرَيْقٍ يُقَالُ لَهُ لَبِيْدُ بْنُ الْاَعْصَمِ حَتّٰى كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ اَنَّهُ يَفْعَلُ الشَّىْءَ وَ مَا فَعَلَهُ حَتّٰى اِذَا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ اَوْ ذَاتَ لَيْلَةٍ وَّ هُوَ عِنْدِىْ لٰكِنَّهُ دَعَا وَ دَعَا ثُمَّ قَالَ يَا عَآئِشَةُ اَشَعَرْتِ اَنَّ اللّٰهَ اَفْتَانِىْ فِيْمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيْهِ اَتَانِىْ رَجُلَانِ فَقَعَدَ اَحَدُهُمَا عِنْدَ رَاْسِىْ وَالْاٰخَرُ عِنْدَ رِجْلَىَّ فَقَالَ اَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهٖ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ فَقَالَ مَطْبُوْبٌ قَالَ مَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيْدُ ابْنُ الْاَعْصَمِ قَالَ فِىْ اَىِّ شَىْءٍ قَالَ فِىْ مُشْطٍ وَّ مُشَاطَةٍ وَّ جُفِّ

۷۱۳: ابراهيم بن موسیٰ. عيسیٰ بن يونس. هشام. عروه. بي بي عائشهؓ نه روايت کوي' دَ هغې بيان دے. بني زريق نه يو سړے چه هغهٔ ته لبيد بن اعصم وئيلے شو' په رسول الله صلي الله عليه وسلّم ئے جادو اوکړلو (دَ هغې اثر سره) دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دا حالت شو چه دَ څهٔ کار دَ نهٔ کولو باوجود حضورؐ ته به دا خيال اوشو' چه حضورؐ داسے کوي (يعني هغه کار ئے کړے دے) يو ورځ يا يو شپه حضورؐ ماسره وو ليکن دُعائے کوله. بيائے اوفرمائيل' اے عائشےؓ آيا تاته معلومه ده' چه يو کس څما سر ته او بل څما پښو سره کيناست' يو دَ بل ملګري نه تپوس اوکهٔ' چه دے سړي ته څهٔ تکليف دے. دوئم کس جواب ورکهٔ' چه په دهٔ جادو شوے دے. وړمبي ترے تپوس اوکهٔ' چا پرے جادو کړے دے. دوئم جواب ورکهٔ' لبيد بن اعضم' وړمبي کس تپوس اوکهٔ' څهٔ څيز کښې ئے جادو کړے دے. دوئم جواب ورکهٔ' ګومنز' دَ سر ويښتو او دَ شنې قجورے په جهلئ کښې ئے کړے دے. هغے وړمبي تپوس اوکهٔ' هغه څيزونه کوم ځائے دي' دوئم اووے' دَ ذروان کوهي

طَلْعِ نَخْلَةٍ ذَكَرٍ قَالَ وَ اَيْنَ هُوَ قَالَ فِيْ بِئْرِ ذَرْوَانَ فَاَتَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَاسٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَجَآءَ فَقَالَ يَا عَآئِشَةُ كَاَنَّ مَآءَ هَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ اَوْ كَاَنَّ رُءُ وْسَ نَخْلِهَا رُءُ وْسُ الشَّيَاطِيْنِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا اَسْتَخْرَجْتَهُ قَالَ قَدْ عَافَانِيَ اللّٰهُ فَكَرِهْتُ اَنْ اُثَوِّرَ عَلَى النَّاسِ فِيْهِ شَرًّا فَاَمَرَ بِهَا فَدُفِنَتْ تَابَعَهُ اُسَامَةُ وَ اَبُوْ اُسَامَةَ وَ اَبُوْ ضَمْرَةَ وَابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ وَّ قَالَ اللَّيْثُ وَابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامٍ فِيْ مُشْطٍ وَّ مُشَاقَةٍ يُّقَالُ الْمُشَاطَةُ مَا يَخْرُجُ مِنَ الشَّعْرِ اِذَا مُشِطَ وَالْمُشَاقَةُ مِّنْ مُّشَاقَةِ الْكَتَّانِ.

کښې. رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلو صحابهؓ ز سره هغې کوهي لـه ورغـې' بيا واپس راغـې' نو ې فرمائيل' اے عائشېؓ' دَ هغې کوهي اوبه دَ نکريزو دَ نچوړ په شان سرې (سُرخ) شوې دي' او هغې کوهي سره دَ نزدې اُونو سَرونه' دَ شيطان دَ سرونو په مثل دي. ما عرض اوکهٔ'يا رسول الله' ايا زهٔ دَ دې تحقيق اونهٔ کړم (دَ دويمې نسخې مطابق) حضورؐ دَ هغې تحقيق ولې اونهٔ کهٔ' حضورؐ اوفرمائيل ماته الله تعالي عافيت راکهٔ' په دې وجه ما خلقو کښې دَ دې بدي مشهورول مناسب اونهٔ ګڼړل' نو حضورؐ دَ هغې ګومنز دَ دفن کولو حکم اوکړلو (نو دفن کړې شوه) ابو اسامه' ابو ضمره' ابن ابي الزناد' دَ هشام نه دَ دې متابع روايت اوکهٔ' او ليث او ابن عيينه دَ هشام نه دَ مشط او مشاقه متعلق روايت اوکهٔ' مشاطه هغې ويښتو ته وائي' چه دَ ګومنز کولو نه پس اُوځي' او مشاقه هغه ويښتهٔ' چه دَ کتان نه جُدا وي.

## بَابٌ ۴۳۸: الشِّرْكُ وَالسِّحْرُ مِنَ الْمُوْبِقَاتِ.

## باب ۴۳۸: شرک او جادو هلاک کونکي څيزونه دي.

۴۱۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْتَنِبُوا الْمُوْبِقَاتِ الشِّرْكَ بِاللّٰهِ وَالسِّحْرَ.

۴۱۷: عبدالعزيز بن عبدالله. سليمان. ثور بن زيد. ابوالغيث. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دې' رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي' چه هلاک کونکو څيزونو يعني الله سره دَ شريک جوړولو نه او جادو نه بچ اوسئې.

## بَابٌ ۴۳۹: هَلْ يُسْتَخْرَجُ السِّحْرُ. وَ قَالَ قَتَادَةُ قُلْتُ لِسَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ رَجُلٌ بِهٖ طِبٌّ اَوْ يُوَخَّذُ

## باب ۴۳۹: آيا دَ جادو علاج کول جائز دي. او

قتاده اووې' ما دَ سعيد بن مسيب نه تپوس اوکهٔ' چه په يو سړي جادو شوې وي' يا هغه خپلې ښځې ته دَ تلو نه

عَنْ اِمْرَاَتِهٖ اَيُحَلُّ عَنْهُ اَوْ يُنْشَرُ قَالَ لَا بَأْسَ بِهٖ اِنَّمَا يُرِيْدُوْنَ بِهِ الْاِصْلَاحَ فَاَمَّا مَا يَنْفَعُ فَلَمْ يُنْهَ عَنْهُ.

بند کړے شوے وي، نو آيا هغۀ نه ذَ جادو اثر لرے کول جائز دي، نو هغۀ اووے، دے کښې هيڅ حرج نشته، ځکه چه دے نه ذَ هغۀ مقصد اصلاح ده. او کوم څيز چه مفيد وي، ذَ هغې ممانعت نشته.

٥١٧٤: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ يَقُوْلُ اَوَّلُ مَنْ حَدَّثَنَا بِهِ ابْنُ جُرَيْجٍ يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ اٰلُ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ فَسَاَلْتُ هِشَامًا عَنْهُ فَحَدَّثَنَا عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُحِرَ حَتّٰى كَانَ يُرٰى اَنَّهُ يَاْتِي النِّسَآءَ وَلَا يَاْتِيْهِنَّ قَالَ سُفْيَانُ وَهٰذَا اَشَدُّ مَا يَكُوْنُ مِنَ السِّحْرِ اِذَا كَانَ كَذَا فَقَالَ يَا عَائِشَةُ اَعَلِمْتِ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَفْتَانِيْ فِيْمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيْهِ اَتَانِيْ رَجُلَانِ فَقَعَدَ اَحَدُهُمَا عِنْدَ رَاْسِيْ وَالْاٰخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ فَقَالَ الَّذِيْ عِنْدَ رَاْسِيْ لِلْاٰخَرِ مَا بَالُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوْبٌ قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيْدُ بْنُ الْاَعْصَمِ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ زُرَيْقٍ حَلِيْفٌ لِيَهُوْدَ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ وَفِيْمَ قَالَ فِيْ مُشْطٍ وَّمُشَاقَةٍ قَالَ وَاَيْنَ

٥١٧٤: عبدالله بن محمد. ابن عيينه بيان کوي، چه دا حديث ذَ ټولونه مخکښې ماته ابن جريج بيان که، هغۀ وئيلے، چه ماته آل عروه په واسطه ذَ عروه بيان اوکۀ، نو ما ذَ هشام نه ذَ دے متعلق تپوس اوکۀ، هغۀ ذَ محمد نه ذَ خپل پلار واسطے سره، هغۀ ذَ بي بي عائشې نه روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم باندے جادو شوے وو، ذَ هغے ذَ اثر نه ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم دا حال وو، چه خپلو بيبيانو ته ورتلو هم نه. ليکن دا خيال به ئے کولو، چه ذَ هغوي نه راغلے يم. سفيان اووے. هر کله چه دا صورت حال وي، نو دا ذَ جادو سخت اثر دے. حضورؐ اوفرمائيل. عائشې، آيا تاته معلومه ده، چه الله تعالىٰ ماله خبر راکۀ، څۀ چه ما معلومول غوښتل ماله دوه سړي راغلل، هغوي کښې يو څما سَر سره کيناست، او دويم څما پښو سره کيناست کوم چه سر، سره ناست وو، هغۀ، هغې بل سړي ته اووے، چه په دے سړي څۀ چل شوے دے، هغې دويم ورته اووے، په دۀ جادو شوے دے ورمبني تپوس اوکۀ، چا جادو کړے دے، دويم جواب ورکۀ، لبيد بن اعصم، چه ذَ بنې زريق يو سړے دے. ذَ يهودو دوست او منافق دے. ورمبني سړي تپوس اوکۀ، چه څۀ جادو شوے دے دويم جواب ورکۀ، کومنڅر او په هغې ويښتو چه ذَ کومنز نه غرخيږي. ورمبني تپوس اوکۀ (دغه څيز) کوم ځائے

قَالَ فِيْ جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ تَحْتَ رَعُوْفَةٍ فِيْ بِئْرِ ذَرْوَانَ قَالَتْ فَأَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبِئْرَ حَتَّى اسْتَخْرَجَهُ فَقَالَ هٰذِهِ الْبِئْرُ الَّتِيْ أُرِيْتُهَا وَ كَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ وَ كَأَنَّ نَخْلَهَا رُءُوْسُ الشَّيَاطِيْنِ قَالَ فَاسْتَخْرَجَ قَالَتْ فَقُلْتُ أَفَلَا أَيْ تَنَشَّرْتَ فَقَالَ أَمَا وَاللّٰهِ فَقَدْ شَفَانِيْ وَ أَكْرَهُ أَنْ أُثِيْرَ عَلٰى أَحَدٍ مِّنَ النَّاسِ شَرًّا.

دے. جواب ئے ورکړه، دَ ذروان په کوهي کښې، دَ نر قجورے په جهلي کښې، دَ کانړي لاندے دے، حضورؐ هغے کوهي پله تشریف یوړلو، چه هغه (دَ جادو) ګومنز وغیره راوکاږي. حضورؐ اوفرمائیل، هم دا کوهي دے چه ماته ښودلے شوے دے. دَ دے اُوبه دَ نکریزو دَ نچوړ په شان بالکل سرے (سُرخ) دي، او دَ قجورے اُونے ئے دَ شیطان دَ سرونو په شان معلومیږي. دَ راوي بیان دے، هغه څیزونه ئے راوښکل (او دفن ئے کړل) دَ بي بي عائشے‌ؓ بیان دے. ما عرض اوکۀ، چه تاسو دَ دے اعلان ولے اونۀ کړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائیل، په خدائے چه ماته شفاء اوشوه، او ځما دا خوښه نۀ ده، چه دَ چا بدي مشهوره کړم.

ا . د همدے مضمون یو حدیث باندے ددے نه مخکښې یو نوټ لیکلے شوے دے .د حدیث دا الفاظ دَ غور قابل دي، په اکثرو احادیثو کښې الفاظ عام استعمال کړے شوي دي او دا شبه کیږي چه د جادو په اثر سره به ډیرو کارونو کښې رکاوټ راتلو، حالانکه داسے نه وه. څرنګ چه مونږه ددے نه مخکښې لیکلي دي چه د جادو یو خاص قسم دے کوم کښې چه سړے د ښځے سره صحبت نه بند شي. دے د پاره "سړے بندول" (الفاظ) استعمالوي، په حضورؐ باندے هم دغه جادو شوے وو ځکه چه ددے حدیث د الفاظونه صفا معلومیږي. د بعضو روایاتو دَ مُبهمو الفاظو په وجے سره ابو بکر جصاص ددے حدیث د صحبت نه هډو انکار کړے دے. لیکن ځنګه چه معلومه ده حدیث صحیح دے او دَ جادو تعلق صرف د ښځو معاملاتو سره دے او بلے هیڅ یوے معاملے سره نه دے.

## باب ۴۴۰: السِّحْرِ.

## باب ۴۴۰: دَ جادو بیان.

۶۱۷: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى إِنَّهُ لَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَفْعَلُ الشَّيْءَ وَ

۶۱۷: عبید بن اسمٰعیل. ابو اسامه. هشام دَ خپل پلار نه، هغه دَ بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، یو ځل په رسول الله صلي الله عليه وسلّم جادو اوکړے شو، نو دَ حضورؐ دا حال شو، چه حضورؐ ته به دَ څۀ نۀ کولو باوجود دا خیال پیدا شو، چه زۀ څۀ کوم. یو ورځ حضورؐ ماسره وو دُعا، ئے کوله. بیا حضورؐ اوفرمائیل، اے

مَا فَعَلَهُ حَتّٰى اِذَا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ وَهُوَ عِنْدِيْ دَعَا اللّٰهَ وَ دَعَاهُ ثُمَّ قَالَ اَشَعَرْتِ يَا عَآئِشَةُ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَفْتَانِيْ فِيْمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيْهِ قُلْتُ وَ مَا ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ جَآءَنِيْ رَجُلَانِ فَجَلَسَ اَحَدُهُمَا عِنْدَ رَاْسِيْ وَ الْاٰخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ ثُمَّ قَالَ اَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهٖ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوْبٌ قَالَ وَ مَنْ طَبَّهٗ قَالَ لَبِيْدُ بْنُ الْاَعْصَمِ الْيَهُوْدِيُّ مِنْ بَنِيْ زُرَيْقٍ قَالَ فِيْمَا ذَا قَالَ فِيْ مُشْطٍ وَّ مُشَاطَةٍ وَّ جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ قَالَ فَاَيْنَ هُوَ قَالَ فِيْ بِئْرِ ذِيْ اَرْوَانَ قَالَ فَذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اُنَاسٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ اِلَى الْبِئْرِ فَنَظَرَ اِلَيْهَا وَ عَلَيْهَا نَخْلٌ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى عَآئِشَةَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَكَاَنَّ مَآؤُهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ وَ لَكَاَنَّ نَخْلَهَا رُءُوْسُ الشَّيَاطِيْنِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَاَخْرَجْتَهٗ قَالَ لَا اَمَّا اَنَا فَقَدْ عَافَانِيَ اللّٰهُ وَ شَفَانِيَ اللّٰهُ وَ خَشِيْتُ اَنْ اُثَوِّرَ عَلَى النَّاسِ مِنْهُ شَرًّا وَّ اَمَرَ بِهَا فَدُفِنَتْ.

عائشےؓ آیا تاته معلومه ده، چه څهٔ ما معلومول غوښتل هغه الله تعالیٰ ماته اوښودل، ما عرض اوکهٔ، هغه څهٔ دي یا رسول الله، حضورؐ اوفرمائیل، ماته دوه سړي راغلل. هغوي کښې یو خما سر ته کیناست، او دویم خما پښو ته کیناست. بیا هغوي کښې یو دَ خپل ملګري نه تپوس اوکهٔ. دے سړي ته څهٔ تکلیف دے. دویم اوویے، په دهٔ جادو شوے دے. تپوس ئے اوکهٔ، چا پرے جادو کړے دے، جواب ئے ورکهٔ، لبید بن اعصم یهودي، چه دَ بني زریق یو سړے دے. تپوس ئے اوکهٔ، څهٔ څیز سره، وئیلے، ګومنز او دَ ګومنز نه اوښکلے شوے ویښته چه دَ نر قجورے جهلئ کښې ایښودے دي. تپوس ئے اوکهٔ، هغه (دَ جادو څیز) کوم ځائے دے. جواب ئے ورکهٔ، دَ ذي اروان په کوهي کښې. دَ راوي بیان دے. نبي صلي الله علیه وسلّم خپلو صحابهٔؓ ؤ سره هغے کوهي پله تشریف یوړلو. هغه ئے اولیدو. هغے سره دَ قجورے یوه اُونه ده. او دَ جادو هغه څیز ئے راوښکلو. حضورؐ بي بي عائشےؓ له راغے، او وے فرمائیل، والله دَ هغے کوهي اوبه بالکل سرے (سُرخ) وے. او هغے سره اُونے دَ شیطان دَ سرونو په شان وے. دَ بي بي عائشےؓ بیان دے، ما عرض اوکهٔ، تاسو هغه ظاهر نهٔ کړلو، حضورؐ اوفرمائیل، نه، الله ماته عافیت راکهٔ، او شفاء ئے راکړله. او زهٔ دَ هغے سړي دَ بدئ مشهورولو نه اویریدم، بیا حضورؐ دَ هغے جادو دَ څیز دَ دفن کولو حکم اوکهٔ.

## باب ۱۴۴: مِنَ الْبَيَانِ سِحْرٌ.

## باب ۱۴۴: بعضے بیان جادو، وي.

۷۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ

۷۱۷: عبدالله بن یوسف. مالک. زید بن اسلم. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان

اَسْلَمَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا وَّ اِنَّ بَعْضَ الْبَيَانِ لَسِحْرٌ.

دي' دوه سړي دَ مشرق دَ طرف نه راغلل' او هغوي خطبه ورکړه. چه دَ خلقو ډيره خوښه شوه' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: إنّ من البيان لسحراً' يا' بعض البيان لسحرٌ: (بيشکه بعضے بيان داسے اثر کوي څنګه چه جادو اثر کوي).

باب ۴۴۲: اَلدَّوَآءِ بِالْعَجْوَةِ لِلسِّحْرِ.

باب ۴۴۲: دَ جادو دَ عجوه (قجورے) په ذريعه علاج کول.

۸۱۷: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ اَخْبَرَنَا هَاشِمٌ اَخْبَرَنَا عَامِرُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اصْطَبَحَ كُلَّ يَوْمٍ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَّمْ يَضُرَّهُ سَمٌّ وَّلَا سِحْرٌ ذٰلِكَ الْيَوْمَ اِلَى اللَّيْلِ وَ قَالَ غَيْرُهُ سَبْعَ تَمَرَاتٍ.

۸۱۷: علي. مروان. هاشم. عامر بن سعد. دَ خپل پلار نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' څوک چه هر صبا څو عجوه يو قسم) قجورے اوخوري' نو هغهٔ ته دَ شپے پورے هيڅ اثر او جادو څهٔ نقصان نشي رسولے. دَ علي نه علاوه بل حديث کښ دَ قجورو تعداد اُوه بيان شوے دے.

ف: څوک چه اوه عجوه قجورے هر صبا خوري' نو دَ زهرو او جادو اثر به پرے نهٔ کيږي.

۸۱۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرَ بْنَ سَعْدٍ سَمِعْتُ سَعْدًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ تَصَبَّحَ سَبْعَ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَّمْ يَضُرَّهُ ذٰلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَّلَا سِحْرٌ.

۸۱۹: اسحٰق بن منصور. ابو اسامه. هاشم بن هاشم. عامر بن سعد. حضرت سعدؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' ما دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' چا چه سحر (صبا) کښ اُوه قجورے اوخورے' نو هغهٔ ته به په هغه ورځ هيڅ زهر نقصان نشي رسولے. اونهٔ پرے څهٔ جادو اثر کولے شي.

ف: دلته صرف اوه قجورے راغلے دي' څهٔ خاص قسم دِ قجورو نه دے بيان شوے. نو هر قسم اُوه قجورے چه سحر وخت خوري' دَ زهرو او جادو نه به بچ وي.

باب ۴۴۳: لَا هَامَةَ.

باب ۴۴۳: هامه هيڅ څيز نهٔ دے.

۵۲۰۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوٰى وَ لَا صَفَرَ وَ لَا هَامَةَ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا بَالَ الْاِبِلِ تَكُوْنُ فِي الرَّمْلِ كَاَنَّهَا الظِّبَاءُ فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيْرُ الْاَجْرَبُ فَيُجْرِبُهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ اَعْدَى الْاَوَّلَ وَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ بَعْدُ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُوْرِدَنَّ مُمْرِضٌ عَلٰى مُصِحٍّ وَّ اَنْكَرَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ الْحَدِيْثَ الْاَوَّلَ قُلْنَا اَلَمْ تُحَدِّثْ اَنَّهٗ لَا عَدْوٰى قُلْنَا اَلَمْ تُحَدِّثْ اَنَّهٗ لَا عَدْوٰى فَرَطَنَ بِالْحَبَشِيَّةِ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ فَمَا رَاَيْتُهٗ نَسِيَ حَدِيْثًا غَيْرَهٗ.

۵۲۰۷: عبدالله بن محمد. هشام بن يوسف. معمر. زهري. ابو سلمه. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم اُفرمائيل، ذ مرض ذ يو نه بل ته لګيدل، او صفر، او هامه (اُلو) هيڅ څيز نهٔ دے. يو اعرابي عرض اوكهٔ، يا رسول الله، څه خبره ده، چه اُوبښ ميدان كښ ذ اوسو (هرڼوں) په شان وي. هغوي سره يو خارښي اوبښ يوځائے شي، نو هغوي هم خارښي كړي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چه وړمبي اُوبښ ته خارښت ذ كوم ځائے نه راغے. او ابو سلمهؓ نه روايت دے، هغهٔ ذ ابو هريرهؓ نه واوريدل، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چه بيمار تندرست سره مهٔ كوزَوئے. او ابوهريرهؓ ذ وړمبني حديث نه انكار اوكهٔ، ما اووے، آيا تا دا حديث: لا عدوىٰ: (ذ مرض يو نه بل ته لګيدل نشته) نهٔ دے بيان كړے، نو هغهٔ حبشي ژبه كښ داسے خبره اوكړه، چه پوهه كښ رانغله ذ ابو سلمه بيان دے، چه ابوهريرهؓ ذ دے حديث نه سِوا بل هيڅ حديث نهٔ دے هير كړے[۱].

۱. ددے حديث په تعارض باندے مونږه يو نوټ مخكښے ليكلے دے. د راوي دا خيال غلط دے چه ابوهريره رضي الله عنه نه حديث هير شوے وو. په دے وجه هغوئ انكار اوكړو. بلكه غالبًا د انكار وجه د شاګرد حديث لره ذ تعارض په شكل كښے پيش كول وو، هغوئ په دے باندے ناراضه شو، ولے چه غالبًا د هغوئ په رائے كښے دواړه حديثونه دوه جدا جدا مضمونونه بيانَوي او په دوئ كښے د تعارض هيڅ سوال نيشته. بعضو حضراتو ليكلي دي چه په دے معاملاتو كښے ذ عامو خلقو په ذهنونو كښے كوم وهم كيږي د هغے نه بچ كيدلو د پاره دا حكم په حديث كښے دے چه صحت مند څناور د بيمارو څناورو نه جُدا ساتئ، ولے چه كه چرے په يوځائے ساتلو سره صحت مند څناور هم ناجوړه شو نو ذ مالک په ذهن كښے دا وهم پيدا كيدے شي چه دا هر څه ددے بيمار څناور په وجے سره اوشو او ددے قسمه وهمونو شريعت ممانعت كړے دے.

بـــــــاب ۴۴۴: لَا عَدْوٰی.

۷۲۱: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ حَمْزَةُ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوٰى وَلَا طِيَرَةَ وَ اِنَّمَا الشُّؤْمُ فِيْ ثَلٰثٍ فِي الْفَرَسِ وَالْمَرْاَةِ وَالدَّارِ.

۷۲۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُوْرِدُوا الْمُمْرِضَ عَلَى الْمُصِحِّ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سِنَانُ بْنُ اَبِيْ سِنَانٍ الدُّؤَلِيُّ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى فَقَامَ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ اَرَءَيْتَ الْاِبِلَ تَكُوْنُ فِي الرِّمَالِ اَمْثَالَ الظِّبَاءِ فَيَاْتِيْهِ الْبَعِيْرُ الْاَجْرَبُ فَتَجْرَبُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ اَعْدَى

باب ۴۴۴: عدوي (ذ بیماري یو نه بل ته لېږیدل) هیڅ څیز نهٔ دے.

۷۲۱: سعید بن عفیر. ابن وهب. یونس. ابن شهاب. سالم بن عبدالله او حمزه. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، چه چهوت (ذ مرض یو نه بل ته لېږیدل) او بدشګوني هیڅ څیز نهٔ دے. او نحوست (سپیرهٔ والے) صرف درے څیزونو: (۱) اَس (۲) ښځه او (۳) کور کښې کیدے شي.

۷۲۲: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرة رضي الله عنه نه روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، چه عدوي، یعني ذ مرض یو نه بل ته لېږیدل هیڅ څیز نهٔ دے. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، حضرت ابوهریرة رضي الله عنه نه روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، بیمار روغ سره مهٔ کوزوئے. او زهري نه روایت دے. ذ هغهٔ بیان دے. ماته سنان بن ابي سنان دولي بیان اوکهٔ. ابوهریرة رضي الله عنه اووے، چه عدوي چه ذ مرض یو نه بل ته لېږیدل، هیڅ څیز نهٔ دے، نو یو اعرابي اودریدلو، او عرض ئے اوکهٔ، ښهٔ ده، دا راته اوفرمائے، چه اوښان میدان کښې ذ اوسو (ہرنوں) په شان وي، هغوي له یو خارښي اوښ راشي، او ټول خارښي کړي، نو نبي صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، چه ورمبني ته خارښ ذ کوم ځائے

الْاَوَّلَ.

۷٤۲۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوٰى وَلَا طِيَرَةَ وَ يُعْجِبُنِيْ الْفَالُ قَالُوْا وَ مَا الْفَالُ قَالَ كَلِمَةٌ طَيِّبَةٌ.

باب ٤٤٥: مَا يُذْكَرُ فِيْ سَمِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَوَاهُ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷٤۲٤: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّهُ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ اُهْدِيَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيْهَا سَمٌّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْمَعُوْا لِيْ مَنْ كَانَ هٰهُنَا مِنَ الْيَهُوْدِ فَجُمِعُوْا لَهُ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ اَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْهُ فَقَالُوْا نَعَمْ يَا اَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَبُوْكُمْ قَالُوْا اَبُوْنَا فُلَانٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

نه راغي.

۷٤۲۳: محمد بن بشار. ابن جعفر. شعبه. قتاده. انس بن مالکؓ نه روايت کوي نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چه عدوي يعني ذ مرض يو نه بل ته لېږيدل او بدشکوني هيڅ څيز نۀ دے. او ماته فال ښۀ معلوميږي خلقو عرض اوکۀ' فال څۀ څيز دے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ښۀ خبره.

باب ٤٤٥: نبي صلي الله عليه وسلّم ته چه ذ زهرو ورکولو متعلق کوم روايتونه منقول دي' عروه ذ بي بي عائشےؓ نه او هغے ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت کۀ.

۷٤۲٤: قتيبه. ليث. سعيد. ابو سعيد. ابوهريرهؓ نه روايت کوي' ذ هغۀ بيان دے' کوم وخت چه خيبر فتح شو' نو نبي صلي الله عليه وسلّم حکم اوکۀ' هغه يهوديان ماته راجمع کړئ کوم چه دلته موجود دي' هغه خلق راوستے شو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل زۀ تاسو نه څۀ تپوس کول غواړم' آيا تاسو به ماته ټيک اوښايئ' هغوي اووے' او' اے ابوالقاسم (صلي الله عليه وسلّم) حضور صلي الله عليه وسلّم ترے تپوس اوکۀ' ستاسو پلار څوک دے' هغوي اووے' خمونږ پلار فلانے دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' تاسو دروغ وائے' ستاسو پلار فلانے دے' هغوي اووے' تاسو ټيک اووے' او ريښتيا مو اووے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' زۀ تاسو نه يو خبره تپوسل غواړم' آيا تاسو به ټيک جواب

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبْتُمْ بَلْ اَبُوْكُمْ فُلَانٌ فَقَالُوْا صَدَقْتَ وَ بَرَرْتَ فَقَالَ اَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ اِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ فَقَالُوْا نَعَمْ يَا اَبَا الْقَاسِمِ وَ اِنْ كَذَبْنَاكَ عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِيْ اَبِيْنَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَهْلُ النَّارِ فَقَالُوْا نَكُوْنُ فِيْهَا يَسِيْرًا ثُمَّ تَخْلُفُوْنَنَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِخْسَئُوْا فِيْهَا وَاللّٰهِ لَا نَخْلُفُكُمْ فِيْهَا اَبَدًا ثُمَّ قَالَ لَهُمْ فَهَلْ اَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ اِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ قَالُوْا نَعَمْ فَقَالَ هَلْ جَعَلْتُمْ فِيْ هٰذِهِ الشَّاةِ سَمًّا قَالُوْا نَعَمْ فَقَالَ مَا حَمَلَكُمْ عَلٰى ذٰلِكَ فَقَالُوْا اَرَدْنَا اِنْ كُنْتَ كَذَّابًا نَسْتَرِيْحُ مِنْكَ وَ اِنْ كُنْتَ نَبِيًّا لَمْ يَضُرَّكَ.

راکړئے. هغوي عرض اوکړ، او. اے ابوالقاسم (صلي اللّٰه عليه وسلّم) که مونږه غلطه خبره اوکړو، نو تاسو له به (خپله) علم اوشي، څنګه چه تاسو ته خمونږ ډ پلار متعلق علم اوشو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ډ هغوي نه تپوس اوکړ (او وائے) دوزخيان کوم خلق دي، هغوي اووے، مونږ خلق به لږے مودے ډ پاره يُو، بيا خمونږ نه پس به تاسو خلق ئے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي ته اوفرمائيل، ذليل شئے، په خدائے چه مونږ خلق به هيڅ کله ستاسو نه پس هغے کښې نۀ يُو. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي ته اوفرمائيل، آيا تاسو به ريښتيا اووايئے، که نه، تاسو نه يوه خبره اوتپوسم، هغوي اووے، او حضورؐ ورته اوفرمائيل، آيا تاسو ډ دے چيلئے (بکرۍ) په غوښه کښې زهر ګډ کړے دي. هغوي اووے، او. حضورؐ ترے تپوس اوکړ، څۀ څيز تاسو په دے آماده کړئے. هغوي اووے، خمونږ مقصد دا وو، که تاسو دروغجن ئے، نو مونږ به درنه خلاص شو، او که تاسو نبي ئے، نو تاسو ته به نقصان اونۀ رسي.

## بَابٌ ۴۴٦: شُرْبِ السَّمِّ وَ الدَّوَاءِ بِهٖ وَ بِمَا يَخَافُ مِنْهُ وَالْخَبِيْثِ.

## باب ۴۴٦: زهر څکل او ډ هغے علاج کول او ډ کوم څيز نه چه خوف وي، ډ هغے ډ لرے کولو بيان.

۷۲۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَدّٰى مِنْ جَبَلٍ

۷۲۵: عبداللّٰه بن عبدالوهاب. خالد بن حارث. شعبه. سليمان. ذکوان. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم سړے چه ډ غر نه اُوغرځيږي او خپل ځان قتل کړي، هغه به ډ جهنم به اُور کښې وي، او هغے کښې به هميشه غرځولے شي. او چا چه زهر اوڅکل

فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَهُوَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ يَتَرَدَّى فِيْهِ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيْهَا أَبَدًا وَ مَنْ تَحَسَّى سَمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَسَمُّهُ فِيْ يَدِهٖ يَتَحَسَّاهُ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيْهَا أَبَدًا وَّ مَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِحَدِيْدَةٍ فَحَدِيْدَتُهُ فِيْ يَدِهٖ يَجَأُ بِهَا فِيْ بَطْنِهٖ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيْهَا أَبَدًا.

خان نې اُوروژلو' نو ذ هغهٔ زهر به ذ هغهٔ په لاس کښې وي' او ذ جهنم په اُور کښې به هغه څکي' او همیشه به دغې حالت کښې وي. او چا چه خان ذ اُوسپنې اوزار (لکه توره' ټوپک' تماچه وغيره) سره قتل کړ' نو ذ هغهٔ اُوسپنه به ذ هغهٔ په لاس کښې وي. په هغې به خپله خېټه ذ جهنم په اُور کښې وهي. او همیشه به دغې حالت کښې وي.

۷۲۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا أَحْمَدُ بْنُ بَشِيْرٍ أَبُوْ بَكْرٍ أَخْبَرَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ اصْطَبَحَ بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَّمْ يَضُرُّهُ ذٰلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَّ لَا سِحْرٌ.

۷۲۶: محمد. احمد بن بشير ابوبکر. هاشم بن هاشم. عامر بن سعد. ذ خپل پلار نه روايت کوي' ذ هغهٔ بيان دے' ما ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' کوم سړے چه سحر وخت کښې اوه عجوه قجورې اوخوري' په هغه ورځ به نهٔ ورته زهر او نهٔ جادو نقصان رسولے شي.

بَابٌ ۷۴۴: أَلْبَانِ الْأُتُنِ.

باب۷۴۴: ذ خرې (گدهې) ذ پيؤ بيان.

۷۲۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِيْ إِدْرِيْسَ الْخَوْلَانِيِّ عَنْ أَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رضي الله عنه قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِيْ نَابٍ مِّنَ السَّبُعِ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ لَمْ أَسْمَعْهُ حَتّٰى أَتَيْتُ الشَّامَ وَ زَادَ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَ سَأَلْتُهُ هَلْ نَتَوَضَّأُ أَوْ نَشْرَبُ أَلْبَانَ الْأُتُنِ أَوْ مِرَارَةَ السَّبُعِ أَوْ

۷۲۷: عبداللّٰه بن محمد. سفيان. زهري. ابو ادريس خولاني. ابو ثعلبه خشنيؓ نه روايت کوي' ذ هغهٔ بيان دے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هر دارې لرونکي ځناور' ذ خوړلو نه منع فرمائيلې ده. زهري اووې. ما دا واونهٔ ريدل تردې چه زهٔ شام ته راغلم. او ليث دې زياتې سره بيان اوکهٔ' چه ماته يونس' هغهٔ ذ ابن شهاب نه روايت اوکهٔ' ما ذ هغهٔ نه تپوس اوکهٔ چه مونږ ذ خرې (گدهې) پيئې څکلې شو. يا دې سره اودس کولې شو. يا ذ درندګانو تريخې يا ذ اُوښانو متيازې استعمالولې شو. هغهٔ

اَبْـوَالَ الْاِبِلِ قَالَ قَدْ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ يَتَدَاوَوْنَ بِهَا فَلَا يَـرَوْنَ بِـذٰلِكَ بَأْسًا فَاَمَّا اَلْبَانُ الْاُتُنِ فَقَدْ بَلَغَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ لُحُـوْمِهَا وَ لَمْ يَبْلُغْنَا عَنْ اَلْبَانِهَا اَمْرٌ وَّ لَا نَهْيٌ وَ اَمَّا مِرَارَةُ السَّبُعِ قَالَ ابْـنُ شِهَـابٍ اَخْبَـرَنِـيْ اَبُوْ اِدْرِيْـسَ الْخَـوْلَانِـيُّ اَنَّ اَبَـا ثَـعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ اَخْبَـرَهُ اَنَّ رَسُـوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ اَكْلِ كُلِّ ذِيْ نَابٍ مِنَ السَّبُعِ.

جـواب راکـه، ورومبـني مسلـمـانـانو بـه دے سره عـلاج کـولـو. او دے کـښې بـه نـے څـهٔ حـرج نهٔ ګنړلو، لیکن دَ خرے (ګدې) دَ پیـؤ متعـلق ماته معلومه شوے ده، چـه نبـي صلـي اللّٰـه علیـه وسلّم دَ دے دَ غوښے خـوړلـو نـه مـنـع فـرمـائیلـے ده، خـو دَ دے دَ پیؤ متعـلق څـهٔ حکـم یـا مـمانعت ماتـه نـه دے رارسیدلے او دَ درنـدګـانـو دَ تـریـخـي متعلق ابن شهاب اووے ماته ابـو ادریـس خـولاني بیـان اوکـهٔ، چـه ابـو ثعلبه خشني اووے، رسـول اللّٰـه صلـي اللّٰـه علیـه وسلّم دَ هر داړے لـرونـکي ځنـاور دَ خـوراک نـه منع فرمائیلے ده.

بَـاب۴۴۸: اِذَا وَقَـعَ الـذُّبَـابُ فِي الْاِنَاءِ.

بـاب۴۴۸: کـه لـوښـي کـښې مـچ (مکھی) اوغرځیږي (نو څه کول پکار دي).

۷۲۸: حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَـةُ حَـدَّثَنَا اِسْمٰعِيْـلُ بْـنُ جَـعْـفَرٍ عَنْ عُتْبَةَ بْنِ مُسْلِـمٍ مَـوْلٰى بَنِيْ تَمِيْمٍ عَنْ عُبَيْدِ بْـنِ حُنَيْنٍ مَوْلٰى بَنِيْ زُرَيْقٍ عَنْ اَبِيْ هُـرَيْـرَةَ اَنَّ رَسُـوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِيْ اِنَـاءِ اَحَـدِكُـمْ فَـلْيَـغْمِسْـهُ كُلَّـهٗ ثُمَّ لِيَـطْرَحْهُ فَاِنَّ فِيْ اَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَآءً وَّ فِي الْاٰخِرِ دَآءً.

۷۲۸: قتیبـه. اسمٰعیل بـن جـعفـر. عتبـه بن مسلـم (ابـن تـمیـم آزاد کـرده غـلام). عبیـد بـن حنین (دَ بـنـي زریـق آزاد کـرده غـلام) حـضـرت ابوهـریرهؓ نـه روایـت کـوي، رسـول اللّٰـه صلـي اللّٰـه علیـه وسلّـم اوفـرمـائیـل، کـلـه چـه تـاسو کـښې دَ چا لوښي کـښې مچ (مکھی) اُوغـرځـیږي، نـو پـکـار دي، چـه ټول مـچ لـه غـوپـه ورکـړي. بیـادے هغـه اوغـرځـوي، ځـکـه چـه دَ هغـهٔ یـو وزر کـښې شـفـا ده او دویـم کښې بیماري.

# كِتَابُ اللِّبَاسِ

# (دَ اغُستلو بیان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَاب ۴۴۹: قَـوْلِ اللّٰـهِ تَعَالٰى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب ۴۴۹: دَ اللّٰه تعالي قول: قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَالْبَسُوْا وَ تَصَدَّقُوْا فِيْ غَيْرِ اِسْرَافٍ وَّ لَا مَخِيْلَةٍ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ كُلْ مَا شِئْتَ وَلْبَسْ مَا شِئْتَ مَا اَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ سَرَفٌ اَوْ مَخِيْلَةٌ.

اللّٰهِ الَّتِيْ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ (ورته اووايه' چا ذ الله زينت حرام كړے دے' چه هغه ذَ خپلو بنديانو ذَ پاره پيدا كړے دے او نبي صلى الله عليه وسلّم اوفرمائيل' خورئے' څکئے او اَغندئے' او خيرات كوئے' ليكن اسراف او تكبر مهٔ كوئے. او ابن عباسؓ اوفرمائيل' چه څهٔ غواړئے' خورئے' اوڅکئے' خو په شرط ذَ دے' چه دوه خبرے په كښ نهٔ وي' يو اسراف او دوئم تكبر.

۷۲۹: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ وَّ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ وَّ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ يُخْبِرُوْنَهٗ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ اِلٰى مَنْ جَرَّ ثَوْبَهٗ خُيَلَاءَ.

۷۲۹: اسمٰعيل. مالک. نافع او عبدالله بن دينار او زيد بن اسلم. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله تعالىٰ به ذَ قيامت په ورځ ذَ هغه سړي طرف ته نظر اونهٔ كړي' چه خپله كپړه ذَ غرور په سبب په زمكه راښكلے كړي.

## باب ۴۵۰: مَنْ جَرَّ اِزَارَهٗ مِنْ غَيْرِ خُيَلَاءَ.

## باب ۴۵۰: ذَ هغے سړي بيان چه خپل پرتوګ راښكلے بغير تكبره ځي (تلل كوي).

۷۳۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهٗ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ اِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَحَدَ شِقَّيْ اِزَارِيْ يَسْتَرْخِيْ اِلَّا اَنْ اَتَعَاهَدَ ذٰلِكَ مِنْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَسْتَ مِمَّنْ يَّصْنَعُهٗ خُيَلَاءَ.

۷۳۰: احمد بن يونس. زهير. موسٰي بن عقبه. سالم بن عبدالله ذَ خپل پلار (عبداللهؓ) نه روايت كوي. ذَ هغهٔ بيان دے نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم سړے چه خپله كپړه راښكلو سره غرور سره ځي' نو الله تعالىٰ به ذَ قيامت په ورځ هغهٔ طرف ته نظر اونهٔ كړي. حضرت ابوبكر صديق عرض اوكهٔ' يا رسول الله' ځما تهبند يو طرف تـه آويزان وي' يا هغے كښ ذَ غوټے اچولو ضرورت وي' نو نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' ته ذَ هغے خلقونه' نهٔ ئے' چه ذَ غرور په سبب داسے كوي.

۷۳۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا

۷۳۱: محمد. عبدالاعلىٰ. يونس. حسن.

عَبْدُ الْاَعْلٰى عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِىْ بَكْرَةَ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ وَ نَحْنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ يَجُرُّ ثَوْبَهُ مُسْتَعْجِلًا حَتّٰى اَتَى الْمَسْجِدَ وَ ثَابَ النَّاسُ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَجُلِّيَ عَنْهَا ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْنَا وَ قَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ فَاِذَا رَاَيْتُمْ مِنْهَا شَيْئًا فَصَلُّوْا وَادْعُوا اللّٰهَ حَتّٰى يَكْشِفَهَا.

ابوبکرؓ نه روایت کوي، مونږ نبي صلي الله علیه وسلّم سره ناست وو، چه نمر تندر راونیولو، حضورؐ تادي سره خپله کپړه راښکلو سره اودریدلو، تردے چه جُمات ته ورسیدلو. او خلق هم جمع شو، حضور صلي الله علیه وسلّم دوه رکعاته مونځ اوکړ. بیا نمر روښانه شو، حضور صلي الله علیه وسلّم مونږ خلقو ته متوجه شو، او وے فرمائیل، نمر او سپوږمۍ دَ الله تعالٰي (دَ قدرت) نښے دي، هر کله چه تاسو دا اووینئے، چه تندر نیولے دي، نو مونځ کوئے، او الله نه دُعا غواړئے، تردے چه تندر نیول لرے شي.

## بَابُ ۴۵۱: التَّشْمِيْرِ فِي الثِّيَابِ.

## باب ۴۵۱: دَ کپړے راغُنډولو بیان.

۷۳۲: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا ابْنُ شُمَيْلٍ اَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ زَائِدَةَ اَخْبَرَنَا عَوْنُ بْنُ اَبِىْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَبِىْ جُحَيْفَةَ فَرَاَيْتُ بِلَالًا جَاءَ بِعَنَزَةٍ فَرَكَزَهَا ثُمَّ اَقَامَ الصَّلٰوةَ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِيْ حُلَّةٍ مُشَمِّرًا فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اِلَى الْعَنَزَةِ وَ رَاَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ يَمُرُّوْنَ بَيْنَ يَدَيْهِ مِنْ وَّرَاءِ الْعَنَزَةِ.

۷۳۲: اسحٰق. ابن شمیل. عمر بن زائده. عون بن ابي جحیفه دَ خپل پلار نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے، ما بلالؓ اولیدلو، چه هغه یوه نیزه راوړله، او هغه ئے زمکه کښې ښخه کړله. بیائے دَ مونځ آذان اوکړ. ما رسول الله صلي الله علیه وسلّم اولیدلو، چه حضورؐ چُغه اَغُستے وَه دا شان چه هغه ئے راغُنډه کړے وه، بهرته ئے تشریف راوړلو. نیزے ته ئے مخ کړ، او دوه رکعاته مونځ ئے اوکړ. ما اولیدل، چه سړي او چوپایه دَ حضورؐ مخے ته دَ نیزے په بل طرف تلل.

## بَابُ ۴۵۲: مَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ فَهُوَ فِي النَّارِ.

## باب ۴۵۲: دَ کوم سړي کپړه چه دَ ګِټو لاندے وي (استعمالوي) هغه به دوزخ کښې وي.

۷۳۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ اَبِىْ سَعِيْدٍ

۷۳۳: آدم. شعبه. سعید بن ابي سعید. مقبري. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت

الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْاِزَارِ فَفِي النَّارِ.

کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل چا چه ذ ګیټو لاندے پرتوګ اوټرلو' هغه به دوزخ کښې وي.

باب٤٥٣: مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ مِنَ الْخُيَلَاءِ.

باب٤٥٣: ذ هغے سړي بیان چه ذ تکبر په سبب کپړه راښکلے څي (ټلل کوي).

٧٣٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِلٰى مَنْ جَرَّ اِزَارَهُ بَطَرًا.

٧٣٤: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اللّٰه به ذ قیامت په ورځ هغے سړي ته نظر اونهٔ کړي' چه خپل پرتوګ ذ غرور په سبب راښکلے څي.

٧٣٥: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ اَوْ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يَمْشِيْ فِيْ حُلَّةٍ تُعْجِبُهُ نَفْسُهُ مُرَجِّلٌ جُمَّتَهُ اِذْ خَسَفَ اللّٰهُ بِهٖ فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ.

٧٣٥: آدم. شعبه. محمد بن زیاد. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم (یا ابوالقاسم صلي اللّٰه علیه وسلّم) اوفرمائیل' یو سړي چُغه اغستے وه' سر کښې ئے ګومنز وهله او زړهٔ کښې ډیر خوشحاله خوشحاله روان وو' چه اللّٰه تعالیٰ هغه په زمکه کښې غرق کړلو' او ذ قیامته پورے دغسے په خکته څي.

٧٣٦: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا رَجُلٌ يَجُرُّ اِزَارَهُ خُسِفَ بِهٖ فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِيْ

٧٣٦: سعید بن عفیر. لیث. عبدالرحمٰن بن خالد. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه ذ خپل پلار نه روایت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' یو ځل یو سړے خپل پرتوګ راښکلو راښکلو (یعني ذ ګیټو نه لاندے راښکلو) سره روان وو' چه هغه زمکه کښې غرق کړے شو' او هغه بهٔ ذ قیامته پورے په

الْاَرْضِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ تَابَعَهُ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَلَمْ يَرْفَعْهُ شُعَيْبٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

زمکه کښې په خکته خي. يونس ذ زهري نه ذ دې متابع حديث روايت کړه. او شعيب دا ذ ابوهريرةٌ نه مرفوعاً روايت نه کړه.

۷۳۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ ابْنُ جَرِيْرٍ اَخْبَرَنَا اَبِيْ عَنْ عَمِّهٖ جَرِيْرِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَلٰى بَابِ دَارِهٖ فَقَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهٗ.

۷۳۷: عبداللّٰه بن محمد. وهب بن جرير بن زيد نه روايت کوي، زهٔ ذ سالم بن عبداللّٰه بن عمرؓ په دروازه ووم، نو هغهٔ بيان اوکړهٔ، چه ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دغسې آوريدلې دي.

۷۳۸: حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ لَقِيْتُ مُحَارِبَ بْنَ دِثَارٍ عَلٰى فَرَسٍ وَّهُوَ يَاْتِيْ مَكَانَهُ الَّذِيْ يَقْضِيْ فِيْهِ فَسَاَلْتُهٗ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ فَحَدَّثَنِيْ فَقَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَؓ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهٗ مَخِيْلَةً لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ اِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَقُلْتُ لِمُحَارِبٍ اَذَكَرَ اِزَارَهٗ قَالَ مَا خَصَّ اِزَارًا وَّ لَا قَمِيْصًا تَابَعَهُ جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ وَّ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ وَ زَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَ تَابَعَهُ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ وَ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ وَّ قُدَامَةُ بْنُ مُوْسٰى

۷۳۸: مطر بن فضل. شبابه. شعبه بيان کوي چه زهٔ محارب بن دثار سره يوځائے شوم، داسې حال کښې چه هغه په اَس سور وو. او هغې مکان طرف ته تلو، کوم ځائے چه فيصله کولے شوه (يعني دارالقضاء کښې) ما ذ هغهٔ نه ذ دې حديث متعلق تپوس اوکړهٔ، نو هغهٔ اووې، ما ذ حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه واوريدل، حضورؐ اوفرمائيل، کوم سړے چه ذ غرور په سبب خپله کپړه راښکلو سره خي، نو اللّٰه تعالیٰ به ذ قيامت په ورځ هغهٔ ته اونهٔ کوري. ما ذ محارب نه تپوس اوکړهٔ، آيا حضورؐ ذ پرتوګ هم ذکر اوکړهٔ، نو هغهٔ اووې، ذ پرتوګ يا قميص تخصيص ئې اونهٔ فرمائيلو جبله بن سحيم او زيد بن اسلم او زيد بن عبداللّٰه، ابن عمرؓ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي او ليث ذ نافع نه په وسطه ذ ابن عمرؓ دغه شان روايت اوکړهٔ، او موسیٰ بن عقبه، عمر بن محمد او قدامه بن موسیٰ

عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ.

ذَ سالم نه، هغهٔ ذَ ابن عمرؓ هغهٔ ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت اوکهٔ، چه کوم سړے خپله کپړه رابنکلو سره خي.

باب ۴۵۴: اَلْاِزَارِ الْمُهَدَّبِ وَ يُذْكَرُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَّ حَمْزَةَ بْنِ اَبِيْ اُسَيْدٍ وَّ مُعَاوِيَةَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ اَنَّهُمْ لَبِسُوْا ثِيَابًا مُهَدَّبَةً.

باب ۴۵۴: ذَ کناري دار، تهبند بيان. زهري. ابوبکر بن محمد. حمزه بن ابي اسيد. او معاويه بن عبدالله بن جعفر نه منقول دي، چه هغے خلقو به کناري دار تهبند اچولو.

۵۳۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ جَآءَتْ اِمْرَاَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا جَالِسَةٌ وَ عِنْدَهُ اَبُوْبَكْرٍ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ كُنْتُ تَحْتَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِيْ فَبَتَّ طَلَاقِيْ فَتَزَوَّجْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ اِنَّهُ وَاللّٰهِ مَا مَعَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا مِثْلُ هٰذِهِ الْهُدْبَةِ وَ اَخَذَتْ هُدْبَةً مِّنْ جِلْبَابِهَا فَسَمِعَ خَالِدُ بْنُ سَعِيْدٍ قَوْلَهَا وَهُوَ بِالْبَابِ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ قَالَتْ فَقَالَ خَالِدٌ يَا اَبَا بَكْرٍ اَلَا تَنْهٰى هٰذِهِ عَمَّا تَجْهَرُ بِهِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا وَاللّٰهِ مَا يَزِيْدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى

۵۳۹۷: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم تبر بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، ذَ هغې بيان دے، ذَ رفاعه قرظي ښځه ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه، داسے حال کښې چه زهٔ (عائشهؓ) ناسته ووم، او حضور صلي الله عليه وسلّم سره ابوبکرؓ هم وو. هغے عرض اوکړه، يا رسول الله، زهٔ ذَ رفاعه زوجيت (ښځه توب) کښې ووم. هغهٔ ماله طلاق بتّه راکړلو. هغهٔ نه پس ما عبدالرحمٰن بن زبير سره نکاح اوکړه ليکن يا رسول الله، هغهٔ سره (عضو مخصوص يعني ذکر) ذَ کپړے ذَ زونډي په شان دے، او ذَ خپل څادر حاشيه ئے اونيوله، وے ښودله. خالد بن سعيد چه په دروازه ولاړ وو، او ذَ داخلے اجازت ورته نهٔ وو شوے، ذَ هغے آواز ئے واوريدلو، هغهٔ اووے، اے ابوبکرؓ، دا ښځه واے نهٔ منع کوے، چه حضور صلي الله عليه وسلّم سره اوچت آواز سره لګيا ده. رسول الله صلي الله عليه وسلّم مُسکے شولو. او هغې ښځے

التَّبَسُّمِ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّكِ تُرِيْدِيْنَ اَنْ تَرْجِعِيْ اِلٰى رِفَاعَةَ لَا حَتّٰى يَذُوْقَ عُسَيْلَتَكِ وَ تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهُ فَصَارَ سُنَّةً بَعْدُ.

ته ئے اووے، شاید ته رفاعه ته واپس تلل غواړے، داسے نشي کیدے، څو پورے چه هغه تانه او ته د هغهٔ نه مزه وانخلے (یعني د دوئم خاوند نه) دے نه پس دا دستور شولو.

باب ۴۵۵: اَلْاَرْدِيَةِ وَ قَالَ اَنَسٌ جَبَذَ اَعْرَابِيٌّ رِدَآءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۵۵: د څادرونو بیان. انسؓ اووے یو اعرابي د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم څادر راښکلو.

۵۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّؓ اَخْبَرَنَا اَنَّ عَلِيًّا قَالَ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَآئِهٖ ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِيْ وَاتَّبَعْتُهُ اَنَا وَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتّٰى جَآءَ الْبَيْتَ الَّذِيْ فِيْهِ حَمْزَةُ فَاسْتَاْذَنَ فَاَذِنُوْا لَهُمْ.

۵۴۰: عبدان. عبدالله. یونس. زهري. علي بن حسین. حسین بن عليؓ. نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل څادر اوغوښتلو، بیا روان شولو، نو زهٔ او زید بن حارثهؓ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم پسے روان شولو، حتٰي چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغے کورته تشریف راوړلو، کوم ځائے چه حمزهؓ وو. حضورؐ اجازت اوغوښتلو، اجازت ورکړے شو.

باب ۴۵۶: لُبْسِ الْقَمِيْصِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى حِكَايَةً عَنْ يُوْسُفَ اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا.

باب ۴۵۶: د قمیص اغستلو بیان، او د اللّٰه تعالي قول، چه د یوسف علیه السلام قصه بیانولو کښ اوفرمائیل، دا څما قمیص یوسه او څما د پلار په مخ ئے واچوه، نو د هغهٔ بینائي به په بیرته راشي.

۵۴۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ الْقَمِيْصَ وَ لَا

۵۴۱: قتیبه. حماد. ایوب. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، یو سړي عرض اوکهٔ، یا رسول اللّٰه، محرم به کومے کپړے اغندي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، محرم دے قمیص، پرتوګ، ټوپئ، او موزے نهٔ اچوي، خو دا

السَّرَاوِيلَ وَ لَا الْبُرْنُسَ وَ لَا الْخُفَّيْنِ إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ مَا هُوَ أَسْفَلُ مِنَ الْكَعْبَيْنِ.

كـه هغـه تـه پيزار حـاصل نشي، نو دَ ګټو نـه لاندې لانـدې دې مـوزه واچـوي. (ګـټـې پـټـول نـهٔ دي پكار).

۲۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أُبَيٍّ بَعْدَ مَا أُدْخِلَ قَبْرَهُ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ وَ وُضِعَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَ نَفَثَ عَلَيْهِ مِنْ رِيقِهِ وَ أَلْبَسَهُ قَمِيصَهُ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ.

۲۴۲: عبداللّٰه بن محمد. ابن عيينه. عمرو. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم، عبداللّٰه بن اُبي ته تشريف راوړلو، كوم وخت چه هغه قبر كښې ايښودې شوې وو، نو دَ هغهٔ دَ راويستلو حكم ئې اوكړ (كوم وخت چه هغه راوبښكلې شو، نو) حضورؐ په خپلو دواړو ځنګنونو هغه كيښودلو او پـه هغـه ئې دَم واچـولـو، او هغـهٔ تـه ئې خپل قميص واغُستلو. واللّٰه اعلم۱.

۱. په بعضو روايتونو كښې راځي چه عبداللّٰه بني اُبي د حضور اكرمؐ ترهٔ عباس رضي اللّٰه عنه ته په يوه موقعه كښې خپل قميص اغوستولې وو، په دې وجه د هغې دَ بدلې په طور باندې حضورؐ هم په داسې موقعه باندې خپل قميص وركړو كله چه هغه ته د حضورؐ دَ يو تبرّك د ټولونه زيات ضرورت كيدې شو.

۲۴۳: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ جَاءَ ابْنُهُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَعْطِنِي قَمِيصَكَ أُكَفِّنْهُ فِيهِ وَ صَلِّ عَلَيْهِ وَاسْتَغْفِرْ لَهُ فَأَعْطَاهُ قَمِيصَهُ وَ قَالَ إِذَا فَرَغْتَ فَآذِنَّا فَلَمَّا فَرَغَ آذَنَهُ فَجَاءَ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَجَذَبَهُ عُمَرُ فَقَالَ أَلَيْسَ قَدْ نَهَاكَ اللّٰهُ

۲۴۳: صدقه. يحيٰي بن سعيد. عبيداللّٰه. نافع. عبداللّٰه نه روايت كوي، كوم وخت چه عبداللّٰه بن اُبي (دَ منـافقانو سردار) مړ شولو، نو دَ هغهٔ ځوي (چه مؤمن وو) دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، عـرض ئې اوكړ، يا رسول اللّٰه، تاسو خپل قميص عنايت كـړئې، چه هـغـه (دَ پـلار) كفن كړم، او تاسو په هغهٔ (دَ جنـازې) مـونـځ اوكـړئې. او دَ هغهٔ دَ بښنې دَ پاره دُعا اُوغـواړئې، حضورؐ خپل قميص مبارک وركړلو. او وې فرمائيل، كله چه فارغ شې نو ما خبر كړه. كوم وخت چه فارغ شو او حضورؐ ته ئې خبر وركړلو، نو حضورؐ مونځ دَ پـاره ورروان شـولو، حضرت عمرؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسـلّم راښـكـلـو، او عـرض ئې اوكـه، آيـا اللّٰه تاسو په

اَنْ تُصَلِّيَ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ فَقَالَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ فَنَزَلَتْ وَ لَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا فَتَرَكَ الصَّلٰوةَ عَلَيْهِمْ.

منافقانو دَ مونځ كولو نه منع كړے نه ئ' چه فرمائيلے دي' كه تهٔ دوي دَ پاره دَ ښښنے دُعا او كړے يا اونهٔ كړے' كه اويا ځله هم هغوي دَ پاره ښښنه اوغواړے' نو الله تعالي هغوي هيڅ كله نهٔ ښښي. بيا دا آيت نازل شول: كه دوي كښې څوك مړ شي. نو هيڅ كله پرے مونځ مهٔ كوه' نو په هغوي ئے مونځ كول پريښودل.

## بَابُ ۴۵۷: جَيْبِ الْقَمِيْصِ مِنْ عِنْدِ الصَّدْرِ وَ غَيْرِهٖ.

باب ۴۵۷: قميص وغيره كښې سينے سره دَ جيب بيان.

۷۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ نَافِعٍ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ ضَرَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلَ الْبَخِيْلِ وَالْمُتَصَدِّقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيْدٍ قَدِ اضْطُرَّتْ اَيْدِيْهِمَا اِلٰى ثُدِيِّهِمَا وَ تَرَاقِيْهِمَا فَجَعَلَ الْمُتَصَدِّقُ كُلَّمَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ انْبَسَطَتْ عَنْهُ حَتّٰى تَغَشّٰى اَنَامِلَهٗ وَ تَعْفُوَ اَثَرَهٗ وَ جَعَلَ الْبَخِيْلُ كُلَّمَا هَمَّ بِصَدَقَةٍ قَلَصَتْ وَ اَخَذَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ بِمَكَانِهَا قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَاَنَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بِاِصْبَعِهٖ هٰكَذَا فِيْ جَيْبِهٖ فَلَوْ رَاَيْتَهٗ يُوَسِّعُهَا وَ لَا تَتَوَسَّعُ تَابَعَهُ ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ • اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ فِي الْجُبَّتَيْنِ

۷۴۴: عبدالله بن محمد. ابو عامر. ابراهيم بن نافع. حسن. طاؤس. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے' حضور صلي الله عليه وسلّم دَ بخيل او سخي (خيرات كونكي) يو مثال بيان كهٔ' چه هغوي دَ هغے دوو سړو په شان دي' چه دَ اوسپنے دوه زغرے ئے اغستے وي. دَ هغوي دواړه لاسونه سينو او تشو پورے رسيدلے وي. صدقه كونكے چه كله دَ صدقے اراده اوكړي' نو هغه زغره پلنه او فراخه شي' تردے چه پښو ته راورسي' او دَ پښو گوتے پټے كړي. او بخيل (شوم) چه دَ صدقے وركولو اراده اوكړي' نو هغه زغره په هغهٔ تنگه شي' او هره كړئ په خپل ځائے اونخلي (يعني فراخي په كښې نه راځي) دَ حضرت ابوهريرهؓ بيان دے. ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپلے گوتے خپل جيب كښې اچونكے اوليدلو' چه هغه كشاده كول غواړي' ليكن كشاده كېږي نه' او حنظله بيان اوكهٔ. ما دَ طاؤس

وَقَالَ حَنْظَلَةُ سَمِعْتُ طَاءُ وُسًا سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ جُبَّتَانِ وَ قَالَ جَعْفَرٌ عَنِ الْاَعْرَجِ.

نــه واوريـدل' هـغـهٔ ذ ابوهريرةؓ نـه: جبتـان: لـفـظ واوريـدلـو' او جـعـفـر ذ اعـرج نـه ذ جُبتـان لـفـظ روايت كړ.

## بـاب۴۵۸: مَنْ لَبِسَ جُبَّةً ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ فِي السَّفَرِ.

باب۴۵۸: ذ هغې سړي بيان چه سفر كښې تنګو لستونړو واله جُبّه واچوي.

۷۴۵: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الضُّحٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ مَسْرُوْقٌ قَالَ حَدَّثَنِي الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهٖ ثُمَّ اَقْبَلَ فَتَلَقَّيْتُهُ بِمَاءٍ فَتَوَضَّاَ وَ عَلَيْهِ جُبَّةٌ شَامِيَّةٌ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَ غَسَلَ وَجْهَهُ فَذَهَبَ يُخْرِجُ يَدَيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ فَكَانَا ضَيِّقَيْنِ فَاَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ فَغَسَلَهُمَا وَ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ وَ عَلٰى خُفَّيْهِ.

۷۴۵: قيس بن حفص. عبدالواحد. اعـمـش. ابوالضحي. مسروق. حضرت مغيره بن شعبهؓ نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم رفع حاجت ذ پاره لاړلو' بيا واپس شولو' ما لوټا واخسته' حضورؐ له ورغلم' نو حضورؐ اودس اوكړلو' دغه وخت حضور شامي جُبّه اغوستے وه. حضورؐ خوله كنګال كړه. پوزه كښې ئے اُوبه واچولے. او مخ ئے اووينزلو. بيائے خپل لاس ذ لستونړو نه راوښكلو' ليكن هغه تنګ وو. نو ذ جُبّے ذ لاندے نه ئے راوښكلو بيائے دواړه لاسونه اووينزل. او په سر او په دواړو موزوئے مسح اوكړله.

## بـاب۴۵۹: جُبَّةِ الصُّوْفِ الْغَزْوِ.

باب۴۵۹: جنګ كښې ذ اُون (وړينه) جُبّه اغُستل.

۷۴۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ اَبِيْهِؓ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيْ سَفَرٍ وَ قَالَ اَمَعَكَ مَاءٌ قُلْتُ نَعَمْ فَنَزَلَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ فَمَشٰى حَتّٰى تَوَارٰى عَنِّيْ فِيْ سَوَادِ اللَّيْلِ ثُمَّ

۷۴۶: ابو نعيم. زكريا. عامر. عروه بن مغيره ذ خپل پلار نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' زهٔ يوه شپه سفر كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ووم. حضورؐ تپوس اوكهٔ آيا تاسره اوبه شته. ما اووے' او. حضورؐ ذ خپلے سورلۍ نه راكوز شو. بيا روان شو' تردے چه ذ شپے په تاريكۍ كښې ذ نظر نه غائب شولو. بيا واپس راغے' نو ما ذ ښتكي (چهاګل) نه په حضورؐ اُوبه

جَآءَ نَا فَاَفْرَغْتُ عَلَيْهِ الْاَدَاوَةَ فَغَسَلَ وَجْهَهٗ وَ يَدَيْهِ وَ عَلَيْهِ جُبَّةٌ مِّنْ صُوْفٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ اَنْ يُّخْرِجَ ذِرَاعَيْهِ مِنْهَا حَتّٰى اَخْرَجَهُمَا مِنْ اَسْفَلِ الْجُبَّةِ فَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ ثُمَّ اَهْوَيْتُ لِاَنْزِعَ خُفَّيْهِ فَقَالَ دَعْهُمَا فَاِنِّىْ اَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا.

بهيولے. حضورؐ خپل مخ او لاس اووينځلو. هغه وخت حضورؐ دَ وړے يوه چُغه اغستے وه، حضورؐ دَ هغے نه لاس اُونه ښكلے شو، تردے چه دَ چُغے دَ لاندے نه ئے لاس رابښكلو بيائے خپل دواړه لاسونه اووينځل. دَ سر مسح ئے اوكړله. بيا زهٔ خكته شوم چه دَ حضورؐ موزے اوكاږم، نو حضورؐ اوفرمائيل. دا پريږده، دا ما دَ پاكيزګي حالت كښې اچولے وے. بيا حضورؐ په هغے مسح اوكړله.

باب ۴۶۰: الْقَبَآءِ وَ فُرُّوْجِ حَرِيْرٍ وَّ هُوَ الْقَبَآءُ وَ يُقَالُ هُوَ الَّذِىْ لَهٗ شَقٌّ مِّنْ خَلْفِهٖ.

باب ۴۶۰: دَ قباء او ريښمين فرّوج بيان، چه هغے ته قبا هم وائي، او دَ بعضو په نزد هغے ته وئيلے شي، چه دَ هغے دَ ورستو نه كټ شوے وي.

۷۴۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِىْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ قَسَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِيَةً وَّلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ شَيْئًا فَقَالَ يَا بُنَىَّ انْطَلِقْ بِنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهٗ فَقَالَ ادْخُلْ فَادْعُهٗ لِىْ قَالَ فَدَعَوْتُهٗ لَهٗ فَخَرَجَ اِلَيْهِ وَ عَلَيْهِ قَبَآءٌ مِّنْهَا فَقَالَ خَبَاْتُ هٰذَا لَكَ قَالَ فَنَظَرَ اِلَيْهِ فَقَالَ رَضِىَ مَخْرَمَةُ.

۷۴۷: قتيبه بن سعيد. ليث. ابن ابي مليكه. مِسور بن مخرمه نه روايت كوي نبي صلي الله عليه وسلّم څو قباګانے تقسيم كړے. ليكن مخرمه ته ئے هيڅ ورنهٔ كړل، نو مخرمه اووے، اے ځويه، ما سره رسول الله صلي الله عليه وسلّم له لاړ شه. زهٔ ورسره روان شوم، چه هلته اورسيدو، نو هغهٔ اووے، دننه ورشه، ما دَ پاره قبا (چُغه) اوغواړه. زهٔ ورغلم، او هغهٔ دَ پاره مِ اوغوښتله، نو نبي صلي الله عليه وسلّم بهر تشريف راوړلو، داسے حال كښې چه هغے قباګانو كښې يوه قبا حضورؐ راخستے وه. حضورؐ اوفرمائيل، دا ما ستا دَ پاره پټه ساتلے وه. حضورؐ هغهٔ ته اوكتل، اووے فرمائيل، مخرمهؓ راضي شولو.

۷۴۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَّزِيْدَ بْنِ اَبِىْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِى الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍؓ اَنَّهٗ قَالَ

۷۴۸: قتيبه بن سعيد. ليث. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته ريښمينے قباګانے (فرّوج) هديه كښې پيش كړے شو. حضورؐ (هغے كښې) يوه

اُهْدِيَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُّوْجُ حَرِيْرٍ فَلَبِسَهُ ثُمَّ صَلّٰى فِيْهِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيْدًا كَالْكَارِهِ لَهُ ثُمَّ قَالَ لَا يَنْبَغِيْ هٰذَا لِلْمُتَّقِيْنَ تَابَعَهُ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ عَنِ اللَّيْثِ وَ قَالَ غَيْرُهُ فَرُّوْجٌ حَرِيْرٌ.

واغستله: او هغې حالت کښې ئې مونځ اوکړلو. بيا ذ مانځه نه فارغ شو، نو هغه ئې دا شان سختي سره اوښکله، ورې غورځوله، ګويا چه ئې نه خوښوي بيائې اوفرمائيل، دا ذ متقيانو (پرهيزګارو) ذ پاره مناسب نه دَه. عبدالله بن يوسف ذ ليث نه ذ دې متابعت کښې روايت اوکړ، او نورو خلقو ذ: فروجٌ حريرٌ: لفظ روايت کړې دې.

باب ۱ ۴۶: اَلْبَرَانِسِ وَ قَالَ لِيْ مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ رَأَيْتُ عَلٰى اَنَسٍ بُرْنُسًا اَصْفَرَ مِنْ خَزٍّ.

باب ۱ ۴۶: ذ ټوپۍ بيان، او ماته مسدد، ذ معتمر نه هغه ذ خپل پلار نه روايت اوکړ، چه ما انس ؓ ذ زيړ رنګ ذ ريښمو ټوپۍ په سرولو باندې اوليدلو.

۷۴۹: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْبَسُوا الْقُمُصَ وَ لَا الْعَمَائِمَ وَالسَّرَاوِيْلَاتِ وَلَا الْبَرَانِسَ وَلَا الْخِفَافَ اِلَّا اَحَدٌ لَّا يَجِدُ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَ لَا تَلْبَسُوْا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَّلَا الْوَرْسُ.

۷۴۹: اسمٰعيل. مالک. نافع. حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، يو سړي عرض اوکړ، يا رسول الله، محرم به څه رنګ کپړې اغوندي. رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، قميص، پټکي، پرتوګ، ټوپي او موزې دې نهٔ اچوي: خو دا چه يو سړي سره پيزار نهٔ وي، نو هغه دې موزې واچوي، دا شان چه ذ ګيټو نه لاندې دې کټ کړي. او مهٔ داسې کپړې اغوندئ چه زعفران او ورس (يو قسم رنګ) کښې رنګ شوې وي.

باب ۴۶۲: اَلسَّرَاوِيْلِ.

باب ۴۶۲: ذ پرتوګونو بيان.

۷۵۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۷۵۰: ابو نعيم. سفيان. عمرو جابر بن زيد. حضرت ابن عباس ؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، کوم سړي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَمْ يَجِدْ إِزَارًا فَلْيَلْبَسْ سَرَاوِيلَ وَ مَنْ لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ.

سره چه ته بند نۀ وي، نو هغه دے پرتوګ واغندي او چا سره چه پیزار (پنړے) نۀ وي، نو هغه دے موزے واچوي.

٥١ ٧: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا تَأْمُرُنَا أَنْ نَلْبَسَ إِذَا أَحْرَمْنَا قَالَ لَا تَلْبَسُوا الْقَمِيصَ والسَّرَاوِيلَ وَالْعَمَائِمَ وَالْبَرَانِسَ وَالْخِفَافَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ لَيْسَ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَ لَا تَلْبَسُوا شَيْئًا مِنَ الثِّيَابِ مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَّلَا وَرْسٌ.

٥١ ٧: موسى بن اسمٰعيل. جويريه. نافع. حضرت عبدالله نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے، يو سړے اودريدلو، او عرض ئے اوکړ يا رسول الله، تاسو مونږ خلقوته ذ احرام حالت کښې ذ کوم قسم جامو اغستلو حکم راکوئے. حضور ورته اوفرمائيل قميص، پرتوګ، پټکے، ټوپي او موزے مۀ اچوئے، خو هغه سړے چه هغۀ سره پيزار نۀ وي، او نۀ، دے څۀ داسے کپړه اغندي، چه زعفران يا ورس کښې رنګ شوے وي.

باب ٣٦٣ : الْعَمَائِمِ.

باب ٣٦٣ : ذ پټکو بيان.

٥٢ ٧: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ الْقَمِيصَ وَلَا الْعِمَامَةَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَّلَا وَرْسٌ وَّلَا الْخُفَّيْنِ إِلَّا لِمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَإِنْ لَمْ يَجِدْهُمَا فَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ.

٥٢ ٧: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سالم ذ خپل پلار نه، هغۀ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضورٌ اوفرمائيل چه محرم دے قميص، پټکے، پرتوګ او ټوپي نۀ په سروي. او نۀ دے هغه کپړه اغندي، چه زعفران يا ورس سره رنګ شوے وي، او نۀ دے موزے اچوي، خو هغه سړے چه هغۀ سره پنړے نۀ وي (هغۀ ته اجازت دے) که پنړے نۀ وي، نو ذ ګټو نه لاندے موزے دے کټ کړي.

باب ٣٦٤ : التَّقَنُّعِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

باب ٣٦٤ : مخ او سر څادر سره ذ پټولو بيان.
او ابن عباسٌ اووے، نبي صلي الله عليه وسلّم داسے حال

وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ دَسْمَاءُ وَ قَالَ اَنَسٌ عَصَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَأْسِهٖ حَاشِيَةَ بُرْدٍ.

۷۵۳: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ هَاجَرَ اِلَى الْحَبْشَةِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ تَجَهَّزَ اَبُوْبَكْرٍ مُهَاجِرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكَ فَاِنِّيْ اَرْجُوْ اَنْ يُّؤْذَنَ لِيْ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ اَوْ تَرْجُوْهُ بِاَبِيْ اَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَحَبَسَ اَبُوْ بَكْرٍ نَفْسَهٗ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصُحْبَتِهٖ وَ عَلَفَ رَاحِلَتَيْنِ كَانَتَا عِنْدَهٗ وَرَقَ السَّمُرِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَبَيْنَا نَحْنُ يَوْمًا جُلُوْسٌ فِيْ بَيْتِنَا فِيْ نَحْرِ الظَّهِيْرَةِ قَالَ قَآئِلٌ لِاَبِيْ بَكْرٍ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا فِيْ سَاعَةٍ لَّمْ يَكُنْ يَاْتِيْنَا فِيْهَا قَالَ اَبُوْبَكْرٍ فِدًا لَهٗ بِاَبِيْ وَ اُمِّيْ وَاللّٰهِ اِنْ جَآءَ بِهٖ فِيْ هٰذِهِ السَّاعَةِ اِلَّا لِاَمْرٍ فَجَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَ فَاُذِنَ لَهٗ فَدَخَلَ فَقَالَ حِيْنَ دَخَلَ لِاَبِيْ بَكْرٍ اَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ قَالَ اِنَّمَا هُمْ اَهْلُكَ

كښې بهر تشريف راوړلو، چه حضورؐ توره پټئ تړلے وه. او ذَ انسؓ بيان دے، چه نبي صلي الله عليه وسلّم خپل سر ذَ څادر په پلسكي تړلے وو.

۷۵۳: ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذَ هغے بيان دے. مسلمانانو حبشه طرف ته هجرت اوكۀ، او ابوبكرؓ هم ذَ هجرت سامان برابر كۀ، نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تۀ لږ صبر اوكړه، ځكه چه اُميد دے، ماته ذَ هجرت حكم راكړے شي، حضرت ابوبكرؓ عرض اوكۀ، خما مور پلار دے په تاسو قربان وي، آيا تاسوؐ ته ذَ دے اُميد دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، او. نو حضرت ابوبكرؓ حضور صلي الله عليه وسلّم سره ذَ ملګرتيا په غرض ايسار شولو. او خپلو دوو سورلوته ئے څلور مياشتے پورے ذَ سُمر پانړے وركولے. ذَ عروه بيان دے. بي بي عائشےؓ اووے، يو ورځ مونږ خلق خپل كور كښې تكنه غرمه ناست وو، چه چا ويونكي حضرت ابوبكرؓ ته اووے رسول الله صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړے دے، داسے حال كښې، چه مخ ئے پټ كړے وو، او داسے وخت كښې ئے تشريف راوړلو، چه دے وخت به مونږ كره نۀ راتلو (په دے وجه) ابوبكرؓ عرض اوكۀ، خما مور پلار دے په دوئ قربان وي په خدائے چه دوئ دے وخت كښې ذَ څۀ لوئے كار په وجه تشريف راوړے دے، نبي صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، او ذَ دننه ذَ راتلو اجازت ئے اوغوښتلو، اجازت وركړے شو، حضورؐ دننه راغے، چه كوم وخت رانوتلو، نو ابوبكرؓ ته ئے اوفرمائيل، تاسره چه څومره خلق دي، هغوي لرے كړه. ابوبكرؓ ورته

بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَإِنِّيْ قَدْ أُذِنَ لِيْ فِي الْخُرُوْجِ قَالَ فَالصُّحْبَةُ بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَخُذْ بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِحْدٰى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالثَّمَنِ قَالَ فَجَهَّزْنَاهُمَا أَحَثَّ الْجَهَازِ وَصَنَعْنَا لَهُمَا سُفْرَةً فِيْ جِرَابٍ فَقَطَعَتْ أَسْمَآءُ بِنْتُ أَبِيْ بَكْرٍ قِطْعَةً مِنْ نِطَاقِهَا فَأَوْكَتْ بِهِ الْجِرَابَ فَلِذٰلِكَ كَانَتْ تُسَمَّى ذَاتَ النِّطَاقِ ثُمَّ لَحِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبُوْ بَكْرٍ بِغَارٍ فِيْ جَبَلٍ يُقَالُ لَهُ ثَوْرٌ فَمَكَثَ فِيْهِ ثَلٰثَ لَيَالٍ يَبِيْتُ عِنْدَهُمَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ بَكْرٍ وَهُوَ غُلَامٌ شَابٌّ لَقِنٌ ثَقِفٌ فَيَرْحَلُ مِنْ عِنْدِهِمَا سَحَرًا فَيُصْبِحُ مَعَ قُرَيْشٍ بِمَكَّةَ كَبَآئِتٍ فَلَا يَسْمَعُ أَمْرًا يُكَادَانِ بِهٖ إِلَّا وَعَاهُ حَتّٰى يَأْتِيَهُمَا بِخَبَرِ ذٰلِكَ حِيْنَ يَخْتَلِطُ الظَّلَامُ وَ يَرْعٰى عَلَيْهِمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ مَوْلٰى أَبِيْ بَكْرٍ مِنْحَةً مِنْ غَنَمٍ فَيُرِيْحُهَا عَلَيْهِمَا حِيْنَ تَذْهَبُ سَاعَةٌ مِنَ الْعِشَآءِ فَيَبِيْتَانِ فِيْ رِسْلِهَا حَتّٰى يَنْعَقَ بِهَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ بِغَلَسٍ يَفْعَلُ ذٰلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ مِنْ تِلْكَ اللَّيَالِي الثَّلٰثِ.

عرض اوکۀ، یا رسول اللّٰه، خما مور پلار دے په تاسو قربان وي، دا خو صرف ستاسوٓ د کور خلق دي. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ماته د هجرت حکم راکړے شوے دے، ابوبکرؓ عرض اوکۀ، یا رسول اللّٰه، خما مور پلار دے په تاسوٓ قربان وي، آیا زۀ به هم درسره یم. حضورؐ ورته اوفرمائیل، او. ابوبکرؓ عرض اوکۀ، خما مور پلار دے په تاسو قربان وي، تاسو دے دوو سورلو کښې یوه واخلئے. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، په قیمت به ئے واخلم، د بي بي عائشےؓ بیان دے مونږ د هغوي دواړو (حضورؐ او ابوبکرؓ) د پاره د سفر سامان تیار کړلو. ناشته مو تیاره کړه، د څرمنے تهیلئے کښې مو واچوله. اسماء بنت ابوبکرؓ خپله لوپټه اوشلوله، او هغے سره ئے د تهیلئ خوله بنده کړله، په دے وجه هغے ته ذات النطاق وئیلے شي. بیا د جبل ثور، غار ته نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم او ابوبکرؓ ورغلل، درے شپے هلته وو. عبداللّٰه بن ابي بکرؓ چه ذهین او نو عمر هلک وو، دوي دواړو سره به ئے شپه تیروله، او صبا کیدو سره به د هغوي نه روانیدلو. او د صبا وخت کښې به قریشو سره داسے وو، ګویا هغه شپه هغوي سره تیره کړے ده. د چا نه چه به ئے څۀ خبره واوریده، نو یاد به ئے ساتله، او د شپے به ئے هغوي دواړه د هغے نه خبرول چه یوه ګهړئ شپه به تیره شوه، نو عامر بن فهیره د ابوبکرؓ غلام به خپلے چیلے بوتلے اوځرولے. دواړو به هلته شپه تیروله، تردے چه عامر بن فهیره به تاریکي کښې د هغه ځائے نه روان شو. درے شپے هغوي دغسے کول.

## باب ۴۶۵: الْمِغْفَرِ.

## باب ۴۶۵: د خود (جنګي ټوپئ) بے، سرولو بیان.

۷۵۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ وَ عَلٰى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ.

۷۵۴: ابوالوليد. مالک. زهري. انسؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مکے دَ فتح په کال مکه کښې داخل شو، هغه وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلم جنګي ټوپي (خود) په سر کړے وو.

باب ۴۶۶: الْبُرُوْدِ وَالْحِبَرَةِ وَالشَّمْلَةِ وَ قَالَ خَبَّابٌ شَكَوْنَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً لَهٗ.

باب ۴۶۶: دهاري دار او حاشيه دار څادرونه او دَ شملے بيان. دَ خباب بيان دے، مونږ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې دَ مرض شکايت له ورغلو، نو حضورؐ يو دهاري دار څادر باندے تکيه لږولے وه.

۷۵۵: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنْتُ اَمْشِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيْظُ الْحَاشِيَةِ فَاَدْرَكَهٗ اَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَهٗ بِرِدَآئِهٖ جَبْذَةً شَدِيْدَةً حَتّٰى نَظَرْتُ اِلٰى صَفْحَةِ عَاتِقِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الْبُرْدِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهٖ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ مُرْلِيْ مِنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ضَحِكَ ثُمَّ اَمَرَ لَهٗ بِعَطَآءٍ.

۷۵۵: اسمٰعيل بن عبداللّٰه. مالک. اسحٰق بن عبداللّٰه بن ابي طلحه. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره تلم، داسے حال کښې چه دهاري دار نجراني څادر ئے په سر کړے وو، په هغے پلنے حاشيے جوړے شوے وے. يو اعرابي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يوځائے شو، دَ حضورؐ څادر ئے اونيولو، او دومره زور سره ئے راښکلو، چه ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په اوږه (مونډے پر) دَ هغے څادر دَ راښکلو نښنه اوليده. بيا هغه اووے اے محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم ما دَ پاره دَ اللّٰه دَ مال نه چه تاسوؐ سره دے حکم اوکړه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه طرف ته متوجه شو. بيا په خندا شو، او هغه ته ئے د څه ورکولو حُکم اوکهٔ.

۷۵۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ

۷۵۶: قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي يو ښځه يو

عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَآءَ تْ اِمْرَاَةٌ بِبُرْدَةٍ قَالَ سَهْلٌ هَلْ تَدْرِيْ مَا الْبُرْدَةُ قَالَ نَعَمْ هِيَ الشَّمْلَةُ مَنْسُوْجٌ فِيْ حَاشِيَتِهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ نَسَجْتُ هٰذِهٖ بِيَدِيْ اَكْسُوْكَهَا فَاَخَذَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا اِلَيْهَا فَخَرَجَ اِلَيْنَا وَ اِنَّهَا لَاِزَارُهٗ فَجَسَّهَا رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اكْسُنِيْهَا قَالَ نَعَمْ فَجَلَسَ مَاشَآءَ اللّٰهُ فِي الْمَجْلِسِ ثُمَّ رَجَعَ فَطَوَاهَا ثُمَّ اَرْسَلَ بِهَا اِلَيْهِ فَقَالَ لَهُ الْقَوْمُ مَا اَحْسَنْتَ سَاَلْتَهَا وَقَدْ عَرَفْتَ اَنَّهٗ لَا يَرُدُّ سَآئِلًا فَقَالَ الرَّجُلُ وَاللّٰهِ مَا سَاَلْتُهَا اِلَّا لِتَكُوْنَ كَفَنِيْ يَوْمَ اَمُوْتُ قَالَ سَهْلٌ فَكَانَتْ كَفَنَهٗ.

"بروده" سره زاغله سهل تپوس اوکه تاته معلومه ده چه "بروده" څه څيز دے. هغهٔ اووے او. هغه څادر دے. چه ډ هغے حاشيے جوړے شوے وي. هغے ښځے عرض اوکهٔ يا رسول اللّٰه ما دا خپل لاس سره جوړ کړے دے، چه تاسوته ئے واغندوم رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه څادر واخست او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د دے ضرورت هم وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ پله راغے داسے حال کښ، چه د هغے تهبند ئے تړلے وو. قوم کښ يو سړي هغه مَس کړلو، او عرض ئے اوکهٔ يا رسول اللّٰه دا ماته اَغستو د پاره راکړئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ښهٔ ده، بيا هغے مجلس کښ ناست وو. څو پورے چه اللّٰه ته منظوره وه. بيائے واپس تشريف يوړلو. او هغه څادر ئے راونغښتلو هغے سړي ته ئے اوليږلو. هغے سړي ته خلقو اووے تا ښهٔ اونه کړل. چه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دے سوال اوکهٔ، حالانکه تاته پته ده. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ چا سوال نه رد کوي. هغے سړي اووے، په خدائے چه، ما خو دے د پاره غوښتلے دے، چه کوم وخت زهٔ مړ شم نو دا څما کفن شي. سهل بيان اوکهٔ، هغے څادر نه دَ هغه کفن جوړ کړے شو.

۷۵۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ اُمَّتِيْ زُمْرَةٌ هِيَ سَبْعُوْنَ اَلْفًا

۷۵۷: ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. ابوهريرهٔ نه روايت کوي، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. څما اُمت کښ به يو جماعت وي. چه جنّت کښ به (بے حسابه) داخليږي. دَ هغوي مخونه به دَ سپوږمۍ په شان ځلانده وي (اللّٰه پاک دے مونږ هم دَ دوئ نه کړي. اللّٰهم آمين) عکاشه

تُضِيءُ وُجُوهُهُمْ إِضَاءَةَ الْقَمَرِ فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ الْأَسَدِيُّ يَرْفَعُ نَمِرَةً عَلَيْهِ قَالَ ادْعُ اللَّهَ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَقَالَ اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ ثُمَّ قَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبَقَكَ عُكَّاشَةُ.

بن محصن اسدي خپل څادر اُوچت کړه اُودريد، او عرض ئې اوکړه يا رسول الله ما ذ پاره دُعا اوکړئې چه زه دے خلقو کښې شامل شم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. اے الله، دے به دے خلقو کښې شامل کړے. بيا يو انصاري سړے اُودريد او عرض ئې اوکړه يا رسول الله ما د پاره هم دُعا اوکړے چه زه هم دے خلقو کښې شم، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، عکاشه تا نه نمبر يوړلو (يعني مخکښې شو).

۵۷۵۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قُلْتُ لَهُ أَيُّ الثِّيَابِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهَا قَالَ الْحِبَرَةُ.

۵۷۵۸: عمرو بن عاصم. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، ما ذ هغه نه تپوس اوکړه، د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د کوم قسم کپړے زياتې خوښے وے. هغه اووے، حبره (يو قسم څادر).

۵۷۵۹: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعَاذٌ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهَا الْحِبَرَةَ.

۵۷۵۹: عبدالله بن ابي اسود. معاذ. ذ معاذ پلار. قتاده. د حضرت انسؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم حبره (ذ يو قسم څادر نوم دے) اغستل ډير زيات خوښول.

۵۷۶۰: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَٰنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۵۷۶۰: ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن بن عوف. ذ نبي صلي الله عليه وسلّم تبر بي بي عائشهؓ نه روايت کوي، د هغې بيان دے کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم وفات شو. نو هغه وخت به حضور صلي الله عليه وسلّم حبره څادر

حِمِّنَ تُوُفِّيَ سُجِّيَ بِبُرْدِ حِبَرَةٍ.

اچولے شوے وو.

بــــاب ۴۶۷: اَلْاَكْسِيَةِ وَالْخَمَآئِصِ.

باب ۴۶۷: دَ څادرونو او کمبلونو دَ اغستلو (په سرولو) بیان[1].

۱. ''کساء'' د وړې څادر ته وائي' همدا څادر که چرے صرف پنځه لاسه وي نو هغے ته ''خمیصه'' وائي او کله همدے حدیث طرفته نسبت کولو سره ''خمیصه حریثیة'' هم وائي.

۷۶۱: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ قَالَا لَمَّا نَزَلَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيْصَةً لَهُ عَلٰى وَجْهِهِ فَاِذَا اغْتَمَّ كَشَفَهَا عَنْ وَّجْهِهِ فَقَالَ وَهُوَ كَذٰلِكَ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى اِتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَآئِهِمْ مَسَاجِدَ يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوْا.

۷۶۱: یحیی بن بکیر. عقیل. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه. بي بي عائشهؓ او عبدالله بن عباسؓ نه روایت کوي. دَ دے دواړو بیان دے' رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ مرګ مرض کښې په خپل مخ خمیصه اچوله' چه ساه به ئے بنده شوه' نو هغه به ئے دَ مخ نه لرے کړه' او دغے حالت کښې به ئے فرمائیل' په یهود او نصاريٰ دے دَ خدائے لعنت وي' هغوي دَ خپلو نبیانو قبرونو نه جماتونه جوړ کړل' او هغے خلقو چه څۀ او کړل' دَ هغے نه ئے خپل اُمت ویرولو.

ف: خمیصه: یو قسم کپړه' څادر' تور کمبل.

۷۶۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ خَمِيْصَةٍ لَّهُ لَهَا اَعْلَامٌ فَنَظَرَ اِلٰى اَعْلَامِهَا نَظْرَةً فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ اذْهَبُوْا بِخَمِيْصَتِيْ هٰذِهٖ اِلٰى اَبِيْ جَهْمٍ فَاِنَّهَا اَلْهَتْنِيْ اٰنِفًا عَنْ صَلٰوتِيْ وَائْتُوْنِيْ بِاَنْبِجَانِيَّةِ اَبِيْ جَهْمٍ

۷۶۲: موسي بن اسمٰعیل. ابراهیم بن سعد. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' دَ هغے بیان دے. رسول الله صلي الله علیه وسلّم خمیصه واغستله' او مونځ ئے اوکړو' په هغے نقش و نګار شوے وو. کوم وخت چه سلام ئے اوګرځولو' نو وے فرمائیل' خما دا خمیصه ابو جهم له یوسئے' دے زۀ اوس دَ مونځ نه غافل کړم' او ماله دَ ابوجهم بن حذیفه بن غانم چه

بْنِ حُذَيْفَةَ ابْنِ غَانِمٍ مِنْ بَنِيْ عَدِيِّ بْنِ كَعْبٍ.

دَ بني عدي بن كعب نه دے' دَ هغه انجاني څادر راوړے.

۷۶۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ قَالَ اَخْرَجَتْ اِلَيْنَا عَائِشَةُ كِسَاءً وَّ اِزَارًا غَلِيْظًا فَقَالَتْ قُبِضَ رُوْحُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَيْنِ.

۷۶۳: مسدد. اسمٰعيل. ايوب. حميد بن هلال. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. بي بي عائشےؓ يو څادر اويو سخت تهبند مونږ خلقوته راوړلو' اوونيلے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دے دوو كپړو كښې وفات بيامندلو.

باب ۴۶۸: اِشْتِمَالِ الصَّمَّاءِ.

باب ۴۶۸: كوټ وهلو سره ناسته[1] (گوٹ مارکر بیٹھنا).

[1]. "صَمّء" په دا شان څادر وهلوته وائي چه څادر د خپل ښي طرفنه واخلي او په گسه اوګه باندې واچولے شي. دَ اِشتمال صماء مفهوم دادے چه صرف په بدن باندے يو څادر وي او ددے نه سوا بله كپړه نه وي. په دے صورت كښے به د ناستے وخت كښے يوه غاړه اوچتول وو اودے سره به شرمگاه ښكاره كيدله.

۷۶۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ خُبَيْبٍ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ وَ عَنْ صَلٰوتَيْنِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰى تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ وَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغِيْبَ وَ اَنْ يَّحْتَبِيَ بِالثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَ اَنْ يَّشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ.

۷۶۴: محمد بن بشار. عبدالوهاب. عبيداللّٰه. خبيب. حفص بن عاصم. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ملامسه' منابذه او دوه مونځونونه منع فرمائيلے ده (او هغه دوه مونځونه دادي) (۱) دَ سحر نه پس څو پورے چه نمر اوچت نشي (۲) او مازيگر نه پس څو پورے چه نمر ډوب نشي. او دَ يوے كپړے اغستلو نه ئے هم منع فرمائيلے ده. او كوټ وهنو سره ناستے (گوٹ مارکر بیٹھنے سے) نه ئے هم منع فرمائيلے ده.

ف: (۱) ملامسه (۲) منابذه (۳) اشتمال صماء. دَ دے ټولو تعريف لاندے بيان شوے دے.

۷۶۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

۷۶۵: يحيي بن بكير. ليث. يونس.

حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسَتَيْنِ وَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ نَهٰى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَ الْمُنَابَذَةِ فِي الْبَيْعِ وَالْمُلَامَسَةُ لَمْسُ الرَّجُلِ ثَوْبَ الْاٰخَرِ بِيَدِهٖ بِاللَّيْلِ اَوْ بِالنَّهَارِ وَ لَا يُقَلِّبُهٗ اِلَّا بِذٰلِكَ وَالْمُنَابَذَةُ اَنْ يَّنْبِذَ الرَّجُلُ اِلَى الرَّجُلِ بِثَوْبِهٖ و يُنْبِذَ الْاٰخَرُ ثَوْبَهٗ وَ يَكُوْنُ ذٰلِكَ بَيْعُهُمَا عَنْ غَيْرِ نَظَرٍ وَّلَا تَرَاضٍ وَّ اللِّبْسَتَيْنِ اِشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ اَنْ يَّجْعَلَ ثَوْبَهٗ عَلٰى اَحَدِ عَاتِقَيْهِ فَيَبْدُوْ اَحَدُ شِقَّيْهِ لَيْسَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ وَّاللِّبْسَةُ الْاُخْرٰى اِحْتِبَاءُهٗ بِثَوْبِهٖ وَهُوَ جَالِسٌ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ.

ابن شهاب. عامر بن سعد. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ دوه قِسمه بيع نه منع فرمائيلے ده. بيع كښې ذ ملامسه او منابذه نه ئے منع فرمائيلے ده. او مسلامسه داده، چه يو سړے ذ بل سړي كپړه ذ شپے يا ورځے مس كړي او لاندے باندے ئے نهٔ كړي، او بيع اوشي. او منابذه داده، چه يو سړے په بل خپله كپړه غرځوي، او هغه دوئم ئے په ده ور (اُوغرځوي)، او بغير ليدو اشتمال صماء نه كپړه اوړه (مونڈھے) په دا شان كيږدي، چه دوئمه اوړه ځر كنده وي او په هغے كپړه نهٔ وي، او دوئم لباس چه ذ هغے نه منع اوفرمائيله، هغه داده، چه يوه كپړه ئے رانغاړلے وي، ناست وي، او ذ هغهٔ په شرم كاه څهٔ كپړه نهٔ وي.

## بَابُ ۳۶۹: اَلْاِحْتِبَاءِ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ.

## باب ۳۶۹: ذ يوے كپړے اچولو بيان. (دا شان چه ذ هغهٔ په شرم كاه هيڅ نهٔ وي).

۲۶۷: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللِّبْسَتَيْنِ اَنْ يَّحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ وَّ اَنْ يَّشْتَمِلَ بِالثَّوْبِ الْوَاحِدِ

۲۶۷: اسمٰعيل. مالک. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ دوه قسمه لباس نه منع فرمائيلے ده، يو دا چه سړے يوه كپړه كښې داسے كوټ وهلو سره (گوٹ مارکر) كيني، چه ذ هغهٔ په شرم كاه ذ هغے نه هيڅ نهٔ وي دوئم دا چه يوه كپړه په داسے طريقه راچاپيره كړي

لَيْسَ عَلٰى اَحَدٍ شِقِّهٖ وَ عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ.

چه د هغه په یو اړخ هیڅ نه وي' او د ملامسه او ملابذه نه ئې منع فرمائیلې ده.

۱. د جاهلیت زمانه کښې د عربو په مجلس کښې د ناستې دا هم یوه طریقه وه. د ناستې په دې شکل کښې به عموماً شرمگاه ښکاره کیدله' ولې چه په بدن باندې کپړه به صرف د یو څادر په صورت کښې راتلله او همدې سره به ئې وړې پنډئ او شا دواړه یوځائې تړل. دا صورت به داسې وو چه د شرمگاه د ستر اهتمام به بالکل باقي پاتې نه کیدو او کیناستونکې به بې لاسو خپو په خپل دغه هیئت باندې ناستې باندې مجبور وو.

۷٦۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَخْلَدٌ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ اِشْتِمَالِ الصَّمَّآءِ وَ اَنْ يَّحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِهٖ مِنْهُ شَيْءٌ.

۷٦۷: محمد. مخلد. ابن جریج. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله. حضرت ابوسعید خدريؓ نه روایت کوي' د هغه بیان دې حضور صلي الله علیه وسلّم د کوټ وهلو سره (گوٹ مارکر) ناستې نه منع فرمائیلې ده' او دا چه یو سړې یو کپړه داسې واغندي' چه د هغه په شرم گاه د هغې کپړې نه هیڅ نه وي.

## بَابُ ۴۷۰: اَلْخَمِيْصَةِ السَّوْدَآءِ.

## باب ۴۷۰: د خمیصه (نوې شړئ یا کمبل) بیان.

۷٦۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ سَعِيْدِ بْنِ فُلَانٍ هُوَ عَمْرُو بْنُ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ عَنْ اُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدٍ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثِيَابٍ فِيْهَا خَمِيْصَةٌ سَوْدَآءُ صَغِيْرَةٌ فَقَالَ مَنْ تَرَوْنَ اَنْ تَكْسُوَ هٰذِهٖ فَسَكَتَ الْقَوْمُ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاُمِّ خَالِدٍ فَاُتِيَ بِهَا تُحْمَلُ فَاَخَذَ الْخَمِيْصَةَ بِيَدِهٖ فَاَلْبَسَهَا فَقَالَ اَبْلِيْ وَ اَخْلِقِيْ وَ كَانَ فِيْهَا عَلَمٌ

۷٦۸: ابو نعیم. اسحٰق بن سعید. سعید بن عمرو بن سعید بن عاص. اُم خالد بنت خالد نه روایت' کوي' نبي صلي الله علیه وسلّم له کپړې راوړې شوې' هغې کښې توره سړې هم وه. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' دا چا ته واغندوم' خلق خاموش شو. نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' ماته اُم خالد راوغوارئې' هغه راوستې شوه' نو حضورؐ خمیصه ورکړه' ورته ئې واغندوله' اووې فرمائیل' خدا دې کړي' چه دا کپړه د زړیدو او شلیدو پورې استعمال کړې (یعني پوره طور سره تر ې کار واخلې) او هغې کښې د شین یا

اَخۡضَرُ اَوۡ اَصۡفَرُ فَقَالَ يَا اُمَّ خَالِدٍ هٰذَا سَنَاهُ وَ سَنَاهُ بِالۡحَبۡشِيَّةِ حَسَنٌ.

زيړ رنګ نقش و نګار وو. حضورؐ اوفرمائيل' اے اُم خالد' هٰذَا سناه: سناه حبشي ژبه کښې حسن ته وائي' يعني اے ام خالد دا ځومره ښکلے معلوميږي.

۷۶۹: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بۡنُ الۡمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِي ابۡنُ اَبِي عَدِيٍّ عَنِ ابۡنِ عَوۡفٍ عَنۡ مُحَمَّدٍ عَنۡ اَنَسٍ قَالَ لَمَّا وَلَدَتۡ اُمُّ سُلَيۡمٍ قَالَتۡ لِيۡ يَا اَنَسُ انۡظُرۡ هٰذَا الۡغُلَامَ فَلَا يُصِيۡبَنَّ شَيۡئًا حَتّٰى تَغۡدُوَ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يُحَنِّكُهُ فَغَدَوۡتُ بِهٖ فَاِذَا هُوَ فِيۡ حَائِطٍ وَ عَلَيۡهِ خَمِيۡصَةٌ حُرَيۡثِيَّةٌ وَّهُوَ يَسِمُ الظَّهۡرَ الَّذِيۡ قَدِمَ عَلَيۡهِ فِي الۡفَتۡحِ.

۷۶۹: محمد بن مثنٰي. ابن ابي عدي. ابن عون. محمد. حضرت انسؓ نه روايت کوي' ډهغهٔ بيان دے' کوم وخت چه دَ اُم سليم بچے پيدا شو نو ماته ئے اووے' اے انس' دَ دے بچي نګراني کوه. دهٔ ته دے دَ خوراک څهٔ څيز نشي ورکولے' تردے چه دَ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې ئے پيش کړے' چه حضورؐ ورله تحنيک اوکړي (خوله کښې ورله جوږلے قجړره واچوي). ما هغه ماشوم بوتلو' نو اُووم ليدل' چه حضورؐ باغ کښې دے حريثيه شړۍ ئے اچولے وه' او دَ هغې سورلي په شا' ئے نښه لګوله' چه په هغې حضورؐ دَ مکے دَ فتح په ورځ مکے ته تشريف اُوړے وو.

باب ۴۷۱: الثِّيَابِ الۡخُضۡرِ.

باب ۴۷۱: دَ شنو کپړو بيان.

۷۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبۡدُ الۡوَهَّابِ اَخۡبَرَنَا اَيُّوۡبُ عَنۡ عِكۡرَمَةَ اَنَّ رِفَاعَةَ طَلَّقَ امۡرَاَتَهٗ فَتَزَوَّجَهَا عَبۡدُ الرَّحۡمٰنِ بۡنُ الزُّبَيۡرِ الۡقُرَظِيُّ قَالَتۡ عَائِشَةُ وَ عَلَيۡهَا خِمَارٌ اَخۡضَرُ فَشَكَتۡ اِلَيۡهَا وَ اَرَتۡهَا خُضۡرَةً بِجِلۡدِهَا فَلَمَّا جَآءَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَالنِّسَآءُ يَنۡصُرُ بَعۡضُهُنَّ بَعۡضًا قَالَتۡ عَائِشَةُ مَا رَاَيۡتُ مِثۡلَ مَا يَلۡقَى

۷۷۰: محمد بن بشار. عبدالوهاب. ايوب. عکرمه نه روايت کوي' رفاعه خپلے ښځے له طلاق ورکهٔ. بيا هغے سره عبدالرحمٰن قرظي نکاح اوکړله. دَ بي بي عائشےؓ بيان دے' هغے شنه لوپټه په سر کړے وه. هغے بي بي عائشےؓ ته دَ خپل خاوند نه شکايت اوکهٔ' او دَ خپل جسم ځرمن ئے اوښودله' چه په هغے شين والے وو' کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو. او ښځے دَ يو بلے مدد کوي' په دے وجه بي بي عائشےؓ عرض اوکهٔ' ما هيڅ مومنے ښځے سره داسے خراب سلوک نهٔ دي ليدلے. دَ دے ځرمن دَ دے کپړے نه زياته شنه شوے ده. دَ راوي بيان دے عبدالرحمٰن چه

الْمُؤْمِنَاتُ لَجِلْدُهَا اَشَدُّ خُضْرَةً مِّنْ ثَوْبِهَا قَالَ وَ سَمِعَ اَنَّهَا قَدْ اَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ وَ مَعَهُ اِبْنَانِ لَهُ مِنْ غَيْرِهَا قَالَتْ وَاللّٰهِ مَا لِيْ اِلَيْهِ مِنْ ذَنْبٍ اِلَّا اَنَّ مَا مَعَهُ لَيْسَ بِاَغْنٰى عَنِّيْ مِنْ هٰذِهٖ وَ اَخَذَتْ هُدْبَةً مِّنْ ثَوْبِهَا فَقَالَ كَذَبَتْ وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَاَنْفُضُهَا نَفْضَ الْاَدِيْمِ وَلٰكِنَّهَا نَاشِزٌ تُرِيْدُ رِفَاعَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنْ كَانَ ذٰلِكَ لَمْ تَحِلِّيْ لَهٗ اَوْ لَمْ تَصْلُحِيْ لَهٗ حَتّٰى يَذُوْقَ مِنْ عُسَيْلَتِكِ قَالَ وَ اَبْصَرَ مَعَهٗ اِبْنَيْنِ لَهٗ فَقَالَ بَنُوْكَ هٰٓؤُلَآءِ قَالَ نَعَمْ قَالَ هٰذَا الَّذِيْ تَزْعُمِيْنَ مَا تَزْعُمِيْنَ فَوَاللّٰهِ لَهُمْ اَشْبَهُ بِهٖ مِنَ الْغُرَابِ بِالْغُرَابِ.

واوريدل' چه ښځه ئې دَ حضورؐ خلعت کښ (شکايت دَ پاره) حاضره شوې ده' نو هغه هم دوه خامن چه دَ بلې ښځې نه وو' خان سره راوستل' هغې ښځې بيان او کۀ والله دَ دۀ دَ طرف نه څۀ قصور نشته' خو دا چه دۀ سره کوم څيز (عضو مخصوص) دې. هغې سره څما تسلي نۀ کيږي. او دَ خپلې کپړې غاړه ئې اونيوله' وې ښودله (مطلب دا چه دَ برغولي غوتئ ده ورسره) عبدالرحمٰن اووې' يا رسول الله په خدائې مِ قسم وي' چه دا دروغجنه ده' زه خو' ددې تسلي کوم (يعني يخوم ئې) ليکن دا نافرمان ده. رفاعه له تلل غواړي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل هرکله چه دا خبره ده' نو تۀ هغۀ دَ پاره حلاله نه ئې' يا' دائې اوفرمائيل چه تۀ هغه سره دَ نکاح صلاحيت نه لرې څو پورې چه دې تانه مزه وانخلي (صحبت درسره اونۀ کړي) او دَ عبدالرحمٰن دواړه خامنو ته ئې اوکتل وې فرمائيل' آيا دا ستا خامن دي. هغه عرض اوکۀ' جي' او. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' دغه وجه ده چه دا ښځه دَ دې قسم خبرې کوي' قسم په خدائې هغه هلکانو عبدالرحمٰن سره ددې نه زيات مشابهت لرلو' څومره مشابهت چه قارغۀ' قارغۀ سره لري.

## بَاب ۲۷۴: الثِّيَابِ الْبِيْضِ.

## باب ۲۷۴: د سپينو کپړو بيان.

۱۷۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَعْدٍ قَالَ رَاَيْتُ بِشِمَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۷۷: اسحاق بن ابراهيم حنظلي. محمد بن بشر. مسعر. سعد بن ابراهيم. حضرت سعد نه روايت کوي' د هغۀ بيان دې' ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم کس او' ښي طرف ته دوه سړي سپينو کپړو

وَسَلَّمَ وَ بِيَمِيْنِهِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ بِيضٌ يَوْمَ أُحُدٍ مَا رَأَيْتُهُمَا قَبْلُ وَ لَا بَعْدُ.

واله (سپينے كپړے اغستے) د أحد په ورځ اُوليدل. ما هغوي نه دد ے نه مخکښې اونه ورستو ليدلے دي.

۴۷۲: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ حَدَّثَهُ أَنَّ أَبَا الْأَسْوَدِ الدِّيْلِيَّ حَدَّثَهُ أَنَّ أَبَا ذَرٍّ حَدَّثَهُ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ وَهُوَ نَائِمٌ ثُمَّ أَتَيْتُهُ وَ قَدِ اسْتَيْقَظَ فَقَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ مَاتَ عَلَى ذٰلِكَ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَ إِنْ زَنَى وَ إِنْ سَرَقَ قَالَ وَ إِنْ زَنَى وَ إِنْ سَرَقَ قُلْتُ وَ إِنْ زَنَى وَ إِنْ سَرَقَ قَالَ وَ إِنْ زَنَى وَ إِنْ سَرَقَ عَلَى رَغْمِ أَنْفِ أَبِي ذَرٍّ وَ كَانَ أَبُو ذَرٍّ إِذَا حَدَّثَ بِهٰذَا قَالَ وَ إِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَرٍّ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا عِنْدَ الْمَوْتِ أَوْ قَبْلَهُ إِذَا تَابَ وَ نَدِمَ وَ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ غُفِرَ لَهُ.

۴۷۲: ابو معمر. عبدالوارث. حسين. عبدالله بن بريده. يحيي بن يعمر. ابوالاسود ديلي. حضرت ابوذرؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے زهٔ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم. دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم سپينے کپړے اغستے وے. او حضور صلي الله عليه وسلّم اُوده وو. بيا زهٔ حاضر شوم، نو حضور صلي الله عليه وسلّم بيداز شوے وو. وے فرمائيل، کوم بنده چه: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووے. بيا دے حال کښې مړ شو، نو جنت کښې به داخليږي، ما اووے، اګر که زنا اوکړي يا غلا (چوری) اوکړي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اګر که زنا يا غلا اوکړي. ما اووے اګر که زنا يا غلا اوکړي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اګر که زنا يا غلا اوکړي. بيا ما اووے اګر که زنا يا غلا اوکړي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اګر که زنا يا غلا اوکړي. د ابوذرؓ پوزه دے خاک آلوده وي. او ابوذرؓ چه به کله دا حديث بيانولو، نو وئيل به ئے وَ اِنْ رَغِمَ اَنْفُ اَبِيْ ذَرٍّ: ابو عبدالله (بخاريؒ) اووے دا هغے صورت کښې ده، چه د مرګ وخت کښې وي، يا د هغے نه مخکښې وي. هر کله چه توبه اوکاږي او پښيمانه شي، او لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووائي نو اوبه بښلے شي.

بَابُ ۴۷۳: لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَ افْتِرَاشِهِ لِلرِّجَالِ وَ قَدْرِ مَا يَجُوْزُ

باب ۴۷۳: ريښم اغستل، او سړو د پاره د هغے غورول (بچھانا) او هغه مقدار چه جائز

مِنْهُ.

دے.

۷۷۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا عُثْمَانَ النَّهْدِيَّ اَتَانَا كِتَابُ عُمَرَ وَ نَحْنُ مَعَ عُتْبَةَ بْنِ فَرْقَدٍ بِاٰذَرْبِيْجَانَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْحَرِيْرِ اِلَّا هٰكَذَا وَ اَشَارَ بِاِصْبَعَيْهِ اللَّتَيْنِ تَلِيَانِ الْاِبْهَامِ قَالَ فِيْمَا عَلِمْنَا اَنَّهُ يَعْنِى الْاَعْلَامَ.

۷۷۳: آدم. شعبه. قتاده بيان كوي ما دَ ابو عثمان نهدي نه واوريدل، ماته دَ حضرت عمرؓ خط راغے. هغه وخت مونږ عتبه بن فرقد سره آذربائيجان كښې وو. (هغے كښې ليكلے وو) نبي صلي الله عليه وسلّم دَ ريښمونه منع فرمائيلے ده. خو دومره قدر (جائز دي) او قتے ګوتے سره دَ دوو ګوتو په ذريعه اشارے سره ئے اوښودل. دَ راوي بيان دے، ماته چه څومره علم دے دَ هغے نه د هغوي مقصد ګلونه بوټي (نقش و نګار) وو

۷۷۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ اَبِىْ عُثْمَانَ قَالَ كَتَبَ اِلَيْنَا عُمَرُ وَ نَحْنُ بِاٰذَرْبِيْجَانَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ اِلَّا هٰكَذَا وَصَفَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِصْبَعَيْهِ وَ رَفَعَ زُهَيْرٌ الْوُسْطٰى وَالسَّبَّابَةَ.

۷۷۴: احمد بن يونس. زهير. عاصم. ابو عثمان نه روايت كوي، د هغه بيان دے. كوم وخت چه زه آذربائيجان كښې ووم، نو حضرت عمرؓ ماته خط اوليګۀ. چه نبي صلي الله عليه وسلّم دَ ريښمو اغُستلو نه منع فرمائيلے ده. خو دومره قدر (جائز دي) مونږ ته نبي صلي الله عليه وسلّم خپلو دواړو ګوتو سره اشارے كولو سره اوښودل. او زهير مينځنئ او دَ شهادت ګوته اوچته كړه. بيان ئے اوكه.

۷۷۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِىْ عُثْمَانَ قَالَ كُنَّا مَعَ عُتْبَةَ فَكَتَبَ اِلَيْهِ عُمَرُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَلْبَسُ الْحَرِيْرَ فِى الدُّنْيَا اِلَّا مَنْ لَمْ يَلْبَسْ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْهُ.

۷۷۵: مسدد. يحيي. تيمي. ابو عثمان نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، مونږ عتبه سره وو، نو حضرت عمرؓ هغه ته اوليكل، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي. ريښم دُنيا كښې هغه سړے اغُندي، چه آخرت كښې به ئے نه اغوندي.

۷۷۶: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمَانَ وَ اَشَارَ اَبُوْ عُثْمَانَ بِاِصْبَعَيْهِ الْمُسَبِّحَةِ

۷۷۶: حسن بن عمر. معتمر دَ خپل پلار نه هغه دَ ابو عثمان نه روايت كوي چه ابو عثمان د خپلے مينځنئ او دَ شهادت دَ ګوتے په ذريعه اشاره كولو سره

وَالْوُسْطٰى.

دَ هغې دَ جوازِ مقدار اوښودلو.

۷۷۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ أَبِيْ لَيْلٰى قَالَ كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَائِنِ فَاسْتَسْقٰى فَأَتَاهُ دِهْقَانٌ بِمَاءٍ فِيْ إِنَاءٍ مِّنْ فِضَّةٍ فَرَمَاهُ بِهٖ وَ قَالَ إِنِّيْ لَمْ أَرْمِهٖ إِلَّا أَنِّيْ نَهَيْتُهٗ فَلَمْ يَنْتَهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ وَالْحَرِيْرُ وَالدِّيْبَاجُ هِيَ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَكُمْ فِي الْاٰخِرَةِ.

۷۷۷: سليمان بن حرب. شعبه. حكم. ابن ابي ليلیٰؒ نه روايت كوي، حذيفه مدائن كښې وو. هغهٔ اوبه اُوغوښتلې يَو بانډيسي (ديهاتي) ورله دَ چاندي لوښي كښې اُوبه راوړې، نو هغهٔ هغه لوښې وغورځولو (اُوويشتلو) اووئيلې ما به دا، نه وې ويشتلې، خو، دا چه ما دې منع كړې وو، خو هغه منع نهٔ شو (چه ماله دَ چاندئ لوښي كښې اُوبه راوړي) رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلې دي، چه سرهٔ سپين، حرير او ديباج دُنيا كښې كافرو د پاره دي. او ستاسو دَ پاره آخرت كښې دي.

۷۷۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ شُعْبَةُ فَقُلْتُ أَعَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ شَدِيْدًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ لَبِسَ الْحَرِيْرَ فِي الدُّنْيَا فَلَنْ يَّلْبَسَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ.

۷۷۸: آدم. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي. شعبه تپوس اوكه، آيا دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت دې. هغهٔ زور سره اووې. دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت دې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كوم سړې چه دنيا كښې ريښم اغندي، هغه به ئې آخرت كښې نه اغندي.

۷۷۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَخْطُبُ يَقُوْلُ قَالَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَبِسَ الْحَرِيْرَ فِي الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْاٰخِرَةِ.

۷۷۹: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت نه روايت كوي، د هغه بيان دې، ما دَ ابن زبير نه خطبهٔ كښې واوريدل، هغه بيان كولو، محمد صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. چا چه دُنيا كښې ريښم واغستل، هغه به ئې آخرت كښې نه اغندي.

۷۸۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ

۷۸۰: علي بن جعد. شعبه. ابو ذيبان.

اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِىْ ذِيْبَانَ خَلِيْفَةِ بْنِ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَبِسَ الْحَرِيْرَ فِى الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ فِى الْاٰخِرَةِ وَ قَالَ لَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ يَزِيْدَ قَالَتْ مُعَاذَةُ اَخْبَرَتْنِىْ اُمُّ عَمْرٍو وَّ بِنْتُ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ الزُّبَيْرِ سَمِعَ عُمَرَ سَمِعَ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خليفه بن كعب. ابن زبير. حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه ريښم دُنيا كښې واغستل، هغه به ئې آخرت كښې نه اغُندي. او مونږ ته ابو معمر په واسطه دَ عبدالوارث، يزيد، معاذه، اُم عمرو بنت عبداللّٰه بن زبير، حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، هغه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل.

**۵۷۸۱:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا عَلِىُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِىْ كَثِيْرٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حِطَّانَ قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الْحَرِيْرِ فَقَالَتِ ائْتِ ابْنَ عَبَّاسٍ فَسَلْهُ قَالَ فَسَاَلْتُهُ فَقَالَ سَلِ ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ اَخْبَرَنِىْ اَبُوْ حَفْصٍ يَعْنِىْ عُمَرَ بْنُ الْخَطَّابِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا يَلْبَسُ الْحَرِيْرَ فِى الدُّنْيَا مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهُ فِى الْاٰخِرَةِ فَقُلْتُ صَدَقَ وَ مَا كَذَبَ اَبُوْ حَفْصٍ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ يَحْيٰى حَدَّثَنِىْ عِمْرَانُ وَ قَصَّ

**۵۷۸۱:** محمد بن بشار. عثمان بن عمر. علي بن مبارك. يحيٰي بن ابي كثير. عمران بن حطان نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، ما دَ بي بي عائشے رضي الله عنها نه دَ ريښم متعلق تپوس اوكړو، هغے اووے، ابن عباس رضي الله عنه له ورشه، دَ هغهٔ نه تپوس اوكړه. زهٔ ورغلم، تپوس مې ترے اوكړو، هغهٔ اووے ابن عمر رضي الله عنه نه تپوس اوكړه، نو هغهٔ اُووے، ماته ابو حفص يعني عمر بن خطاب رضي الله عنه بيان اوكړو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دُنيا كښې ريښم هغه څوك اغُندي، چه آخرت كښې ئې حصه نهٔ وي، ما اووے، چه ټيك دے اووے، ابو حفص په رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دروغ نهٔ دے وئيلے. او دَ عبداللّٰه بن رجاء بيان دے، مونږ ته جرير، هغهٔ دَ يحيٰي نه او يحيٰي دَ عمران نه روايت اوكړو، او حديث ئې

الْحَدِيثُ.

باب ۴۷۴: مَسِّ الْحَرِيرِ مِنْ غَيْرِ لُبْسٍ وَّ يُرْوٰى فِيهِ عَنِ الزُّبَيْدِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۸۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اُهْدِىَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبُ حَرِيْرٍ فَجَعَلْنَا نَلْمِسُهُ وَ نَتَعَجَّبُ مِنْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَعْجَبُوْنَ مِنْ هٰذَا قُلْنَا نَعَمْ قَالَ مَنَادِيْلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِى الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا.

باب ۴۷۵: اِفْتِرَاشِ الْحَرِيْرِ. وَ قَالَ عُبَيْدَةُ هُوَ كَلُبْسِهٖ.

۷۸۳: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا اَبِىْ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِىْ نَجِيْحٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ اَبِىْ لَيْلٰى عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ نَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَّشْرَبَ فِىْ اٰنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَ اَنْ نَّاْكُلَ فِيْهَا وَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَ اَنْ نَّجْلِسَ عَلَيْهِ.

باب ۴۷۶: لُبْسِ الْقَسِّيِّ. وَ قَالَ عَاصِمٌ عَنْ اَبِىْ بُرْدَةَ قَالَ لِعَلِيٍّ

بیان کهٔ.

باب ۴۷۴: دَ ریښمو، بغیر دَ اغستلو نه مَس کول. او دے باب کښې په واسطه دَ زبیدي، زهري، حضرت انسؓ دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي.

۷۸۲: عبیداللّٰه بن موسٰي. اسرائیل. ابو اسحاق. حضرت براءؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته ریښمنے کپړے هدیه کښې اولیږلے شوے، مونږ هغه مَس کولے او تعجب مو کولو (چه څومره پستے او نرمے دي) نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا تاسو په دے تعجب کوئے، مونږ اووے، جي، او. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ سعد بن معاذ رومیالونه جنت کښې ددے نه هم بهتر دي.

باب ۴۷۵: دَ ریښمو غوړولو (بچهانے) بیان. او عبیده اووے، هغه دَ اغستلو په شان دي.

۷۸۳: علي. وهب بن جریر. جریر. ابن ابي نجیح. مجاهد. ابن ابي لیلٰي. حضرت حذیفهؓ نه روایت دے، دَ هغهٔ بیان دے، مونږ خلق رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ سرو و سپینو (زرو) لوښو کښې دَ څکلو نه منع کړے یُو. او هغے کښې دَ خوراک کولو نه هم منع کړے یُو او حریر او دیباج اغستلو او په هغے دَ ناستے نه ئے هم منع کړے یُو.

باب ۴۷۶: دَ قسّي (یو قسم کپړه) اغستلو بیان. او عاصم دَ ابوبرده قول نقل کهٔ، چه ما دَ علي نه

مَا الْقَسِّيَّةُ قَالَ ثِيَابٌ اَتَتْنَا مِنَ الشَّامِ اَوْ مِنْ مِصْرَ مُضَلَّعَةٌ فِيهَا حَرِيرٌ فِيهَا اَمْثَالُ الْاَتْرُنْجِ وَالْمِيثَرَةُ كَانَتِ النِّسَآءُ تَصْنَعُهُ لِبُعُولَتِهِنَّ مِثْلُ الْقَطَآئِفِ يَصْفِرُنَهَا وَ قَالَ جَرِيرٌ عَنْ يَزِيدَ فِي حَدِيثِهِ الْقَسِّيَّةُ ثِيَابٌ مُضَلَّعَةٌ يُجَآءُ بِهَا مِنْ مِصْرَ فِيهَا الْحَرِيرُ وَالْمِيثَرَةُ جُلُودُ السِّبَاعِ قَالَ اَبُو عَبْدِ اللّٰهِ عَاصِمٌ اَكْثَرُ وَ اَصَحُّ فِي الْمِيثَرَةِ.

تپوس او کړ، قسیه څه څیز دے، هغه اووے، ذ یو قسم کپړه ده، چه مونږ ته به ذ شام یا مصر نه راتله، هغے کښې به ذا ترنج په شان ذ ریښمو کرښے (دهاریاں) وے، او میثره هغه کپړه ده، چه ښځو به ذ خپلو خاوندانو ذ پاره ذ خادرونو په شان ذ زیړ رنګ جوړول او جریر ذ زید نه خپل حدیث کښې بیان او کړ چه قسیه هغه دهاریدارے کپړے دي چه ذ مصر نه به راتلے، او هغے کښې به ریښم وو. او میثره ذ درندګانو څرمنوته وائي. ابو عبدالله (بخاري) اووے، ذ عاصم قول ذ میثره متعلق ذ اکثرو خلقو دے او زیات صحیح دے.

۷۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَشْعَثَ بْنِ اَبِي الشَّعْثَاءِ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ نَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَيَاثِرِ الْحُمْرِ وَالْقَسِّيِّ.

۷۸۴: محمد بن مقاتل. عبدالله. سفیان. اشعث بن ابي الشعثاء. معاویه بن سوید بن مقرن. ابن عازبؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے. رسول الله صلي الله علیه وسلّم مونږ ذ سُر (سُرخ) میثره او قسي اغوستلو نه منع کړے یو.

باب ۴۷۷: مَا يُرَخَّصُ لِلرِّجَالِ مِنَ الْحَرِيرِ لِلْحِكَّةِ.

باب ۴۷۷: ذ خارښ په وجه سړو ذ پاره ریښمینه کپړه اغستل جائز دي.

۷۸۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا وَكِيعٌ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ لِحِكَّةٍ بِهِمَا.

۷۸۵: محمد. وکیع. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم، زبیر او عبدالرحمٰن ته ذ خارښ په وجه ذ ریښمینے کپړے ذ اغستلو اجازت ورکړلو.

باب ۴۷۸: الْحَرِيرِ لِلنِّسَآءِ.

باب ۴۷۸: ښځو ذ پاره ذ ریښمینو کپړو ذ اغستلو بیان.

۷۸۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح وَ حَدَّثَنِيُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَسَانِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةً سِيَرَآءَ فَخَرَجْتُ فِيْهَا فَرَاَيْتُ الْغَضَبَ فِيْ وَجْهِهٖ فَشَقَقْتُهَا بَيْنَ نِسَآئِيْ.

۷۸۶: سليمان بن حرب. شعبه. ح. محمد بن بشار. غندر. شعبه. عبدالملک بن ميسره. زيد بن وهب. حضرت عليؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يوه سره (سُرخ) جُبّه اغستلو دَ پاره راکړله. يوه ورځ مِ هغه واغسته، او بهرته راووتم. ما دَ حضورؐ په مخ مبارک دَ غُصے آثار اوليدل، نو ما هغه اوشلوله او دَ خپل کور په ښځو مِ تقسيم کړله.

۷۸۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عُمَرَؓ رَاٰى حُلَّةً سِيَرَآءَ تُبَاعُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوِ ابْتَعْتَهَا تَلْبَسُهَا لِلْوَفْدِ اِذَا اَتَوْكَ وَالْجُمُعَةِ قَالَ اِنَّمَا يَلْبَسُ هٰذِهٖ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ وَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْدَ ذٰلِكَ اِلٰى عُمَرَؓ حُلَّةَ سِيَرَآءَ حَرِيْرًا كَسَاهَا اِيَّاهُ فَقَالَ عُمَرُ كَسَوْتَنِيْهَا وَقَدْ سَمِعْتُكَ تَقُوْلُ فِيْهَا مَا قُلْتَ فَقَالَ اِنَّمَا بَعَثْتُ اِلَيْكَ لِتَبِيْعَهَا اَوْ تَكْسُوْهَا.

۷۸۷: موسٰي بن اسمٰعيل. جويريه. نافع. عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، حضرت عمرؓ يوه سره (سُرخ) جُبّه په خرخيدو اوليده، نو هغهٔ عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، کاش چه دا تاسوؐ اخستے وے، چه دَ وفد په راتلو او دَ جمعے په ورځ مو اغستلے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دا هغه څوک اغُندي، چه آخرت کښ ئے حصه نهٔ وي. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ريښمو يوه سره (سُرخ) جُبّه اغوستلو دَ پاره وراوليږله، نو حضرت عمرؓ عرض اوکهٔ، تاسو دا ماته اغوستو دَ پاره راليږلے ده، حالانکه ما دَ دے متعلق هغه آوريدلے دي، کوم چه تاسو فرمائيلے دي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ما دا دِېر دَ پاره درليږلے ده، چه خرڅه ئے کړه، يا چاته ئے واغُنده وه (زنانه ؤ وغيره ته).

۷۷۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّهٗ رَاٰى عَلٰى اُمِّ كُلْثُوْمٍ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۷۸ڿ: ابواليمان. شعيب. زهري. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، هغه، بي بي ام کلثوم بنت رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليده، چه سُر (سُرخ) ريښمين څادر ئے په سر

بُرْدَ حَرِيرٍ سِيَرَآءَ.

کړے وو.

**بَاب ۴۷۹: مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَجَوَّزُ مِنَ اللِّبَاسِ وَالْبُسُطِ.**

**باب ۴۷۹: نبي صلي الله عليه وسلّم به خومره لباس او فرش باندے اکتفا کوله.**

۷۸۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَبِثْتُ سَنَةً وَّ اَنَا اُرِيْدُ اَنْ اَسْأَلَ عُمَرَ عَنِ الْمَرْأَتَيْنِ اللَّتَيْنِ تَظَاهَرَتَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلْتُ اَهَابُهُ فَنَزَلَ يَوْمًا مَنْزِلًا فَدَخَلَ الْاَرَاكَ فَلَمَّا خَرَجَ سَأَلْتُهُ فَقَالَ عَائِشَةُ وَ حَفْصَةُ ثُمَّ قَالَ كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ لَا نَعُدُّ النِّسَآءَ شَيْئًا فَلَمَّا جَآءَ الْإِسْلَامُ وَ ذَكَرَهُنَّ اللّٰهُ رَاَيْنَا لَهُنَّ بِذٰلِكَ عَلَيْنَا حَقًّا مِّنْ غَيْرِ اَنْ نُدْخِلَهُنَّ فِيْ شَيْءٍ مِنْ اُمُوْرِنَا وَ كَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ امْرَأَتِيْ كَلَامٌ فَاَغْلَظَتْ لِيْ فَقُلْتُ لَهَا وَ اِنَّكِ لَهُنَاكِ قَالَتْ تَقُوْلُ هٰذَا لِيْ وَبِنْتُكَ تُؤْذِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَيْتُ حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَهَا اِنِّيْ اُحَذِّرُكِ اَنْ تَعْصِي اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ وَ تَقَدَّمْتُ اِلَيْهَا فِيْ

۷۸۹: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. يحيي بن سعيد. عبيد بن حنين. ابن عباسؓ نه روايت کوي' زۀ تول کال دے انتظار کښې ووم چه موقع بيا مندو سره ذَ حضرت عمرؓ نه ذَ هغے دوو بيبيانو متعلق تپوس اوکړم' چه هغوي ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم معامله کښې اتفاق کړے وو' خو ذَ خوف ذَ وجے نه ما تپوس اونۀ کړے شو. يوه ورځ هغه يو منزل کښې راکوز شولو. او اراک له ورغے. کوم وخت چه واپس شو' ما ترے تپوس اوکۀ' نو هغۀ اووے. هغه عائشهؓ او حفصهؓ وے' بيائے اووے' مونږ به ذَ جاهليت زمانه کښې ښځے په هيڅ کښې نۀ شمارلے' کوم وخت چه اسلام راغے' او الله تعالٰي ذَ هغوي ذکر اوکۀ' نو مونږ خيال اوکۀ' چه په مونږ ذَ هغوي څۀ حقوق شته' خو دا چه خپلو اُمورو کښې به هغوي ته ذَ دخل اجازت نۀ ورکوو. خما او خما ذَ ښځے په مينځ کښې څه خبره راغله' نو هغے سختي سره جواب راکۀ. ما ورته اووے' تۀ او ستا دا درجه (چه اوس داسے خبرے کوے) هغے راته اووے' ته ماته خو داسے وائے' او ستا لور (حفصهؓ) حضورؓ ته تکليف ورکوي. زۀ (عمرؓ فرمائي) حفصےؓ له راغلم ورته مِ اووے' زۀ تا ذَ الله او ذَ رسول ذَ نافرماني نه ويروم' او ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ اذيت معامله کښې اول حفصےؓ له ورغلم. بيا اُم سلمهؓ له ورغلم' او هغے ته مِ دغسے اووے' نو هغے جواب راکۀ' اے عمرؓ'

اَذَاهُ فَاَتَيْتُ اُمَّ سَلَمَةَ فَقُلْتُ لَهَا فَقَالَتْ اَعْجَبُ مِنْكَ يَا عُمَرُ قَدْ دَخَلْتَ فِيْ اُمُوْرِنَا فَلَمْ يَبْقَ اِلاَّ اَنْ تَدْخُلَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَزْوَاجِهِ فَرَدَّدَتْ وَ كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ اِذَا غَابَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَهِدْتُهُ اَتَيْتُهُ بِمَا يَكُوْنُ وَ اِذَا غِبْتُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَهِدَ اَتَانِيْ بِمَا يَكُوْنُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ مَنْ حَوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِ اسْتَقَامَ لَهُ فَلَمْ يَبْقَ اِلاَّ مَلِكُ غَسَّانَ بِالشَّامِ كُنَّا نَخَافُ اَنْ يَّأْتِيَنَا فَمَا شَعُرْتُ اِلاَّ بِالْاَنْصَارِيِّ وَهُوَ يَقُوْلُ اِنَّهُ قَدْ حَدَثَ اَمْرٌ قُلْتُ لَهُ وَ مَا هُوَ اَجَاءَ الْغَسَّانِيُّ قَالَ اَعْظَمُ مِنْ ذَاكَ طَلَّقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءَهُ فَجِئْتُ فَاِذَا الْبُكَاءُ مِنْ حُجَرِهَا كُلِّهَا وَ اِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ صَعِدَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَهُ وَ عَلٰى بَابِ الْمَشْرُبَةِ وَصِيْفٌ فَاَتَيْتُهُ فَقُلْتُ اسْتَاْذِنْ لِيْ فَدَخَلْتُ فَاِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى حَصِيْرٍ

تعجب دے، چه تا به خمونږ تولو امورو كښې دخل وركولو، تردے چه اوس دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم او دَ حضورؐ دَ بيبيانو معامله كښې دے هم دخل كول شروع كړل. دے ونيلو سره هغې ترديد اوكۀ، دَ حضرت عمرؓ بيان دے. يو انصاري چه هغۀ به رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره غير حاضر وو، او زۀ به حضورؐ سره موجود ووم، نو څۀ چه به پيښ شو، ما به هغۀ ته بيانول. او كله چه به زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره موجود نۀ ووم، نو هغه به راتلو او ماته به ئے واقعات بيانول. او دَ خواوشا خلق دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم اطاعت ګزار شوي وو. صرف شام كښې دَ غسّان بادشاه باقي پاتے شوے وو، او مونږ سره ويره وَه، چه هغه په مونږ حمله اوكړي. هغه انصاري چه ما اوليد، چه هغه راغے، ونيلے، يو لويه خبره شوے ده، ما تپوس اوكۀ، څۀ خبره ده، آيا غساني حمله اوكړله، هغۀ اووے، دے نه هم غټه خبره شوے ده، (او هغه دا چه) رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپلو ټولو بيبيانوله طلاق وركړلو، زۀ ورغلم او اُومِ ليدل، چه دَ هغوي دَ ټولو دَ حجرو (كوټو) نه دَ ژړا آواز راځي. او نبي صلي الله عليه وسلّم خپلے يوے بالاخانه كښې تشريف فرما دے. دَ هغے بالاخانے په دروازه يو غلام وو. زۀ هغه له ورغلم. ورته مِ اووے، ما دَ پاره دَ ورتلو اجازت اوغواړه. څۀ وخت چه اجازت اوشو، زۀ ورغلم، اُومِ ليدل، چه نبي صلي الله عليه وسلّم په يو چټائي (پوزي يا پوزكي) ناست دے، چه دَ هغے نښے دَ حضور صلي الله عليه وسلّم په اړخ لږيدلے وے. او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ سر لاندے دَ څرمنے تكيه

قَدْ أَثَّرَ فِيْ جَنْبِهٖ وَ تَحْتَ رَأْسِهٖ مِرْفَقَةٌ مِنْ اَدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ وَ إِذَا أُهُبٌ مُعَلَّقَةٌ وَ قَرَظٌ فَذَكَرْتُ الَّذِيْ قُلْتُ لِحَفْصَةَ وَ أُمِّ سَلَمَةَ وَالَّذِيْ رَدَّتْ عَلَيَّ أُمُّ سَلَمَةَ فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَبِثَ تِسْعًا وَّعِشْرِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ نَزَلَ.

وه. چه هغه دننه' ذ قجورو' ذ پوستكو نه ډكه شوې وه. او يو څو څرمنې آويزانده وې. او رنګ واله وابنه وو. ما چه حفصهؓ او اُم سلمهؓ ته څه وئيلي وو' او اُم سلمهؓ چه خما ذ خبرو كوم جواب راكړې وو' هغه ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان كڼ' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوخاندل. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يوكم ديرش ورځې هلته ايسار وو. بيا راكوز شولو.

۷۰۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَتْنِيْ هِنْدُ بِنْتُ الْحَارِثِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ اِسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مَاذَا اُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْفِتْنَةِ مَاذَا اُنْزِلَ مِنَ الْخَزَائِنِ مَنْ يُّوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ كَمْ مِنْ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ كَانَتْ هِنْدٌ لَهَا اَزْرَارٌ فِيْ كُمَّيْهَا بَيْنَ اَصَابِعِهَا.

۷۰۹۰: عبداللّٰه بن محمد. هشام. معمر. زهري. هند بنت حارث. بي بي اُم سلمهؓ نه روايت كوي. ذ هغې بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو ځل ذ شپې ذ خوب نه دې وئيلو سره رابيدار شولو' چه خدائې نه سِوا بل څوک معبود نشته. څومره فتنې ذ شپې نازلې شوې. او څومره خزانې راكوزې شوې. څوک نشته' چه دا حجرو واله (كوټو واله) رابيدارې كړي. دُنيا كښې ډيرې اغوستونكې داسې دي' چه ذ قيامت په ورځ به بربنډې وي. ذ زهري بيان دې. د هند په لستونړو كښې كوټو سره تنړئې لګيدلې وې.

بَابٌ ۴۸۰: مَا يُدْعٰى لِمَنْ لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيْدًا.

باب ۴۸۰: ذ نوې كپړې اغُستلو په وخت كومه دُعا كول پكار دي.

۷۰۹۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ سَعِيْدِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ اُمُّ خَالِدٍ بِنْتُ خَالِدٍ قَالَتْ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۷۰۹۱: ابوالوليد. اسحاق بن سعيد بن عمرو بن سعيد بن عاص. سعيد بن عمرو بن عاص. اُم خالد بنت خالد نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ پاره تور څادر راوړې شو' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ستاسو څه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثِيَابٍ فِيْهَا خَمِيْصَةٌ سَوْدَاءَ قَالَ مَنْ تَرَوْنَ نَكْسُوْهَا هٰذِهِ الْخَمِيْصَةَ فَاُسْكِتَ الْقَوْمُ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاُمِّ خَالِدٍ فَاُتِيَ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَلْبَسَهَا بِيَدِهٖ وَ قَالَ اَبْلِيْ وَاَخْلِقِيْ مَرَّتَيْنِ فَجَعَلَ يَنْظُرُ اِلٰى عَلَمِ الْخَمِيْصَةِ وَ يُشِيْرُ بِيَدِهٖ اِلَيَّ وَ يَقُوْلُ يَا اُمَّ خَالِدٍ هٰذَا سَنَا وَالسَّنَا بِلِسَانِ الْحَبَشِيَّةِ الْحَسَنُ قَالَ اِسْحٰقُ حَدَّثَتْنِيْ اِمْرَاَةٌ مِّنْ اَهْلِيْ اَنَّهَا رَاَتْهُ عَلٰى اُمِّ خَالِدٍ.

خيال دے، زۀ دا خادر چاته واغندوم، خلق خاموش شو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اُم خالد ماته راولئيے، هغه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له راوستے شوه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل لاس مبارک سره هغے ته په سر کړلو. او دوه ځله ئے اوفرمائيل. دا کپړه دے ستا په جسم زړه شي، او اُودِے شليږي. بيا د هغے نقش و نګار طرف ته ئے کتل. او خپل لاس سره ئے هغے ته اشاره اوکړله، او وے فرمائيل اے اُم خالد: هٰذا سنا. سنا حبشي ژبه کښې بهتر څيز ته وائي. اسحٰق اووے. ماته څما کور والو کښې يوے ښځے اووے. چه ما هغه خادر د اُم خالد په جسم اوليدو.

## بَابٌ ۴۸۱: التَّزَعْفُرُ لِلرِّجَالِ.

## باب ۴۸۱: نارينه ؤ د پاره دَ زعفراني رنګ بيان.

۷۹۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ.

۷۹۲: مسدد. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت کوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ددے نه منع فرمائيلے ده، چه نارينه زعفراني رنګ کپړه واغندي.

## باب ۴۸۲: الثَّوْبِ الْمُزَعْفَرِ.

## باب ۴۸۲: دَ زعفراني رنګ دَ کپړو بيان.

۷۹۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّلْبَسَ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا بِوَرْسٍ اَوْ بِزَعْفَرَانٍ.

۷۹۳: ابو نعيم. سفيان. عبداللّٰه بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دے نه منع فرمائيلے ده. چه محرم، ورس يا، زعفران کښې رنګ شوے کپړه واغندي.

## باب ۴۸۳: الثَّوْبِ الْاَحْمَرِ.

## باب ۴۸۳: دَ سرو (سُرخ) کپړو بيان.

۷۹۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ سَمِعَ الْبَرَآءَ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْبُوْعًا وَّ قَدْ رَاَيْتُهُ فِيْ حُلَّةٍ حَمْرَآءَ مَا رَاَيْتُ شَيْئًا اَحْسَنَ مِنْهُ.

۷۹۴: ابوالوليد. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلّم ميانه قد وو. ما چه حضور صلي الله عليه وسلّم سره (سُرخ) جُغه اچولے اوليده، نو هيڅ څيز ماته د حضور صلي الله عليه وسلّم نه زيات ښكلے په نظر رانغے.

باب ۴۸۴: اَلْمِيْثَرَةِ الْحَمْرَآءِ.

باب ۴۸۴: دَ سرے (سُرخ) گدّے بيان.

۷۹۵: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَشْعَثَ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَآئِزِ وَ تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَ نَهَانَا عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْقَسِّيِّ وَالْاِسْتَبْرَقِ وَ مَيَاثِرِ الْحُمْرِ.

۷۹۵: قبيصه. سفيان. اشعث. معاويه بن سويد بن مقرن. حضرت براء نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم مونږ ته د اوو خبرو حكم راكړلو. دَ مريض پښتنه كول، جنازو پسے تلل، دَ انتهوشي كونكي جواب وركول، او حرير، ديباج، قسي، استبرق او سرو (سُرخ) گدو نه ئے منع اوفرمائيله.

باب ۴۸۵: اَلنِّعَالِ السِّبْتِيَّةِ وَ غَيْرِهَا.

باب ۴۸۵: صاف كړے او ناصاف كړے دَ څرمنے دَ پڼړو بيان.

۷۹۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ سَعِيْدٍ اَبِيْ مَسْلَمَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسًا اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ نَعْلَيْهِ قَالَ نَعَمْ.

۷۹۶: سليمان بن حرب. حماد. سعيد. ابو مسلمه نه روايت كوي. ما دَ انس نه تپوس اوكړ، آيا نبي صلي الله عليه وسلّم به پڼړے اچولے، مونځ كولو، هغهٔ اُووے، او.

۷۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ جُرَيْجٍ اَنَّهُ قَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَاَيْتُكَ تَصْنَعُ اَرْبَعًا لَمْ اَرَ

۷۹۷: عبدالله بن مسلمه. مالك. سعيد مقبري. عبيد بن جريج نه روايت كوي. عبيد بن جريج دَ عبدالله ابن عمرؓ نه تپوس اوكړ، زهٔ تاسو داسے څلور كارونو كولو باندے وينم، چه ستاسو ملگري ئے په كولو

اَحَدًا مِّنْ اَصْحَابِكَ يَصْنَعُهَا قَالَ مَا هِيَ يَا بْنَ جُرَيْجٍ قَالَ رَاَيْتُكَ لَا تَمَسُّ مِنَ الْاَرْكَانِ اِلَّا الْيَمَانِيَّيْنِ وَ رَاَيْتُكَ تَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ وَرَاَيْتُكَ اِذَا كُنْتَ بِمَكَّةَ اَهَلَّ النَّاسُ اِذَا رَاَوُا الْهِلَالَ وَلَمْ تُهِلَّ اَنْتَ حَتّٰى كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ اَمَّا الْاَرْكَانُ فَاِنِّيْ لَمْ اَرَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمَسُّ اِلَّا الْيَمَانِيَّيْنِ وَ اَمَّا النِّعَالُ السِّبْتِيَّةُ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ النِّعَالَ الَّتِيْ لَيْسَ فِيْهَا شَعْرٌ وَّ يَتَوَضَّأُ فِيْهَا وَ اَنَا اُحِبُّ اَنْ اَلْبَسَهَا وَ اَمَّا الصُّفْرَةُ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا فَاَنَا اُحِبُّ اَنْ اَصْبُغَ بِهَا وَ اَمَّا الْاِهْلَالُ فَاِنِّيْ لَمْ اَرَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ حَتّٰى تَنْبَعِثَ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ.

نهٔ وينم، هغهٔ تپوس اوکهٔ، اے ابن جريج، هغه کوم کارونه دي. ابن جريج ورته اووے، دَ دوو رکن يماني نه سوا دَ خانه کعبے دَ نورو رکنونو دَ طواف په وخت بُوسه نهٔ اخلے (يعني نهٔ ښکلوے). دَ ويښتو نه صاف کړے پنړے په پښو کوے او کپړے په زيړ رنګ، رنګ کوے. او کوم وخت چه تاسو مکه کښې وئے، نو خلقو مياشت ليدو سره احرام اوتړلو، ليکن تاسو په يوم ترويه يعني په اتم تاريخ (احرام) اُوتړلو عبدالله بن عمرؓ جواب ورکړلو، دَ ارکانو ښکلولو حال دا دے، چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم صرف په دوو رکنونو ښکلولو ليدلے دے. او دَ بے ويښتو پنړو متعلق دا جواب دے، چه ما حضورؐ په داسے پنړو په پښو کولو ليدلے دے. چه په هغے به ويښتهٔ نهٔ وو. او دَ اودس نه پس ئے هغے کښې پښے اينښودلے، په دے وجه زهٔ دَ دے په پښو کول خوښوم. او دَ زيړ رنګ متعلق جواب دادے، چه ما نبي صلي الله عليه وسلّم په دے رنګ کښې رنګ ګونکے ليدلے دے. په دے وجه زهٔ دے رنګ کښې رنګول خوښوم. پاتے شو، احرام تړل، نو ما حضورؐ په احرام تړلو نهٔ دے ليدلے، څو پورے چه سورلي به روانه شوے نهٔ وه.

۷۹۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَلْبَسَ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا بِزَعْفَرَانٍ اَوْ وَرْسٍ وَّ قَالَ مَنْ لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا

۷۹۸: عبدالله بن يوسف. مالک. عبدالله بن دينار. ابن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ دے نه منع فرمائيلے ده. چه محرم زعفران يا ورس کښې رنګ شوے کپړه واغندي. او فرمائيلے دي، کوم سړي سره چه پنړے (پيزار) نه وي، نو هغه دے موزے واچوي. او دَ ګيټو نه لاندے

اَسۡفَلَ مِنَ الۡكَعۡبَيۡنِ.

۷۹۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ يُوۡسُفَ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ عَنۡ عَمۡرِو ابۡنِ دِيۡنَارٍ عَنۡ جَابِرِ بۡنِ زَيۡدٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَنۡ لَمۡ يَكُنۡ لَهٗ اِزَارٌ فَلۡيَلۡبَسِ السَّرَاوِيۡلَ وَ مَنۡ لَمۡ يَكُنۡ لَهٗ نَعۡلَانِ فَلۡيَلۡبَسۡ خُفَّيۡنِ.

دے پريکړي.

۷۹۹: محمد بن يوسف. سفيان. عمرو بن دينار. جابر بن زيد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ډ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اُوفرمائيل، چاسره چه ازار (تــه بـنـد) نــه وي، هغه دے پرتوګ واغـنـدي، او چاسره چه پنړے نه وي، هغه دې موزے واچوي.

باب ۴۸۶: يُبۡدَاُ بِالنَّعۡلِ الۡيُمۡنٰى.

باب ۴۸۶: اول دې ښے پنړه په پښو کړي.

۸۰۰: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بۡنُ مِنۡهَالٍ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ قَالَ اَخۡبَرَنِيۡ اَشۡعَثُ بۡنُ سُلَيۡمٍ سَمِعۡتُ اَبِيۡ يُحَدِّثُ عَنۡ مَسۡرُوۡقٍ عَنۡ عَائِشَةَ قَالَتۡ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ فِيۡ طُهُوۡرِهٖ وَ تَرَجُّلِهٖ وَ تَنَعُّلِهٖ.

۸۰۰: حجاج بن منهال. شعبه. اشعث بن سليم. سليم. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، ډ هغے بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به اودس کولو کښ، ګومنز کولو کښ، او پيزار په پښو کولو کښ ډ ښي طرف نه شروع کول خوښول.

باب ۴۸۷: يَنۡزِعُ نَعۡلَهُ الۡيُسۡرٰى.

باب ۴۸۷: اول دې ګسے پښے نه پنړه (پيزار) اُوکاږي.

۸۰۱: حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مَسۡلَمَةَ عَنۡ مَالِكٍ عَنۡ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الۡاَعۡرَجِ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَؓ اَنَّ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا انۡتَعَلَ اَحَدُكُمۡ فَلۡيَبۡدَاۡ بِالۡيَمِيۡنِ وَ اِذَا نَزَعَ فَلۡيَبۡدَاۡ بِالشِّمَالِ لِتَكُنِ الۡيُمۡنٰى اَوَّلَهُمَا تُنۡعَلُ وَ اٰخِرَهُمَا تُنۡزَعُ.

۸۰۱: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. ډ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اُوفرمائيل، هر کله چه تاسو کښ څوک پيزار په پښو کوي، نو اول دې په ښے پښه کښ اچوي، او کوم وخت چه اوکاږي، نو اول دې ډ ګسے پښے نه اوکاږي، ډ پاره ډ دې چه ښے پښه اچولو کښ اول او اوبنکلو کښ آخر وي.

باب ۴۸۸: لَا يَمۡشِيۡ فِيۡ نَعۡلٍ

باب ۴۸۸: يوه پنړه اچولو سره دې نه

وَاحِدٍ.

۸۰۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ لِيُحْفِهِمَا أَوْ لِيُنْعِلْهُمَا جَمِيعًا.

باب ۴۸۹: قِبَالَانِ فِي نَعْلٍ وَ مَنْ رَأَى قِبَالًا وَاحِدًا وَاسِعًا.

۸۰۳: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ.

۸۰۴: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ طَهْمَانَ قَالَ خَرَجَ إِلَيْنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ بِنَعْلَيْنِ لَهُمَا قِبَالَانِ فَقَالَ ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ هٰذِهِ نَعْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۹۰: الْقُبَّةِ الْحَمْرَاءِ مِنْ أَدَمٍ.

۸۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ عَوْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ

کړي.

۸۰۲: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو کښې دے څوک يوه پنړه کښې نهٔ ګرځي، يا دے دواړه اوکاږي، يا دواړه دے په پښو کړي.

باب ۴۸۹: پنړه (پيزار) کښې دَ دوو تسمو بيان.

۸۰۳: حجاج بن منهال. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، دَ نبي صلي الله عليه وسلّم پنړو (کيړو) کښې دوه تسمے وے.

۸۰۴: محمد. عبدالله. عيسي بن طهمان نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، انس بن مالکؓ ماته دوه پنړے (کيړے) راوړے هغے کښې هرے يوے کښې دوه تسمے وے. ثابت بناني اووے، دا دَ نبي صلي الله عليه وسلّم پيزار مبارک دے.

باب ۴۹۰: دَ سرے (سُرخ) چرمي قبه بيان.

۸۰۵: محمد بن عرعره. عمر بن زائده. عون بن ابي جحيفه دَ خپل پلار نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے زهٔ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم، هغه وخت حضورؐ سره (سُرخ) دَ څرمنے جُفه اَغستے وه، او ما بلال اوليدو، چه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم

وَرَأَيْتُ بِلَالًا اَخَذَ وَضُوءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ يَبْتَدِرُوْنَ الْوَضُوْءَ فَمَنْ اَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهٖ وَمَنْ لَّمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا اَخَذَ مِنْ بَلَلِ صَاحِبِهٖ.

ذَ اودس اوبه ئې واخستې' او نورو خلقو اوبو اخستو كښې ذ مخكښې كيدلو كوشش كولو. چاته چه به څۀ هم ذ هغې نه په لاس ورغلې' نو هغه به ئې په څهل مخ مږلې' او چاته چه به حاصلې نۀ شوې' نو هغۀ به ذ څهل ملګري ذ لاس نه لوند والې (تري) اخستلو.

۸۰۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ ح وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ اَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْاَنْصَارِ وَجَمَعَهُمْ فِيْ قُبَّةٍ مِّنْ اَدَمٍ.

۸۰۶: ابو اليمان. شعيب. زهري. حضرت انس بن مالكؓ. ح. ليث. يونس. ابن شهاب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي' ذ هغۀ بيان دې' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم انصار راوغښتل' او ذ يو خيمې لاندې ئې ټول جمع كړل.

باب ۱۴۹۱: اَلْجُلُوْسِ عَلَى الْحَصِيْرِ وَنَحْوِهٖ.

باب ۱۴۹۱: بوريا (پوزر) وغيره باندې ذ ناستې بيان.

۸۰۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَحْتَجِرُ حَصِيْرًا بِاللَّيْلِ فَيُصَلِّيْ وَيَبْسُطُهٗ بِالنَّهَارِ فَيَجْلِسُ عَلَيْهِ فَجَعَلَ النَّاسُ يَثُوْبُوْنَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُصَلُّوْنَ بِصَلَاتِهٖ حَتّٰى كَثُرُوْا فَاَقْبَلَ فَقَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ خُذُوْا مِنَ الْاَعْمَالِ مَا تُطِيْقُوْنَ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَمَلُّ حَتّٰى تَمَلُّوْا

۸۰۷: محمد بن ابي بكر. معتمر. عبيداللّٰه. سعيد بن ابي سعيد. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشېؓ نه روايت كوي' ذ هغې بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ شپې ذ پوزي حجره جوړوله' او مونځ به ئې كولو. او ذ ورځې به ئې هغه خوروله' او په هغې به كيناستلو' خلق به نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره جمع كيدل' او حضورؐ سره به ئې مونځ كولو' چه كوم وخت ذ هغوي تعداد زيات شو' نو حضورؐ متوجه شولو' او وې فرمائيل' اې خلقو' هغه اعمال اختيار كړئې' چه ذ هغې تاسو طاقت لرئې' ځكه چه اللّٰه تعالٰي نۀ ستړې كيږي' څو پورې چه تاسو ستړې نۀ شئې.

وَ اِنَّ اَحَبَّ الْاَعْمَالِ اِلَى اللّٰهِ مَا دَاوَمَ وَ اِنْ قَلَّ.

او دَ اللّٰه په نزد دَ ټولو نه بهتر عمل هغه دے، چه هميشه کولے شي، اګر که لږ وي.

**باب ۴۹۲: اَلْمُزَرَّرِ بِالذَّهَبِ**

وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ اَنَّ اَبَاهُ مَخْرَمَةَ قَالَ لَهُ يَا بُنَيَّ اِنَّهُ بَلَغَنِيْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَتْ عَلَيْهِ اَقْبِيَةٌ فَهُوَ يَقْسِمُهَا فَاذْهَبْ بِنَا اِلَيْهِ فَذَهَبْنَا فَوَجَدْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَنْزِلِهٖ فَقَالَ يَا بُنَيَّ ادْعُ لِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْظَمْتُ ذٰلِكَ وَ قُلْتُ اَدْعُوْا لَكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا بُنَيَّ اِنَّهُ لَيْسَ بِجَبَّارٍ فَدَعَوْتُهُ فَخَرَجَ وَ عَلَيْهِ قَبَاءٌ مِّنْ دِيْبَاجٍ مُزَرَّرٌ بِالذَّهَبِ فَقَالَ يَا مَخْرَمَةُ هٰذَا خَبَاْنَاهُ لَكَ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهُ.

**باب ۴۹۲: دَ سرو تنړے لګيدلے کپړو، اغستو بيان.**

او ليث اووے. ماته ابن ابي مليکه دَ مسور بن مخرمه نه روايت او کړ، دَ هغۀ پلار مخرمه هغۀ ته اووے. اے خويه، ماته معلومه شوے ده. چه نبي صلي الله عليه وسلّم ته څو قباګانے راوړے شوے دي. حضور صلي الله عليه وسلّم هغه تقسيموي. ماسره لاړ شه. نو نبي صلي الله عليه وسلّم مو خپل کور کښې بيامندلو. ما دا غته خبره اوګنړله. نو ما اووے، آيا ستاسو دَ پاره نبي صلي الله عليه وسلّم راوغواړم، نو هغۀ اووے، چه حضورؐ جابر (ظالم) نۀ دے. ما حضور صلي الله عليه وسلّم اوبللو. حضورؐ بهرته تشريف راوړلو داسے حال کښې چه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم په بدن دَ ديباج يوه قبا وه، هغے کښې دَ سرو بټن لګيدلے وو، او وے فرمائيل، اے مخرمه، دا ما تا دَ پاره پټه ساتلے وه، بيا حضور صلي الله عليه وسلّم هغه قبا هغۀ له ورکړله.

**باب ۴۹۳: خَوَاتِيْمُ الذَّهَبِ.**

**باب ۴۹۳: دَ سرو دَ ګوتو اچولو بيان.**

٨٠٨: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ بْنَ عَازِبٍؓ يَقُوْلُ نَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ سَبْعٍ نَهٰى عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ اَوْ قَالَ حَلْقَةِ الذَّهَبِ وَ عَنِ الْحَرِيْرِ وَالْاِسْتَبْرَقِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْمِيْثَرَةِ

٨٠٨: آدم. شعبه. اشعث بن سليم. معاويه بن سويد بن مقرب. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ دے اوو څيزونو نه منع کړے يُو. دَ سرو زرو ګوته، حرير، استبرق، ديباج، سرے (سُرخ) ګدے، قسي او دَ چاندي دَ لوښو نه او مونږ ته ئے دَ اوو څيزونو حکم راکړے

الْحَمْرَآءِ وَالْقَسِّيِّ وَ اٰنِيَةِ الْفِضَّةِ وَ اَمَرَنَا بِسَبْعٍ بِعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَ اِتِّبَاعِ الْجَنَآئِزِ وَ تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَ رَدِّ السَّلَامِ وَ اِجَابَةِ الدَّاعِيْ وَ اِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَ نَصْرِ الْمَظْلُوْمِ.

دي، ذَ مريض تپوس كول، جنازې پسې تلل، ذَ انتهوشي كونكي جواب وركول، ذَ سلام جواب كول، دعوت قبلوول، قَسم پوره كول، او ذَ مظلوم مدد كول.

۸۰۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنِ النَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهٰى عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَ قَالَ عَمْرٌو اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعَ النَّضْرَ سَمِعَ بَشِيْرًا مِثْلَهٗ.

۸۰۹: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. نضر بن انس. بشير بن نهيک. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ سرو ذَ گوتے اچولو نه منع فرمائيلے ده. او ذَ عمرو بيان دے. ماته شعبه خبر راكه، هغهٔ ذَ قتاده نه روايت كوي هغهٔ ذَ نضر نه واوريدل، او نضر ذَ بشير نه داسے واوريدل.

۸۱۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ وَّ جَعَلَ فَصَّهٗ مِمَّا يَلِيْ كَفَّهٗ فَاتَّخَذَهُ النَّاسُ فَرَمٰى بِهٖ وَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ وَّرِقٍ اَوْ فِضَّةٍ.

۸۱۰: مسدد. يحيي. عبيداللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ سرو زرو يوه گوته واچوله، او ذَ هغے غمے ئے خپل تلي (ہتھیلی) طرف ته كړلو. خلقو هم دغسے كول شروع كړل، نو حضورؐ هغه اُوغُرځوله، او ذَ چاندي گوته ئے جوړه كړله.

## بَاب ۴۹۴: خَاتَمِ الْفِضَّةِ.

## باب ۴۹۴: ذَ سپينو ذَ گوتے اچولو بيان.

۸۱۱: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ فِضَّةٍ وَ جَعَلَ

۸۱۱: يوسف بن موسي. ابو اسامه. عبيداللّٰه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ سرو، يا سپينو گوته جوړه كړله، او ذَ هغے غمے ئے خپل تلي (ہتھیلی) طرف ته اوساتلو، هغے كښ "محمد رسول اللّٰه"

فِضَّةٍ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ وَ نَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ فَاتَّخَذَ النَّاسُ مِثْلَهُ فَلَمَّا رَاٰهُمْ قَدِ اتَّخَذُوهَا رَمٰى بِهٖ وَ قَالَ لَا اَلْبَسُهُ اَبَدًا ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ فِضَّةٍ فَاتَّخَذَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَ الْفِضَّةِ قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَلَبِسَ الْخَاتَمَ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبُوْبَكْرٍؓ ثُمَّ عُمَرُؓ ثُمَّ عُثْمَانُؓ حَتّٰى وَقَعَ مِنْ عُثْمَانَؓ فِيْ بِئْرِ اَرِيْسٍ.

كنده شوے وو. خلقو هم هغسے ګوتے جوړے كړے حضور صلي الله عليه وسلّم چه خلق اوليدل. نو خپله ګوته ئے اوغورځوله' او وے فرمائيل' زه به دا' وا نه چوم. بيائے د سپينو زرو ګوته جوړه كړه' نو خلقو هم د سپينو ګوتے جوړے كړے. د ابن عمرؓ بيان دے' د نبي صلي الله عليه وسلّم نه پس هغه ګوته حضرت ابوبكرؓ' بيا حضرت عمرؓ بيا حضرت عثمانؓ اچوله' تردے چه د حضرت عثمانؓ نه د اريس په كوهي كښې اوغورځيدله.

## باب ۴۹۵:

## باب ۴۹۵: (دا باب بے سرخي دے)

۸۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ فَنَبَذَهٗ فَقَالَ لَا اَلْبَسُهُ اَبَدًا فَنَبَذَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَهُمْ.

۸۱۲: عبدالله بن مسلمه. عبدالله بن دينار. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي' د هغۀ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم به د سرو زرو ګوته اچوله. بيائے هغه اوغورځوله' او وے فرمائيل. زۀ به دا' نۀ اچوم. نو خلقو هم خپلے ګوتے اوغورځولے.

ف: نو مسلمانانو نارينه ؤ كښې داسے خوک شته' چه خپلے د سرو ګوتے اچول پرېږدي' او د حضور صلي الله عليه وسلّم متابعت اوكړي. هسے هم كه سرے سوچ كړي' نو د سرو زرو ګوتے اچولو سره سړے ښځونک ښكاري' مرد د مردانو په كار ښه ښكاري' او الله پاک دے خمونږ د حضور صلي الله عليه وسلّم مكمل پيروي نصيب كړي. اَللّٰهُمَّ آمِيْن.

خلاف پيمبر كسے راه گزيد كه هرگز به منزل نه خواهد رسيد

۸۱۳: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ اَنَّهٗ رَاٰى فِيْ يَدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِّنْ وَّرِقٍ يَوْمًا وَّاحِدًا ثُمَّ اِنَّ النَّاسَ

۸۱۳: يحيي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي' هغه يو ورځ د حضور صلي الله عليه وسلّم لاس مبارک كښې د سپينو زرو ګوته اوليده. بيا خلقو هم د سپينو زرو ګوتے اچول شروع كړل. رسول

اصْطَنَعُوا الْخَوَاتِيمَ مِنْ وَرِقٍ وَ لَبِسُوهَا فَطَرَحَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمَهُ فَطَرَحَ النَّاسُ خَوَاتِيمَهُمْ تَابَعَهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ وَ زِيَادٌ وَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ ابْنُ مُسَافِرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ أُرٰى خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ.

الله صلي الله عليه وسلّم خپله ګوته اوغرځوله نو خلقو هم خپلې ګوتې اوغرځولې [۱]. ابراهيم بن سعد او، زياد او شعيب ذ زهري نه ذ دې متابع روايت کړې دې. او ابن مسافر ذ زهري نه دې لفظ سره روايت اوکهٔ: أرٰى خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ.

۱. دلته د راوي نه په روايت بيانولو کښې غلطي شوې ده. حضور اکرمؐ مخکښې د سرو زرو ګوته جوړه کړې وه او روستو همغه ګوته هغوئ کوزه کړې وه او د هغې په ځائې ئې د چاندئ د ګوتې استعمال شروع کړې وو. د راوي د بيان نه معلوميږي چه مخکښې ئې د چاندئ ګوته جوړه کړې وه او حضورؐ دغه ګوته مخکښې کوزه کړې وه.

## باب ۴۹۶: فَصِّ الْخَاتَمِ.

## باب ۴۹۶: د ګوتې ذ غمي بيان.

۸۱۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ هَلِ اتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا قَالَ أَخَّرَ لَيْلَةً صَلٰوةَ الْعِشَاءِ إِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلٰى وَبِيصِ خَاتَمِهِ قَالَ إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَ نَامُوا وَ إِنَّكُمْ لَمْ تَزَالُوا فِي صَلٰوةٍ مَا انْتَظَرْتُمُوهَا.

۸۱۴: عبدان. يزيد بن زريع. حميد بيان کوي، انس نه تپوس اوشو، آيا نبي صلي الله عليه وسلّم ګوته اچولې وه. هغهٔ اووې، يو ځلې حضور صلي الله عليه وسلّم ذ ماسختن مونځ کښې تاخير اوکهٔ. کوم وخت چه شپه شوه، نو حضورؐ تشريف راوړلو، ګويا زهٔ ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ ګوتې چمک وينم. بيا حضورؐ اوفرمائيل، خلقو مونځ اوکهٔ، او اُودهٔ شولو. او تاسو خلق څو پورې چه انتظار کښې ئې، ذ مانځه حالت کښې ئې.

۸۱۵: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ أَخْبَرَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ حُمَيْدًا يُحَدِّثُ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ وَ كَانَ فَصُّهُ مِنْهُ وَ قَالَ يَحْيَى ابْنُ أَيُّوبَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعَ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ

۸۱۵: اسحٰق. معتمر. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي. ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ګوته ذ چاندي وه. او د هغې غمې هم ذ چاندئې وو. او يحيٰي بن ايوب اووې، ماته حميد هغه د حضرت انسؓ نه واوريدل. او حضرت انسؓ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

كوي.

باب۷ ۴۹ ۴: خَاتَمِ الْحَدِيدِ.

باب۷ ۴۹ ۴: د اُوسپنے د ګوتے بيان.

۸۱۶ ۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ سَهْلًا يَقُوْلُ جَآءَتْ اِمْرَاَةٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ جِئْتُ اَهَبُ نَفْسِيْ فَقَامَتْ طَوِيْلًا فَنَظَرَ وَ صَوَّبَ فَلَمَّا طَالَ مَقَامُهَا فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيْهَا اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكَ بِهَا حَاجَةٌ قَالَ عِنْدَكَ شَيْءٌ تُصْدِقُهَا قَالَ لَا قَالَ انْظُرْ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ وَاللّٰهِ اِنْ وَجَدْتُ شَيْئًا قَالَ اذْهَبْ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ قَالَ لَا وَاللّٰهِ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ وَ عَلَيْهِ اِزَارٌ مَا عَلَيْهِ رِدَآءٌ فَقَالَ اُصْدِقُهَا اِزَارِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِزَارُكَ اِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ وَّ اِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ فَتَنَحَّى الرَّجُلُ فَجَلَسَ فَرَاٰهُ النَّبِيُّ صَلَّى

۸۱۶ ۵: عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزيز بن ابي حازم. دَ خپل پلار نه روايت كوي، هغه دَ سهل نه واوريدل. يوه ښځه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوه. او عرض ئے اوكه، زه دے د پاره راغلے يم، چه خپل ځان تاسوته اوبښم، هغه ډير ساعت ولاړه وه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوكتل، او سر ئے خكته كړلو. هغه ډير وخته پورے ولاړه وه. نو يو سړي عرض اوكه، كه تاسو (صلي اللّٰه عليه وسلّم) ته ددے ضرورت نهٔ وي، نو ماته ئے په نكاح كړئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تاسره مَهر وركولو د پاره څهٔ شته، هغهٔ اووے نه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړ شه اوګوره، هغه لاړ، بيا راغے، وئيلے په خدائے چه، هيڅ څيز، م بيانهٔ مندلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړ شه تلاش اوكه، كه دَ اوسپنے ګوته وي (نو هم، ښهٔ ده) هغه بيا لاړ، او راغے، وئيلے، په خدائے چه دَ اوسپنے ګوته هم راكره نشته، او هغه يو تهبند، اچولے وو. چه په هغے څه څادر نه وو. هغه اووے، زه به خپل تهبند وركړمه (مهر كښې) نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، كه تهبند هغه واخلي، نو ستا په جسم به څهٔ پاتے شي (يعني بربنډ به پاتے شے) اوكه ته ئے اغندے (يعني هغے له ئے ورنهٔ كړے) هغے ته به هيڅ ورنهٔ كړے شي. نو هغه يو طرف ته كيناست. بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، چه شائے ګرځوئے وَه، نو دَ هغهٔ په راغوښتلو حُكم ئے اوكړلو (هغه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَاَمَرَ بِهٖ فَدُعِيَ فَقَالَ مَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ سُوْرَةُ كَذَا وَ كَذَا لِسُوَرٍ عَدَّدَهَا قَالَ قَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

راغے) حضور صلي الله عليه وسلّم ترے تپوس او کۀ' آيا تاته څه قرآن ياد دے' هغه اووے' فلاني فلاني سورتونه راته ياد دي' او هغه سورتونه ئے شميرل' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' قرآن چه تاته ياد دے' د هغے په عوض کښ تۀ ما دَ دے (ښځے) مالک جوړ کړے.

باب۴۹۸: نَقْشِ الْخَاتَمِ.

باب۴۹۸: په ګوته د نقش کولو بيان.

۸۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَادَ اَنْ يَّكْتُبَ اِلٰى رَهْطٍ اَوْ اُنَاسٍ مِنَ الْاَعَاجِمِ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّهُمْ لَا يَقْبَلُوْنَ كِتَابًا اِلَّا عَلَيْهِ خَاتَمٌ فَاتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِّنْ فِضَّةٍ نَقْشُهٗ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَكَاَنِّيْ بِوَبِيْصِ اَوْ بِبَصِيْصِ الْخَاتَمِ فِيْ اِصْبَعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ فِيْ كَفِّهٖ.

۸۱۷: عبدالاعلٰي. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم عجميانوته څه خط ليکل غوښتل. نو هغے خلقو عرض اوکه' چه هغه خلق به څه تحرير قبول نه کړي. څو پورے چه په هغے مُهر نه وي لګيدلے. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د چاندي يوه ګوته جوړه کړله. په هغے "محمد رسول اللّٰه" کنده شوے وو. ګويا زه دَ هغے ګوتے چمګ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ګوته يا تلي (ہتھیلی) کښ وينم.

۸۱۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ اتَّخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِّنْ وَّرِقٍ وَّ كَانَ فِيْ يَدِهٖ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِيْ يَدِ اَبِيْ بَكْرٍ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِيْ يَدِ عُمَرَ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِيْ يَدِ عُثْمَانَ حَتّٰى وَقَعَ بَعْدُ فِيْ بِئْرِ

۸۱۸: محمد بن سلام. عبداللّٰه بن نمير. عبيداللّٰه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي' د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ چاندي ګوته جوړه کړه' چه د حضور صلي الله عليه وسلّم په لاس به وه. بيا د حضور صلي الله عليه وسلّم نه پس د حضرت ابوبکرؓ لاس کښ وه' بيا د حضرت عمرؓ لاس کښ وه' د هغه نه پس د حضرت عثمانؓ لاس کښ وه. تردے چه د اُريس په کوهي کښ ترے پريوته په هغے

اَرِيْسٍ نَقْشُهٗ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

"محمد رسول الله" کنده شوے وو.

## بَاب ۴۹۹: اَلْخَاتَمِ فِي الْخِنْصَرِ.

## باب ۴۹۹: په قچه ګوته ګوتے اچولو بیان.

۸۱۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اصْطَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا قَالَ اِنَّا اتَّخَذْنَا خَاتَمًا وَّ نَقَشْنَا فِيْهِ نَقْشًا فَلَا يَنْقُشْ عَلَيْهِ اَحَدٌ قَالَ فَاِنِّيْ لَاَرٰى بَرِيْقَهٗ فِيْ خِنْصَرِهٖ.

۸۱۹: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزیز بن صهیب. حضرت انسؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے. نبي صلي الله علیه وسلّم یوه ګوته جوړه کړه، او وے فرمائیل، مونږ په دے نقش کنده کړے دے. هل هیڅوک دے په ګوته نقش نه کنده کوي. دَ راوي بیان دے، زهٔ دَ هغے چمک (پړق) دَ حضور صلي الله علیه وسلّم په قچه ګوته کښ وینم.

## بَاب ۵۰۰: اِتِّخَاذِ الْخَاتَمِ لِيُخْتَمَ بِهِ الشَّيْءُ اَوْ لِيُكْتَبَ بِهٖ اِلٰى اَهْلِ الْكِتَابِ وَ غَيْرِهِمْ.

## باب ۵۰۰: په څه څیز د مُهر لږولو یا اهل کتاب وغیره ته خط لیږلو دَ پاره د ګوتے جوړولو بیان.

۸۲۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا اَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّكْتُبَ اِلَى الرُّوْمِ قِيْلَ لَهٗ اِنَّهُمْ لَنْ يَّقْرَءُوْا كِتَابَكَ اِذَا لَمْ يَكُنْ مَخْتُوْمًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ فِضَّةٍ وَّ نَقْشُهٗ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَكَاَنَّمَا اَنْظُرُ اِلٰى بَيَاضِهٖ فِيْ يَدِهٖ.

۸۲۰: آدم بن ابي ایاس. شعبه. قتادة. انس بن مالکؓ نه روایت کوي، کوم وخت چه نبي صلي الله علیه وسلّم قیصر روم ته خط لیږل اوغوښتل، نو حضورؐ ته چا عرض اوکهٔ، چه ستاسوؐ خط به اُونهٔ کتلے شي، څو پورے چه په هغے مُهر نهٔ وي لګیدلے، حضورؐ دَ سپینو زرو یوه ګوته جوړه کړه، چه په هغے "محمد رسول الله" کنده شوے وو. ګویا دَ هغے چمک زهٔ دَ حضورؐ په لاس مبارک کښ وینم.

## بَاب ۵۰۱: مَنْ جَعَلَ فَصَّ الْخَاتَمِ فِيْ بَطْنِ كَفِّهٖ.

## باب ۵۰۱: د هغے سړي بیان چه د ګوتے غمي تلي طرف ته کړي.

۸۲۱: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

۸۲۱: موسٰي بن اسمٰعیل. جویریه. نافع. عبدالله نه روایت کوي. نبي صلي الله علیه وسلّم دَ سرو زرو، ګوته جوړه کړه، چه کله به ئے [illegible] له، نو د هغے غمے به

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصْطَنَعَ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ وَيَجْعَلُ فَصَّهُ فِيْ بَطْنِ كَفِّهِ إِذَا لَبِسَهُ فَاصْطَنَعَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَ مِنْ ذَهَبٍ فَرَقِيَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنٰى عَلَيْهِ فَقَالَ إِنِّيْ كُنْتُ اصْطَنَعْتُهُ وَإِنِّيْ لَا أَلْبَسُهُ فَنَبَذَهُ فَنَبَذَ النَّاسُ قَالَ جُوَيْرِيَةُ وَلَا أَحْسِبُهُ إِلَّا قَالَ فِيْ يَدِهِ الْيُمْنٰى.

ئې خپل تلي طرفته کولو. خلقو هم ډ سرو ګوتې جوړې کړې. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم منبر ته اوختلو. او د خدائې حمد و ثنا ئې بيان کړل. او وې فرمائيل: ما دا ګوته جوړه کړې وه. خو اوس به ئې زۀ نه اچوم. او دې فرمائيلو سره ئې خپله ګوته اوغرخوله ډ جويريه بيان دې، چه شايد دا بيان ئې هم او کۀ، چه هغه په ښي لاس کښې وه.

بَابٌ ۵۰۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْقُشُ عَلٰى نَقْشِ خَاتَمِهِ.

باب ۵۰۲: د نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيل، هيڅوک دې په خپله ګوته نقش نه کنده کوي.

۸۲۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ ابْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِّنْ فِضَّةٍ وَنَقَشَ فِيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَقَالَ إِنِّيْ اتَّخَذْتُ خَاتَمًا مِّنْ وَّرِقٍ وَّ نَقَشْتُ فِيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَلَا يَنْقُشَنَّ أَحَدٌ عَلٰى نَقْشِهِ.

۸۲۲: مسدد. حماد. عبدالعزيز بن صهيب. انسؓ بن مالکؓ نه روايت کوي. د هغۀ بيان دې. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ډ چاندي ګوته جوړه کړله. او هغې کښې ئې "مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰه" کنده کړلو. او وې فرمائيل، ما ډ چاندي ګوته جوړه کړه، او هغې کښې مې "محمد رسول الله" کنده کړې دې. هيڅوک دې په خپله ګوته (دا نقش) نۀ کنده کوي.

بَابٌ ۵۰۳: هَلْ يُجْعَلُ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلٰثَةَ أَسْطُرٍ.

باب ۵۰۳: آيا په ګوته درې کرښو کښې نقش کنده کول پکار دي.

۸۲۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍؓ لَمَّا اسْتُخْلِفَ كَتَبَ لَهُ وَكَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلٰثَةَ أَسْطُرٍ مُحَمَّدٌ سَطْرٌ وَّ رَسُوْلُ سَطْرٌ وَّاللّٰهُ

۸۲۳: محمد بن عبدالله انصاري. عبدالله انصاري. ثمامه. حضرت انس نه روايت کوي، کوم وخت چه حضرت ابوبکرؓ خليفه شو. نو ماته ئې خط اوليکه. او ډ مُهر نقش درې کرښو کښې وو. يوه کرښه کښې محمد، دوئمه کرښه کښې رسول او دريمه کرښه کښې ډ الله لفظ وو. او احمد ماته دې زياتې سره بيان

سَطْرٌ وَ زَادَنِي أَحْمَدُ حَدَّثَنَا الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَدِهِ وَ فِي يَدِ أَبِي بَكْرٍ بَعْدَهُ وَ فِي يَدِ عُمَرَ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ جَلَسَ عَلَى بِئْرِ أَرِيسٍ قَالَ فَأَخْرَجَ الْخَاتَمَ فَجَعَلَ يَعْبَثُ بِهِ فَسَقَطَ قَالَ فَاخْتَلَفْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مَعَ عُثْمَانَ فَنَنْزِحُ الْبِئْرَ فَلَمْ نَجِدْهُ.

اوکه، چه ماته انصاري، هغه دَ ابو ثمامه نه هغه دَ انس نه روايت اوکهٔ، دَ نبي صلي الله عليه وسلّم ګوته دَ حضور صلي الله عليه وسلّم په لاس کښې وه. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه پس دَ حضرت ابوبکرؓ په لاس کښې وه. او دَ هغه نه پس دَ حضرت عمرؓ په لاس کښې وه. بيا دَ حضرت عثمانؓ زمانه راغله، نو دَ اريس په غاړه کښې ناست وو. ګوته ئې دَ لاس نه اُوښکله، اړوله، راړوله ئې، چه دَ لاس نه ئې هغې کوهي کښې اوغرځيده. درې ورځو پورې مونږ حضرت عثمان سره کوشش کولو. د هغې کوهي ټولې اوبه مو راوښکلې، خو هغه ګوته پيدا نه شوله.

باب ۵۰۴: الْخَاتَمِ لِلنِّسَاءِ وَ كَانَ عَلَى عَائِشَةَؓ خَوَاتِيمُ ذَهَبٍ.

باب ۵۰۴: دَ زنانه ؤ د ګوتې اچولو بيان. او بي بي عائشېؓ سره دَ سرو زرو ګوتې وې.

۸۲۴: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ شَهِدْتُ الْعِيدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ وَ زَادَ ابْنُ وَهْبٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ فَأَتَى النِّسَاءَ فَجَعَلْنَ يُلْقِينَ الْفَتَخَ وَالْخَوَاتِيمَ فِي ثَوْبِ بِلَالٍ.

۸۲۴: ابو عاصم. ابن جريج. حسن بن مسلم. طاؤس. حضرت عباسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، زهٔ نبي صلي الله عليه وسلّم سره دَ اختر مونځ کښې موجود ووم. حضور صلي الله عليه وسلّم د خطبې نه مخکښې مونځ اوکړلو. او ابن وهب په واسطه دَ ابن جريج دومره زيات بيان اوکهٔ. چه ښځو پله ئې تشريف راوړلو، نو ښځو دَ بلالؓ کپړه کښې ګوتې او، څلي غورځول شروع کړل.

باب ۵۰۵: الْقَلَائِدِ وَالسِّخَابِ لِلنِّسَاءِ يَعْنِي قِلَادَةً مِنْ طِيبٍ وَسُكٍّ.

باب ۵۰۵: دَ ښځو دَ هار او، کړې اچولو بيان.

۸۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ

۸۲۵: محمد بن عرعره. شعبه. عدي بن ثابت. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دې نبي صلي الله عليه

عَبَّاسٍؓ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عِيْدٍ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلُ وَ لَا بَعْدُ ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ فَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تَصَدَّقُ بِخُرْصِهَا وَ سِخَابِهَا.

وسلّم دَ اختر په ورځ بهر اُووتلو. دوه رکعاته مونځ ئې اوکړ، نه ئې دَ هغې نه مخکښې مونځ اوکړ او نه ئې دَ هغې نه وروستو. بیا زنانهٔ طرف ته ئې تشریف راوړلو، او هغوي ته ئې د صدقې حکم ورکړلو، نو ښځو به خپلې والۍ او کړې صدقه کولې.

بَاب ۵۰۶: اِسْتِعَارَةِ الْقَلَائِدِ.

باب ۵۰۶: دَ هار په عاریت دَ اخستلو بیان.

۸۲۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامُ ابْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ هَلَكَتْ قِلَادَةٌ لِاَسْمَآءَ فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ طَلَبِهَا رِجَالًا فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ وَ لَيْسُوْا عَلٰى وُضُوْءٍ وَّ لَمْ يَجِدُوْا مَآءً فَصَلُّوْا وَهُمْ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ فَذَكَرُوْا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ زَادَ ابْنُ نُمَيْرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ اِسْتَعَارَتْ مِنْ اَسْمَآءَ.

۸۲۶: اسحٰق بن ابراهیم. عبده. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، دَ هغې بیان دے، د اسماء هار چه مانړه ورک شوے وو، دَ هغې په تلاش کښې نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خلق اولیږل. دے کښې دَ مونځ وخت راغے، هغه خلق په اودس کښې نه وو، اوبه پیدا نه شوے، نو بے اودسه هغې خلقو مونځ اوکه. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته دا بیان اوکړے شو، نو دَ تیمّم آیت نازل شو. ابن نمیر، دَ هشام، هغهٔ دَ خپل پلار نه هغهٔ دَ بي بي عائشےؓ نه دومره زیات روایت اوکهٔ، چه بي بي عائشےؓ دَ اسماءؓ نه هغه هار غوښتلے وو. (چه بیا به ئې ورته واپس کوي).

بَاب ۵۰۷: اَلْقُرْطِ. وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ اَمَرَهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّدَقَةِ فَرَاَيْتُهُنَّ يَهْوِيْنَ اِلٰى اٰذَانِهِنَّ وَ حُلُوْقِهِنَّ.

باب ۵۰۷: د والو (بالیاں) د اچولو بیان. د ابن عباسؓ بیان دے. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم زنانهٔ ته صدقه ورکولو حُکم اوکهٔ، نو ما اولیدل چه هغې زنانهٔ خپلو غوږونو او غاړو ته لاس اُوړدولو (یعني د غوږ، او غاړے کالي ئې صدقه کړل).

۸۲۷: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ

۸۲۷: حجاج بن منهال. شعبه. عدي. سعید. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے. نبي

عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدًا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى يَوْمَ الْعِيْدِ رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَ لَا بَعْدَهَا ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ وَ مَعَهُ بِلَالٌ فَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تُلْقِي قُرْطَهَا.

صلي اللّٰه عليه وسلّم د اختر په ورځ دوه رکعاته مونځ اوکړ، نه ئې د هغې نه مخکښې مونځ اوکړ' او نه دَ هغې نه ورستو بیائې بلالؓ سره زنانه ؤ طرف ته تشریف راوړلو، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغې زنانه ؤ ته دَ صدقې ورکولو حکم ورکړلو، نو هغوي خپلې والئ (بالیاں) راغرځول شروع کړل.

## بَابُ ۵۰۸: اَلسِّخَابِ لِلصِّبْيَانِ.

## باب ۵۰۸: د بچو د سخاب (یو قسم هار) اچولو بیان.

۸۲۸: حَدَّثَنِي اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا وَ رْقَآءُ بْنُ عُمَرَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ يَزِيْدَ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سُوْقٍ مِّنْ اَسْوَاقِ الْمَدِيْنَةِ فَانْصَرَفَ فَانْصَرَفْتُ فَقَالَ اَيْنَ لُكَعُ ثَلٰثًا اُدْعُ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّؓ فَقَامَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يَّمْشِيْ وَ فِيْ عُنُقِهِ السِّخَابُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ هٰكَذَا فَقَالَ الْحَسَنُ بِيَدِهٖ هٰكَذَا فَالْتَزَمَهُ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُحِبُّهُ فَاَحِبَّهُ وَ اَحِبَّ مَنْ يُّحِبُّهُ فَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَمَا كَانَ اَحَدٌ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ بَعْدَ مَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَالَ.

۸۲۸: اسحٰق بن ابراهیم حنظلي. یحیٰي بن آدم. ورقاء بن عمر. عبیداللّٰه بن یزید. نافع. بن جبیر. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي' زهٔ د مدینې په یو بازار کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره ووم' چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم واپس شو' زهٔ هم ورسره واپس شوم. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم درې ځله اوفرمائیل' هغه وړوکے بچے کوم ځائې دے. حسن بن عليؓ راوغواړئې حسن بن عليؓ اودریدلو' او راغے. د هغه په کردن کښې سخاب (یو قسم هار) وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل لاس ورمخکښې کړهٔ' اووے فرمائیل' راته' راترغاړوځه' حسن هم دغه شان اووے. او ورترغاړه وتل. بیا حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اے اللّٰه. زهٔ ده سره محبت کوم. تهٔ هم دهٔ سره محبت اوکړے. او هغه هم محبوب کړے. څوک چه دهٔ سره محبت کوي. د حضرت ابوهریرهؓ بیان دے د کوم وخت نه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم داسے فرمائیلے دي' ځما په نزد د حسن بن عليؓ نه هیڅوک زیات محبوب نه دے.

بَابُ ۵۰۹: اَلْمُتَشَبِّهُونَ بِالنِّسَآءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتُ بِالرِّجَالِ.

۸۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَآءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَآءِ بِالرِّجَالِ تَابَعَهُ عَمْرٌو وَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ.

باب ۵۰۹: دَ نارينه ؤ' دَ زنانه ؤ شان صورت او دَ زنانه ؤ دَ نارينه ؤ شان صورت اختيارولو بيان.

۸۲۹: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم په هغه سړو لعنت اوكۀ' چه دَ ښځو په شان صورت اختيار كړي' او په هغه ښځو ئے هم لعنت اوكۀ. چه دَ سړو په شان صورت اختياروي. عمرو په واسطه دَ شعبه دذے متابعت كښې روايت كړے دے.

بَابُ ۵۱۰: اِخْرَاجِ الْمُتَشَبِّهِيْنَ بِالنِّسَآءِ مِنَ الْبُيُوْتِ.

۸۳۰: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَآءِ وَ قَالَ اَخْرِجُوْهُمْ مِنْ بُيُوْتِكُمْ فَاَخْرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُلَانًا وَ اَخْرَجَ عُمَرُ فُلَانًا.

باب ۵۱۰: دَ ښځو صورت اختيارونكي سړي دَ كور نه اُوښكل.

۸۳۰: معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلّم په مخنث (هيجړه) سړو' او دَ سړو صورت اختيارونكو ښځو باندے لعنت ونيلے دے. او وے فرمائيل چه هغوي دَ خپلو كورونو نه اُوكاږئے. دَ ابن عباسؓ بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلّم فلانے او حضرت عمرؓ فلانے اُوبكلو.

۸۳۱: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَ فِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ اَخِيْ اُمِّ سَلَمَةَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ

۸۳۱: مالك بن اسمٰعيل. زهير. هشام بن عروه. زينب بنت ابي سلمه. اُم سلمهؓ نه روايت كوي. نبي صلي الله عليه وسلّم بي بي ام سلمهؓ سره وو. او هغے كور كښې يو مخنث (هيجړه) ناست وو. هغه د اُم سلمهؓ ورور عبدالله ته اووے' اے عبدالله كه چرے الله تاسو له په طائف فتح دركړه' نو زه به تاته د

إِنْ فُتِحَ لَكُمْ غَدًا الطَّائِفُ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى بِنْتِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَ تُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هٰؤُلَاءِ عَلَيْكُنَّ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَّ تُدْبِرُ يَعْنِي أَرْبَعَ عُكَنِ بَطْنِهَا فَهِيَ تُقْبِلُ بِهِنَّ وَ قَوْلُهُ وَ تُدْبِرُ بِثَمَانٍ يَعْنِي أَطْرَافَ هٰذِهِ الْعُكَنِ الْأَرْبَعِ لِأَنَّهَا مُحِيطَةٌ بِالْجَنْبَيْنِ حَتّٰى لَحِقَتْ وَ إِنَّمَا قَالَ بِثَمَانٍ وَّلَمْ يَقُلْ بِثَمَانِيَةٍ وَّ وَاحِدُ الْأَطْرَافِ وَهُوَ ذَكَرٌ لِأَنَّهُ لَمْ يَقُلْ بِثَمَانِيَةِ أَطْرَافٍ.

غیلان یوه لور اوښایم، چه د هغې د مخې نه څلور وَله او د شا نه اته وَله معلومیږي نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دا هیجړاګان خلق دې تاسوله نه راځي. ابو عبداللّٰه (بخاريؒ) اووې: تقبل باربع و تدبر: نه مراد دَ هغې دَ خیټې څلور وَله دي. او هغه، هغې (وَلونو) سره راځي او: تدبر بثمان: نه مراد دَ هغې څلورو وَلونو غاړې دي. ځکه چه هغې دواړه اړخونه راګیر کړي وي. تردې چه سره یوځائې شي. او: بثمان: ئې اووې: بثمانیة: ئې اونهٔ وئیل او اطراف واحد دې، چه مذکر دې، ځکه چه ثمانیة اطراف ئې اونهٔ وې.

## بَابُ ۱۱۵ : قَصِّ الشَّارِبِ

وَ كَانَ عُمَرُ يُحْفِي شَارِبَهُ حَتّٰى يُنْظَرَ إِلَى بَيَاضِ الْجِلْدِ وَ يَأْخُذُ هٰذَيْنِ يَعْنِي بَيْنَ الشَّارِبِ وَاللِّحْيَةِ.

## باب ۱۱۵ : دَ بریتو دَ قینچي کولو بیان.

او حضرت عمرؓ به خپل بریتونه قینچي کول چه څرمن به ئې ښکاریدله، او دَ ګیرې او بریتو مینځ ګُنې ویښتهٔ به ئې قینچي کول.

۸۳۲ : حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرٰهِيمَ عَنْ حَنْظَلَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ أَصْحَابُنَا عَنِ الْمَكِّيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنَ الْفِطْرَةِ قَصُّ الشَّارِبِ.

۸۳۲ : مکي بن ابراهیم. حنظله. نافع نه روایت کوي، د هغه بیان دې، هغه د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، د بریتو قینچي کول فطري خبره ده.

۸۳۳ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَا عَنْ سَعِيدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً اَلْفِطْرَةُ خَمْسٌ أَوْ خَمْسٌ مِّنَ الْفِطْرَةِ الْخِتَانُ وَالْاِسْتِحْدَادُ وَ نَتْفُ الْإِبْطِ وَ

۸۳۳ : علي. سفیان. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دې، فطري څیزونه پنځه دي، سنت کول (ختنہ کرنا) دَ نامې نه لاندې ویښتهٔ خریل، دَ ترخونو ویښته اوښکل، نوکونه پریکول،

تَقْلِيمُ الْاَظْفَارِ وَ قَصُّ الشَّارِبِ.

او بريت قينچي كول.

باب ۵۱۲: تَقْلِيمِ الْاَظْفَارِ.

باب ۵۱۲: ذ نوكونو پريكولو بيان.

۸۳۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ حَنْظَلَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنَ الْفِطْرَةِ حَلْقُ الْعَانَةِ وَ تَقْلِيمُ الْاَظْفَارِ وَ قَصُّ الشَّارِبِ.

۸۳۴: احمد بن ابي رجاء. اسحاق بن سليمان. حنظله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي، ذ نامے ذ لاندے ويښتهٔ خريل، نوكونه پريكول، بريت قينچي كول فطري څيزونه دي.

۸۳۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْفِطْرَةُ خَمْسٌ الْخِتَانُ وَالْاِسْتِحْدَادُ وَ قَصُّ الشَّارِبِ وَ تَقْلِيْمُ الْاَظْفَارِ وَ نَتْفُ الْاِبْطِ.

۸۳۵: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے، ما ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل چه فطري څيزونه پنځه دي، سنت كول، ذ نامے نه لاندے ويښته صاف كول، ذ بريتو قينچي كول، ذ نوكونو پريكول، او ذ ترخ ذ ويښتو اوبنكل.

۸۳۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَالِفُوا الْمُشْرِكِيْنَ وَ فِّرُوْا اللُّحٰى وَاحْفُوا الشَّوَارِبَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا حَجَّ اَوِ اعْتَمَرَ قَبَضَ عَلٰى لِحْيَتِهٖ فَمَا فَضَلَ اَخَذَهٗ.

۸۳۶: محمد بن منهال. يزيد بن زريع. عمر بن محمد بن زيد. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ذ مشركينو مخالفت كوئے. گيره اوږدوئے او بريت قينچي كوئے، او حضرت ابن عمرؓ چه به حج يا عمره كوله، نو خپله گيره به ئے موټي كښ نيوله، او څومره چه به زياته وه، هغه به ئے كټ كوله.

ف: ذ موټي نه زياته گيره كټ كول ذ دے حديث نه هم ثابت دي.

باب ۵۱۳: اِعْفَاءِ اللُّحٰى.

باب ۵۱۳: ذ گيرے اوږدولو بيان.

۸۳۷: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْهِكُوا الشَّوَارِبَ وَاعْفُوا اللُّحٰى.

۸۳۷: محمد. عبده. عبيدالله بن عمر. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' خپل بريت كټ كړئے' او ګيرے اوږدے كړئے.

باب ۵۱۴: مَا يُذْكَرُ فِي الشَّيْبِ.

باب ۵۱۴: دَ بوډا توب متعلق چه كوم روايتونه منقول دي.

۸۳۸: حَدَّثَنَا مُعَلَّى ابْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا أَخَضَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمْ يَبْلُغِ الشَّيْبَ إِلَّا قَلِيلًا.

۸۳۸: معلي بن اسد. وهيب. ايوب. محمد بن سيرين نه روايت كوي' هغهٔ دَ انس نه تپوس اوكړهٔ' نبي صلي الله عليه وسلّم خضاب لږولے وو. هغهٔ جواب وركړهٔ' دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ويښتهٔ ډير كم سپين شوي وو (يعني اكثر تور وو).

۸۳۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتِهِ فِي لِحْيَتِهِ.

۸۳۹: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت نه روايت كوي' حضرت انس نه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم دَ خضاب متعلق تپوس اوشو' نو جواب ئے وركړهٔ' دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ويښتهٔ دومره نه وو سپين شوے' چه خضاب ئے لږولے وے. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ ګيرے مباركے ويښتهٔ كه چا شميرل' نو شميرلے كيدے شو. (يعني ډير لږ ويښتهٔ په كښې سپين وو).

۸۴۰: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِقَدَحٍ مِنْ مَّاءٍ وَّقَبَضَ إِسْرَآئِيلُ ثَلٰثَ أَصَابِعَ مِنْ قُصَّةٍ

۸۴۰: مالک بن اسمٰعيل. اسرائيل. عثمان بن عبدالله بن موهبؒ نه روايت كوي زهٔ خما كور والو بي بي أم سلمهؓ ته دَ اوبو يوے پيالے سره اوليږلم. اسرائيل درے ګوتو نيولو سره اشاره اوكړه چه (ددے هومره) دَ نبي صلي

بِهِ شَعْرٌ مِنْ شَعَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حُمْرًا.

اللّٰه عليه وسلّم ويښتـه مبارک وو. کله چه به چاتـه نظر اولګيد يا څـهٔ تکليف به شو، نو هغه به بي بي أم سلمه تـه لوښے ليږلو. ذ عثمان بيان دے ما هغے نلکئ کښې اوکتل نو ماته څو سره (سرخ) ويښته په نظر راغلل.

۵۸۴۱: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا سَلَّامٌ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا شَعَرًا مِنْ شَعَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَخْضُوبًا وَ قَالَ لَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا نُصَيْرُ بْنُ أَبِي الْأَشْعَثِ عَنِ ابْنِ مَوْهَبٍ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ أَرَتْهُ شَعَرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْمَرَ.

۵۸۴۱: موسي بن اسمٰعيل. سلام. عثمان بن عبيداللّٰه بن موهب نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، زهٔ بي بي أم سلمهؓ له ورغلم، نو هغے ماته ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتهٔ مبارک راوښکل، چه خضاب کړے شوے وو. او ذ امام بخاريؒ بيان دے، ماته ابو نعيم په واسطه ذ نصير بن ابي الاشعث، ابن موهب نه روايت اوکهٔ، چه بي بي أم سلمهؓ ابن وهب ته ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتهٔ مبارک اوښودل، چه سرهٔ (سرخ) وو.

باب ۵۱۵: الْخِضَابِ.

باب ۵۱۵: ذ خضاب کولو بيان.

۵۸۴۲: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصٰرٰى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ.

۵۸۴۲: حميدي. سفيان. زهري. ابو سلمه او سليمان بن يسار. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يهود او نصاري خضاب نهٔ کوي، نو تاسو ذ هغوي خلاف (عمل) کوئے (يعني خضاب کوئے).

باب ۵۱۶: الْجَعْدِ.

باب ۵۱۶: ذ کُلکُتے ويښتو بيان.

۵۸۴۳: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ

۵۸۴۳: اسمٰعيل. مالک بن انس. ربيعه بن ابي عبدالرحمٰن. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ډير لوړ او نه

اَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ وَ لَيْسَ بِالْاَبْيَضِ الْاَمْهَقِ وَ لَيْسَ بِالْاٰدَمِ وَ لَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطِطِ وَلَا بِالسَّبْطِ بَعَثَهُ اللّٰهُ عَلٰى رَاْسِ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً فَاَقَامَ بِمَكَّةَ عَشَرَ سِنِيْنَ وَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشَرَ سِنِيْنَ وَ تَوَفَّاهُ اللّٰهُ عَلٰى رَاْسِ سِتِّيْنَ سَنَةً وَّ لَيْسَ فِيْ رَاْسِهٖ وَ لِحْيَتِهٖ عِشْرُوْنَ شَعَرَةً بَيْضَاءَ.

ډير مُندرے وو. نه خو ډ چونړے په شان وو' او نۀ غنم رنګے وو (يعني ګلابي رنګ ئے وو) نه ئے ويښتۀ ګُلګُتے (وَلْوَلْ) وو' او نه بالکل نيغ. اللّٰه تعالٰي حضور صلي الله عليه وسلّم ته ډ څلويښتو کالو په عمر کښې نبوّت عطاء کړلو. مکه کښې لس کاله او مدينه کښې لس کاله پاتے شو. او ډ شپيتو کالو په عمر کښې اللّٰه تعالٰي حضور صلي الله عليه وسلّم وفات کړلو دغے وخته پورے ډ حضور صلي الله عليه وسلّم په سَر او ګيره مبارکه کښې شل ويښتو پورے هم سپين نۀ وو.

۸۴۴: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ يَقُوْلُ مَا رَاَيْتُ اَحَدًا اَحْسَنَ فِيْ حُلَّةٍ حَمْرَآءَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَعْضُ اَصْحَابِيْ عَنْ مَّالِكٍ اِنَّ جُمَّتَهُ لَتَضْرِبُ قَرِيْبًا مِنْ مَّنْكِبَيْهِ قَالَ اَبُوْ اِسْحٰقَ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ غَيْرَ مَرَّةٍ مَّا حَدَّثَ بِهٖ قَطُّ اِلَّا ضَحِكَ تَابَعَهُ شُعْبَةُ شَعَرُهُ يَبْلُغُ شَحْمَةَ اُذُنَيْهِ.

۸۴۴: مالک بن اسمٰعيل. اسرائيل. ابو اسحاق. براء نه روايت کوي' هغۀ وئيلے' ما سره (سُرخ) چُغه کښې ډ حضور صلي الله عليه وسلّم نه زيات ښکلے هيڅوک نۀ دے ليدلے. څما بعضے دوستانو ډ مالک نه روايت اوکه' چه ډ حضور صلي الله عليه وسلّم ډ سر مبارک ويښتۀ ډ اُوږو (مونڈھوں) پورے راتلل. ابو اسحاق بيان اوکه' ما ډ براء نه متعدد (څو) ځله دا حديث بيانول واوريدل' او کله چه به ئے روايت کولو' نو خاندل به ئے. شعبه ډ دے متابعت کښې روايت اوکۀ' چه ډ حضور صلي الله عليه وسلّم (ډ سر) ويښتۀ ډ دواړو غوږونو نرمو ته رسيدل.

۸۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُرَانِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ

۸۴۵: عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. يوه شپه ما کعبے سره خوب کښې يو غنم رنګے خوبصورته سړے اوليد' چه هغسے خوبصورته سړے به تاسونۀ وي ليدلے. ډ هغۀ ويښتۀ ډ غوږونو ډ

فَرَاَيْتُ رَجُلًا اٰدَمَ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ مِنْ اُدْمِ الرِّجَالِ لَهٗ لِمَّةٌ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ وَقَدْ رَجَّلَهَا فَهِيَ تَقْطُرُ مَاءً مُتَّكِئًا عَلٰى رَجُلَيْنِ اَوْ عَلٰى عَوَاتِقِ رَجُلَيْنِ يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَسَاَلْتُ مَنْ هٰذَا فَقِيْلَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ وَ اِذَا اَنَا بِرَجُلٍ جَعْدٍ قَطِطٍ اَعْوَرِ الْعَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّهَا عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ فَسَاَلْتُ مَنْ هٰذَا فَقِيْلَ الْمَسِيْحُ الدَّجَّالُ.

نرمو پورے وو. او دومره ښکلے وو، چه هغسے ښکلے ويښتو واله به تاسو نهٔ وي ليدلے. ويښتهٔ ئے ګومنځ کړے وو، او اوبه ترے څڅيدلے، ذ دوو سړو په سهاره يا دائے اوفرمائيل، ذ دوو سړو ذ اوږو په سهاره (تکيه) ئے ذ خانه کعبے طواف کولو. ما تپوس اوکهٔ، دا څوک دے، راته اوونيلے شو، دا عيسیٰ ابن مريمؑ دے. بيا ما يو سړے اوليد، چه ذ هغهٔ ويښتهٔ وَلوَل وو. په ښي سترګے کانړے وو، ګويا هغه ذ انګور په شان راپړسيدلے وَه. ما تپوس اوکهٔ، دا څوک دے، راته اوونيلے شو، دا مسيح دجال دے.

۸۴۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَضْرِبُ شَعْرُهٗ مَنْكِبَيْهِ.

۸۴۶: اسحاق. حبان. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتهٔ مبارک ذ اوږو پورے راتلل.

۸۴۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ كَانَ يَضْرِبُ شَعْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْكِبَيْهِ.

۸۴۷: موسي بن اسمٰعيل. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتهٔ ذ اوږو پورے راتلل.

۸۴۸: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنْ شَعْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ شَعْرُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجِلًا لَيْسَ بِالسَّبِطِ وَلَا الْجَعْدِ

۸۴۸: عمرو بن علي. وهب بن جرير. قتاده نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے. ما ذ حضرت انس بن مالکؓ نه ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ ويښتو متعلق تپوس اوکهٔ، هغهٔ اوويے، ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتهٔ ډير وَلوَل نهٔ وو، نهٔ ډير نيغ بلکه معتدل وو. ذ دواړو غوږونو او اوږو تر

بِمَنْ اُذُنَيْهِ وَ عَاتِقَيْهِ.

۸۴۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْيَدَيْنِ لَمْ اَرَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ وَ كَانَ شَعْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجِلًا لَا جَعْدَ وَلَا سَبْطَ.

۸۵۰: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْيَدَيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ حَسَنَ الْوَجْهِ لَمْ اَرَ بَعْدَهُ وَلَا قَبْلَهُ مِثْلَهُ وَ كَانَ بَسْطُ الْكَفَّيْنِ.

۸۵۱: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مَعَاذُ بْنُ هَانِئٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ اَوْ عَنْ رَجُلٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْقَدَمَيْنِ حَسَنَ الْوَجْهِ لَمْ اَرَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ وَ قَالَ هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَثْنَ الْقَدَمَيْنِ وَالْكَفَّيْنِ وَ قَالَ اَبُوْ هِلَالٍ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ اَوْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ لَمْ اَرَ بَعْدَهُ

مينځه وو.

۸۴۹: مسلم. جرير. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي. ذ نبي صلي اللّه عليه وسلّم دواړه لاسونه مبارک غوښن وو ذ چه حضورؐ نه پس ما هيڅوک هغسې ښکلې اونۀ ليدلو. او ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ويښتۀ درميانه وو، نۀ ډير وَلوَل او نۀ بالکل نيغ.

۸۵۰: ابوالنعمان. جرير بن حازم. قتاده. انس نه روايت كوي، ذ نبي صلي اللّه عليه وسلّم دواړه لاس او پښې غوښن وو. مخ مبارک ئې داسې ښکلې ښکلي دار وو، چه نه ما ذ حضورؐ نه مخکښې او نۀ ورستو داسې څوک ليدلې دې. او تلې (ہتھیلیاں) ئې پلن وو.

۸۵۱: عمرو بن علي. معاذ بن هاني. همام. قتاده. انس بن مالک نه يا ذ يو سړي په واسطه ذ ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دواړه پښې مبارکې غوښنې وې، مخ مبارک ئې دومره خوبصورته وو، چه ذ حضورؐ نه پس مې داسې څوک نۀ دې ليدلې، او هشام ذ معمر نه، هغۀ ذ قتاده نه او قتاده ذ انس نه روايت اوکه، چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دواړه پښې او تلې (ہتھیلیاں) غوښن وو. او ذ ابو هلال بيان دې، مونږ ته قتاده بيان اوکۀ، هغۀ ذ انس نه يا جابر بن عبداللّٰه نه روايت اوکۀ، چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دواړه لاس او پښې غوښن وو، چه ذ هغې په شان

شِبْهًا لَهُ.

ما نهٔ دے لیدلے.

۸۵۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍؓ فَذَكَرُوا الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنَّهُ مَكْتُوْبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ لَمْ اَسْمَعْهُ قَالَ ذَاكَ وَلٰكِنَّهُ قَالَ اَمَّا اِبْرَاهِيْمُ فَانْظُرُوْا اِلٰى صَاحِبِكُمْ وَ اَمَّا مُوْسٰى فَرَجُلٌ اٰدَمُ جَعْدٌ عَلٰى جَمَلٍ اَحْمَرَ مَخْطُوْمٍ بِخُلْبَةٍ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ اِذَا انْحَدَرَ فِي الْوَادِيْ يُلَبِّيْ.

۸۵۲: محمد بن مثني. ابن ابي عدي. ابن عون. مجاهد نه روايت كوي. مونږ ابن عباسؓ سره ناست وو، چه خلقو دَ دجّال ذكر شروع كهٔ، چا اووے، دَ هغهٔ دَ دواړو سترګو مينځ كښې به كافر ليكلے وي. ابن عباس اووے، ما دا نهٔ دي آوريدلے، ليكن حضورؐ دا فرمائيلے دي، كه ابراهيم عليه السلام ليدل غواړئ، نو خپل ملګري (يعني ماته) اوګورے. او موسٰي عليه السلام يَو غنم رنګے، وَلوَل ويښتو والـه سړے په سُر (سُرخ) اوښ به سور وي، ګويا زهٔ هغه وينم، چه هغه به وادي كښې كوزيږي، نو لبّيک به وائي.

## باب ۵۱۷: اَلتَّلْبِيْدِ.

## باب ۵۱۷: ګوند وغيره سره ويښتهٔ جم كول.

۸۵۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَؓ يَقُوْلُ مَنْ ضَفَّرَ فَلْيَحْلِقْ وَلَا تَشَبَّهُوْا بِالتَّلْبِيْدِ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَؓ يَقُوْلُ لَقَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُلَبِّدًا.

۸۵۳: ابو اليمان. شعيب. زهري. سالم بن عبدالله. حضرت عمرؓ نه روايت كوي هغه فرمائيل، كوم سړے چه ويښتهٔ خوشتهٔ كړے وي، نو هغه دے اوخرئي، او دَ تلبيد مشابهت مهٔ اختياروئے، او ابن عمرؓ وئيلے چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم ويتهٔ ګوند سره جم كولو باندے ليدلے دے.

ف: تلبيد: ګوند وغيره سره ويښتهٔ جم كول.

۸۵۴: حَدَّثَنِيْ حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى وَ اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَا اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ

۸۵۴: حبان بن موسٰي او احمد بن محمد. عبدالله. يونس. زهري. سالم. ابن عمرؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه، كوم وخت چه ئے ويښته

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ مُلَبِّدًا يَقُوْلُ لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَا يَزِيْدُ عَلٰى هٰؤُلَآءِ الْكَلِمٰتِ.

ګونده سره جم کړي وو، لبّيک وئيل واورېدل. حضورؐ فرمائيل لبّيک اللهم لبّيک لبّيک لا شريک لک لبيک ان الحمد والنعمة لک والملک لا شريک لک: ډ دې نه زيات هيڅ کلمات ئې اونۀ فرمائيل.

٨٥٥: حَدَّثَنِيْ اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ عَنْ حَفْصَةَؓ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا شَاْنُ النَّاسِ حَلُّوْا بِعُمْرَةٍ وَّلَمْ تَحْلِلْ اَنْتَ مِنْ عُمْرَتِكَ قَالَ اِنِّيْ لَبَّدْتُ رَاْسِيْ وَ قَلَّدْتُ هَدْيِيْ فَلَا اَحِلُّ حَتّٰى اَنْحَرَ.

٨٥٥: اسماعيل. مالک. نافع. عبدالله بن عمر. بي بي حفصهؓ. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. ما عرض اوکۀ، يا رسول الله، څۀ خبره ده، چه خلقو ډ عمرې احرام پرانستلو. خو تاسوؑ ډ عمرې نه بهر نۀ شولې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ما ډ خپل سر وېښتۀ ګونده سره جم کړې دي، او ډ خپل قرباني ځاروي ته مې پټې اچولې ده، نو څو پورې چه قرباني اونۀ کړم زۀ به ډ احرام نه بهر نۀ يم.

باب ٨١٥: اَلْفَرْقِ.

باب ٨١٥: سَر کښې ډ کرښې اُوښکلو (مانګ نکالنے کا) بيان.

٨٥٦: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ مُوَافَقَةَ اَهْلِ الْكِتٰبِ فِيْمَا لَمْ يُؤْمَرْ فِيْهِ وَ كَانَ اَهْلُ الْكِتَابِ يَسْدِلُوْنَ اَشْعَارَهُمْ وَ كَانَ الْمُشْرِكُوْنَ يَفْرُقُوْنَ رُءُوْسَهُمْ فَسَدَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ.

٨٥٦: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. ابن عباسؓ نه روايت کوي، ډ هغۀ بيان دې، کومه معامله کښې به چه څۀ حکم نازل شوې نۀ وو نو هغې کښې به نبي صلي الله عليه وسلّم ډ اهل کتابو موافق عمل کول خوښول، اهل کتابو به خپل وېښتۀ آويزاندول. بيا روستو ئې سر کښې کرښه اوښکله (مانګ نکالنے لگے).

٨٥٧: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَآءٍ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ

٨٥٧: ابوالوليد او عبدالله بن رجا. شعبه. حکم. ابراهيم. اسود. بي بي عائشېؓ نه

عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَبِيْصِ الطِّيْبِ فِيْ مَفَارِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فِيْ مَفْرَقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

روايت کوي. ذ هغې بيان دے، ګويا زۀ ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ذ سَر کربنه (مانګ) کښې ذ خوشبوئ چمک وينم، حالانکه حضور صلي الله عليه وسلّم به محرم وو، عبدالله ذ: في مفارق النبي صلي الله عليه وسلّم: په ځائے: في مفرق النبي صلي الله عليه وسلّم روايت کړلو.

باب ۵۱۹ : اَلذَّوَائِبِ.

باب ۵۱۹ : ذ زلفو (کونځو) بيان.

۸۵۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ عَنْبَسَةَ اَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ اَبُوْ بِشْرٍ ح وَ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ لَيْلَةً عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ خَالَتِيْ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فِيْ لَيْلَتِهَا فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ فَقُمْتُ عَنْ يَّسَارِهٖ فَقَالَ فَاَخَذَنِيْ بِذُوَابَتِيْ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَّمِيْنِهٖ.

۸۵۸ : علي بن عبدالله. فضل بن عنبسه. هشيم. ابو بشر. ح (يعني دويم سند) قتيبه. هشيم. ابو بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے. يوه شپه زۀ خپلے ترور (خاله) بي بي ميمونےؓ کره پاتے شوم، په هغه شپه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نمبر هغې سره وو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ شپے مانځه ذ پاره اودريدلو، زۀ ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ګس طرف ته اودريدم، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم زۀ ذ سَر ذ ويښتو نه اونيوم، او خپل ښي طرف ته ئے کړم.

۸۵۹ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ بِهٰذَا وَ قَالَ بِذُوَابَتِيْ اَوْ بِرَاْسِيْ.

۸۵۹ : عمرو بن محمد. هشيم. ابو بشر دا حديث روايت کۀ. او: بذوابتي يا: براسي لفظ ئے روايت کۀ.

باب ۵۲۰ : اَلْقَزَعِ.

باب ۵۲۰ : ذ قزع (څۀ ويښتۀ پريکولو او څۀ پريښودلو) بيان.

۸۶۰ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَخْلَدٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ

۸۶۰ : محمد. مخلد. ابن جريج. عبيدالله بن حفص. عمر بن نافع. نافع (ذ عبدالله آزاد کړده غلام) حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي ذ

حَفْصٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا عَنْ نَافِعٍ مَوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنِ الْقَزَعِ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ قُلْتُ وَ مَا الْقَزَعُ فَاَشَارَ لَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ اِذَا حُلِقَ الصَّبِيُّ وَ تُرِكَ هٰهُنَا شَعْرَةٌ وَ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا فَاَشَارَ لَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ اِلٰى نَاصِيَتِهٖ وَ جَانِبَيْ رَاْسِهٖ قِيْلَ لِعُبَيْدِ اللّٰهِ فَالْجَارِيَةُ وَالْغُلَامُ قَالَ لَا اَدْرِيْ هٰكَذَا قَالَ الصَّبِيُّ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ وَ عَاوَدْتُهٗ فَقَالَ اَمَّا الْقُصَّةُ وَالْقَفَا لِلْغُلَامِ فَلَا بَاْسَ بِهِمَا وَلٰكِنَّ الْقَزَعَ اَنْ يُّتْرَكَ بِنَاصِيَتِهٖ شَعْرٌ وَّ لَيْسَ فِيْ رَاْسِهٖ غَيْرُهٗ وَ كَذٰلِكَ شِقُّ رَاْسِهٖ هٰذَا وَ هٰذَا.

هغهٔ بیان دے. ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دَ قزع نه منع فرمائیل آوریدلے دي ذ عبیداللّٰه بیان دے، ما تپوس او کړو، قزع څهٔ څه ز دے. عبداللّٰه اشارے سره اوفرمائیل، هر کله چه بچے سر اوخرئ، او اخوا دیخوا ویښتهٔ (سنړے) پریږدي. او دَ خپل تندي او سر دواړو طرفونو ته ئے اشاره او کړله. عبیداللّٰه نه تپوس اوشو. جنئ او هلک دَ پاره څهٔ حکم دے. وئیلے، ماته نهٔ ده معلومه، صرف دَ بچي لفظ ئے بیان کړلو. عبیداللّٰه اووے. ما دوباره تپوس او کړهٔ، نو هغهٔ اووے، دَ هلک دَ تندي او دَ څټ دَ ویښتو خریلو کښې هیڅ حرج نشته. لیکن قزع دا څیز دے، چه په تندي ورله ویښتهٔ پریږدي، او په سر ئے هیڅ ویښتهٔ نهٔ وي. دغه شان دَ خپل سر نیم ویښتهٔ خریل او نیم پریښودل جائز نهٔ دي.

۸٦۱: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُثَنّٰى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْقَزَعِ.

۸٦۱: مسلم بن ابراهیم. عبداللّٰه بن مثني. عبداللّٰه بن انس بن مالکؓ. عبداللّٰه بن دینار. حضرت عمرؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ قزع نه منع فرمائیلے ده.

## بَابٌ ۵۲۱: تَطْيِيْبِ الْمَرْاَةِ زَوْجَهَا بِيَدَيْهَا.

## باب ۵۲۱: دَ ښځے خپل خاوند ته دَ خوشبوئي لږولو بیان.

۸٦۲: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى ابْنُ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ

۸٦۲: احمد بن محمد. عبداللّٰه. یحیٰي بن سعید. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. ما نبي

الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَيَّبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ لِحُرْمِهِ وَ طَيَّبْتُهُ بِمِنًى قَبْلَ اَنْ يُّفِيْضَ.

صلي الله عليه وسلم ته د احرام تړلو په وخت خوشبوئي اولګوله او طواف افاضه نه مخکښې منې کښې م ورته خوشبوئي اولګوله.

## باب ۵۲۲: الطِّيْبِ فِي الرَّاْسِ وَاللِّحْيَةِ.

## باب ۵۲۲: سر او ګيره کښې د خوشبوئ لګولو بيان.

۸۶۳: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَسْوَدِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَطْيَبِ مَا يَجِدُ حَتّٰى اَجِدَ وَ بِيْصَ الطِّيْبِ فِي رَاْسِهٖ وَلِحْيَتِهٖ.

۸۶۳: اسحٰق بن نصر. يحيٰي بن آدم. اسرائيل. ابو اسحٰق. عبدالرحمٰن بن اسود. بي بي عائشې نه روايت کوي، ذ هغې بيان دے ما نبي صلي الله عليه وسلم ته اعلي قسم خوشبوئ لګوله، تردے چه ذ حضورؐ سر او ګيره مبارکه کښې به م ذ خوشبو چمک بيامندلو.

## باب ۵۲۳: الاِمْتِشَاطِ.

## باب ۵۲۳: ذ ګومنز کولو بيان.

۸۶۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَجُلًا اِطَّلَعَ مِنْ جُحْرٍ فِي دَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُكُّ رَاْسَهٗ بِالْمِدْرٰى فَقَالَ لَوْ عَلِمْتُ اَنَّكَ تَنْظُرُ لَطَعَنْتُ بِهَا فِيْ عَيْنِكَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِذْنُ مِنْ قِبَلِ الْاَبْصَارِ.

۸۶۴: آدم بن ابي اياس. ابن ابي ذئب. زهري. سهل بن سعدؓ نه روايت کوي، يو سړي د سوري (سوراخ) نه ذ حضور صلي الله عليه وسلم کور کښې اوکتل (جهانکا). هغه وخت حضور صلي الله عليه وسلم خپل سر مبارک آوزار سره ګرولو. حضورؐ اوفرمائيل، که ماته معلومه وے چه ته (راته ذ سوري نه) ګورې، نو ما به هغه ستا په ستر ګو کښې منډلے وو. او اجازت اخستل ذ کتلو په سبب مقرر شوے دي.

## باب ۵۲۴: تَرْجِيْلُ الْحَائِضِ زَوْجَهَا.

## باب ۵۲۴: ذ حائضې ښځې ذ خپل خاوند سر، ګومنز کولو بيان.

۸۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۸۶۵: عبدالله بن يوسف. مالک. ابن شهاب.

يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا حَائِضٌ.

عروه بن زبيرؓ بي بي عائشې نه روايت كوي، ذ هغې بيان دې، ما به ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سر مبارک ګومنز كولو، حالانكه زۀ به حائضه (ذ حيض حالت كښ) ووم.

۸۶۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ مِثْلَهُ.

۸۶۶: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. هشام ذ خپل پلار نه، هغه ذ بي بي عائشېؓ دغسې روايت كوي.

## باب ۵۲۵: التَّرْجِيْلِ.

## باب ۵۲۵: ذ ويښتو ګومنز بيان.

۸۶۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَشْعَثَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يُعْجِبُهُ التَّيَمُّنُ مَا اسْتَطَاعَ فِيْ تَرَجُّلِهِ وَ وُضُوْئِهِ.

۸۶۷: ابوالوليد. شعبه. اشعث بن سليم. مسروق. بي بي عائشېؓ يعني ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ذ ټبر نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم به ذ خپله وسه پورې ګومنز كولو او اودس كښ به ئې ذ ښي طرف نه شروع كول خوښول.

## باب ۵۲۶: مَا يُذْكَرُ فِي الْمِسْكِ.

## باب ۵۲۶: ذ مشک بيان.

۸۶۸: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ عَمَلِ ابْنِ اٰدَمَ لَهُ اِلَّا الصَّوْمُ فَاِنَّهُ لِيْ وَ اَنَا اَجْزِيْ بِهٖ وَ لَخُلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِيْحِ الْمِسْكِ.

۸۶۸: عبداللّٰه بن محمد. هشام. معمر. زهري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دې. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ بني آدم هر عمل هغه ذ پاره دې خو روژه هغه خاص خما ذ پاره ده، او زۀ به ذ هغې بدله وركوم، او ذ روژه دار ذ خولې بوي ذ اللّٰه په نزد ذ مشكو نه هم بهتر دې.

## باب ۵۲۷: مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الطِّيْبِ.

## باب ۵۲۷: ذ بهترينې خوشبوئ لګولو بيان.

۸۶۹: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا

۸۶۹: موسٰي. وهيب. هشام. عثمان بن

وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ اِحْرَامِهِ بِاَطْيَبِ مَا اَجِدُ.

باب ۵۲۸: مَنْ لَمْ يَرُدَّ الطِّيبَ.

۸۷۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّهُ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ وَ زَعَمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ.

باب ۵۲۹: الذَّرِيرَةِ.

۸۷۱: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ الْهَيْثَمِ اَوْ مُحَمَّدٌ عَنْهُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُرْوَةَ سَمِعَ عُرْوَةَ وَالْقَاسِمَ يُخْبِرَانِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَيَّبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ بِذَرِيرَةٍ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ لِلْحِلِّ وَالْاِحْرَامِ.

باب ۵۳۰: الْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ.

۸۷۲: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ لَعَنَ اللّٰهُ

عروه ذ خپل پلار نه هغه ذ بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ما به نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له ذ احرام په وخت ذ ټولونه اعلي خوشبوئ لګوله، چه ماسره به موجود وه.

باب ۵۲۸: خوشبو دے نه رد كوي.

۸۷۰: ابو نعيم. عزره بن ثابت انصاري. ثمامه بن عبداللّٰه. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغهٔ به خوشبو نهٔ واپس كوله، او بيان به ئے كولو، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به خوشبو نهٔ واپس كوله.

باب ۵۲۹: ذ زريره (يو قسم خوشبو) بيان.

۸۷۱: عثمان بن هيثم' يا' محمد. ابن جريج. عمر بن عبداللّٰه بن عروه. عروه او قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته خپل لاس سره ذريره خوشبوئ حجة الوداع كښې ذ احرام تړلو، او پرانستلو په وخت اولګوله.

باب ۵۳۰: حُسن ذ پاره ذ غاښونو ذ كُشاده كولو بيان.

۸۷۲: عثمان. جرير. منصور. ابراهيم. علقمه. عبداللّٰه نه روايت كوي، اللّٰه تعالٰي په هغه ښځو لعنت كوي، چه خان له يا بل چاله خال لګوي، او ذ مخ ويښتهٔ

الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَ الْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ تَعَالٰى مَا لِيَ لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ وَمَا اٰتٰكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ.

صاف كونكے' او حسن د پاره غابښونه كشاده كونكے او د الله پيدا كړے صورت بدلونكے وي' بيا زۀ په هغه چا لعنت ولے اونۀ وايم' چه نبي صلي الله عليه وسلّم پرے لعنت وئيلے وي' حالانكه كتاب الله كښ شته' چه څۀ تاسوته رسول دركړي' هغه واخلئے (او د څۀ نه مو چه منع كوي' د هغے نه منع شئے).

**باب ۱۵۳۱: الْوَصْلِ فِي الشَّعْرِ.**

**باب ۱۵۳۱: ويښتو كښ د جوړ لړولو بيان.**

۸۷۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهٗ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ اَبِيْ سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَقُوْلُ وَ تَنَاوَلَ قُصَّةً مِّنْ شَعْرٍ كَانَتْ بِيَدِ حَرَسِيٍّ اَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنْ مِّثْلِ هٰذِهٖ وَ يَقُوْلُ اِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُوْ اِسْرَآئِيْلَ حِيْنَ اتَّخَذَ هٰذِهٖ نِسَآؤُهُمْ وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ.

۸۷۳: اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن بن عوف نه روايت كوي هغه د معاويه بن ابي سفيانؓ د حج په كال په منبر واوريدل' او د ويښتو يوه غوټكے (يا منجيله) د خپل سپاهي نه واخسته' وئيلے' ستاسو علماء چرته دي. ما د نبي صلي الله عليه وسلّم نه د دے منع آوريدلے ده' او بني اسرائيل هلاک شو' كوم وخت چه د هغوي ښځو دا (يعني مصنوعي ويښتۀ استعمالول) اختيار كړل. او ابن ابي شيبه بيان اوكۀ' مونږ ته يونس بن محمد په واسطه د فليح' زيد بن اسلم' عطاء بن يسار' حضرت ابوهريرهؓ د نبي صلي الله عليه وسلّم نه حديث بيان كۀ' حضورؐ اوفرمائيل' الله پاک په هغے ښځو لعنت اوكه' چه ويښتو كښ پيوند لړوي (خان له يا بل چاله) او په هغوي چه خان له يا بل چاله خال لړوي.

۸۷۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ

۸۷۴: آدم. شعبه. عمرو بن مره. حسن بن مسلم بن يناق. صفيه بنت شيبه. بي بي عائشےؓ

الْحَسَنَ بْنَ مُسْلِمِ بْنِ يَنَّاقٍ يُحَدِّثُ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ جَارِيَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ تَزَوَّجَتْ وَ اَنَّهَا مَرِضَتْ فَتَمَعَّطَ شَعْرُهَا فَاَرَادُوْا اَنْ يَّصِلُوْهَا فَسَاَلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ تَابَعَهُ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ اَبَانَ بْنِ صَالِحٍ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ صَفِيَّةَ عَنْ عَائِشَةَ.

نه روايت كوي' ذ انصارو يوې جينۍ نكاح او كړله. هغه ناروغه شوه' ذ هغې ذ سر ويښته اوغورځيدل. خلقو اوغوښتل' چه ذ هغې تول ويښته پيوند كړي. په دې حقله خلقو ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړ. حضورؐ ورته اوفرمائيل' الله پاك په ويښته پيوند لګونكې (خان له يا بل له) دواړو لعنت كړې دې. او ابن اسحاق' ابان بن صالح نه' هغه ذ حسن نه' حسن ذ صفيې نه' صفيې ذ بي بي عائشېؓ نه ذ دې متابع حديث روايت كړې.

۸۷۵: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ اُمِّيْ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍؓ اَنَّ امْرَاَةً جَآءَتْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِنِّيْ اَنْكَحْتُ ابْنَتِيْ ثُمَّ اَصَابَهَا شَكْوٰى فَتَمَرَّقَ رَاْسُهَا وَ زَوْجُهَا يَسْتَحِثُّنِيْ بِهَا اَفَاَصِلُ رَاْسَهَا فَسَبَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ.

۸۷۵: احمد بن مقدام. فُضيل بن سليمان. منصور بن عبدالرحمٰن. ذ خپل پلار نه' هغه ذ اسماء بنت ابوبكرؓ نه روايت كوي يوه ښځه ذ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت كښې حاضره شوه' او عرض ئې اوكړ. ما خپله لور واده كړه. بيا هغه ناروغه شوه' نو ذ سر ويښته ئې اوغورځيدل.او ذ هغې خاوند دې باره كښې په ما زور اچوي آيا زه هغې له ويښته كيږدم' رسول الله صلي الله عليه وسلم خان له يا بل له ويښته ايښودونكې باندې بد اوويل.

۸۷٦: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنِ امْرَاَتِهٖ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ.

۸۷٦: آدم. شعبه. هشام بن عروه. هغه ذ خپلې ښځې فاطمې نه' هغې ذ اسماء بنت ابوبكرؓ نه روايت كوي' چه حضور صلي الله عليه وسلم ويښته ايښودونكې (خان له يا بل له) باندې لعنت ونيلې دې.

۸۷۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ

۸۷۷: محمد بن مقاتل. عبدالله

مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ قَالَ نَافِعٌ الْوَشْمُ فِي اللِّثَةِ.

عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله تعالي په ويښتهٔ پيوند كونكې (خان له يا بل له) او خال لګوونكې (خان له يا بل له) باندې لعنت كړې دې. نافع اووې، وشم په جامنو (جړوں) كښ وي.

۸۷۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ قَدِمَ مُعَاوِيَةُ الْمَدِيْنَةَ اٰخِرَ قَدِمَةٍ قَدِمَهَا فَخَطَبَنَا فَاَخْرَجَ كُبَّةً مِنْ شَعْرٍ قَالَ مَا كُنْتُ اُرٰى اَحَدًا يَفْعَلُ هٰذَا غَيْرَ الْيَهُوْدِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمَّاهُ الزُّوْرَ يَعْنِي الْوَاصِلَةَ فِي الشَّعْرِ.

۸۷۸: ادم. شعبه. عمرو بن مره. سعيد بن مسيب نه روايت كوي، حضرت معاويهؓ په آخري ځل مدينې ته راغې، خطبه ئې وركړله. د ويښتو يو (جومپكه) ئې راوښكله، او وئيلې. ما بغير د يهودو نه بل څوک په دې كار نه دي ليدلې. بيشكه حضور صلي الله عليه وسلّم دا، يعني ويښتو كښ پيوند لګول فريب سره تعبير كړې دي.

باب ۲۵۳۲: اَلْمُتَنَمِّصَاتِ.

باب ۲۵۳۲: د ښځو د مخ ويښته صاف كولو بيان.

۸۷۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ لَعَنَ عَبْدُ اللّٰهِ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ وَ مَالِيْ لَا اَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ قَالَتْ وَاللّٰهِ قَدْ قَرَاْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُهُ قَالَ وَاللّٰهِ لَئِنْ قَرَاْتِيْهِ لَقَدْ وَجَدْتِيْهِ وَمَا اٰتٰكُمُ

۸۷۹: اسحق بن ابراهيم. جرير. منصور. ابراهيم. علقمه نه روايت كوي، عبدالله، خال لګوونكې، د مخ ويښتهٔ صاف كونكې، او خائست د پاره د غاښونو كُشاده كونكې، چه د الله پيدا كړې صورت بدلونكې وي، په هغوي لعنت كړې دې. اُم يعقوب تپوس اوكهٔ، دا ولې. عبدالله ورته اووې، زهٔ پرې ولې لعنت اونهٔ وايم، په چا چه د الله رسول لعنت وئيلې دې، او كتاب الله كښ هم دغسې دي. اُم يعقوب اووې. ما ټول قرآن اولوست. ما هغې كښ دا خبره بيانهٔ منده، عبدالله ورته اووې، كه تا قرآن لوستې وې، نو په خدائې چه په دې كښ به دې ضرور بيامندې وې، چه څهٔ تاسو له رسول

الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا.

در کړي' هغه واخلئ' او ذ څۀ نه مو چه منع کړي' ذ هغې نه منع شئ.

باب ۵۳۳: اَلْمَوْصُوْلَةِ.

باب ۵۳۳: ذ ويښتو وروستونکې ښځې بيان.

۸۸۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ.

۸۸۰: محمد. عبده. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمر رضی نه روايت کوي' ذ هغۀ بيان دے' نبي صلي الله عليه وسلّم ويښتۀ وروستونکې او خال لګونکې (خان ذ پاره يا بل ذ پاره) باندې لعنت وئيلے دے.

۸۸۱: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَنَّهٗ سَمِعَ فَاطِمَةَ بِنْتَ الْمُنْذِرِ تَقُوْلُ سَمِعْتُ اَسْمَآءَ قَالَتْ سَاَلَتْ اِمْرَاَةٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ ابْنَتِيْ اَصَابَتْهَا الْحَصْبَةُ فَاَمَّرَقَ شَعْرُهَا وَ اِنِّيْ زَوَّجْتُهَا اَفَاَصِلُ فِيْهِ فَقَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمَوْصُوْلَةَ.

۸۸۱: حميدي. سفيان. هشام. فاطمه بنت منذر. بي بي اسماء نه روايت کوي. يوې ښځې نبي صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوکۀ يا رسول الله' ځما په لور چيچک راختلي وو' نو ذ هغې ذ سر ويښتۀ اوډريدل' او ما ذ هغې نکاح کړې ده' آيا زۀ ذ هغې ويښتو کښې پيوند اُولګوم (يعني مصنوعي ويښتۀ ورسره پيوست کړم) حضورؐ ورته اوفرمائيل' الله پاک په ويښتۀ پيوند کونکې (خان له يا بل له) باندې لعنت کړے دے.

۸۸۲: حَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ حَدَّثَنَا صَخْرُ بْنُ جُوَيْرِيَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رضی سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاشِمَةَ وَالْمُوْتَشِمَةَ وَالْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ يَعْنِيْ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى

۸۸۲: يوسف بن موسٰي. فضل بن دُکين. صخر بن جويريه. نافع. حضرت عبدالله بن عمر رضی نه روايت کوي' ذ هغۀ بيان دے' ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل' يا داسې ئې اووې' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' خال لګونکې او ويښتۀ پيوند کونکې (خان له يا بل له) يعني نبي صلي الله عليه وسلّم تولو باندې لعنت

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ونيلي دي.

۸۸۳: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرٰهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ مَا لِيَ لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي كِتَابِ اللّٰهِ.

۸۸۳: محمد بن مقاتل. عبدالله. سفيان. منصور. ابراهيم. علقمه. ابن مسعود نه روايت كوي، الله، خال لرونكي (خان له يا بل له) ذ مخ وېښتـه صاف كونكي او حُسن د پاره غاښونه كشاده كونكي، چه د الله جوړ كړي صورت بدلوي، په دي ټولو باندي لعنت كړي دي. نو بيا به زه په هغې لعنت ولي اونه كړم، په چا چه د الله رسول لعنت كړي دي. او دا امر د الله كتاب كښې مذكور دي.

## باب ۵۳۴: الْوَاشِمَةُ.

## باب ۵۳۴: د خال وهونكي ښځي خال.

۸۸۴: حَدَّثَنِي يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَيْنُ حَقٌّ وَّ نَهٰى عَنِ الْوَشْمِ.

۸۸۴: يحيي. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل نظر لګيدل حق دي، او د خال لرولو نه ئي منع اوفرمائيله.

۸۸۵: حَدَّثَنِي ابْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ذَكَرْتُ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ حَدِيثَ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرٰهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ سَمِعْتُهُ مِنْ أُمِّ يَعْقُوبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ مِثْلَ حَدِيثِ مَنْصُورٍ.

۸۸۵: ابن بشار. ابن مهدي. سفيان بيان كوي. ما عبدالرحمٰن بن عابس ته د منصور حديث د ابراهيم، علقمه، عبدالله په واسطه بيان كهٔ، نو هغهٔ اووې، ما د ام يعقوب نه د عبدالله حديث د منصور د حديث په شان آوريدلي دي.

۸۸۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ رَأَيْتُ أَبِي فَقَالَ إِنَّ

۸۸۶: سليمان بن حرب. شعبه. عون بن ابي جحيفه نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دي ما د خپل پلار نه واوريدل، چه حضور

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ وَ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ اٰكِلِ الرِّبَا وَ مُوْكِلِهٖ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ.

صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ وینې دَ قیمت دَ سپي دَ قیمت دَ سود خوړلو او خوړولو او په جسم دَ خال کولو (خان له یا بل) نه منع فرمائیلې ده.

## باب۵۳۵: اَلْمُسْتَوْشِمَةِ.

## باب۵۳۵: بل چاله دَ خال وهونکې بیان.

۸۸۷: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ اُتِيَ عُمَرُ بِامْرَاَةٍ تَشِمُ فَقَامَ فَقَالَ اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ مَنْ سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْوَشْمِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَؓ فَقُمْتُ فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَا سَمِعْتُ قَالَ مَا سَمِعْتُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَشِمْنَ وَلَا تَسْتَوْشِمْنَ.

۸۸۷: زهیر بن حرب. جریر. عماره. ابو زرعه. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، یوه خال لګوونکې ښځه حضرت عمرؓ له راغله، حضرت عمرؓ اودرید، او وې فرمائیل، زهٔ تاسو ته دَ خدائې واسطه درکوم، چه چا دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دَ خال وهلو متعلق آوریدلې دي. دَ ابوهریرهؓ بیان دې، زهٔ اودریدم، ما اووې، اې امیر المؤمنین. ما آوریدلې دي، هغهٔ اووې، تا څهٔ آوریدلې دي، حضرت ابوهریرهؓ اووې، ما دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه آوریدلې دي، چه هیڅ ښځه دې خال نهٔ وهي (نهٔ خان له نهٔ بل چاله).

۸۸۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ.

۸۸۸: مسدد. یحیٰي بن سعید. عبداللّٰه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم وینتو پیوند کونکې، او خال وهونکې (خان له یا بل چاله) باندې لعنت وئیلې دې.

۸۸۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ

۸۸۹: محمد بن مثنٰي. عبدالرحمٰن. سفیان. منصور. ابراهیم. علقمه. حضرت عبداللّٰه نه روایت کوي، چه خال وهونکې (خان له یا بل چاله) دَ مخ نه وینتهٔ صاف کونکې، او خائست دَ پاره غابنونه کشاده

وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ مَالِيَ لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ.

كوونكے، چه دَ اللّٰه جوړ كړے صورت بدلوي، بانديے اللّٰه تعالي لعنت كړے دے، بيا زهٔ دے پرے ولے لعنت اونهٔ كړم، او دا دَ خدائيے كتاب كښې هم راغلے دي.

## باب ۵۳۶: التَّصَاوِيْرِ.

## باب ۵۳۶: دَ تصويرونو بيان.

۰ ۸۹: حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُ الْمَلٰئِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ كَلْبٌ وَلَا تَصَاوِيْرُ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعْتُ أَبَا طَلْحَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۰ ۸۹: آدم. ابن ابي ذئب. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت ابن عباسؓ. ابو طلحهؓ نه روايت كوي، وائي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ملائكے هغے كور كښې نهٔ داخليږي، چه هغے كښې سپي وي او نهٔ هغے كور كښې داخليږي، چه هغے كښې تصويرونه وي. او دَ ليث بيان دے، ماته يونس، هغهٔ دَ ابن شهاب نه په واسطه دَ عبيداللّٰه ابن عباس، ابو طلحه بيان اوكهٔ، چه ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه (دغسے) واوريدل.

## باب ۵۳۷: عَذَابِ الْمُصَوِّرِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

## باب ۵۳۷: دَ قيامت په ورځ دَ تصوير جوړونكو دَ عذاب بيان.

۸۹۱: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ مُسْلِمٍ قَالَ كُنَّا مَعَ مَسْرُوْقٍ فِيْ دَارِ يَسَارِ بْنِ نُمَيْرٍ فَرَأَى فِيْ صُفَّتِهِ تَمَاثِيْلَ فَقَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُوْنَ.

۸۹۱: حميدي. سفيان. اعمش. مسلم نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. مونږ مسروق سره دَ يسار بن نمير په كور كښې وو مسروق دَ هغهٔ په كور كښې مجسمے اوليدے، نو هغهٔ اووے، ما دَ عبداللّٰه نه آوريدلے دي نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، دَ قيامت په ورځ به دَ اللّٰه په نزد دَ ټولونه زيات عذاب تصوير جوړونكي ته وي.

۸۹۲: حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ بْنُ

۸۹۲: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض.

الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَصْنَعُوْنَ هٰذِهِ الصُّوَرَ يُعَذَّبُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ.

عبيدالله. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي' ذَ هغهٔ بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم خلق چه تصويرونه جوړوي' ذَ قيامت په ورځ به عذاب كښې آخته وي' او هغوي ته به ونيلے شي' چه كوم څيز تاسو پيدا كړے دے' هغے كښې ساه واچوئے (او هغوي به په كښې ساه اچولے نشي).

## باب ۵۳۸ : نَقْضِ الصُّوَرِ.

## باب ۵۳۸ : ذَ تصويرونو ماتولو بيان.

۸۹۳ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حِطَّانَ اَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِيْ بَيْتِهٖ شَيْئًا فِيْهِ تَصَالِيْبُ اِلَّا نَقَضَهُ.

۸۹۳ : معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي. عمران بن حطان. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذَ هغے بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم به خپل كور كښې داسے هيڅ څيز نهٔ پريښودلو' چه هغے كښې به تصويرونه وو' بلكه داسے څيزونه به ئے ماتول.

۸۹۴ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ زُرْعَةَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ دَارًا بِالْمَدِيْنَةِ فَرَاٰى اَعْلَاهَا مُصَوِّرًا يُصَوِّرُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِيْ فَلْيَخْلُقُوْا حَبَّةً وَلْيَخْلُقُوْا ذَرَّةً ثُمَّ دَعَا بِتَوْرٍ مِّنْ مَّاءٍ فَغَسَلَ يَدَيْهِ حَتّٰى بَلَغَ اِبْطَهٗ فَقُلْتُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ اَشَيْءٌ سَمِعْتَهٗ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُنْتَهَى

۸۹۴ : موسٰي. عبدالواحد. عماره. ابو زرعه نه روايت كوي' زهٔ ابوهريرهؓ سره ذَ مدينے يو مكان كښې دخل شوم' څهٔ گورم چه په هغې يو مصوّر تصويرونه جوړوي' نو هغهٔ اووے' ما ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي' ذَ هغے چانه زيات ظالم څوک دے' چه څما ذَ پيدا كولو په شان ذَ پيدا كولو كوشش كوي. كه داسے وي' نو يوه دانه دے پيدا كړي' اُودے گوري' او يوه ذرّه دے پيدا كړي' اُودے گوري' بيائے ذَ اُوبو لوښے اُوغوښتلو. او دواړه لاسونه ئے ذَ ترخونو پورے اووينزل. ما تپوس اوكهٔ' اے ابوهريرهؓ' تا ذَ دے متعلق ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه څهٔ آوريدلے دي. ونيلے' ذَ زيوراتو (كالو) ذَ اچولو انتهائي ځائے پورے دے اووينزي (يعني كوم ځائے پورے چه زيورات يعني كالي

الْحِلْيَةِ.

اچولے شي).

## بـاب ٥٣٩: مَـا وُطِـيَ مِـنَ التَّصَاوِيْرِ.

٨٩٥: حَـدَّثَـنَـا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰـهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْـمٰـنِ بْـنَ الْقَاسِمِ وَ مَا بِالْمَدِيْنَةِ يَـوْمَـئِـذٍ اَفْـضَلُ مِنْهُ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَـالَ سَمِعْتُ عَـائِشَةَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ وَّ قَـدْ سَتَرْتُ بِقِرَامٍ لِّيْ عَلٰى سَهْوَةٍ لِّيْ فِيْهَا تَـمَـاثِيْـلُ فَـلَـمَّا رَاٰهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَتَكَهٗ وَ قَالَ اَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَّوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِيْنَ يُـضَـاهُـوْنَ بِخَلْقِ اللّٰهِ قَالَتْ فَجَعَلْنَاهُ وِسَادَةً اَوْ وِسَادَتَيْنِ.

٨٩٦: حَـدَّثَـنَـا مُـسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْـدُ الـلّٰـهِ بْـنُ دَاوٗدَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْـهِ عَـنْ عَـائِشَةَ قَـالَـتْ قَدِمَ النَّبِيُّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ وَّ عَـلَّـقْـتُ دُرْنُوْكًا فِيْهِ تَمَاثِيْلُ فَاَمَرَنِيْ اَنْ اَنْـزِعَهٗ فَنَزَعْتُهٗ وَ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالـنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَـاءٍ وَّاحِدٍ.

## باب ٥٣٩: ذَ تـصـويـرونو ذَ غوړولو (بچهانے) بيان.

٨٩٥: عـلـي بن عبداللّٰه. سفيان بيان كوي. ما ذَ عـبـدالـرحـمٰـن بـن قـاسـم نه واوريدل، په هغه زمانه كښې مـديـنـه كښې د هغه نه بهتر څوک نه وو. ذَ هغهٔ بيان دے. مـا ذَ خپـل پـلار نـه واوريـدل هـغـهٔ ذَ بي بي عائشے نـه واوريـدل، رسـول الـلّٰـه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ يو سفر نه واپـس تشـريف راوړلو، ما صحن (انگنړ) كښې يوه پرده آويـزانـده كړے وه، چه په هغے تصويرونه وو. څهٔ وخت چه رسـول الـلّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه اوليدل نو وے شـلـول، او، وے فـرمـائيـل، ذَ قيـامت په ورځ به ذَ ټولونه زيـات عـذاب هـغـے چـاتـه وي، چه ذَ اللّٰـه ذَ پيدا كړو خيـزونـو نـقـل كـوي. ذَ بي بي عائشےؓ بيان دے. بيا ما ذَ هغے نه يو يا دوه تكيے جوړے كړے.

٨٩٦: مـسـدد. عـبـدالـلّٰـه بـن داوٗد. هـشـام. ذَ خپـل پـلار نـه. هـغـه ذَ بـي بي عائشےؓ نه روايت كوي، چـه نبـي صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلّم ذَ يو سفر نـه واپـس تشـريف راوړلـو. او مـا يـوه پـرده آويـزانـده كـړے وَه، چـه هـغـے كـښې تـصـويـرونـه وو، ما تـه ذَ هغے ذَ كـوزولـو حـكـم اوشـو، نـو مـا هـغـه كوزه كړه، او مـا او نبي صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلّـم بـه ذَ يو لوښي نـه غسل كولو.

## باب ٥٤٠: مَـنْ كَـرِهَ الْـقُعُوْدَ عَلَى الصُّوْرَةِ.

٨٩٧: حَـدَّثَـنَـا حَـجَّـاجُ

## باب ٥٤٠: پـه تـصـويـرونو ذَ ناستے ذَ كراهت بيان.

٨٩٧: حـجـاج بـن منهال. جويريه. نافع. قاسم.

بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَقُلْتُ أَتُوبُ إِلَى اللّٰهِ مِمَّا أَذْنَبْتُ قَالَ مَا هٰذِهِ النُّمْرُقَةُ قُلْتُ لِتَجْلِسَ عَلَيْهَا وَ تَوَسَّدَهَا قَالَ إِنَّ أَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ وَ إِنَّ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ الصُّوَرَةُ.

بي بي عائشې نه روايت کوي. بي بي عائشې يوه ګډئې واخسته، چه په هغې تصويرونه وو دې لېدو سره نبي صلي الله عليه وسلّم په دروازه اودرېدلو. او دننه ئې تشريف راونه ړلو. ما عرض اوکړ (بي بي عائشې وائي) زهٔ دَ خدائې درګاه کښې دَ خپل قصور نه توبه کوم. حضورﷺ ورته اوفرمائيل، دا ګډې څنګه ده، ما عرض اوکړ دا ستاسو دَ ناستې او تکيه لږولو دَ پاره ده. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ دې تصويرونو جوړونکو ته به دَ قيامت په ورځ عذاب ورکولې شي، او ورته به وئيلې شي، تاسو چه کوم څيز جوړ کړې دې، هغه ژوندې کړئې، او ملائکې هغې کور کښې نهٔ داخليږي، چه هغې کښې تصويرونه وي.

۸۹۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ صَاحِبِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ الصُّوَرَةُ قَالَ بُسْرٌ ثُمَّ اشْتَكَى زَيْدٌ فَعُدْنَاهُ فَإِذَا عَلٰى بَابِهِ سِتْرٌ فِيهِ صُوَرَةٌ فَقُلْتُ لِعُبَيْدِ اللّٰهِ رَبِيبِ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَمْ يُخْبِرْنَا زَيْدٌ عَنِ الصُّوَرِ يَوْمَ الْأَوَّلِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ أَلَمْ تَسْمَعْهُ حِينَ قَالَ إِلَّا رَقْمًا فِي ثَوْبٍ وَّ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو هُوَ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَهُ بُكَيْرٌ حَدَّثَهُ بُسْرٌ

۸۹۸: قتيبه. ليث. بکير. بسر بن سعيد. زيد بن خالد. دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ صحابي ابو طلحهؓ نه روايت کوي دَ هغهٔ بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ملائکې هغې کور کښې نهٔ داخليږي چه هغې کښې تصويرونه وي. دَ بسر بيان دې، چه زيد ناروغه شو، نو مونږ دَ هغهٔ تپوس له ورغلو، دَ هغهٔ په دروازه مو يوه پرده آويزانده اوليده چه هغې کښې تصويرونه وو. ما عبيدالله ته چه دَ بي بي ميمونېؓ پرورده وو. اووې، آيا زيد په ورمبئې ورځ مونږ ته دَ تصويرونو متعلق خبر نهٔ وو راکړې، عبيدالله اووې. آيا تا دَ داسې کپړو نقش و نګار مستثني کړې نه وو آوريدلې. او ابن وهب بيان اوکړ، مونږ ته عمرو بن حارث په واسطه دَ بکير، بسر زيد بيان اوکړ، چه

حَدَّثَهُ زَيْدٌ حَدَّثَهُ اَبُوْ طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

هغهٔ ته ابو طلحه او هغه ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت اوكه.

## باب ۱ ۵۴: كَرَاهِيَةِ الصَّلٰوةِ فِي التَّصَاوِيْرِ.

## باب ۱ ۵۴: تصوير والـه كپړو كښې ذ مونځ كولو ذ كراهت بيان.

۸۹۹: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ قِرَامٌ لِعَآئِشَةَ سَتَرَتْ بِهٖ جَانِبَ بَيْتِهَا فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمِيْطِيْ عَنِّيْ فَاِنَّهٗ لَا تَزَالُ تَصَاوِيْرُهٗ تَعْرِضُ لِيْ فِيْ صَلٰوتِيْ.

۸۹۹: عمران بن ميسره. عبدالوارث. عبدالعزيز بن صهيب. انسؓ نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے. ذ بي بي عائشےؓ ذ كور يو طرف ته پرده وه، چه هغې آويزانده كړے وه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغې ته اوفرمائيل، دا خما نه لرے كړه، ځكه چه دا تصويرونه خما مونځ كښې خما مخې ته وي (يعني مخې مخې ته راتـه كيږي).

## باب ۲ ۵۴: لَا تَدْخُلُ الْمَلٰٓئِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ.

## باب ۲ ۵۴: فريښتې هغې كور كښې نهٔ داخليږي چه هغې كښې تصويرونه وي.

۹۰۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ وَعَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيْلُ فَرَاثَ عَلَيْهِ حَتَّى اشْتَدَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَقِيَهٗ فَشَكَا اِلَيْهِ مَا وَجَدَ فَقَالَ لَهٗ اِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ وَّلَا كَلْبٌ.

۹۰۰: يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمر بن محمد. سالم. ذ خپل پلار نه روايت كوي، جبرائيلؑ، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذ راتلو وعده كړے وه، ليكن هغه راتلو كښې تاخير اوكهٔ، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ډير تكليف شو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم بهرته تشريف راوړلو، او جبرائيلؑ سره ئے ملاقات اوشو. حضورؐ هغه ته تاخير سره ذ راتلو شكايت اوكهٔ، نو جبرائيلؑ ورته اووے، مونږ هغې كور كښې نهٔ داخليږو، چه هغې كښې تصويرونه وي، او نهٔ هغې كورته ورځو، چه هغې كښې سپي وي.

## باب ۵۴۳: مَنْ لَّمْ يَدْخُلْ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ.

## باب ۵۴۳: تصوير واله كور كښې ذ نهٔ داخليدو بيان.

۱۹۰۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيْهَا تَصَاوِيْرُ فَلَمَّا رَاٰهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَعَرَفْتُ فِيْ وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَاذَا اَذْنَبْتُ قَالَ مَا بَالُ هٰذِهِ النُّمْرُقَةِ فَقَالَتْ اشْتَرَيْتُهَا لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَ تَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ يُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ وَ قَالَ اِنَّ الْبَيْتَ الَّذِيْ فِيْهِ الصُّوَرُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ.

۱۹۰۱ : عبدالله بن مسلمه. مالک. نافع. قاسم بن محمد. ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ ټبر بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، ما يوه ګدۍ واخسته، چه هغې کښې تصويرونه وو، کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغه اوليده نو په دروازه اودريدلو، او دننه نے تشريف راونۀ ړلو، ماته ذَ حضورؐ ذَ مخ مبارک نه ذَ خفګان آثار معلوم شو. ما عرض اوکۀ (بي بي عائشه وائي) يا رسول الله، زۀ ذَ الله او رسول په بارګاه کښې توبه کوم. ما نه څۀ خطا شوې ده. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دا ګدئې څنګه ده. ما اووې ما دا ستاسو ذَ ناستې او تکيه لږولو ذَ پاره اخستې ده، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا تصويرونه جوړونکي به ذَ قيامت په ورځ په عذاب آخته کولے شي، او دوي ته به وئيلے شي، چه کوم څيز تاسو پيدا کړے دے، هغه ژوندے کړئې، او، وې فرمائيل، کوم کور کښې چه تصويرونه وي هغې کښې ملائکې نۀ داخليږي.

بَـــابُ ۵۴۴ : مَـــنْ لَـــعَـــنَ الْمُصَوِّرَ.

باب ۵۴۴ : تصوير جوړونکي باندې ذَ لعنت کونکي بيان.

۱۹۰۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ بْنِ اَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ اشْتَرٰى غُلَامًا حَجَّامًا فَقَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ وَ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ كَسْبِ الْبَغِيِّ وَ لَعَنَ اٰكِلَ الرِّبَا وَ مُوْكِلَهُ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ

۱۹۰۲ : محمد بن مثنٰي. غندر. شعبه. عون بن ابي جحيفه. ابو جحيفه نه روايت کوي. هغه يو غلام ښکر راښکونکے (وينه راښکونکے) واخست نو هغۀ اووې، چه نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ وينې ذَ قيمت، ذَ سپي ذَ قيمت، ذَ زناکارې ښځې ذَ ګټې نه منع فرمائيلے ده. او سود خوړونکي او خوړونکي او خال جوړونکي او وينځۀ لږونکي (خان لـه يا بل لـه) او تصوير جوړونکي باندې لعنت

وَالْمُصَوِّرِ.

کړے دے.

بَابٌ ۵۴۵: مَنْ صَوَّرَ صُوْرَةً كُلِّفَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَنْ يَّنْفُخَ فِيْهَا الرُّوْحَ وَ لَيْسَ بِنَافِخٍ.

باب ۵۴۵: کوم سړے چه د يو څيز تصوير جوړ کړي، نو دَ قيامت په ورځ به ورته وئيلے شي، چه دے کښې روح واچوه، او هغه به په کښې روح نشي اچولے.

۹۰۳: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ قَالَ سَمِعْتُ النَّضْرَ بْنَ اَنَسٍ بْنِ مَالِكٍ يُحَدِّثُ قَتَادَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ هُمْ يَسْأَلُوْنَهُ وَلَا يَذْكُرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى سُئِلَ فَقَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ صَوَّرَ صُوْرَةً فِي الدُّنْيَا كُلِّفَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَنْ يَنْفُخَ فِيْهَا الرُّوْحَ وَ لَيْسَ بِنَافِخٍ.

۹۰۳: عياض بن وليد. عبدالاعلي. سعيد. نضر بن انس بن مالک. قتاده نه روايت کوي. زهٔ ابن عباسؓ سره ووم، هغه وخت خلقو دَ هغهٔ نه تپوسونه کول، او دَ نبي صلي الله عليه وسلّم ذکر ئے نهٔ کولو، تردے چه دَ هغهٔ نه تپوس اوشو، نو وئيلے ما دَ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چا چه دُنيا کښې دَ يو څيز تصوير جوړ کهٔ، نو دَ قيامت په ورځ به ورته تکليف ورکولے شي، چه دے کښې روح واچوه، او هغه به په کښې روح نشي اچولے.

بَابٌ ۵۴۶: اَلْاِرْتِدَافِ عَلَى الدَّابَّةِ.

باب ۵۴۶: په سورلئ چا پسے ورستو دَ ناستے بيان.

۹۰۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَفْوَانَ عَنْ يُوْنُسَ بْنِ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلٰى حِمَارٍ عَلٰى اِكَافٍ عَلَيْهِ قَطِيْفَةٌ فَدَكِيَّةٌ وَ اَرْدَفَ اُسَامَةَ وَرَآءَهٗ.

۹۰۴: قتيبه. ابو صفوان. يونس بن يزيد. ابن شهاب. عروه. حضرت اسامه بن زيدؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په يو خر باندے سور شولو. او په هغے دَ فدک جوړ څادر وو. او ورستو ئے څان پسے اسامه کينولے وو.

بَابٌ ۵۴۷: الثَّلٰثَةِ عَلَى الدَّآبَّةِ.

باب ۵۴۷: په سورلئ دَ درے سړو دَ ناستے بيان.

۹۰۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۹۰۵: مسدد. يزيد بن زريع. خالد. عکرمه.

يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ اسْتَقْبَلَهُ أُغَيْلِمَةُ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَحَمَلَ وَاحِدًا بَيْنَ يَدَيْهِ وَالْآخَرَ خَلْفَهُ.

حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم مکے ته تشريف راوړلو، نو ذ بني عبدالمطلب نو عمر هلکان ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ استقبال ذ پاره راووتل، نو يو، ئے خپل مخکښ او بل ئے خپل ورستو کينولو.

بَابٌ ۵۴۸: حَمْلِ صَاحِبِ الدَّآبَّةِ غَيْرَهُ بَيْنَ يَدَيْهِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ صَاحِبُ الدَّآبَّةِ اَحَقُّ بِصَدْرِ الدَّآبَّةِ اِلَّا اَنْ يَأْذَنَ لَهُ.

باب ۵۴۸: ذ سورلئ ذ مالک ذ ځان نه علاوه بل څوک خپل مخکښ کينول بعضو اووے، ذ سورلي مالک مخکښ ذ ناستے زيات مستحق دے، خو دا چه هغه ذ دے چاته اجازت ورکړي.

۹۰۶: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوبُ ذُكِرَ الْاَشَرُّ الثَّلٰثَةِ عِنْدَ عِكْرِمَةَ فَقَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَتَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ حَمَلَ قُثَمَ بَيْنَ يَدَيْهِ وَالْفَضْلَ خَلْفَهُ اَوْ قُثَمَ خَلْفَهُ وَالْفَضْلَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَاَيُّهُمْ شَرٌّ اَوْ اَيُّهُمْ خَيْرٌ.

۹۰۶: محمد بن بشار. عبدالوهاب. ايوب نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے. عکرمه سره نزدے چا اووے، چه ذ درے سړو په سورلي کيناستل بدترينه خبره[۱] ده. نو ابن عباسؓ اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپل مخکښ قُثم او خپل ورستو فضل کينولو. يا قُثم ئے خپل شاته او فضل ئے خپلے مخے ته سور کړے وو نو دے کښ کوم ښهٔ دے، او کوم خراب دے.

۱. مطلب دادے چه په يوے سورلئ باندے د دريو سړو په يو ځائے کينولو ممانعت صرف په دے وجے سره دے چه په ځناور باندے د هغهٔ د طاقت نه زيات بار وانهٔ چولے شي. اوس دا په حالاتو باندے موقوفه ده چه په کوم ځناور باندے څومره کسان کيناستے شي. که چرے يو ځناور د يو سړي بار هم نشي اوچتولے نو د يو کس کيناستل هم په هغه باندے ممنوع دي.

بَابٌ ۵۴۹: اِرْدَافِ الرَّجُلِ خَلْفَ الرَّجُلِ.

باب ۵۴۹: په سورلي ذ يو سړي، په بل سړي پسے ورستو ذ ناستے بيان.

۹۰۷: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ

۹۰۷: هدبه بن خالد. همام. قتاده. انس بن مالک. معاذ بن جبلؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، زهٔ نبي صلي الله عليه وسلّم پسے ورستو سور ووم، ځما او

بَيْنَا اَنَا رَدِيْفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ اِلَّا اٰخِرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ قُلْتُ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ اَنْ يَّعْبُدُوْهُ وَلَا يُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ فَقَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اِذَا فَعَلُوْهُ قُلْتُ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اَنْ لَّا يُعَذِّبَهُمْ.

دَ حضورؐ مینځ کښ دَ کټے (پالان) دَ ډنډوے نه سِوا نور هیڅ څیز حائل نهٔ وو. حضورؐ اوفرمائیل، اے معاذ، ما عرض اوکهٔ، لبیک رسول اللّٰه و سعدیک. بیا لږ ساعت روان شولو، او وے فرمائیل، اے معاذ، ما اووے، لبیک رسول اللّٰه و سعدیک. بیا لږ ساعت روان شو، او وے فرمائیل، اے معاذ، ما اووے، لبیک رسول اللّٰه و سعدیک. حضورؐ اوفرمائیل، تاته معلومه ده، چه دَ اللّٰه په خپل بنده څهٔ حق دے. ما اووے، اللّٰه او دَ هغهٔ رسول ښهٔ پوهیږي. حضورؐ اوفرمائیل، دَ اللّٰه حق په بنده دے، چه دَ هغهٔ عبادت اوکړي، او هغهٔ سره څوک شریک جوړ نهٔ کړي. بیا لږ ساعت روان شو، اووے فرمائیل، اے معاذ بن جبل، ما عرض اوکهٔ، لبیک رسول اللّٰه و سعدیک. حضورؐ اوفرمائیل، تاته معلومه ده، دَ بنده په اللّٰه څهٔ حق دے، هر کله چه هغه دا کار اوکړي. ما اووے، اللّٰه او دَ هغهٔ رسول ښهٔ پوهیږي. حضورؐ اوفرمائیل، دَ بنده حق په اللّٰه دادے، چه عذاب ورنهٔ کړي.

**بـاب ۵۵۰: اِرْدَافِ الْمَرْاَةِ خَلْفَ الرَّجُلِ.**

**باب ۵۵۰: په سورلي دَ ښځے، سړي پسے ورستو ناسته.**

۹۰۸: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى ابْنُ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ اَقْبَلْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَيْبَرَ وَ اِنِّيْ لَرَدِيْفُ اَبِيْ طَلْحَةَ وَهُوَ يَسِيْرُ وَ بَعْضُ نِسَاءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۹۰۸: حسن بن محمد بن صباح. یحیٰي بن عباد. شعبه. یحیٰي بن ابي اسحٰق. انس بن مالک نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے، مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره دَ خیبر نه واپس راتلو، او زهٔ ابو طلحه پسے ورستو ناست ووم. او دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یوه بي بيؓ حضورؐ پسے ورستو ناسته وه، ناساپه اوښه اوخویدله او ما اووے، ښځه، ښځه. او دَ سورلي نه راکوز شوم،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدِيْفُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ عَثَرَتِ النَّاقَةُ فَقُلْتُ الْمَرْاَةَ فَنَزَلْتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهَا اُمُّكُمْ فَشَدَدْتُ الرَّحْلَ وَ رَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا دَنَا اَوْ رَاَى الْمَدِيْنَةَ قَالَ اٰئِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، دا ستاسو مور ده. بيا ما سورلي كس كړله. او رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته قريب اورسيدلو يا دا بيان ئے اوكه، چه مدينه شريفه ئے اوليده، نو وے فرمائيل: ائبون. تائبون لربنا حامدون (واپس كيدونكے يو، توبه كونكے يُو. عبادت كونكے يُو. دَ خپل رب حمد كونكے يُو).

باب ۱۵۵: اَلْاِسْتِلْقَاءِ وَ وَضْعِ الرِّجْلِ عَلَى الْاُخْرٰى.

باب ۱۵۵: سمدم ملاسته او يوه پښه په بله دَ ايښودلو بيان.

۹۰۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ اَنَّهٗ اَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْطَجِعُ فِي الْمَسْجِدِ رَافِعًا اِحْدٰى رِجْلَيْهِ عَلَى الْاُخْرٰى.

۹۰۹: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. عباد بن تميم. دَ خپل ترهٔ (چچا) نه روايت كوي، هغهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم جمات كښې ملاست اوليد (داسے حال كښې) چه حضور صلي الله عليه وسلّم يوه پښه په بله پښه اچولے وه.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## كِتَابُ الْاَدَبِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## دَ ادب بيان

باب ۵۵۲: وَ وَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا.

باب ۵۵۲: دَ الله تعالىٰ فرمان چه مونږ انسان ته دَ مور پلار متعلق نصيحت اوكهٔ.

۹۱۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ الْوَلِيْدُ بْنُ عَيْزَارٍ اَخْبَرَنِيْ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا عَمْرٍو الشَّيْبَانِيَّ يَقُوْلُ اَخْبَرَنَا صَاحِبُ هٰذِهِ الدَّارِ وَ اَوْمَاَ بِيَدِهٖ اِلٰى دَارِ عَبْدِ اللّٰهِ

۹۱۰: ابوالوليد. شعبه. وليد بن عيزار. ابو عمرو شيباني دَ عبدالله كور ته اشاره كولو سره اووے، دَ دے كور مالك ماته بيان اوكهٔ ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوكهٔ چه كوم عمل دَ الله په نزد زيات محبوب دے حضورؐ اوفرمائيل مونځ په خپل وخت، ما

قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْعَمَلِ اَحَبُّ اِلَى اللّٰهِ قَالَ الصَّلٰوةُ عَلٰى وَقْتِهَا قَالَ ثُمَّ اَيُّ قَالَ ثُمَّ بِرُّ الْوَالِدَيْنِ قَالَ ثُمَّ اَيُّ قَالَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ بِهِنَّ وَلَوِ اسْتَزَدْتُهٗ لَزَادَنِيْ.

تپوس اوکړ بيا کوم عمل مور پلار سره ښه سلوک. تپوس مِ اوکړ، بيا کوم عمل، حضورؐ اوفرمائيل، دَ الله په لار کښې جهاد (غزا) کول. هغهٔ اووے ماته ئے دا ټول بيان کړل، که ما دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه دَ دے نه زيات تپوس کولے، نو هغه به ئے هم راته بيان فرمائيلے وو.

باب ۵۵۳: مَنْ اَحَقُّ النَّاسِ بِحُسْنِ الصُّحْبَةِ.

باب ۵۵۳: دَ ښهٔ سلوک دَ ټولونه زيات مستحق څوک دے.

۹۱۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ شُبْرُمَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَحَقُّ بِحُسْنِ صَحَابَتِيْ قَالَ اُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ اُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ اَبُوْكَ وَ قَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ وَ يَحْيَى ابْنُ اَيُّوْبَ حَدَّثَنَا اَبُوْ زُرْعَةَ مِثْلَهٗ.

۹۱۱: قتيبه بن سعيد. جرير. عماره بن قعقاع بن شبرمه. ابو زرعه. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے، يو سړے دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئے اوکړ، يا رسول الله، څما دَ ښهٔ سلوک زيات مستحق څوک دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل ستا مور. عرض ئے اوکړ، بيا څوک. حضورؐ ورته اوفرمائيل، ستا مور. تپوس ئے اوکړ، بيا څوک، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ستا مور. تپوس ئے اوکړ، بيا څوک، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ستا پلار. او ابن شبرمه او يحيٰي بن ايوب بيان اوکړ، چه ابو زرعه مونږ ته دغسے روايت اوکړ.

باب ۵۵۴: لَا يُجَاهِدُ اِلَّا بِاِذْنِ الْاَبَوَيْنِ.

باب ۵۵۴: دَ مور پلار دَ اجازت نه بغير دے جهاد نهٔ کوي.

۹۱۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ وَ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا حَبِيْبٌ ح قَالَ وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْعَبَّاسِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ

۹۱۲: مسدد. يحيٰي. سفيان او شعبه. حبيب. ح. (دويم سند) محمد بن کثير. سفيان. حبيب. ابو العباس. عبدالله بن عمرو نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. يو سړي دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوکړ، آيا زهٔ جهاد اوکړم. حضورؐ ترے تپوس اوکړ،

عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُجَاهِدُ قَالَ لَكَ أَبَوَانِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ.

آيا ستا مور پلار شته. هغهٔ اووے. او. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تهٔ دے دواړو کښې جهاد کوه. (يعني خدمت ئے کوه).

باب ۵۵۵: لَا يَسُبُّ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ.

باب ۵۵۵: هيڅوک دے خپل مور پلار ته کنځل نهٔ کوي.

۹۱۳: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍوؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ أَنْ يَّلْعَنَ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ قِيلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ كَيْفَ يَلْعَنُ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ قَالَ يَسُبُّ الرَّجُلُ أَبَا الرَّجُلِ فَيَسُبُّ أَبَاهُ وَ يَسُبُّ أُمَّهُ فَيَسُبُّ أُمَّهُ.

۹۱۳: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. سعد. حميد بن عبدالرحمٰن. عبدالله بن عمرو نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ ټولونه لويه ګناه داده، چه څوک خپل مور پلار باندے لعنت اووائي، چا عرض اوکهٔ، يا رسول الله، په مور پلار څنګه لعنت وئيلے شي. حضورؐ ورته اوفرمائيل چه سړے ذ بل مور پلار ته کنځل اوکړي، نو هغه به ددهٔ مور او پلار ته کنځل اوکړي.

باب ۵۵۶: إِجَابَةِ دُعَاءِ مَنْ بَرَّ وَالِدَيْهِ.

باب ۵۵۶: ذ هغه ذ دُعا ذ قبليدو بيان چه خپل مور پلار سره ښهٔ سلوک اوکړي.

۹۱۴: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ إِبْرٰهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا ثَلٰثَةُ نَفَرٍ يَّتَمَاشَوْنَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ فَمَالُوا إِلَى غَارٍ فِي الْجَبَلِ فَانْحَطَّتْ عَلٰى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِّنَ الْجَبَلِ

۹۱۴: سعيد بن ابي مريم. اسمٰعيل بن ابراهيم بن عقبه. نافع. ابن عمر. رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل درے سړي روان وو، هغوي باران راګير کړل، نو ذ غر په يو غار کښې پناه اخستو ذ پاره ورننوتل، ذ غار په خوله يو چټان (ګټ) راوغرځيدلو، هغے سره ذ غار خوله بنده شوه، نو هغوي يو بل ته اووے، تاسو په خپلو نيکو کارونو غور اوکړئے کوم چه تاسو الله ذ پاره کړے دي. او ذ هغے په واسطه ذ الله نه دُعا اوغواړے، اُميد دے، چه الله دا ګټ لرے

فَاَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اُنْظُرُوْا اَعْمَالاً عَمِلْتُمُوْهَا لِلّٰهِ فَقَالَ اَحَدُهُمْ اَللّٰهُمَّ اِنَّهٗ كَانَ لِيْ وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيْرَانِ وَلِيْ صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ اَرْعٰى عَلَيْهِمْ فَاِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ فَحَلَبْتُ بَدَأْتُ بِوَالِدَيَّ اَسْقِيْهِمَا قَبْلَ وَلَدِيْ وَ اِنَّهٗ نَاٰبِيَ الشَّجَرُ فَمَا اَتَيْتُ حَتّٰى اَمْسَيْتُ فَوَجَدْتُّهُمَا قَدْ نَامَا فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ اَحْلِبُ فَجِئْتُ بِالْحِلَابِ فَقُمْتُ عِنْدَ رُءُوْسِهِمَا اَكْرَهُ اَنْ اُوْقِظَهُمَا مِنْ نَّوْمِهِمَا وَ اَكْرَهُ اَنْ اَبْدَاَ بِالصِّبْيَةِ قَبْلَهُمَا وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمَيَّ فَلَمْ يَزَلْ ذٰلِكَ دَاْبِيْ وَ دَاْبُهُمْ حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرٰى مِنْهَا السَّمَآءَ فَفَرَجَ اللّٰهُ لَهُمْ فُرْجَةً نَرٰى مِنْهَا السَّمَآءَ فَفَرَجَ اللّٰهُ لَهُمْ فُرْجَةً حَتّٰى يَرَوْنَ مِنْهَا السَّمَآءَ وَ قَالَ الثَّانِيْ اِنَّهٗ كَانَتْ لِيْ اِبْنَةُ عَمٍّ اُحِبُّهَا كَاَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَآءَ فَطَلَبْتُ اِلَيْهَا نَفْسَهَا فَاَبَتْ حَتّٰى اٰتِيَهَا بِمِائَةِ دِيْنَارٍ فَسَعَيْتُ حَتّٰى جَمَعْتُ

کړي، نو هغوي کښې يو کَس اووې يا اللّٰه، ځما مور پلار بوډاګان وو. او ځما واړهٔ بچي هم وو. ما به هغوي دَ پاره څاروي څرول، چه ماښام به کورته واپس راغلم، نو هغه څاروي (چيلۍ ګډې وغيره) به مِ لوشل، او دَ خپلو بچونه مخکښې به مِ مور پلار له پئې ورکول، يو ورځ ځنګل کښې لرې څرولو دَ پاره تلې ووم. واپسي کښې ماښام شو. کوم وخت چه راغلم، نو هغوي دواړه اُودهٔ شوې وو. ما حسب دستور څاروي اُولشل پئې مِ ورله راوړل، او دَ هغوي سرته اودريدم، ما دا نهٔ خوښولهٔ چه هغوي دَ خوب نه رابيدار کړم. او دا هم راته بله ښکاريده، چه اول خپلو بچو له ورکړم، حالانکه بچي ځما پښو کښې لُوغړيدل. سحر ختو پورې ځما او دَ بچو دغه حال وو. (يا اللّٰه) تاته معلومه ده، که ما دا عمل صرف ستا دَ رضا په خاطر کړې وي، نو دا ګټ لږ لرې کړې، چه آسمان راته په نظر راشي، نو اللّٰه تعالٰي هغه ګټ څهٔ قدرې اخوا کړلو، تردې چه هغوي ته آسمان په نظر راغې. او دوئم سړي اووې، يا اللّٰه ځما دَ ترهٔ يوه لُور وه، ځما هغه ډيره خوښه وه، څومره چه سړي ښځو سره محبت کوي، نو ما دَ هغې نه نفس طلب کهٔ (يعني چه خپل ځان ماله حواله کړي) ليکن هغې انکار اوکړلو، خو دا چه زهٔ هغې له سل ديناره راوړم. ما محنت مزدوري اوکړله، تردې چه سل ديناره مِ جمع کړل، ما ورله هغه راوړل، خو کوم وخت چه زهٔ دَ هغې دَ دوو پښو مينځ کښې کيناستم، نو هغې اووې، اې دَ خدائې بنده، دَ خدائې نه اويريږه. او مُهر مهٔ ماتوه. دې آوريدو سره زهٔ اودريدم، يا اللّٰه، تاته معلومه ده، که دا عمل ما صرف ستا

مِائَةَ دِيْنَارٍ فَلَقِيْتُهَا بِهَا فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا قَالَتْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَفْتَحِ الْخَاتَمَ فَقُمْتُ عَنْهَا اَللّٰهُمَّ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ قَدْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا مِنْهَا فَفَرَّجَ لَهُمْ فُرْجَةً وَ قَالَ الْاٰخَرُ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ اَجِيْرًا بِفَرَقِ اَرُزٍّ فَلَمَّا قَضٰى عَمَلَهُ قَالَ اَعْطِنِيْ حَقِّيْ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ فَتَرَكَهُ وَ رَغِبَ عَنْهُ فَلَمْ اَزَلْ اَزْرَعُهُ حَتّٰى جَمَعْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَرَاعِيَهَا فَجَآءَنِيْ فَقَالَ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَظْلِمْنِيْ وَ اَعْطِنِيْ حَقِّيْ فَقُلْتُ اذْهَبْ اِلٰى ذٰلِكَ الْبَقَرِ وَ رَاعِيْهَا فَقَالَ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَهْزَأْ بِيْ فَقُلْتُ اِنِّيْ لَا اَهْزَأُ بِكَ فَخُذْ ذٰلِكَ الْبَقَرَ وَ رَاعِيَهَا فَاَخَذَهُ فَانْطَلَقَ بِهَا فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ مَا بَقِيَ فَفَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

دَ خوشحالولو دَ پاره کړے وي' نو دا کټ مونږ نه لرے کړے' نو الله تعالیٰ ترے هغه کټ لږ شان لرے کړلو. هغے دریم سړي اووے' یا الله' ما په یو فرق (پیمانه) وروژو (چاول) مزدور په کار اولږولو. کوم وخت چه هغهٔ کار پوره کهٔ' نو هغهٔ اووے' خما حق را کړه' ما هغهٔ ته دَ هغهٔ مزدوري ورکړه' لیکن هغه پریښوده. او آخستلو نه ئے انکار اوکړلو. او هغے ته ئے رغبت اونه کړو. تردے چه ما په هغے ښاروي او ګوارچي یو ځائے کړل (یعني کیده کیده' ډیر ښاروي شو. او ګوارچي م هم ورله اوساتلو) هغه ماله راغے' او وئیلے' الله نه اویریږه' او په ما ظلم مهٔ کوه. او ما له خپل حق را کړه. ما ورته اووے. دغے ښاروو او ګوارچي له ورشه (او دا ټول واخله' دا ستا په مال شوے دي) هغهٔ اووے' الله نه اویریږه' او ما سره ټوقے مهٔ کوه. ما ورته اووے' زهٔ تاسره ټوقے نهٔ کوم. دا څناور او ګوارچي واخله. هغه ټول واخستل او لاړلو' نو اے الله' تاته معلومه ده' که دا کار ما صرف ستا دَ رضا په خاطر کړے وي نو باقي حصه کټ هم لرے کړے' نو الله تعالیٰ هغه کټ لرے کړلو.

ف: نيکي اُوبه هم نهٔ اُوړي.

بَابُ ۵۵۷: عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ مِنَ الْكَبَائِرِ.

باب ۵۵۷: دَ مور پلار نافرماني لويه ګناه (ګناه کبيره) ده.

۵۹۱۵: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ وَرَّادٍ عَنِ الْمُغِيْرَةِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۵۹۱۵: سعد بن حفص. شيبان. منصور. مسيب. وراد. مغيره. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله په تاسو دَ ميندو

إِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْاُمَّهَاتِ وَ مَنْعَ وَ هَاتِ وَ وَأْدَ الْبَنَاتِ وَ كَرِهَ لَكُمْ قِيْلَ وَ قَالَ وَ كَثْرَةَ السُّوَالِ وَ اِضَاعَةَ الْمَالِ.

نافرماني، حقدارانو حق نهٔ ادا کول، او لونړه ژوندۍ ښخول حرام کړې دي او تاسو ذ پاره ئې قيل او قال، ذ سوال زياتې او ذ مال ضائع کول مکروه ګرځولې دي.

ف: قيل و قال: بحث. تکرار.

۹۱۶: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدُ الْوَاسِطِيُّ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُنَبِّئُكُمْ بِاَكْبَرِ الْكَبَائِرِ قُلْنَا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ وَ كَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ اَلَا وَ قَوْلُ الزُّوْرِ وَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ فَمَا زَالَ يَقُوْلُهَا حَتّٰى قُلْتُ لَا يَسْكُتُ.

۹۱۶: اسحاق. خالد واسطي. جريري. عبدالرحمٰن بن ابي بکر. ابوبکرؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا زهٔ تاسو ته ذ تولونه لويه ګناه اونهٔ ښايم. مونږ خلقو عرض اوکړ، او، اوښائې، يا رسول اللّٰه، حضورؐ اوفرمائيل، اللّٰه سره شرک کول، ذ مور پلار نافرماني کول، دغه وخت حضورؐ تکيه لږولې وه. بيا کيناستلو. او، وې فرمائيل، واورئې، دروغ وئيل، او ذ دروغې ګواهي کول. واورئې، دروغ وئيل او ذ دروغې ګواهي کول. دغه شان حضورؐ په بيا بيا فرمائيل، تردې چه مونږ اووې، چه حضورؐ به خاموش نهٔ شي.

۹۱۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ ذَكَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَبَائِرَ اَوْ سُئِلَ عَنِ الْكَبَائِرِ فَقَالَ الشِّرْكُ بِاللّٰهِ وَ قَتْلُ النَّفْسِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ فَقَالَ اَلَا اُنَبِّئُكُمْ بِاَكْبَرِ الْكَبَائِرِ قَالَ قَوْلُ الزُّوْرِ اَوْ قَالَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ قَالَ شُعْبَةُ وَ اَكْثَرُ ظَنِّيْ

۹۱۷: محمد بن وليد. محمد بن جعفر. شعبه. عبيداللّٰه بن ابي بکر. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ ګناه کبيره ذکر اوفرمائيلو. يا ذ حضورؐ نه ذ کبيره (لويو) ګناهونو متعلق تپوس اوشو، حضورؐ اوفرمائيل، اللّٰه تعالي سره شرک کول، څوک په ناحقه قتلول، ذ مور پلار نافرماني کول. بيائې اوفرمائيل، آيا زهٔ تاسو ته ذ تولونه لويه ګناه اونهٔ ښايم. وې فرمائيل، دروغ وئيل، يا ذ دروغې ګواهي کول، شعبه اووې، ځما غالب ګمان دادې، چه حضورؐ ذ دروغو ګواهي کول

اَنَّهُ قَالَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ.

اوفرمائيل.

بَـــاب۵۵۸: صِـلَـةِ الْـوَالِـدِ الْمُشْرِكِ.

باب۵۵۸: مشرک پلار سره دَ صله رحمي بيان.

۹۱۸: حَـدَّثَـنَـا الْحُـمَيْـدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَنِـيْ اَبِـيْ اَخْبَرَتْنِيْ اَسْمَآءُ اِبْنَةُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ اَتَتْنِيْ اُمِّيْ رَاغِبَةً فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصِلُهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى فِيْهَا لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ.

۹۱۸: حميدي. سفيان. هشام بن عروه. عروه. اسماء بنت ابوبكرؓ نه روايت كوي ماته خما مور چه مسلمانه نهٔ وه، دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښ راغله، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكهٔ، آيا زهٔ دے سره صله رحمي اوكرم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل او، دَ ابن عيينه بيان دے، اللّٰه دَ هغې باره كښ دا آيت نازل كړلو: لا ينهاكم اللّٰه الخ: يعني اللّٰه پاک تاسو هغے خلقو سره دَ صله رحمي كولو نه، نهٔ منع كوي چه تاسو سره دين كښ جنگ نهٔ كوي.

ف: صله رحمي: خپلو خپلوانو سره نيک سلوک كول.

باب۵۵۹: صَلَةِ الْمَرْأَةِ اُمَّهَا وَلَهَا زَوْجٌ. وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَ قَدِمَتْ اُمِّيْ وَ هِيَ مُشْرِكَةٌ فِيْ عَهْدِ قُرَيْشٍ وَ مُدَّتِهِمْ اِذْ عَاهَدُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَبِيْهَا فَاسْتَفْتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اِنَّ اُمِّيْ قَدِمَتْ وَ هِيَ رَاغِبَةٌ قَالَ نَعَمْ صِلِيْ اُمَّكِ.

باب۵۵۹: دَ ښځے خپلے مور سره دَ ښهٔ سلوک كولو بيان. هر كله چه دَ هغې خاوند هم وي. او ليث اووے، ماته هشام په واسطه دَ عروه، دَ اسماءؓ قول نقل كهٔ، هغه زمانه كښ چه قريشو، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره معاهده كړے وه، خما مشركه مور خپل پلار سره راغله. ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكهٔ، خما مور راغلے ده، او هغه مشركه ده، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خپلے مور سره ښهٔ سلوک اوكړه.

۹۱۹: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ

۹۱۹: يحيٰي. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت كوي، هغه ته ابوسفيان اووے، چه

اللّٰهِ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ اَخْبَرَهُ اَنَّ هِرَقْلَ اَرْسَلَ اِلَيْهِ فَقَالَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِالصَّلٰوةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْعَفَافِ وَالصِّلَةِ.

هرقل هغه راوغبنتلو' (دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم متعلق ئے تپوسونه اوکړل) نو هغهٔ ورته اووے چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته دَ مونځ' صدقے' پاکدامنئ او صله رحمئ حکم راکوي.

## بَابُ ٥٦٠ : صِلَةِ الْاَخِ الْمُشْرِكِ.

## باب ٥٦٠ : مشرک ورور سره د صله رحمي کولو بيان.

٩٢٠ : حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ رَاٰى عُمَرُ حُلَّةَ سِيَرَآءَ تُبَاعُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ابْتَعْ هٰذِهٖ وَالْبَسْهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ اِذَا جَآءَكَ الْوُفُودُ قَالَ اِنَّمَا يَلْبَسُ هٰذِهٖ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهُ فَاُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا بِحُلَلٍ فَاَرْسَلَ اِلٰى عُمَرَ بِحُلَّةٍ فَقَالَ كَيْفَ اَلْبَسُهَا وَقَدْ قُلْتَ فِيهَا مَا قُلْتَ قَالَ اِنِّي لَمْ اُعْطِكَهَا لِتَلْبَسَهَا وَلٰكِنْ تَبِيعُهَا اَوْ تَكْسُوهَا فَاَرْسَلَ بِهَا عُمَرُ اِلٰى اَخٍ لَّهُ مِنْ اَهْلِ مَكَّةَ قَبْلَ اَنْ يُّسْلِمَ.

٩٢٠ : موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالعزيز بن مسلم. عبداللّٰه بن دينار. ابن عمرؓ نه روايت کوي' حضرت عمرؓ يوه ريښمينه چُغه اوليده چه خرڅيده' نو وئيلے' يا رسول اللّٰه' تاسوَّ دا واخلئے' او دَ جُمعے په ورځ او دَ وفد راتلو په ورځ ئے اغوندئے. حضورؐ ورته اوفرمائيل' دا هغه څوک اغوندي' چه دَ هغهٔ آخرت کښې څهٔ حصه نهٔ وي. يو ځلے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له څو چُغے راغلے' نويوه چغه ئے حضرت عمرؓ ته اوليږله' حضرت عمرؓ عرض اوکهٔ' زهٔ دا څنګه اغستلے شم' هر کله چه تاسوَّ دے باره کښې داسے فرمائيلے دي. حضورؐ ورته اوفرمائيل' ما دا اغستلو دَ پاره نهٔ ده درليږلے' خو دے دَ پاره چه يا دا خرڅه کړه يا بل چاته ئے واغندوه' نو حضرت عمرؓ هغه خپل ورور ته اوليږله' چه دَ اهل مکه نه وو' او اسلام ئے لا نه وو راوړلے.

## بَابُ ٥٦١ : فَضْلِ صِلَةِ الرَّحِمِ.

## باب ٥٦١ : دَ صله رحمي دَ فضيلت بيان.

٩٢١ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُوسَى بْنَ طَلْحَةَ عَنْ

٩٢١ : ابوالوليد. شعبه. ابن عثمان. موسٰي بن طلحه. ابو ايوب نه روايت کوي' دَ هغه بيان دے. چا عرض اوکه' يا رسول اللّٰه'

اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِيْ الْجَنَّةَ. ح وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا بَهْزٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ وَ اَبُوْهُ عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُمَا سَمِعَا مُوْسَى بْنَ طَلْحَةَ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ رضی اللہ عنہ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِيْ الْجَنَّةَ فَقَالَ الْقَوْمُ مَالَهُ مَالَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَبٌ مَالَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْبُدُ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا وَ تُقِيْمُ الصَّلٰوةَ وَ تُؤْتِي الزَّكٰوةَ وَ تَصِلُ الرَّحِمَ ذَرْهَا قَالَ كَاَنَّهُ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ.

ماته داسې عمل اوښائې چه ما جنت کښې دخل کړي ما ته عبدالرحمٰن بيان اوکۀ چه مونږ ته بهز، هغۀ ذَ شعبه نه، شعبه ذَ ابن عثمان بن عبدالله بن موهب او عثمان بن عبدالله نه او دې دواړو ذَ موسٰي بن طلحه نه واوريدل، هغۀ ذَ حضرت ابو ايوب انصاريؓ نه روايت اوکۀ چه يو سړي عرض اوکۀ، ماته داسې عمل اوښائې چه ما جنت کښې داخل کړي. خلقو اووې، څۀ دي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دۀ ته يو ضرورت دې. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم هغۀ ته اوفرمائيل، ذَ الله عبادت کوه، هغۀ سره څوک شريک مۀ جوړوه، مونځ کوه، زکوٰة ورکوه، او صله رحمي کوه، اوس سورلي پريګده. ذَ راوي بيان دې، چه ګويا هغه په سورلي وو. (الله پاک دې مونږ هم په دې هداياتو قائم او دائم لري. اللّٰهم آمين).

**باب ۵۶۲ : اِثْمِ الْقَاطِعِ.**

**باب ۵۶۲ : ذَ قطع رحم بيان.**

**۹۲۲ :** حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ اِنَّ جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ.

**۹۲۲ :** يحيٰي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. محمد بن جبير بن مطعم. جبير بن مطعم نه روايت کوي، ذَ هغۀ بيان دې، ما ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، رحم قطع کونکې به جنت کښې داخل نشي.

**باب ۵۶۳ : مَنْ بُسِطَ لَهٗ فِي الرِّزْقِ لِصِلَةِ الرَّحِمِ.**

**باب ۵۶۳ : ذَ صله رحمي په سبب رزق کښې ذَ فراخي بيان.**

**۹۲۳ :** حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ مَعْنٍ قَالَ

**۹۲۳ :** ابراهيم بن منذر. محمد بن معن. ابو سعيد بن ابو سعيد. حضرت ابوهريرهؓ نه

حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يُّبْسَطَ لَهٗ فِيْ رِزْقِهٖ وَ اَنْ يُّنْسَاَلَهٗ فِيْ اَثَرِهٖ فَلْيَصِلْ رَحِمَهٗ.

روايت كوي، ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، ذ كوم سړي چه دا خوښه وي چه ذ هغهٔ رزق كښ دے فراخي وي، ذ هغهٔ عمر دے اوږد وي، نو هغهٔ له پكار دي، چه هغه صله رحمي كوي.

۹۲۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّبْسَطَ لَهٗ فِيْ رِزْقِهٖ وَ يُنْسَاَ لَهٗ فِيْ اَثَرِهٖ فَلْيَصِلْ رَحِمَهٗ.

۹۲۴ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كوم سړے چه ذ رزق فراخي او اوږد عمر غواړي، هغهٔ له پكار دي، چه صله رحمي كوي.

## باب ۵٦۴ : مَنْ وَصَلَ وَصَلَهُ اللّٰهُ.

## باب ۵٦۴ : څوک چه صله رحمي كوي، اللّٰه هغهٔ سره يوځائے كيږي.

۹۲۵ : حَدَّثَنِيْ بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ مُزَرِّدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَمِّيْ سَعِيْدَ بْنَ يَسَارٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ الْخَلْقَ حَتّٰى اِذَا فَرَغَ مِنْ خَلْقِهٖ قَالَتِ الرَّحِمُ هٰذَا مُقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيْعَةِ قَالَ نَعَمْ اَمَا تَرْضَيْنَ اَنْ اَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ وَ اَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلٰى يَا رَبِّ قَالَ فَهُوَ لَكِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ

۹۲۵ : بشر بن محمد. عبداللّٰه. معاويه بن ابي مزرد. سعيد بن يسار. ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل اللّٰه تعالٰي ټول مخلوق پيدا كړلو، تردے چه كوم وخت ذ پيدا كولو نه فارغ شو، نو رشته داري عرض اوكهٔ چه دا ذ هغے سړي مقام دے، چه ذ قطع رحم نه ستا پناه اوغواړي، اللّٰه تعالٰي ورته اوفرمائيل آيا تهٔ دا نهٔ غواړے، چه زهٔ هغے چا سره يوځائے شم، څوک چه تاسره يوځائے شي، او ذ هغے چا نه قطع رحم اوكړم، څوک چه تاسره قطع اوكړي رشته داري عرض اوكهٔ، او. اے خما پروردګاره. نو خدائے تعالٰي ورته اوفرمائيل، بس دا (مقام) تاته حاصل دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كه تاسو

عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَ تُقَطِّعُوْا اَرْحَامَكُمْ.

غواړے' نو (په دے حقله) دا آيت اولولے: فهل عسيتم ان توليتم ان تفسدوا في الارض و تقطعوا ارحامكم.

۹۲۶: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الرَّحِمَ شُجْنَةٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ اللّٰهُ مَنْ وَصَلَكِ وَ صَلْتُهُ وَ مَنْ قَطَعَكِ قَطَعْتُهُ.

۹۲۶: خالد بن مخلد. سليمان. عبدالله بن دينار. ابو صالح. ابوهريرةؓ' نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي' حضورؐ اوفرمائيل' چه رحم (رشته داري) رحمٰن سره يوځائے شوے دے. الله تعالي اوفرمائيل' څوک چه تا سره يوځائے شي' زهٔ هغهٔ سره يوځائے كيږم او څوک چه تاسره تعلق قطع كړي زهٔ هغهٔ سره تعلق قطع كوم.

۹۲۷: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ مُزَرِّدٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّحِمُ شُجْنَةٌ فَمَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَ مَنْ قَطَعَهَا قَطَعْتُهُ.

۹۲۷: سعيد بن ابي مريم. سليمان بن بلال. معاويه بن ابي مزرّد. يزيد بن رومان. عروه. دَ نبي صلي الله عليه وسلّم تبر بي بي عائشهؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' رحم (رشته داري) رحمٰن سره يوځائے شوے شاخ دے. څوک چه دے سره يوځائے شي' نو زهٔ هغهٔ سره يوځائے كيږم' او څوک چه دے نه تعلق قطع كړي' نو زهٔ هغهٔ سره تعلق قطع كړم (الله پاک دے مونږ دَ دے تعلق نه بے تعلقه نهٔ كړي. اللّٰهم آمين).

بَاب ۵۶۵: يُبَلُّ الرَّحِمَ بِبَلَالِهَا.

باب ۵۶۵: رشته داري لوړے شان تري سره هم تركيږي.

۹۲۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍؓ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ ابْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ اَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِهَارًا غَيْرَ سِرٍّ يَقُوْلُ اِنَّ

۹۲۸: عمرو بن عباس. محمد بن جعفر. شعبه. اسمٰعيل بن ابي خالد. قيس بن ابي حازم. عمرو بن العاص نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه په رو (آهسته) نه بلكه په اوچت آواز واوريدل' چه ال ابي (دَ عمرو بيان دے' چه دَ محمد بن جعفر كتاب كښ دَ

اٰلَ اَبِىْ قَالَ عَمْرٌو فِي كِتَابِ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ بَيَاضٌ لَيْسُوْا بِاَوْلِيَآئِيْ اِنَّمَا وَلِيَّ اللّٰهُ وَ صَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ زَادَ عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ عَنْ بَيَانٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنْ لَهُمْ رَحِمٌ اَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا يَعْنِيْ اَصِلُهَا بِصِلَتِهَا.

اٰل ابي نه پس خائے پاتے شوے وو). خما دوستان نه دي. بلکه خما دوستان خو، اللّٰه او نيکوکاره مؤمنان دي. عنبسه بن عبدالواحد ذ بيان نه، هغهٔ ذ قيس نه، او قيس ذ عمرو بن عاصؓ نه روايت اوکړ، ذ هغه بيان دے، ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل، ليکن ذ هغوي رشته داري ده، په دے وجه زهٔ دے ته ذ دے مطابق تري رسوم، يعني زهٔ صله رحمي کوم.

## باب ٥٦٦ : لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِيْ.

## باب ٥٦٦ : بدله ورکونکے، صله رحمي کونکے نه دے.

٩٢٩ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ وَالْحَسَنِ بْنِ عَمْرٍو وَ فِطْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سُفْيَانُ لَمْ يَرْفَعْهُ الْاَعْمَشُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَفَعَهُ حَسَنٌ وَ فِطْرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِيْ وَلٰكِنِ الْوَاصِلُ الَّذِيْ اِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا.

٩٢٩ : محمد بن کثير. سفيان. اعمش او حسن بن عمرو. او فطر، مجاهد. عبداللّٰه بن عمرو. سفيان بيان کوي، چه اعمش دا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم پورے مرفوع کړے نهٔ دے. او حسن او فطر ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا مرفوعا بيان کړے دے. حضورؐ اوفرمائيل، چه بدله ورکونکے، صله رحمي کونکے نهٔ دے. ليکن صله رحمي کونکے هغه سړے دے چه هر کله هغهٔ سره تعلق پريکړے شي. (نو هغه ئے پيوست کوي).

## باب ٥٦٧ : مَنْ وَصَلَ رَحِمَهُ فِي الشِّرْكِ ثُمَّ اَسْلَمَ.

## باب ٥٦٧ : ذ هغے سړي بيان چه ذ شرک حالت کښ صله رحمي اوکړي، بيا هغه مسلمان شي.

٩٣٠ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ حَكِيْمَ بْنَ حِزَامٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ قَالَ يَا رَسُوْلَ

٩٣٠ : ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. حکيم بن حزام نه روايت کوي. هغهٔ عرض اوکړ، يا رسول اللّٰه، ذ هغے امورو متعلق مونږ ته اوښايئے، چه مونږ به ذ جاهليت په زمانه کښ

اللّٰهِ اَرَاَيۡتَ اُمُوۡرًا كُنۡتُ اَتَحَنَّثُ بِهَا فِي الۡجَاهِلِيَّةِ مِنۡ صِلَةٍ وَ عَتَاقَةٍ وَّ صَدَقَةٍ هَلۡ لِّيۡ فِيۡهَا مِنۡ اَجۡرٍ قَالَ حَكِيۡمٌ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَسۡلَمۡتَ عَلٰى مَا سَلَفَ مِنۡ خَيۡرٍ وَّ يُقَالُ اَيۡضًا عَنۡ اَبِي الۡيَمَانِ اَتَحَنَّثُ وَ قَالَ مَعۡمَرٌ وَّ صَالِحٌ وابۡنُ الۡمُسَافِرِ اَتَحَنَّثُ وَ قَالَ ابۡنُ اِسۡحٰقَ التَّحَنُّثُ التَّبَرُّرُ وَ تَابَعَهٗ هِشَامٌ عَنۡ اَبِيۡهِ.

کول، یعني صله رحمي، آزادي، صدقه وغیره. آیا ماته به ذ دے څیزونو اجر راکولے شي، رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل ذ دے نیکو په وجه خو تۀ مسلمان شوے ئے، چه تیره زمانه کښې تا کړے دي. او ابوالیمان نه هم: اتحنث: لفظ منقول دے. او معمر او صالح او ابن مسافر: اتحنث: لفظ روایت کۀ. او ابن اسحاق اووے: تحنّث: معني دي: نیکي کول. او هشام ذ خپل پلار نه ذ دے متابعت کښې روایت کړے دے.

## بَابٌ ۵۶۸ : مَنۡ تَرَكَ صَبِيَّةَ غَيۡرِهٖ حَتّٰى تَلۡعَبَ بِهٖ اَوۡ قَبَّلَهَا اَوۡ مَازَحَهَا.

## باب ۵۶۸ : ذ بل بچے په لوبو لیدل هغه ښکلول، یا هغۀ سره خندا کول.

۱۹۳۱ : حَدَّثَنَا حِبَّانُ اَخۡبَرَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ عَنۡ خَالِدِ بۡنِ سَعِيۡدٍ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنۡ اُمِّ خَالِدٍ بِنۡتِ خَالِدِ بۡنِ سَعِيۡدٍ قَالَتۡ اَتَيۡتُ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَبِيۡ وَ عَلَيَّ قَمِيۡصٌ اَصۡفَرُ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ سَنَهۡ سَنَهۡ قَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ وَ هِيَ بِالۡحَبۡشِيَّةِ حَسَنَةٌ قَالَتۡ فَذَهَبۡتُ اَلۡعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ فَزَبَرَنِيۡ اَبِيۡ فَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ دَعۡهَا ثُمَّ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَبۡلِيۡ وَ اَخۡلِقِيۡ ثُمَّ اَبۡلِيۡ وَ اَخۡلِقِيۡ ثُمَّ اَبۡلِيۡ

۱۹۳۱ : حبان. عبدالله. خالد بن سعید. سعید. ام خالد بنت خالد بن سعید نه روایت کوي. ذ هغے بیان دے، زۀ خپل پلار سره ذ نبي صلي الله علیه وسلم خدمت کښې حاضره شوم، او ما یو زیړ قمیص اغستے وو. رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، سَنَه سَنَه (عبدالله اووے، چه سنه حبشي ژبه کښې اعلیٰ څیز ته وائي) ذ اُم خالد بیان دے، زۀ ذ نبوّت مُهر سره په لوبو شوم (خکه چه ماشومه ووم) خما پلار زۀ اوچته کړم، نو رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل، پریږده چه لوبے کوي، بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم درے ځله اوفرمائیل: اِبلِي واخلِقِي: دا کپړه دے دربانده زړه شي او، شلیږي (یعني ډیر وخت

وَ اَخۡلِقِيُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ قَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ فَبَقِيَتۡ حَتّٰى ذَكَرَ يَعۡنِيُ مِنۡ بَقَآئِهَا.

پورے دے نصیب شه) ذَ عبداللّٰه بیان دے' چه هغه کپړه ډیره موده وه.

بـاب ۵۶۹ : رَحۡمَةِ الۡوَلَدِ وَ تَقۡبِيۡلِهٖ وَ مُعَانَقَتِهٖ وَ قَالَ ثَابِتٌ عَنۡ اَنَسٍ اَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِبۡرٰهِيۡمَ فَقَبَّلَهٗ وَ شَمَّهٗ.

باب ۵۶۹ : بچي سره مهرباني' هغه بنکلول' او غاړے سره ئے لږول' او ثابت په واسطه ذَ انس روایت اوکۀ' چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل ځوئے ابراهیمؑ بنکل او بوئ کړلو.

۹۳۲ : حَدَّثَنَا مُوۡسَى بۡنُ اِسۡمٰعِيۡلَ حَدَّثَنَا مَهۡدِيٌّ حَدَّثَنَا ابۡنُ اَبِيۡ يَعۡقُوۡبَ عَنِ ابۡنِ اَبِيۡ نُعۡمٍ قَالَ كُنۡتُ شَاهِدًا لِّابۡنِ عُمَرَ وَ سَاَلَهٗ رَجُلٌ عَنۡ دَمِ الۡبَعُوۡضِ فَقَالَ مِمَّنۡ اَنۡتَ فَقَالَ مِنۡ اَهۡلِ الۡعِرَاقِ قَالَ انۡظُرُوۡا اِلٰى هٰذَا يَسۡاَلُنِيۡ عَنۡ دَمِ الۡبَعُوۡضِ وَقَدۡ قَتَلُوا ابۡنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَقُوۡلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَقُوۡلُ هُمَا رَيۡحَانَتَايَ مِنَ الدُّنۡيَا.

۹۳۲ : موسٰي بن اسمٰعیل. مهدي. ابن ابي یعقوب. ابن ابي نعیم نه روایت کوي' ذَ هغۀ بیان دے' زۀ ابن عمرؓ سره ووم' چه ذَ هغه نه یو سړي ذَ ماشي (مچھر) ذَ وینے متعلق تپوس اوکۀ' نو هغۀ ورته اووے' تۀ ذَ کوم ځائے اوسیدونکے (باشنده) ئے. هغۀ اووے ذَ عراق اوسیدونکے یم. ابن عمرؓ اوفرمائیل' دے سړي ته اوګورئ' دے ذَ ماشي ذَ وینے متعلق تپوس کوي' حالانکه دے خلقو ذَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم فرزند (یعني حسینؓ) قتل کړلو. او ما ذَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه آوریدلے دي' چه دا دواړه (حسنؓ او حسینؓ) دُنیا کښې ځما دوه ګلونه دي.

۹۳۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ اَخۡبَرَنَا شُعَيۡبٌ عَنِ الزُّهۡرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيۡ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ اَبِيۡ بَكۡرٍ اَنَّ عُرۡوَةَ ابۡنَ الزُّبَيۡرِ اَخۡبَرَهٗ اَنَّ عَآئِشَةَ زَوۡجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَتۡهُ قَالَتۡ جَآءَتۡنِيُ امۡرَاَةٌ مَعَهَا ابۡنَتَانِ تَسۡاَلُنِيۡ فَلَمۡ تَجِدۡ عِنۡدِيۡ غَيۡرَ تَمۡرَةٍ وَّاحِدٍ فَاَعۡطَيۡتُهَا فَقَسَمَتۡهَا بَيۡنَ ابۡنَتَيۡهَا

۹۳۳ : ابوالیمان. شعیب. زهري. عبداللّٰه بن ابي بکر. عروه بن زبیر. ذَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم تبر بي بي عائشےؓ نه روایت کوي ذَ هغے بیان دے' یوه ښځه خپلو دوو لونړو سره مانه څۀ غوښتلو (سوال کولو) ذَ پاره راغله' سِوا ذَ یوے قجورے نه هغے ما سره نور څۀ بیانۀ مُندل. هغه قجوره ما هغے له ورکړه' چه هغے په خپلو دواړو لونړو تقسیم کړه (نیمه ئے یوے له ورکړه او نیمه ئے بلے له ورکړه' او خپله ئے اونه خوړله) بیا هغه پاسیده' او روانه شوه. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم چه

ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ مَنْ يَلِيُ هٰذِهِ الْبَنَاتِ شَيْئًا فَاَحْسَنَ اِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِّنَ النَّارِ.

تشریف راوړلو، ما ورته دا بیان اوکه، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، څوک چه دے بچو ته څۀ هم ورکړي، اوهغوي سره احسان اوکړي، نو دا به هغوي ذَ پاره ذَ جهنم ذَ اُور نه حجاب وي (یعني په دے ذریعه به ذَ جهنم نه بچ شي).

۹۳۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمَقْبُرِيُّ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ سُلَيْمٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ قَتَادَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُمَامَةُ بِنْتُ اَبِي الْعَاصِ عَلٰى عَاتِقِهٖ فَصَلّٰى فَاِذَا رَكَعَ وَضَعَ وَ اِذَا رَفَعَ رَفَعَهَا.

۹۳۴ : ابوالولید. لیث. سعید مقبري. عمرو بن سلیم. ابو قتاده نه روایت کوي، ما پله حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم تشریف راوړلو، داسے حال کښې چه امامه بنت ابي العاص ذَ حضورؐ په اُوږه وه، نو حضورؐ دغے حالت کښې مونځ اوکۀ، کوم وخت چه رکوع به ئے کوله، نو هغه (ماشومه) به ئے کوزه کړه، او کله چه به اودریدلو، نو هغه به ئے اوچته کړه.

۹۳۵ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَبَّلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ وَ عِنْدَهُ الْاَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ التَّمِيْمِيُّ جَالِسًا فَقَالَ الْاَقْرَعُ اِنَّ لِيْ عَشْرَةً مِّنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ اَحَدًا فَنَظَرَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَنْ لَّا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ.

۹۳۵ : ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، ذَ هغۀ بیان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم حسن بن عليؓ ښکل کړلو او حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره اقرع بن حابس ناست وو. اقرع اووے. ما سره لس بچي دي، ما چرته هغوي کښې یو هم ښکل کړے نۀ دے. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغۀ طرف ته اوکتل، اووے فرمائیل، کوم سړے چه رحم نۀ کوي، په هغۀ هم رحم نشي کولے.

۹۳۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ جَآءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۹۳۶ : محمد بن یوسف. سفیان. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، ذَ هغے بیان دے، یو بانډیسے (اعرابي) ذَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو.

فَقَالَ تُقَبِّلُوْنَ الصِّبْيَانَ فَمَا نُقَبِّلُهُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَ اَمْلِكُ لَكَ اِنْ نَزَعَ اللّٰهُ مِنْ قَلْبِكَ الرَّحْمَةَ.

او عرض ئے اوکړه' تاسو خلق بچي ښکلوئے' مونږ خو ئے نه ښکلوو' حضورؐ ورته اوفرمائیل' اللّٰه تعالٰي چه ستا د زړه نه رحمت راښکلے دے' نو زۀ څۀ کولے شم.

۹۳۷: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْيٌ فَاِذَا اِمْرَاَةٌ مِّنَ السَّبْيِ قَدْ تَحَلَّبَ ثَدْيُهَا بِسَقْيٍ اِذَا وَجَدَتْ صَبِيًّا فِي السَّبْيِ اَخَذَتْهُ فَاَلْصَقَتْهُ بِبَطْنِهَا وَ اَرْضَعَتْهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتُرَوْنَ هٰذِهٖ طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ قُلْنَا لَا وَ هِيَ تَقْدِرُ عَلٰى اَنْ لَّا نَطْرَحَهُ فَقَالَ اللّٰهُ اَرْحَمُ بِعِبَادِهٖ مِنْ هٰذِهٖ بِوَلَدِهَا.

۹۳۷: ابن ابي مريم. ابو غسان. زيد بن اسلم. اسلم. حضرت عمرؓ بن خطاب نه روايت کوي. د هغۀ بيان دے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته څو قيديان راوستے شو. هغوي کښې يوه ښځه وَه چه د هغے تي د پيؤ نه ډک وو. کوم وخت چه بچے به ئے قيد کښې بيامند' نو هغه به ئے نيولو' او خپلے خيټې سره به ئے يوځائے کولو' او هغه ته به ئے پئے ورکول. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ خلقو ته اوفرمائيل' آيا تاسو خيال کوئے' چه دا ښځه خپل بچے اُور کښې غُرځولے شي' مونږ خلقو اووے' اګر که هغه قدرت لري. ليکن بيائے هم نشي غُرځولے' نو حضورؐ اوفرمائيل' اللّٰه په خپلو بنديانو د دے نه هم زيات مهربان دے' څومره چه دا ښځه په خپل بچي مهربانه ده. (اللّٰه پاک دے خمونږ د هغۀ مهرباني نصيب کړي. اللّٰهم آمين).

## باب ۵۷۰: جَعَلَ اللّٰهُ الرَّحْمَةَ مِائَةَ جُزْءٍ.

## باب ۵۷۰: اللّٰه تعالٰي رحمت سل حصے کړے دے.

۹۳۸: حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنَا سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ جَعَلَ اللّٰهُ الرَّحْمَةَ مِائَةَ جُزْءٍ فَاَمْسَكَ عِنْدَهٗ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ

۹۳۸: حکم بن نافع. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' د هغۀ بيان دے' ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' اللّٰه تعالٰي خپل رحمت سل حصے کړے. هغے کښې يو کم سل حصے خان سره اوساتلے' او يوه حصه ئے زمکے ته ورکوه

جُزْءً وَّ اَنْزَلَ فِي الْاَرْضِ جُزْءً وَّاحِدًا فَمِنْ ذٰلِكَ الْجُزْءِ يَتَرَاحَمُ الْخَلْقُ حَتّٰى تَرْفَعُ الْفَرَسُ حَافِرَهَا عَنْ وَّلَدِهَا خَشْيَةً اَنْ تُصِيْبَهٗ.

کړه، مخلوق چه په يو بل رحم کوي، هغه دَ دے يوے حصے په سبب دے، تردے چه اَس چه دَ تکليف رسيدو دَ خوف نه دَ خپل بچي نه خپل سُم اُوچتوي.

باب ۵۷۱: قَتْلِ الْوَلَدِ خَشْيَةَ اَنْ يَّاْكُلَ مَعَهٗ.

باب ۵۷۱: دَ اولاد دَ دے ويرے نه قتلول چه هغه به ورسره خوراک کوي.

۹۳۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيْلَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الذَّنْبِ اَعْظَمُ قَالَ اَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَّ هُوَ خَلَقَكَ ثُمَّ قَالَ اَيٌّ قَالَ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ اَنْ يَّاْكُلَ مَعَكَ قَالَ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ اَنْ تُزَانِيَ حَلِيْلَةَ جَارِكَ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ.

۹۳۹: محمد بن کثير. سفيان. منصور. ابو وائل. عمرو بن شرحبيل. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، ما عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، کومه گناه دَ ټولو نه لويه ده، حضورؐ اوفرمائيل، اللّٰه سره چه څوک شريک جوړ کړے شي، حالانکه هغهٔ تهٔ پيدا کړے ئے. تپوس ئے اوکه، بيا کومه، حضورؐ ورته اوفرمائيل، دا چه تهٔ خپل بچے دَ دے خوف نه قتل کړے، چه هغهٔ به تاسره خوراک اوکړي. تپوس ئے اوکهٔ بيا کومه، حضورؐ اوفرمائيل، دا چه دَ خپل گاونډي ښځے سره زنا اوکړے، نو اللّٰه تعالیٰ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ قول تصديق کښ دا آيت نازل کړلو: والّذين لا يدعون مع اللّٰه الٰهًا اٰخر.

باب ۵۷۲: وَضْعِ الصَّبِيِّ فِي الْحِجْرِ.

باب ۵۷۲: بچے، غيږ کښ دَ اخستو بيان.

۹۴۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ صَبِيًّا فِيْ حِجْرِهٖ يُحَنِّكُهٗ فَبَالَ عَلَيْهِ

۹۴۰: محمد بن مثنی. يحيٰي بن سعيد. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم يو بچے غيږ کښ واخستو، چه دَ هغهٔ تحنيک اوکړي (خوله کښ ورله جويلے قجوره واچوي) هغهٔ په حضورؐ واړهٔ بول اوکړل نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اُوبهٔ راوغوښتلے، او په هغه ځائے اُوبه

فَدَعَا بِمَآءٍ فَاَتْبَعَهُ.

اوبهيولے.

## بَاب ۵۷۳: وَضْعِ الصَّبِيِّ عَلَى الْفَخِذِ.

## بـاب ۵۷۳: بـچـے پـه پتـون دَ كيښودو بيان.

۱۹۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَارِمٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا تَمِيْمَةَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ يُحَدِّثُهُ اَبُوْ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْخُذُنِيْ فَيُقْعِدُنِيْ عَلٰى فَخِذِهٖ وَ يُقْعِدُ الْحَسَنَ عَلٰى فَخِذِهِ الْاُخْرٰى ثُمَّ يَضُمُّهُمَا ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُمَا فَاِنِّيْ اَرْحَمُهُمَا وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ قَالَ التَّيْمِيُّ فَوَقَعَ فِيْ قَلْبِيْ مِنْهُ شَيْءٌ قُلْتُ حُدِّثْتُ بِهٖ كَذَا وَ كَذَا فَلَمْ اَسْمَعْهُ مِنْ اَبِيْ عُثْمَانَ فَنَظَرْتُ فَوَجَدْتُهٗ عِنْدِيْ مَكْتُوْبًا فِيْهَا سَمِعْتُ.

۱۹۴۱: عبداللّٰه بن محمد. عارم. معتمر بن سليمان. سليمان. ابو تميمه. ابو عثمان نهدي. اسامه بن زيد نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به زهٔ نيولم، په يو پتون به ئے زهٔ او په بل پتون به ئے حسنؓ كينولو. بيا به ئے دواړه يوځائے كول، او فرمائيل به ئے، اے اللّٰه په دے دواړو رحم اوكړے، ځكه چه زهٔ هم په دوي مهرباني كوم، (نو ته پرے هم مهرباني اوكړے). علي نه په واسطه دَ يحيٰي، سليمان، ابو عثمان منقول دي. تيمي بيان اوكهٔ، ځما زړهٔ كښ دا خيال پيدا شو، چه ماته دَ ابو عثمان نه بلاواسطه فلاني فلاني حديثونه حاصل شوے دي. دا ما دَ ابو عثمان نه، نهٔ دي آوريدلے. ما خپل كتاب كښ اوكتل، نو هغے كښ م ليكلي بيامندل، چه ما دا حديث هم دَ هغهٔ نه آوريدلے دے.

## بَاب ۵۷۴: حُسْنِ الْعَهْدِ مِنَ الْاِيْمَانِ.

## بـاب ۵۷۴: عهد پوره كول دَ ايمان جُزء دے.

۱۹۴۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلٰى اِمْرَاَةٍ مَا غِرْتُ عَلٰى خَدِيْجَةَ وَلَقَدْ هَلَكَتْ قَبْلَ

۱۹۴۲: عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، زهٔ هيڅ ښځے ته دومره نهٔ يم پسخيدلے، څومره چه بي بي خديجےؓ ته، چه ځما دَ نكاح نه درے كاله مخكښ وفات شوے وَه، ځكه چه ما به دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه

اَنْ يَّتَزَوَّجَنِيْ بِثَلٰثِ سِنِيْنَ لِمَا كُنْتُ اَسْمَعُهٗ يَذْكُرُهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ وَّ اِنْ كَانَ لَيَذْبَحُ الشَّاةَ ثُمَّ يُهْدِيْ فِيْ خُلَّتِهَا مِنْهَا.

وسلّم نه ذَ هغے ذكر آوريدلو. حضورؐ ته خپل پروردګار حكم اوكړلو، چه هغے (يعني بي بي خديجےؓ) ته جنت كښې ذَ ملغلرے ذَ محل (موتي محل) خوشخبري وركړه. او كله چه به ئے چيلئے ذبح كوله، نو ذَ هغے سهيلو ته به ئے هم څۀ حصه ليږله.

باب ۵۷۵: فَضْلِ مَنْ يَّعُوْلُ يَتِيْمًا.

باب ۵۷۵: ذَ يتيم ذَ پرورش كونكي ذَ فضيلت بيان.

۹۴۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنَا وَ كَافِلُ الْيَتِيْمِ فِي الْجَنَّةِ هٰكَذَا وَ قَالَ بِاِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى.

۹۴۳: عبدالله بن عبدالوهاب. عبدالعزيز بن ابي حازم. سهل بن سعد. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل زۀ او ذَ يتيم نګراني كونكے به جنت كښې داسے قريب وي. او حضورؐ ذَ شهادت او مينځنئ ګوتے سره اشارے كولو سره ذَ هغے نزديكت اوښودلو.

باب ۵۷۶: اَلسَّاعِيْ عَلَى الْاَرْمِلَةِ.

باب ۵۷۶: كُنډو (بيواؤں) ذَ پاره ذَ محنت كونكي بيان.

۹۴۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ يَرْفَعُهٗ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّاعِيْ عَلَى الْاَرْمِلَةِ وَالْمِسْكِيْنِ كَالْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ كَالَّذِيْ يَصُوْمُ النَّهَارَ وَ يَقُوْمُ اللَّيْلَ.

۹۴۴: اسماعيل بن عبدالله. مالک. صفوان بن سليم. نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا مرفوعًا روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل، ذَ كنډو او مسكين ذَ پاره محنت كونكے، ذَ الله په لار كښې ذَ جهاد كونكي په شان دے، يا ذَ هغے سړي په شان دے، چه ذَ ورځے روژه نيسي او ذَ شپے عبادت كوي.

۹۴۵: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدِ الدِّيْلِيِّ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ مَوْلَى بْنِ

۹۴۵: اسمٰعيل. مالک. ثور بن زيد ديلي. ابوالغيث (ذَ ابن مطيع آزاد كرده غلام) حضرت ابوهريرهؓ نبي صلي

مُطِيعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

اللّٰه علیه وسلّم نه دَ دې په شان روایت کوي.

بَاب۵۷۷: اَلسَّاعِيُ عَلَى الْمِسْكِيْنِ.

باب۵۷۷: مسکین دَ پاره دَ محنت کونکي بیان.

۹۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّاعِيُ عَلَى الْاَرْمِلَةِ وَالْمِسْكِيْنِ كَالْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ اَحْسِبُهُ قَالَ يَشُكُّ الْقَعْنَبِيُّ كَالْقَآئِمِ لَا يَفْتُرُ وَ كَالصَّآئِمِ لَا يُفْطِرُ.

۹۴۶: عبدالله بن مسلمه. مالک. ثور بن زید. ابوالغیث. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ مسکین او کنډو دَ پاره محنت او مزدوري کونکے دَ الله په لار کښې دَ جهاد کونکي په شان دے. او قعنبي بیان اوکړ، ځما شک دے، چه شاید داسے ئے اوفرمائیل، دَ هغے عبادت ګزار په شان دے، چه سُست نهٔ وي، او دَ هغے روژه دار په شان دے، چه افطار نهٔ کوي.

بَاب۵۷۸: رَحْمَةِ النَّاسِ وَالْبَهَائِمِ.

باب۵۷۸: دَ بني آدمو او ځناورو سره دَ مهرباني کولو بیان.

۹۴۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَبِيْ سُلَيْمَانَ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ شَبَبَةٌ مُّتَقَارِبُوْنَ فَاَقَمْنَا عِنْدَهٗ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً فَظَنَّ اَنَّا اشْتَقْنَا اَهْلَنَا وَ سَاَلَنَا عَمَّنْ تَرَكْنَا فِيْ اَهْلِنَا فَاَخْبَرْنَاهُ وَ كَانَ رَفِيْقًا رَّحِيْمًا فَقَالَ ارْجِعُوْا اِلٰى اَهْلِيْكُمْ فَعَلِّمُوْهُمْ وَ مُرُوْهُمْ وَ صَلُّوْا كَمَا رَاَيْتُمُوْنِيْ اُصَلِّيْ وَ اِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ اَحَدُكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ

۹۴۷: مسدد. اسمٰعیل. ایوب. ابو قلابه. ابو سلیمان. مالک بن حویرث نه روایت کوي، مونږ څهٔ قریب العمر سړي دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او شل ورځے حضورؐ سره ایسار شو. حضورؐ ګمان اوکړ، چه شاید مونږ خپل کور والو له تلل غواړو. حضورؐ مونږ نه دَ هغے خلقو تپوس اوکړ، چه هغوي مونږ خپلو کورونو کښې پریښے وو. حضورؐ ته مونږ خلقو بیان اوکړ. حضورؐ رفیق او رحیم وو، وے فرمائیل، چه خپل کوروالو ته لاړ شے، هغوي ته تعلیم ورکړئے، او حکم ورکوئے، او مونځ کوئے، ځنګه چه تاسو زهٔ په مونځ کولو اولیدم. او څهٔ وخت چه دَ مونځ وخت شي، نو تاسو کښې دے یو سړے اَذان اوکړي، بیا

اَكْبَرُكُمْ.

۹۴۸ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يَّمْشِيْ بِطَرِيْقٍ اِشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَوَجَدَ بِئْرًا فَنَزَلَ فِيْهَا فَشَرِبَ ثُمَّ خَرَجَ فَاِذَا كَلْبٌ يَّلْهَثُ يَاْكُلُ الثَّرٰى مِنَ الْعَطَشِ فَقَالَ الرَّجُلُ لَقَدْ بَلَغَ هٰذَا الْكَلْبُ مِنَ الْعَطَشِ مِثْلُ الَّذِيْ كَانَ بَلَغَ بِيْ فَنَزَلَ الْبِئْرَ فَمَلَاَ خُفَّهٗ ثُمَّ اَمْسَكَهٗ بِفِيْهِ فَسَقَى الْكَلْبَ فَشَكَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَغَفَرَ لَهٗ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اِنَّ لَنَا فِي الْبَهَآئِمِ اَجْرًا فَقَالَ فِيْ كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَّطْبَةٍ اَجْرٌ.

۹۴۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ صَلٰوةٍ وَ قُمْنَا مَعَهٗ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ وَّ هُوَ فِي الصَّلٰوةِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنِيْ وَ مُحَمَّدًا وَّلَا تَرْحَمْ مَعَنَا اَحَدًا فَلَمَّا سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

تاسو كښې دے لوئے سړے ستاسو امامت اوكړي.

۹۴۸ : اسمٰعيل. مالک. سمي (دَ ابوبكر آزاد كړده غلام) ابو صالح. سمان. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يو خل يو سړے تلو، نو لار كښې ډير سخت تږے شو. يو كوهے ورته په نظر راغے، هغے ته ورکوز شو. اوبه ئے اوڅكلے او بهر ته راووتلو، نو څه گوري چه يو سپے (كتا) بدحاله دے، او دَ تندے په سبب ئے ختے شتلے، هغه سړي سوچ اوكړ، دے سپي ته به هم دَ تندے په سبب هغه تكليف رسيدلے وي، كوم چه ماته رسيدلے وو. دے سوچ سره كوهي كښې كوز شولو، خپله موزه ئے دَ اُوبو نه ډكه كړه. بيائے خپلے خوله كښې اونيوله. پورته راغے او هغے سپي ته ئے اُوبه وركړے. اللّٰه دَ هغهٔ دَ دے فعل قدر اوكړ، او هغه ئے اوبښلو. خلقو تپوس اوكړ يا رسول اللّٰه، آيا دَ ځناورو متعلق به هم مونږ ته اَجر راكولے شي؟ حضورؐ ورته اوفرمائيل، هر تر، ځيګر لرونكي سره ښه كڼونكي ته به اجر وركولے شي.

۹۴۹ : ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم يو مونځ دَ پاره اودريدلو، او مونږ هم حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره اودريدلو. يو اعرابي دَ مانځه حالت كښې اووے، يا اللّٰه، په ما او محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے رحم اوكړے، او مونږ سره په بل چا رحم اونهٔ كړے. كوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سلام اوګرځولو، نو هغے اعرابي (بانډيسي) ته ئے اوفرمائيل، چه تا يو

لِلْاَعْرَابِيِّ لَقَدْ حَجَّرْتَ وَاسِعًا يُرِيْدُ رَحْمَةَ اللّٰهِ.

وسيع څيز يعني رحمت خداوندي تنګ (محدود) کړلو.

۵۹۵۰ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيْرٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ فِيْ تَرَاحُمِهِمْ وَ تَوَادِّهِمْ وَ تَعَاطُفِهِمْ كَمَثَلِ الْجَسَدِ اِذَا اشْتَكٰى عُضْوًا تَدَاعٰى لَهٗ سَائِرُ جَسَدِهٖ بِالسَّهَرِ وَ الْحُمّٰى.

۵۹۵۰ : ابو نعيم. زكريا. عامر. نعمان بن بشير نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يو بل باندے مهرباني كولو كښ او دوستي او شفقت كښ به مومنان ته ذ يو جسم په شان ګورے، چه ذ جسم يوے حصے ته تكليف وي، نو ټول جسم بيداري او بخار كښ ورسره شريک وي.

۵۹۵۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ غَرَسَ غَرْسًا فَاَكَلَ مِنْهُ اِنْسَانٌ اَوْ دَآبَّةٌ اِلَّا كَانَ لَهٗ صَدَقَةٌ.

۵۹۵۱ : ابوالوليد. ابو عوانه. قتاده. حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مسلمان چه يوه اُونه لګوي، او ذ هغے نه څوک سړے يا ځناور اوخوري، نو هغهٔ ذ پاره صدقه شي.

۵۹۵۲ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيْرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَّا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ.

۵۹۵۲ : عمرو بن حفص. حفص. اعمش. زيد بن وهب. جرير بن عبداللّٰه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل، كوم سړے چه مهرباني نه كوي، هغهٔ سره هم مهرباني نهٔ كيږي.

بَاب ۵۷۹ : اَلْوُصَاةُ بِالْجَارِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَ لَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا اِلٰى قَوْلِهٖ مُخْتَالًا فَخُوْرًا.

باب ۵۷۹ : ذ ګواندي په حق كښ ذ وصيت كونكي بيان، او ذ اللّٰه تعالي قول، چه ذ الله عبادت كوئے، او هغهٔ سره څوک شريک مهٔ جوړوئے. او مور پلار سره احسان كوئے. مختالا فخورًا: پورے.

۹۵۳ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عُمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا زَالَ يُوْصِيْنِيْ جِبْرِيْلُ بِالْجَارِ حَتّٰى ظَنَنْتُ اَنَّهٗ سَيُوَرِّثُهٗ.

۹۵۳ : اسمعیل بن ابي اویس. مالک. یحیٰي بن سعید. ابوبکر بن محمد. عمره. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، دَ هغے بیان دے. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، جبرائیلؑ به دَ گوانډي دَ پاره مونږ ته برابر وصیت کولو، تردے چه ماته خیال شو، چه هغه به وارث جوړ کړي.

۹۵۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا زَالَ جِبْرِيْلُ يُوْصِيْنِيْ بِالْجَارِ حَتّٰى ظَنَنْتُ اَنَّهٗ سَيُوَرِّثُهٗ.

۹۵۴ : محمد بن منهال. یزید بن زریع. عمر بن محمد. دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، جبرائیل علیه السلام به گوانډي دَ پاره ماته برابر وصیت کولو، تردے چه ماسره خیال پیدا شو، چه هغه به وارث جوړ کړي.

باب ۵۸۰ : اِثْمِ مَنْ لَا يَاْمَنُ جَارُهٗ بَوَائِقَهٗ يُوْبِقُهُنَّ يُهْلِكُهُنَّ مَوْبِقًا مَهْلِكًا.

باب ۵۸۰ : دَ هغے سړي گناه، چه دَ هغهٔ گوانډي دَ هغه دَ تکلیف نه بے خوفه نهٔ وي. يُوبِقْهُنَّ: معني دي، هغوي هلاک کړي. موبقا: معني دَ هلاکت خائے دے.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ قِيْلَ وَمَنْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الَّذِيْ لَا يَاْمَنُ جَارُهٗ بَوَائِقَهٗ تَابَعَهٗ شَبَابَةُ وَ اَسَدُ بْنُ مُوْسٰى وَ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ الْاَسْوَدِ وَ عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ وَ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ

۹۵۵ : عاصم بن علي. ابن ابي ذئب. سعید. ابو شریح نه روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، په خدائے چه هغه سړے مومن نهٔ دے په خدائے چه هغه سړے مومن نهٔ دے. په خدائے چه هغه سړے مؤمن نهٔ دے. تپوس اوشو، څوک، یا رسول الله. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ چا گوانډي چه دَ هغه دَ تکلیفونو نه بے خوفه نهٔ وي. شبابه او اسد بن موسٰي دَ دے متابعت کښ روایت کړے دے. حمید بن اسود، او عثمان بن عمرو او ابوبکر بن عیاش او شعیب

وَ شُعَيْبُ بْنُ اِسْحٰقَ عَنِ ابْنِ اَبِىْ ذِئْبٍ عَنِ الْمُقْبُرِيِّ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ.

بن اسحاق، ابن ابي ذئب نه، هغه ذ مقبري نه هغه ذ ابوهريرةؓ نه روايت کړے دے.

**باب ۵۸۱: لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا.**

**باب ۵۸۱: هيڅ ښځه دے خپله ګوانډئ له څه څيز ورکول سپک نۀ ګڼړي.**

**۹۵۶:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ هُوَ الْمُقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَا نِسَآءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ.

**۹۵۶:** عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد مقبري. ذ خپل پلار نه، هغه ذ حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي. هيڅ ښځه دے خپلے ګوانډئے ته ليږلو د پاره څه څيز حقير (سپک) نۀ ګڼړي، اګر که ذ چيلے سُم ولے نۀ وي[۱].

۱. يعني که چرے چاته همدا ميسر وي نو ددے هم ګوانډئ ته ليږلو کښے شرم محسوسول نه دي پکار. ولے چه ذ هديو تبادلے په ذريعه د تعلقاتو په ښه والي کښے مدد ملاويږي.

**باب ۵۸۲: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهٗ.**

**باب ۵۸۲: کوم سړے چه الله او ذ قيامت په ورځ ايمان لري، هغه دے خپل ګوانډي ته تکليف نۀ رسوي.**

**۹۵۷:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنْ اَبِىْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِىْ صَالِحٍ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهٗ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ.

**۹۵۷:** قتيبه بن سعيد. ابوالاحوص. ابو حصين. ابو صالح. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم سړے چه الله او ذ قيامت په ورځ ايمان لري، هغه دے خپل ګوانډي ته تکليف نۀ رسوي. او کوم سړے چه الله او ذ قيامت په ورځ ايمان لري، هغۀ له پکار دي، چه ذ ميلمه ميلمستيا اوکړي، او کوم سړے چه الله او ذ قيامت په ورځ ايمان لري، هغه له پکار دي، چه ښۀ خبره کوي، يا خاموش اوسي.

**۹۵۸:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِىْ

**۹۵۸:** عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد مقبري. ابو شريح عدوي نه روايت کوي، ذ هغۀ

سَعِيدُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحِ الْعَدَوِيِّ قَالَ سَمِعْتُ اُذُنَایَ وَ اَبْصَرَتْ عَيْنَایَ حِيْنَ تَكَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ جَارَهٗ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ جَائِزَتَهٗ قَالَ وَ مَا جَائِزَتُهٗ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ يَوْمٌ وَّ لَيْلَةٌ وَّ الضِّيَافَةُ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ فَمَا كَانَ وَرَآءَ ذٰلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ عَلَيْهِ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ.

بيان دے. خما دواړو غوږونو واوريدل' او خما دواړو سترګو اوليدل' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' کوم سړے چه الله او قيامت باندے ايمان لري' هغهٔ له پکار دي' چه دَ خپل ګوانډي عزت کوي' او کوم سړے چه الله او دَ قيامت په ورځ ايمان لري هغهٔ له پکار دي' چه دَ خپل ميلمه جائزے سره عزت کوي. تپوس اوشو' يا رسول الله' دَ هغهٔ جائزه څهٔ ده' حضورؐ اوفرمائيل' يو ورځ يوه شپه جائزه ده. او ميلمستيا درے ورځے ده' چه دَ دے نه زياته وي هغه صدقه ده. او کوم سړے چه الله تعالٰي او دَ قيامت په ورځ ايمان لري' هغهٔ له پکار دي' چه ښهٔ خبره اوکړي' کني خاموش دے اوسي.

## باب ۵۸۳: حَقِّ الْجِوَارِ فِيْ قُرْبِ الْاَبْوَابِ.

باب ۵۸۳: دَ ګوانډي حق دَ دروازے دَ قرب دَ لحاظ نه دے.

۹۵۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ لِيْ جَارَيْنِ فَاِلٰى اَيِّهِمَا اُهْدِيْ قَالَ اِلٰى اَقْرَبِهِمَا مِنْكَ بَابًا.

۹۵۹: حجاج بن منهال. شعبه. ابو عمران. طلحه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي دَ هغے بيان دے ما عرض اوکهٔ' يا رسول الله' خما دوه ګوانډيانے دي' زهٔ هغوي کښې کومے يوے ته هديه اوليږم. حضورؐ ورته اوفرمائيل دَ چا درو ازه چه تاته زياته نزدے ده.

## باب ۵۸۴: كُلُّ مَعْرُوْفٍ صَدَقَةٌ.

باب ۵۸۴: هره نيکي صدقه ده.

۹۶۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ مَعْرُوْفٍ صَدَقَةٌ.

۹۶۰: علي بن عياش. ابو غسان. محمد بن منكدر. جابر بن عبداللهؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هره نيکي صدقه ده (الله پاک دے خمونږ هم نصيب کړي. اللّٰهم آمين).

۱ ٦ ۹ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ بُرْدَةَ ابْنِ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ قَالُوْا فَاِنْ لَّمْ يَجِدْ قَالَ فَلْيَعْمَلْ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهٗ وَ يَتَصَدَّقُ قَالُوْا فَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ اَوْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُعِيْنُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوْفَ قَالُوْا فَاِنْ لَّمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيَاْمُرُ بِالْخَيْرِ اَوْ قَالَ بِالْمَعْرُوْفِ قَالَ فَاِنْ لَّمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ فَاِنَّهٗ لَهٗ صَدَقَةٌ.

۱ ٦ ۹ : ادم. شعبه. سعيد بن ابي برده بن ابي موسٰي اشعري. دَ خپل پلار نه، هغه دَ هغه نيكهٔ (ابو موسٰي اشعري) نه روايت كوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هر مسلمان دَ پاره صدقه كول لازم دي. خلقو تپوس اوكهٔ، كه هغهٔ سره هيڅ نهٔ وي، حضورؐ اوفرمائيل، چه خپل لاس سره دے كار كوي، هغے سره دے خپل ذات ته نفع اورسوي. او صدقه دے اوكړي. خلقو تپوس اوكهٔ، كه دَ هغے صلاحيت نهٔ لري، يا داسے ئے اووے، كه داسے اونهٔ كړي، نو حضورؐ اوفرمائيل، دَ چا ضرورتمند مظلوم مدد دے اوكړي. خلقو تپوس اوكهٔ، كه داسے اونهٔ كړي، نو حضورؐ اوفرمائيل دَ بدي نه دے بچ اوسي، چه دا دَ هغهٔ صدقه ده.

بَاب ۵۸۵ : طِيْبِ الْكَلَامِ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ.

باب ۵۸۵ : دَ نيكو خبرو (اچھی گفتگو) كولو بيان. او حضرت ابوهريرهؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوكهٔ، ښے خبرے صدقه ده.

۲ ٦ ۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّارَ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا وَ اَشَاحَ بِوَجْهِهٖ ثُمَّ ذَكَرَ النَّارَ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا وَ اَشَاحَ بِوَجْهِهٖ قَالَ شُعْبَةُ اَمَّا مَرَّتَيْنِ فَلَا اَشُكُّ ثُمَّ قَالَ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَاِنْ لَّمْ تَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ.

۲ ٦ ۹ : ابوالوليد. شعبه. عمرو. خيثمه. عدي بن حاتمؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دوزخ ذكر اوكهٔ، نو دَ هغے نه ئے پناه اوغوښته، او خپل مخ ئے جوړ كړلو، بيائے دَ دوزخ ذكر اوكهٔ، او خپل مخ ئے جوړ كړلو. شعبه اووے، چه دوه ځله دَ حضورؐ داسے كولو كښې ماته شک نشته، بيائے اوفرمائيل، دَ اُور نه بچ شئے، اګر كه دَ يوے ټكړے چوهارے په عوض كښې ولے نهٔ وي، او كه دا هم نهٔ وي، نو ښهٔ خبره كوئے (دا هم صدقه ده).

بَاب ۵۸٦ : اَلرِّفْقِ فِي الْاَمْرِ كُلِّهٖ.

باب ۵۸٦ : هر كار كښې دَ نرمي كولو بيان.

٩٦٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ دَخَلَ رَهْطٌ مِّنَ الْيَهُوْدِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اَلسَّامُ عَلَيْكُمْ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَفَهِمْتُهَا فَقُلْتُ وَعَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ قَالَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْلًا يَا عَآئِشَةُ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِى الْاَمْرِ كُلِّهٖ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قُلْتُ وَعَلَيْكُمْ.

٩٦٣ : عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عروه بن زبير نه روايت كوي، بي بي عائشې ﺭﺽ د نبي صلي الله عليه وسلّم تبر بيان اوكړ، د يهودو يو جماعت حضورﷺ له راغې، هغې خلقو اوويل السام عليكم. د بي بي عائشې ﺭﺽ بيان دے، (هغه وائي) زهٔ په دے پوه شوم، نو ما اوويل: وعليكم السام واللعنة (په تاسو دے هلاكت او لعنت وي) نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، عائشې ﺭﺽ، دوي پريږده، الله تعالٰي هر كار كښې نرمي خوښوي، ما عرض اوكړ، يا رسول الله، آيا تاسو واونه ريدل، چه دوي خلقو څهٔ اوويل. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ما هم ورته عليكم اوويل (چه په تاسو دے وي).

٩٦٤ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ اَعْرَابِيًّا بَالَ فِى الْمَسْجِدِ فَقَامُوْا اِلَيْهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزْرِمُوْهُ ثُمَّ دَعَا بِدَلْوٍ مِّنْ مَّآءٍ فَصُبَّ عَلَيْهِ.

٩٦٤ : عبدالله بن عبدالوهاب. حماد بن زيد. ثابت. انس بن مالك ﺭﺽ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے. يو اعرابي جُمات كښې وارهٔ بَول كول، خلقو هغه طرف ته ورمنډې كړے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. دے د ورو بَولو نه مهٔ منع كوئے، بيائے د اُوبو ډولچه راوغښتله، او په هغې اُوبه اوبهيولے شوے.

## باب۵۸۷ : تَعَاوُنِ الْمُؤْمِنِيْنَ بَعْضِهِمْ بَعْضًا.

## بـاب۵۸۷ : د ايماندارو يو بل سره تعاون (مرسته) كول.

٩٦٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِىْ بُرْدَةَ بُرَيْدِ بْنِ اَبِىْ بُرْدَةَ قَالَ اَخْبَرَنِىْ جَدِّىْ

٩٦٥ : محمد بن يوسف. سفيان. ابي برده. بريد بن ابي برده د خپل نيكهٔ ابو برده نه، هغه ابو موسٰي نه، ابو موسٰي حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت

اَبُــوْ بُـرْدَةَ عَـنْ اَبِيْهِ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْمُـوْمِنُ لِلْـمُـوْمِـنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَـعْضُهُ بَعْضًا ثُمَّ شَبَّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا اِذْ جَـآءَ رَجُـلٌ يَّسْأَلُ اَوْ طَالِبُ حَـاجَةٍ اَقْبَـلَ عَـلَيْـنَـا بِوَجْهِـهٖ فَقَالَ اشْـفَعُوْا فَـلْتُـوْجَرُوْا وَ لْيَقْضِ اللّٰـهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ مَا شَآءَ.

اوكړ، حضورﷺ اوفرمائيل يو مومن د بل مؤمن د پاره د عمارت په شان دے، چه د هغے يوه حصه بلے حصے له تقويت وركوي، بيائے خپلے ګوتے يوځائے كړے اوښودلے. اوس لا نبي صلي الله عليه وسلّم ناست وو چه يو سړے څه غوښتلو يا ضرورت د پاره راغے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم مونږ خلقو ته متوجّه شو، اووے فرمائيل، سفارش كوئے، تاسو ته به د هغے اجر دركولے شي، او اللّٰه تعالٰي د خپل نبي په ژبه څه چه غواړي، هغه پوره كوي.

## الحمد للّٰه والشكر للّٰه خليريشتمه پاره ختمه شوه




شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-17

# تاج البخاري پاره ۲۵ دمضامينو فهرست



| باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| .۵۸۸ | بنسه سفارش او بد سفارش | ۳۸۰۱ | .۶۰۶ | د خپل رور تعريف كول | ۳۸۱۷ | .۶۲۴ | چا مسلمان ته كافر وئيل | ۳۸۳۸ |
| .۵۸۹ | حضورِ فاحش نه وو | ۳۸۰۱ | .۶۰۷ | د خپلوانو حكم | ۳۸۱۸ | .۶۲۵ | كافر نه ويونكي | ۳۸۳۹ |
| .۵۹۰ | حسن خلق او سخاوت | ۳۸۰۳ | .۶۰۸ | د حسد او غيبت منع والے | ۳۸۱۹ | .۶۲۶ | په احكامو كښے سختي | ۳۸۴۱ |
| .۵۹۱ | د خپل كور خلقو كښے د اوسيدلو طريقه | ۳۸۰۶ | .۶۰۹ | بدگماني نه ځان اوساتئ | ۳۸۲۰ | .۶۲۷ | د غصے نه بچ كيدل | ۳۸۴۳ |
| .۵۹۲ | محبت د الله د طرفنه دے | ۳۸۰۶ | .۶۱۰ | كوم يو گمان كيدلے شي | ۳۸۲۰ | .۶۲۸ | شرم او حيا | ۳۸۴۵ |
| .۵۹۳ | محبت الله د پاره دے | ۳۸۰۷ | .۶۱۱ | په خپلو گناهونو پرده اچول | ۳۸۲۱ | .۶۲۹ | چه شرم او حيا درنه لاړه شي نو چه څه كوے كولے شے | ۳۸۴۶ |
| .۵۹۴ | هيڅ جماعت دِ په بل پورے ټوقے نه كوي | ۳۸۰۷ | .۶۱۲ | تكبر او غرور | ۳۸۲۲ | .۶۳۰ | په ديني مسئله كښے شرم نيشته | ۳۸۴۶ |
| .۵۹۵ | د كنځلو كولو نه پرهيز | ۳۸۰۸ | .۶۱۳ | ملاقات پريخودل | ۳۸۲۲ | .۶۳۱ | آساني كوئ، سختي مه كوئ | ۳۸۴۷ |
| .۵۹۶ | چاته لوړ يا مَندرے وئيل | ۳۸۱۲ | .۶۱۴ | چاسره ملاقات پريخودل جائز دي | ۳۸۲۵ | .۶۳۲ | په خندا خوشالئ سره ملاويدل | ۳۸۵۰ |
| .۵۹۷ | غيبت كول | ۳۸۱۳ | .۶۱۵ | خپل دوست سره ملاقات | ۳۸۲۵ | .۶۳۳ | رواداري | ۳۸۵۱ |
| .۵۹۸ | انصارو كښے د ټولو نه غوره كور | ۳۸۱۳ | .۶۱۶ | ملاقات كول | ۳۸۲۶ | .۶۳۴ | مومن خوک دے | ۳۸۵۲ |
| .۵۹۹ | د مفسد غيبت | ۳۸۱۴ | .۶۱۷ | دَ وفدونو راتللو باندے ځان جوړول | ۳۸۲۶ | .۶۳۵ | دَ ميلمه حق | ۳۸۵۲ |
| .۶۰۰ | چغلي خوړل گناه كبيره ده | ۳۸۱۴ | .۶۱۸ | روړولي | ۳۸۲۷ | .۶۳۶ | د ميلمه عزت او خدمت كول | ۳۸۵۳ |
| .۶۰۱ | د چغل خورئ بدوالے | ۳۸۱۵ | .۶۱۹ | خندا او موسكا | ۳۸۲۸ | .۶۳۷ | ميلمه د پاره روټئ تيارول | ۳۸۵۵ |
| .۶۰۲ | دروغو وئيلو نه ځان اوساتئ | ۳۸۱۵ | .۶۲۰ | الله نه اويريږي او دَ رشتينو سره اوسئ | ۳۸۳۵ | .۶۳۸ | ميلمه باندے غصه كول گناه ده | ۳۸۵۶ |
| .۶۰۳ | دوه مَخيزه رويه | ۳۸۱۶ | .۶۲۱ | خوش اطواري | ۳۸۳۶ | .۶۳۹ | كه چرے ميلمه په روټئ كښے كوربه شريكوي | ۳۸۵۷ |
| .۶۰۴ | د ملگرو په باره كښے | ۳۸۱۶ | .۶۲۲ | د تكليف باندے صبر | ۳۸۳۶ | | | |
| .۶۰۵ | كومه مدحه مكروهه ده | ۳۸۱۶ | .۶۲۳ | خلقو طرفته نه متوجه كيدل | ۳۸۳۷ | | | |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۶۴۰. | د مشرانو حقونه | ۳۸۵۸ |
| ۶۴۱. | شعر او رجز وغيره | ۳۸۶۰ |
| ۶۴۲. | د مشرکانو هجوه کول | ۳۸۶۴ |
| ۶۴۳. | که چرے شعر کوئي د قرآن او علم نه بندوالے کوي | ۳۸۶۶ |
| ۶۴۴. | د حضورؐ د ارشاد تشريح | ۳۸۶۶ |
| ۶۴۵. | د زعمُوا باره کښے روايت | ۳۸۶۷ |
| ۶۴۶. | وَيْلَکَ وئيل څنګه دي | ۳۸۶۸ |
| ۶۴۷. | د اللّٰه د محبت نښه | ۳۸۷۳ |
| ۶۴۸. | دا وئيل چه لرے شه | ۳۸۷۵ |
| ۶۴۹. | چاته مرحبا وئيل | ۳۸۷۷ |
| ۶۵۰. | خلق به د پلرونو په نومونو سره رابللے شي | ۳۸۷۸ |
| ۶۵۱. | هيڅوک د داسے نه وائي | ۳۸۷۹ |
| ۶۵۲. | زمانے ته بد مه وائيئے | ۳۸۷۹ |
| ۶۵۳. | کرم د مومن زړه دے | ۳۸۸۰ |
| ۶۵۴. | فداک اَبي و اُمّي وئيل | ۳۸۸۰ |
| ۶۵۵. | دا وئيل چه اللّٰه م درنه خار کړه | ۳۸۸۱ |
| ۶۵۶. | محبوب ترين نوم | ۳۸۸۲ |
| ۶۵۷. | د نبي کريمؐ نوم او کنيت مه يو ځائے کوئ | ۳۸۸۲ |
| ۶۵۸. | حزن نوم ايخودل | ۳۸۸۳ |
| ۶۵۹. | نوم بدلول | ۳۸۸۴ |
| ۶۶۰. | د پيغمبرانو په نوم باندے نوم ايخودل | ۳۸۸۵ |
| ۶۶۱. | د وليد بن وليد نوم | ۳۸۸۷ |
| ۶۶۲. | په نوم کمؤلو سره رابلل | ۳۸۸۷ |
| ۶۶۳. | پيدائش نه مخکښے د ماشوم کنيت | ۳۸۸۸ |
| ۶۶۴. | ابو تراب کنيت ايخودل | ۳۸۸۹ |
| ۶۶۵. | د تولونه خراب نوم | ۳۸۸۹ |
| ۶۶۶. | د مشرک کنيت ايخودل | ۳۸۹۰ |
| ۶۶۷. | صراحت سره خبره نه کول | ۳۸۹۳ |
| ۶۶۸. | دا څيز نه دے وئيل | ۳۸۹۴ |
| ۶۶۹. | اسمان طرف ته کتل | ۳۸۹۵ |
| ۶۷۰. | په اوبو او خاوره کښے لرګے وهل | ۳۸۹۶ |
| ۶۷۱. | زمکه کرول | ۳۸۹۷ |
| ۶۷۲. | تعجب باندے تکبير وئيل | ۳۸۹۷ |
| ۶۷۳. | د کوت کانړي ويشتلو ممانعت | ۳۸۹۹ |
| ۶۷۴. | اينکے کونکے دِ اَلْحَمْدُلِلّٰه وائي | ۳۸۹۹ |
| ۶۷۵. | د اينکي جواب | ۳۹۰۰ |
| ۶۷۶. | د اينکي بهتروالے | ۳۹۰۰ |
| ۶۷۷. | اينکي کونکي ته جواب څنګه ورکړے شي | ۳۹۰۱ |
| ۶۷۸. | اينکي کونکي ته به کله جواب نه ورکوي | ۳۹۰۱ |
| ۶۷۹. | که اسويلے ورشي نو په خوله دِ لاس کيدي | ۳۹۰۱ |
| | کتاب الاستيذان | |
| ۶۸۰. | د سلام ابتداء | ۳۹۰۲ |
| ۶۸۱. | د چا کورته داخليدل | ۳۹۰۳ |
| ۶۸۲. | سلام د اللّٰه نوم هم دے | ۳۹۰۵ |
| ۶۸۳. | د لږو زياتوته سلام کول | ۳۹۰۶ |
| ۶۸۴. | دَ پياده تلونکے ناست ته سلام | ۳۹۰۷ |
| ۶۸۵. | کشر به مشر ته | ۳۹۰۷ |
| ۶۸۶. | سلام عام کول | ۳۹۰۷ |
| ۶۸۷. | بَلد نه نابلده ته سلام | ۳۹۰۸ |
| ۶۸۸. | د پردے د آيت نزول | ۳۹۰۹ |
| ۶۸۹. | اجازت غوښتل | ۳۹۱۱ |
| ۶۹۰. | د اندامونو زنا | ۳۹۱۲ |

| باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۶۹۱. | سلام سره اجازت غوښتل | ۳۹۱۳ | ۶۹۶. | په جواب کښې عليک السلام ونيل | ۳۹۱۷ | ۷۰۱. | خط کتل کله جائز دي | ۳۹۲۲ |
| ۶۹۲. | بللے شوے دِ هم اجازت اوغواړي | ۳۹۱۴ | ۶۹۷. | فلانے تا ته سلام وائي | ۳۹۱۸ | ۷۰۲. | اهل کتابو ته خط | ۳۹۲۴ |
| ۶۹۳. | د ماشومانو سلام | ۳۹۱۵ | ۶۹۸. | که په مجلس کښې غير مسلم هم وي | ۳۹۱۸ | ۷۰۳. | د خط ابتدا کومو الفاظو سره اوکړے شي | ۳۹۲۴ |
| ۶۹۴. | سړي به ښځو ته او ښځے به سړو ته سلام کوي | ۳۹۱۵ | ۶۹۹. | د ګناه مرتکب | ۳۹۲۰ | ۷۰۴. | سردار د پاره پاڅيدل | ۳۹۲۵ |
| ۶۹۵. | که څوک اُوائي چه څوک نے | ۳۹۱۶ | ۷۰۰. | ذميانو ته دَ سلام جواب | ۳۹۲۱ | ۷۰۵. | مصافحه کول | ۳۹۲۵ |
| | | | | | | ۷۰۶. | دواړه لاسونه ملاوول | ۳۹۲۶ |

# پنځويشتمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ؕ

باب۵۸۸: قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مَنۡ يَّشۡفَعۡ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنۡ لَّهُ نَصِيۡبٌ مِّنۡهَا وَمَنۡ يَّشۡفَعۡ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنۡ لَّهُ كِفۡلٌ مِّنۡهَا وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيۡءٍ مُّقِيۡتًا كِفۡلٌ مِّنۡهَا نَصِيۡبٌ مِّنۡهَا قَالَ اَبُوۡ مُوۡسٰى كِفۡلَيۡنِ اَجۡرَيۡنِ بِالۡحَبۡشِيَّةِ.

باب ۵۸۸: دَ الله تعالٰي قول' كوم سړي چه ښهٔ سفارش اوكړ نو هغهٔ ته به دَ هغې نه يو حصه' او كوم سړي چه بد سفارش اوكړ' نو هغهٔ ته به دَ هغې نه يو برخه وركيږي. او الله تعالٰي په هر څيز محافظ دے. كِفلٌ: په معني دَ حصے ده. او ابو موسٰي اووے' چه كفلين: معني حبشي ژبه كښ دَ' دو چندا اجر دي.

۵۶۶۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ الۡعَلَآءِ حَدَّثَنَا اَبُوۡ اُسَامَةَ عَنۡ بُرَيۡدٍ عَنۡ اَبِيۡ بُرۡدَةَ عَنۡ اَبِيۡ مُوۡسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَنَّه كَانَ اِذَا اَتَاهُ السَّآئِلُ اَوۡ صَاحِبُ الۡحَاجَةِ قَالَ اشۡفَعُوۡا فَلۡتُؤۡجَرُوۡا وَلۡيَقۡضِ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ رَسُوۡلِه مَا شَآءَ.

۵۶۶۲: مُحَمَّد بن علاء. ابو اسامه' بريد' ابو برده' حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم ته چه به څوک سائل يا حاجت مند راتلو' نو حضور صلي الله عليه وسلم به فرمائيل' سفارش كوئے. اَجر به دركولے شي' او الله تعالٰي دَ خپل رسول په ژبه چه كوم كلمات غواړي' هغه جاري كوي.

باب۵۸۹: لَمۡ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَّلَا مُتَفَحِّشًا.

باب ۵۸۹: دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دَ فحش كوني عادت وو' او نه ئے قصدًا فحش كوئي كوله.

۵۶۶۷: حَدَّثَنَا حَفۡصُ بۡنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ سُلَيۡمَانَ سَمِعۡتُ اَبَا وَآئِلٍ سَمِعۡتُ مَسۡرُوۡقًا قَالَ قَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ عَمۡرٍو حَدَّثَنَا جَرِيۡرٌ عَنِ الۡاَعۡمَشِ عَنۡ شَقِيۡقِ بۡنِ سَلَمَةَ عَنۡ مَسۡرُوۡقٍ قَالَ دَخَلۡنَا عَلٰى عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ عَمۡرٍو حِيۡنَ قَدِمَ مَعَ مُعَاوِيَةَ اِلَى

۵۶۶۷: حفص بن عمر' شعبه' سُليمان' ابو وائل' مسروق' عبدالله بن عمر' قتيبه' جرير' شقيق بن سلمه' مسروق نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' مونږ حضرت عبدالله بن عمرؓ له ورغلو' كوم وخت چه حضرت معاويهؓ كوفے ته راغلے وو. هغه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذكر اوكړ' نو وئيلے چه نه خو' دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ فحش كوني عادت وو' او نه ئے قصدًا

الْكُوْفَةِ فَذَكَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ اَخْيَرِكُمْ اَحْسَنُكُمْ خُلُقًا.

فحش کوني کوله. او بیان ئے اوکړ، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي، تاسو کښې بهترین سړے هغه دے چه د عادت د اعتبار نه ښه وي.

۹۶۸: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ يَهُوْدَ اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا السَّامُ عَلَيْكُمْ فَقَالَتْ عَائِشَةُ عَلَيْكُمْ وَلَعَنَكُمُ اللّٰهُ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ قَالَ مَهْلًا يَا عَائِشَةُ عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ وَاِيَّاكِ وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ قَالَتْ اَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا قَالَ اَوَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قُلْتُ رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ فَيُسْتَجَابُ لِيْ فِيْهِمْ وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ.

۹۶۹: حفص بن سلام، عبدالوهاب، ایوب، عبداللّٰه بن ابي ملیکه، بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، یهود، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم له راغلل، نو وئیلے، السام علیکم (تاسو هلاک شے) بي بي عائشےؓ اووے: علیکم و لعنکم اللّٰه و غضب اللّٰه علیکم (تاسو هلاک شے، په تاسو دے د اللّٰه لعنت وي او خپل غضب دے دربانده نازل کړي) حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، عائشےؓ پریږده، نرمي کوه، کج خلقي او فحش ګوئي نه پرهیز کوه. بي بي عائشےؓ عرض اوکه. تاسو واونه ریدل، څه چه دے خلقو اووے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل، آیا تا واونه ریدل، کوم جواب چه ما ورکړلو. ما هغوي ته هغه واپس کړلو. څما خبره به د هغوي په حق کښې مقبوله شي. لیکن د هغوي خبره به څما په حق کښې قبوله نشي.

۹۶۹: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ يَحْيٰى هُوَ فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ هِلَالِ بْنِ اُسَامَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبَّابًا وَلَا فَحَّاشًا وَّلَا لَعَّانًا كَانَ يَقُوْلُ لِاَحَدِنَا عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ مَالَهُ تَرِبَ جَبِيْنُهُ.

۹۶۹: اصبغ، ابن وهب، ابو یحیٰي، فلیح بن سُلیمان، هلال بن اُسامه، حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم کنځل کونکے، بدګوئي کونکے، لعنت کونکے نهٔ و، که مونږ کښې به چرته د چانه ناراضه شو، نو فرمائیل به ئے، دهٔ له څهٔ شوے دي، د دهٔ تندے دے په خاورو ککړ شي.

۹۷۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاۤءٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ

۹۷۰: عمرو بن عیسٰي. محمد بن سواء، روح بن قاسم، محمّد بن منکدر، عروه، بي بي عائشےؓ نه

بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رُجُلًا اسْتَاذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَاٰهُ قَالَ بِئْسَ اَخُو الْعَشِيْرَةِ وَبِئْسَ ابْنُ الْعَشِيْرَةِ فَلَمَّا جَلَسَ تَطَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَجْهِهٖ وَانْبَسَطَ اِلَيْهِ فَلَمَّا انْطَلَقَ الرَّجُلُ قَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حِيْنَ رَاَيْتَ الرَّجُلَ قُلْتَ لَهُ كَذَا وَكَذَا ثُمَّ تَطَلَّقْتَ فِيْ وَجْهِهٖ وَانْبَسَطْتَ اِلَيْهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ مَتٰى عَهِدْتِنِيْ فَحَّاشًا اِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اِتِّقَاءَ شَرِّهٖ.

روایت کوي، ذَ هغې بیان دے. یو سړي ذَ نبي صلي الله علیه وسلم نه دننه ذَ راتلو اجازت اوغوښتلو. کوم وخت چه حضور صلي الله علیه وسلّم هغه اولیدلو نو وے فرمائیل، ذَ قبیلې خراب ورور یا خراب خوئے دے. کوم وخت چه هغه کیناست، نو حضور صلي الله علیه وسلّم ورسره خنده پیشالي او کُشاده روئي سره یو ځائے شولو، کوم وخت چه هغه سړے لاړ. نو بي بي عائشےؓ حضور صلي الله علیه وسلّم ته عرض اوکه، یا رسول الله، کوم وخت چه تاسو هغه سړے اولید، نو داسے داسے مو، او فرمائیل بیا ورسره تاسو په ورونړ تندي یو ځائے شولئے. رسول الله صلي الله علیه وسلّم ورته او فرمائیل. اے عائشےؓ تا زهٔ کله فحش گو لیدلے یم. ذَ قیامت په ورځ به خلقو کښې ذَ ټولو نه خرابه مرتبه ذَ، الله تعالیٰ په نزد ذَ هغه سړي وي، چه خلق هغه ذَ بدئ نه محفوظ کیدو ذَ پاره پریږدي.

## بَابٌ ۵۹۰ : حُسْنِ الْخُلُقِ وَالسَّخَاءِ وَمَا يُكْرَهُ مِنَ الْبُخْلِ

## باب ۵۹۰ : ذَ حُسن خُلق او سخاوت بیان، او دا چه بُخل مکروه دے.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ اَجْوَدَ مَا يَكُوْنُ فِيْ رَمَضَانَ وَقَالَ اَبُوْ ذَرٍ لَّمَّا بَلَغَهُ مَبْعَثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاَخِيْهِ ارْكَبْ اِلٰى هٰذَا الْوَادِيْ فَاسْمَعْ مِنْ قَوْلِهٖ فَرَجَعَ فَقَالَ رَاَيْتُهُ يَاْمُرُ بِمَكَارِمِ الْاَخْلَاقِ.

ذَ حضرت ابن عباسؓ بیان دے، نبي صلي الله علیه وسلم خلقو کښې ذَ ټولو نه زیات سخي وو. او رمضان کښې به ذَ معمول نه زیات سخي کیدلو. ذَ حضرت ابو ذرؓ بیان دے. کوم وخت چه هغه ذَ نبي صلي الله علیه وسلّم ذَ مبعوث کیدو خبرو اوریدلو، نو خپل ورور ته ئے اووے، چه هغې وادي ته ورشه، او ذَ حضور صلي الله علیه وسلّم خبرے واوره. کوم وخت چه هغه واپس شو، نو هغهٔ اووے، ما حضور صلي الله علیه وسلم ذَ ښو اخلاقو حکم ورکونکے اولیدو.

۹۷۱ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ

۹۷۱ : عمرو بن عون، حماد بن زید، ثابت،

حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنَ النَّاسِ وَاَجْوَدَ النَّاسِ وَاشْجَعَ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَانْطَلَقَ النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ سَبَقَ النَّاسَ اِلَى الصَّوْتِ وَهُوَ يَقُوْلُ لَنْ تُرَاعُوْا وَهُوَ عَلٰى فَرَسٍ لِاَبِيْ طَلْحَةَ عُرْيٍ مَّا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِيْ عُنُقِهٖ سَيْفٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْتُّهٗ بَحْرًا اَوْ اِنَّهٗ لَبَحْرٌ.

حضرت انسؓ نه روايت كوي. ذَ هغهٔ بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خلقو كښې ذَ ټولو نه زيات ښائسته، ذَ ټولو نه زيات سخي او ذَ ټولو نه زيات بهادر وو. يوه شپه مدينے واله اويريدل، خلق هغے آواز طرف ته ورغلل. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي كښې ذَ ټولو نه مخكښې وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخكښې مخكښې تشريف اُوړلو. او فرمائيل به ئے، بالكل او نه ويريږے بالكل او نه ويريږے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ ابو طلحهؓ په اَس په شا توره بغير زين نه سور وو. او ذَ حضورؐ غاړه كښې توره اَويزانده وه. حضورصلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه ما دا اَس ذَ درياب په شان تيز رفتار بيامند: لقد وجدتهٗ بحراً: ئے اووے، يا: انّه لبحر: ئے اووے.

۹۷۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُوْلُ مَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قَطُّ فَقَالَ لَا.

۹۷۲: محمّد بن كثير. سفيان، ابو منكدر جابرؓ نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه چه كله هم څه څيز غوښتلے شوے دے، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هيڅ كله "نه" نهٔ دي كړے.

۹۷۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو وَيُحَدِّثُنَا اِذْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ فَاحِشًا وَّلَا مُتَفَحِّشًا وَّاِنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ اِنَّ خِيَارَكُمْ اَحَاسِنُكُمْ اَخْلَاقًا.

۹۷۳: عمرو بن حفص، حفص، اعمش، شقيق، مسروق نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے مونږ خلق عبداللّٰه بن عمرؓ سره ناست وو. هغه حديث بيان كه، وئيلے، ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، نه خو، ذَ فحش ګوئي عادت وو، او نه ئے قصداً فحش كلامي كوله. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به فرمائيل، تاسو كښې ذَ ټولو نه بهتر هغه دے، چه ذَ اخلاقو ذَ اعتبار نه بهتر وي.

۹۷۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ

۹۷۴: سعيد بن ابي مريم، ابو غسّان، ابو حازم،

مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبُرْدَةٍ فَقَالَ سَهْلٌ لِلْقَوْمِ اَتَدْرُوْنَ مَا الْبُرْدَةُ فَقَالَ الْقَوْمُ هِيَ شَمْلَةٌ فَقَالَ سَهْلٌ هِيَ شَمْلَةٌ مَّنْسُوْجَةٌ فِيْهَا حَاشِيَتُهَا فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَكْسُوْكَ هٰذِهٖ فَاَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا اِلَيْهَا فَلَبِسَهَا فَرَاٰهَا عَلَيْهِ رَجُلٌ مِّنَ الصَّحَابَةِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَآ اَحْسَنَ هٰذِهٖ فَاكْسُنِيْهَا فَقَالَ نَعَمْ فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَامَهٗ اَصْحَابُهٗ قَالُوْا مَآ اَحْسَنْتَ حِيْنَ رَاَيْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَذَهَا مُحْتَاجًا اِلَيْهَا ثُمَّ سَاَلْتَهٗ اِيَّاهَا وَقَدْ عَرَفْتَ اَنَّهٗ لَا يُسْئَلُ شَيْئًا فَيَمْنَعُهٗ فَقَالَ رَجَوْتُ بَرَكَتَهَا حِيْنَ لَبِسَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلِّيْ اُكَفَّنُ فِيْهَا.

سهل بن سعدؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. يوه ښځهٔ يو، برده سره دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. سهل دَ خلقو نه تپوس اوکهٔ، تاسو ته معلومه ده، چه برده څهٔ ته وائي، خلقو اوويے، هغه شمله ده. سهل اوويے، هغے څادر ته وائي. چه په هغے حاشيے جوړے شوے وي. هغے ښځے عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، دا (څادر) تاسو ته دَ، اغستولو دَ پاره درکوم. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ هغے ضرورت هم وو. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه وا غوستلو. صحابه ؓ کښې يو سړي اوليدلو نو عرض ئے اوکهٔ، يا رسول اللّٰه دا څومره اعلیٰ دے. دا ما ته راکړئے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ښه ده، کوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پاسيدو (او دننه ئے تشريف يوړلو) نو صحابه ؓ هغه ملامته که. او ورته ئے وئيلے، چه تا ښه اونه کړل، هر کله چه تا اوليدل چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه څادر قبول کړلو او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ هغے ضرورت هم وو. نو تا دَ دے باوجود هغه او غوښتلو. او تا ته دا هم معلومه ده. چه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه څه څيز اوغوښتلے شي، نو هغه ئے نه منع کوي. هغهٔ ورته اووے، کوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه واغوستلو، نو زهٔ دَ هغے دَ برکت اُميدوار شوم، چه زهٔ دَ هغے نه خپل کفن جوړ کړم.

۹۷۵ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۹۷۵ : ابو اليمان، شعيب، زهري، حميد بن عبدالرحمٰن، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل دَ قيامت زمانه چه څومره رانزدے کيږي،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعِلْمُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قَالُوْا وَمَا الْهَرْجُ قَالَ الْقَتْلُ الْقَتْلُ.

نو عمل به كيږي. او بُخل به زيات شي. او دَ هرج به زياتے وي، خلقو تپوس اوكړو چه هرج څه څيز دے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، قتل، قتل.

۹۷۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ سَمِعَ سَلَّامُ بْنُ مِسْكِيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ ثَابِتًا يَقُوْلُ حَدَّثَنَا اَنَسٌ قَالَ خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِيْنَ فَمَا قَالَ لِيْ اُفٍّ وَلَا لِمَ صَنَعْتَ وَلَا اَلَّا صَنَعْتَ.

۹۷۶: موسي بن اسماعيل، سلام بن مسكين، ثابت، حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، مالس كاله دَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت اوكړو، خو ما ته حضور صلي الله عليه وسلّم اُف قدرے هم او نهٔ كړل، او نه ئے چرته راته دا، او فرمائيل، چه تا، ولے داسے اوكړل، او نه ئے چرته راته دا، او فرمائيل، چه تا ولے داسے اونهٔ كړل.

بَاب ۵۹۱: كَيْفَ يَكُوْنُ الرَّجُلُ فِيْ اَهْلِهٖ.

باب ۵۹۱: سړے دے خپل كور كښ څنګه وي.

۹۷۷: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِيْ اَهْلِهٖ قَالَتْ كَانَ فِيْ مِهْنَ اَهْلِهٖ فَاِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ.

۹۷۷: حفص بن عمر، شعبه، حكم، ابراهيم اسود نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، ما دَ بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكړو، حضور صلي الله عليه وسلم به خپل كور كښ څهٔ كول، هغې اووے، دَ كور والو كار كښ به لګيدلے وو. او كله چه به دَ مانځه وخت راغے، نو مانځه دَ پاره به ئے تشريف يوړلو.

باب ۵۹۲: اَلْمِقَةِ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى.

باب ۵۹۲: محبت دَ الله تعالٰي دَ طرف نه وي.

۹۷۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹۷۸: عمرو بن علي، ابو عاصم، ابن جريج موسي بن عقبه، نافع، حضرت ابو هريرهؓ، نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله او فرمائيل، هر كله چه الله تعالي يو بنده سره محبت كوي، نو جبرائيل ته اووائي، چه الله تعالي فلاني بنده سره محبت

وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَحَبَّ اللّٰهُ عَبْدًا نَادٰى جِبْرِيْلَ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَاَحِبَّهُ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيْلُ فَيُنَادِيْ جِبْرِيْلُ فِيْ اَهْلِ السَّمَآءِ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَاَحِبُّوْهُ فَيُحِبُّهُ اَهْلُ السَّمَآءِ ثُمَّ يُوْضَعُ لَهُ الْقَبُوْلُ فِيْ اَهْلِ الْاَرْضِ.

کوي، په دې وجه ته هم هغهٔ سره محبت کوه، نو جبرائيلؑ هغهٔ سره محبت راواخلي او جبرائيلؑ آسمان والو کښې اعلان کوي، چه الله فلاني سړي سره محبت کوي، تاسو هم هغه سره محبت کوئ. نو آسمان واله هغه سره محبت راواخلي. بيا زمکه والو کښې هم هغهٔ ذ پاره قبوليت پيدا کړے شي. (الله پاک دې دا محبت خمونږ هم نصيب کړي. اللّٰهم آمين. فقير محمد عباس قادريه).

باب ٥٩٣ : اَلْحُبّ فِي اللّٰهِ.

باب ٥٩٣ : خدائے ذ پاره ذ محبت کولو بيان.

٩٧٩ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَجِدُ اَحَدٌ حَلَاوَةَ الْاِيْمَانِ حَتّٰى اَنْ يُّقْذَفَ فِي النَّارِ اَحَبُّ اِلَيْهِ مِنْ اَنْ يَّرْجِعَ اِلَى الْكُفْرِ بَعْدَ اِذَا اَنْقَذَهُ اللّٰهُ وَحَتّٰى يَكُوْنَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا.

٩٧٩ : آدم، شعبه، قتاده، انس بن مالکؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، هيڅوک به ذ ايمان لذت بيا نهٔ مومي، څو پورې چه هغه چا سره ذ الله ذ پاره محبت او نهٔ کړي، او اُور کښې غرخيدل ذ هغه زيات خوښ وي، په نسبت ذ دې چه کُفر طرف ته واپس شي، هر کله چه الله هغهٔ له ذ، هغې نه خلاصي ورکړے دے، او څو پورې چه الله او ذ هغه رسول ذ نورو ټولو څيزونو نه هغهٔ ته زيات محبوب نهٔ وي.

باب ٥٩٤ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ.

باب ٥٩٤ : ذ، اللّٰه تعالٰي فرمان، چه اے ايمان والو، هيڅ جماعت دې بل جماعت سره مذاق نه کوي، شائد چه هغه ذ، هغوي نه بهتر، وي: اُولٰٓئِکَ هُمُ الظلمون: پورې.

٩٨٠ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّضْحَكَ الرَّجُلُ مِمَّا يَخْرُجُ مِنَ الْاَنْفُسِ قَالَ بِمَ يَضْرِبُ اَحَدُكُمُ

٩٨٠ : علي بن عبدالله، سفيان، هشام ذ خپل پلار نه، هغهٔ ذ عبدالله بن زمعه نه روايت کوي. نبي صلي الله عليه وسلّم باد تلو باندې (رياح خارج ہونے پر) ذ خندا نه منع فرمائيلې ده، او دې فرمائيل، تاسو کښې ولې يو سړے خپله ښځه ذ څناورو په شان وهي، حالانکه بيا به هغه، هغې سره يو ځائے کيږي (يعني

اِمْرَاَتَهُ ضَرْبَ الْفَحْلِ ثُمَّ لَعَلَّهُ يُعَانِقُهَا وَقَالَ الثَّوْرِيُّ وَوُهَيْبٌ وَاَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ جَلْدَ الْعَبْدَ.

صحبت به ورسره كوي) او ثوري وهيب او ابو معاويه دَ هشام نه: جلد العبد: لفظ بيان كۀ (يعني دَ غلامانو په شان وهي).

۹۸۱ : حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ اَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى اَتَدْرُوْنَ اَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ بَلَدٌ حَرَامٌ اَتَدْرُوْنَ اَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ شَهْرٌ حَرَامٌ قَالَ فَاِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ دِمَاءَ كُمْ وَاَمْوَالَكُمْ وَاَعْرَاضَكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا.

۹۸۱ : محمّد بن مثنٰي' يزيد بن هارون' عاصم بن محمّد بن زيد' محمّد بن زيد' حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مقامِ منٰي كښ او فرمائيل' تاسو ته معلومه ده' دا كوم ښار' دے. خلقو اووے' اللّٰه او دَ هغۀ رسول ښۀ پوهيږي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل دا' دَ حرمت ښار' دے. بيائے او فرمائيل' تاسو ته معلومه ده' دا كومه مياشت ده. خلقو اووے' اللّٰه او دَ هغۀ رسول ښۀ پوهيږي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' دا دَ حرمت مياشت ده. بيا ئے او فرمائيل' اللّٰه په تاسو' ستاسو وينه (ځان) مال' عزت او' آبرو (په يو بل) داسے حرام كړے دي' ځنګه چه ستاسو دَ پاره دَ نن ورځ' ستاسو دے ښار كښ' دے مياشت كښ دَ' حرمت ده.

## بَاب ۵۹۵ : مَا يُنْهٰى مِنَ السِّبَابِ وَاللَّعْنِ.

## باب ۵۹۵ : دَ كنځلو او' دَ' لعنت دَ ممانعت بيان.

۹۸۲ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ يُّحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوْقٌ وَّقِتَالُهُ كُفْرٌ تَابَعَهُ غُنْدُرٌ عَنْ شُعْبَةَ.

۹۸۲ : سُليمان بن حرب' شعبه' منصور' ابو وائل' حضرت عبداللّٰه نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي' مسلمان ته كنځل كول فسق دے. او ورسره جنګ كول كُفر دے. غندر. دَ شعبه نه دَ دے متابع حديث روايت كړيدے.

۹۸۳ : حَدَّثَنَا اَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ عَنْ عَبْدِ

۹۸۳ : ابو معمر' عبدالوارث' حسين عبداللّٰه بن بريده' يحيٰي بن يعمر.

اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ يَعْمَرَ اَنَّ اَبَا الْاَسْوَدِ الدَّيْلِيَّ حَدَّثَهُ عَنْ اَبِي ذَرٍّ اَنَّ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَرْمِيْ رَجُلٌ رَّجُلًا بِالْفُسُوْقِ وَلَا يَرْمِيْهِ بِالْكُفْرِ اِلَّا ارْتَدَّتْ عَلَيْهِ اِنْ لَّمْ يَكُنْ صَاحِبُهُ كَذٰلِكَ.

ابو الاسود' ديلي حضرت ابو درداءؓ نه روايت كوي' ذ هغه بيان دے ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' هيڅوک (مُسلمان) دے بل فسق او كفر سره نه بدنامه وي' ځكه هغه ذ هغے اهل نۀ وي' نو هغه فسق يا كُفر به بدنامي لړونكي طرف ته ګرځي.

ف: چا باندے ذ كفر فتويٰ لګولو كښ ډير احتياط پكار دے' داسے نه چه ذ' بے خايه فتوے په وجه په كښ خپله كيوځي. ذ خپلے ذاتي غصے په وجه ذ' دين په جامه كښ شرمخ كيدل نۀ دي پكار. كافر مُسلمان كول پكار دي' نه چه مُسلمان دے كافر كړے شي. (مترجم)

۹۸۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَّلَا لَعَّانًا وَّلَا سَبَّابًا كَانَ يَقُوْلُ عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ مَالَهٗ تَرِبَ جَبِيْنُهٗ.

۹۸۴ : محمّد بن سنان' فليح بن سُليمان' هلال بن علي' حضرت انسؓ نه روايت كوي' ذ هغۀ بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فحش ګوني كونكے' لعنت كونكے او كنځل كونكے (يعني كنځل مار) نۀ وو. او كله چه به ناراضه شو' نو صرف دومره قدر به ئے فرمائيل' چه دۀ له څۀ شوے دي' ذ' ده تندے دے په خاؤرو ككړ شي. (خاک آلودہو)

۹۸۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمٰنُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّ ثَابِتَ بْنَ ضَحَّاكٍ وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرِ حَدَّثَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى مِلَّةٍ غَيْرِ الْاِسْلَامِ فَهُوَ كَمَا قَالَ وَلَيْسَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ نَذْرٌ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ وَمَنْ قَتَلَ

۹۸۵ : محمّد بن بشّار' عثمان بن عمر' علي بن مبارک' يحيٰي بن ابي كثير' ابو قلابہ نه روايت كوي. ثابت بن ضحاک چه اصحاب سمره (يعني ذ' اُونے ذ لاندے ذ بيعت كونكو) نه وو. ذ هغه بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' كوم سړے چه ذ' اسلام نه سِوا ذ څۀ بل مِلّت قسم او خوري' هغه داسے دے' لكه څنګه چه هغۀ اووے. او كوم څيز چه ذ سړي په وَس كښ نه دے' ذ هغے متعلق نذر پوره كول ضروري نۀ دي. او چا چه څۀ څيز سره دُنيا كښ خود

نَفۡسَهُ بِشَيۡءٍ فِي الدُّنۡيَا عُذِّبَ بِهٖ يَوۡمَ الۡقِيَامَةِ وَمَنۡ لَعَنَ مُؤۡمِنًا فَهُوَ كَقَتۡلِهٖ وَمَنۡ قَذَفَ مُؤۡمِنًا فَهُوَ كَقَتۡلِهٖ.

کُشي او کړله (ځان ئې په خپله اُووژلو) نو ذهغې څيز په ذريعه به ذ قيامت په ورځ عذاب ورکولے شي. او ها چه په يو مؤمن لعنت اوکۀ، نو هغه ذ هغه قتلولو په شان دي. او چا چه يو مؤمن بدنام کړلو، نو هغه ذ هغه ذ قتل په شان دي.

۹۸۶ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بۡنُ حَفۡصٍ حَدَّثَنَا اَبِي حَدَّثَنَا الۡاَعۡمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عَدِيُّ بۡنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعۡتُ سُلَيۡمَانَ بۡنَ صُرَدٍ رَّجُلًا مِّنۡ اَصۡحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسۡتَبَّ رَجُلَانِ عِنۡدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَغَضِبَ اَحَدُهُمَا فَاشۡتَدَّ غَضَبُهُ حَتّٰى انۡتَفَخَ وَجۡهُهُ وَتَغَيَّرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِنِّي لَاَعۡلَمُ كَلِمَةً لَوۡ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنۡهُ الَّذِي يَجِدُ فَانۡطَلَقَ اِلَيۡهِ الرَّجُلُ فَاَخۡبَرَهُ بِقَوۡلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ تَعَوَّذۡ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيۡطَانِ فَقَالَ اَتُرٰى بِي بَاسٌ اَمَجۡنُوۡنٌ اَنَا اِذۡهَبۡ.

۹۸۶ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، عدي بن ثابت، سليمان بن حرد، ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ يو، صحابي نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے، دوۀ سړو ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې يو بل ته کنځل اوکړل. هغوي ته يو ته ډير زيات غصه ورغله، تر دے چه ذ هغۀ مخ اوپړسيدلو، او رنګ ئې بدل شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ما ته يوه داسے کلمه معلومه ده، که هغه سړي دا وئيلے وے، ذ هغۀ غُصه به تلے وه. نو يو سړي ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ دے ارشاد نه هغۀ سړے خبر کۀ، چه تۀ ذ شيطان نه ذ اللّٰه پناه او غواړه (يعني: اعوذ باللّٰه من الشيطن الرجيم): او وايه نو هغه اووے، آيا تۀ ما کښې خرابي بيا مومے، يا آيا زۀ ليونے يم، تۀ لرے شه.

ف: ذ غصے علاج ذ دے حديث ذ رُو، نه، اعوذ باللّٰه من الشيطن الرجيم وئيل دي اللّٰه پاک دے دا کلمه خمونږ نصيب کړي. اللّٰهم آمين.

۹۸۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشۡرُ بۡنُ الۡمُفَضَّلِ عَنۡ حُمَيۡدٍ عَنۡ اَنَسٍ قَالَ قَالَ اَنَسٌ حَدَّثَنِي عُبَادَةُ بۡنُ الصَّامِتِ قَالَ خَرَجَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لِيُخۡبِرَ النَّاسَ

۹۸۷ : مُسدد. بشر بن مفضّل، حميد، انس، عباده بن صامت نه روايت کوي. ذ هغۀ بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بهر ته تشريف راوړلو، چه خلقو ته ذ شبِ قدر متعلق خبر ورکړي (چه ذ شبِ قدر شپه فلانے ده) خو مُسلمانانو کښې دوه سړي په جګړه

بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحٰى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ فَتَلَاحٰى فُلَانٌ وَاِنَّهَا رُفِعَتْ وَعَسٰى اَنْ يَكُوْنَ خَيْرًا لَكُمْ فَالْتَمِسُوْهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ.

شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، زهٔ تاسو ته دَ خبر دركولو دَ پاره بهر ته راوتلے ووم، خو فلانے فلانے په جګړه شو، او هغه علم پورته كړے شو. ممكنه ده، چه ستاسو بهتري په دے كښ وي، په دے وجه تاسو دا، په يو كم ديرشمه، اوويشتمه او پنځويشتمه شپه كښ تلاش كوړے.

ف: دَ شب قدر زيات روايات په اوويشتمه شپه هم راغلي دي. څوک چه دَ رمضان آخري لسو (شپو ورځو) كښ جُمات كښ په اعتكاف كښ وي. نو دَ دے سعادت منده شپے نه بهره وركيږي. الله پاک دِ دا سعادت ټول عُمر څمونږ نصيب كړي. اللّٰهم آمين.

۹۸۸: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنِ الْمَعْرُوْرِ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ رَاَيْتُ عَلَيْهِ بُرْدًا وَّعَلٰى غُلَامِهٖ بُرْدًا فَقُلْتُ لَوْ اَخَذْتَ هٰذَا فَلَبِسْتَهٗ كَانَتْ حُلَّةً وَّ اَعْطَيْتَهٗ ثَوْبًا اٰخَرَ فَقَالَ كَانَ بَيْنِيْ وَبَيْنَ رَجُلٍ كَلَامٌ وَّ كَانَتْ اُمُّهٗ اَعْجَمِيَّةً فَنِلْتُ مِنْهَا فَذَكَرَنِيْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِيْ اَسَابَبْتَ فُلَانًا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَفَنِلْتَ مِنْ اُمِّهٖ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اِنَّكَ امْرُؤٌ فِيْكَ جَاهِلِيَّةٌ قُلْتُ عَلٰى حِيْنِ سَاعَتِيْ هٰذِهٖ مِنْ كِبَرِ السِّنِّ قَالَ نَعَمْ هُمْ اِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللّٰهُ تَحْتَ اَيْدِيْكُمْ فَمَنْ جَعَلَ

۹۸۸: عُمر بن حفص، حفص، اعمش، معرور، ابوذرؓ نه روايت كوي. ما ابوذر او دَ هغهٔ غُلام يو قِسم كپړه (څادر) اغُستلے اوليدل، نو ما اووے، كاش، چه تاسو دا څادر اچولے وے، او دے غُلام ته مو بله كپړه وركړے وے، نو ستاسو دَ پاره به يوه جوړه شوے وے. نو ابوذرؓ بيان اوكهٔ څما او دَ يو سړي په مينځ كښ خبرے اترے كيدلے. دَ هغهٔ مور عجمي (ايرانۍ يا غير عرب) وه. ما هغهٔ ته بدرّد، اووے، نو هغهٔ څما په بسر نبي صلي الله عليه وسلّم ته شكايت اوكړو حضورؐ ما ته او فرمائيل، آيا تا فلاني ته كنځل كړے دي. ما اووے، جي. او. وے فرمائيل آيا تا د هغه مور په بَد وستائلے ده. ما اووے، جي. او. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تهٔ داسے سړے ئے، چه تا كښ اوسه پورے دَ جاهليت خبره بيا مُندے شي. هغه اووے، آيا څما دے پوخ عُمر كښ هم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، او. دا غلامان ستاسو وروڼړه دي. الله هغوي ستاسو لاس كښ دركړي دي. الله چه دَ چا لاسونو كښ دَ هغه

اللّٰهُ اَخَاهُ تَحْتَ يَدِهٖ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَاْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا يُكَلِّفُهُ مِنَ الْعَمَلِ مَا يَغْلِبُهُ فَاِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ.

وروړ ورکړي، نو څهٔ چه خپله خوري، په هغه دے هم خوروي، او څهٔ چه خپله اغُندي، هغهٔ ته دے هم اغندوي. او هغهٔ ته دے دَ داسے کار تکليف نهٔ ورکوي، چه هغهٔ نه نشي کيدے. او که تکليف ورکوي، نو بيا دے دَ هغے کولو کښې ورسره خپله هم مدد کوي.

باب ۵۹۶: مَا يَجُوْزُ مِنْ ذِكْرِ النَّاسِ نَحْوَ قَوْلِهِمُ الطَّوِيْلُ وَالْقَصِيْرُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَقُوْلُ ذُو الْيَدَيْنِ وَمَا لَا يُرَادُ بِهٖ شَيْنُ الرَّجُلِ.

باب ۵۹۶: د خلقو ذکر څنګه جائز دے، مثلا چاته اوږد يا لنډ وئيل. او حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، چه ذوالیدين (اوږد لاسونه واله) څهٔ وائي، او داسے خبرے کول، چه د هغے نه دَ هغهٔ بدي مقصود نهٔ وي.

۹۸۹: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ قَامَ اِلٰى خَشَبَةٍ فِيْ مُقَدَّمِ الْمَسْجِدِ وَوَضَعَ يَدَهٗ عَلَيْهَا وَفِي الْقَوْمِ يَوْمَئِذٍ اَبُوْ بَكْرٍ وَعُمَرُ فَهَابَا اَنْ يُكَلِّمَاهُ وَخَرَجَ سَرَعَانُ النَّاسِ فَقَالُوْا قُصِرَتِ الصَّلٰوةُ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْهُ ذَا الْيَدَيْنِ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اَنَسِيْتَ اَمْ قُصِرَتْ فَقَالَ لَمْ اَنْسَ وَلَمْ تَقْصُرْ قَالَ بَلْ نَسِيْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ صَدَقَ

۹۸۹: حفص بن عمر، يزيد بن ابراهيم محمد، حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم مونږ ته د ماسپخين مونځ دوه رکعاته راکړلو. بيائے سلام او ګرځولو. بيا د سجدے دَ ځائے (سجده گاه) مخکښې لرګي طرف ته ورغے، خپل لاس ئے په هغے کيښودلو. جماعت کښې هغه وخت حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ هم وو. هغوي دواړو خبرو اترو کولو کښې اويريدل. او خلق تادئ سره په منډه بهرته اووتل، اووئيلے، چه مونځ کم کړے شو. هغے جماعت کښې يو سړے وو، چه هغه ته به حضور صلي الله عليه وسلّم ذواليدين (اوږد لاسونو واله) وئيلے. هغه عرض اوکهٔ. اے دَ الله نبي، آيا تاسو نه هيره اوشوه، يا مونځ کښې کمي اوکړے شو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل. نه مانه هيره شوے ده، او نه مونځ کښې کمي شوے دے. خلقو عرض اوکهٔ، يا رسول الله تاسوّ نه هيره اوشوه. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل،

ذُوالْيَدَيْنِ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ وَكَبَّرَ ثُمَّ وَضَعَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ وَكَبَّرَ.

ذواليدين تيک وائي. بيا حضور صلي الله عليه وسلم اودريدلو، او دوه ركعاته مونځ ئے اوكړلو. بيائے سلام او كرخولو او تكبير ئے اوكړلو. بيائے دَ ورمبنے سجدے په شان دَ هغے نه اوږده سجده اوكړله. بيائے خپل سر اوچت كړلو، او تكبير ئے اووئيلو.

باب ۵۹۷: اَلْغِيْبَةِ وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابُ الرَّحِيْمُ ط.

باب ۵۹۷: دَ غيبت بيان، او دَ الله تعالٰي قول، تاسو كښې دے بعضے، دَ بعضو غيبت نه كوي، آيا تاسو كښې څوک سړے دا خوښوي، چه دَ خپل مړ ورور غوښه او خوري، تاسو به دا، بده ګنړئے، او الله نه اويريږئے، بيشكه الله توبه قبلونكے مهربانه دے.

۹۹۰: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يُحَدِّثُ عَنْ طَاوُسَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ مَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرَيْنِ فَقَالَ اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ اَمَّا هٰذَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهٖ وَاَمَّا هٰذَا فَكَانَ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ دَعَا بِعَسِيْبٍ رَّطْبٍ فَشَقَّهٗ بِاثْنَيْنِ فَغَرَسَ عَلٰى هٰذَا وَاحِدًا ثُمَّ قَالَ لَعَلَّهٗ يُخَفِّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا.

۹۹۰: يحيٰي، وكيع، اعمش، مجاهد، طاؤس، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم په دوو قبرونو تير شولو، وے فرمائيل، دے دواړو ته عذاب كيږي، او دَ څهٔ لوئے معاملے په سبب نه په عذابيږي، دا قبر واله به ځان دَ خپلو وړو بولو نه، نه بچ كولو (اودس به ئے نه اُچولو. يا، بے احتياطي سره به ئے واړهٔ بول كول، چه څاڅكي به ئے په بدن او كپړو پريوتل) او هغه بل به چغلخوري كوله. بيائے يو لوند شاخ اوغښتلو دَ هغے ئے دوه ټكړے كړے، يوه ټكړه ئے په يو قبر او بله ئے دَ هغے بل په قبر كينبودله. بيائے او فرمائيل، اُميد دے، چه الله تعالٰي دَ دوي په عذاب كښې كمي اوكړے، څو پورے چه دا شاخونه اُرچ (خشک) نشي.

باب ۵۹۸: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُوْرِ الْاَنْصَارِ.

باب ۵۹۸: دَ نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيل، دَ انصارو كورونو كښې دَ ټولو نه بهتر څوک دے.

۱۹۹۱: حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ اَبِى الزِّنَادِ عَنْ اَبِىْ سَلْمَةَ عَنْ اَبِىْ اُسَيْدِ السَّاعِدِىِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُوْرِ الْاَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ.

۱۹۹۱: قبیصه، سُفیان، ابـو الزناد، ابو سلمه ابو اسید ساعدي نـه روایت کوي. دَ هغـه بیان دے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل دَ انصارو کورونو کښ دَ ټولو نه بهتر دَ بنو نجار کورونه دي.

باب ۵۹۹: مَا يَجُوْزُ مِنِ اغْتِيَابِ اَهْلِ الْفَسَادِ وَالرِّيَبِ.

باب ۵۹۹: دَ فساد خورونکو او اهلِ شرک غیبت جائز دے.

۱۹۹۲: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَؓ اَخْبَرَتْهُ قَالَتِ اسْتَاذَنَ رَجُلٌ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ائْذَنُوْا لَهُ بِئْسَ اَخُو الْعَشِيْرَةِ اَوِ ابْنُ الْعَشِيْرَةِ فَلَمَّا دَخَلَ اَلَانَ لَهُ الْكَلَامَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قُلْتَ الَّذِىْ قُلْتَ ثُمَّ اَلَنْتَ لَهُ الْكَلَامَ قَالَ اَىْ عَائِشَةُ اِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اَوْ وَدَعَهُ النَّاسُ اِتِّقَاءَ فُحْشِهِ.

۱۹۹۲: صدقه بن فضل، ابن عینیه، ابن منکدر، عروه بن زبیر، بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. دَ هغې بیان دے. یو سړي دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دننه دَ راتلو اجازت اوغوښتلو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل دۀ له اجازت ورکړئ، دا دَ قبیلې خراب ورور دے. یا، دا ئے او فرمائیل چه دَ قبیلې خراب ځوئے دے. خو کوم وخت چه هغه دننه راغے، نو هغۀ سره ئے نرمئ سره خبرے اترے اوکړے. ما (عائشےؓ) عرض اوکۀ یا رسول اللّٰه، تاسوٌ دَ دے سړي متعلق داسے داسے او فرمائیل، بیامو، هغه سره نرمئ سره خبرے اوکړے حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، اے عائشےؓ دَ ټولو نه خراب سړے هغه دے، چه خلق دَ هغه دَ فحش ګوئي نه دَ بچ کیدو دَ پاره هغه پریږدي.

باب ۶۰۰: اَلنَّمِيْمَةُ مِنَ الْكَبَائِرِ.

باب ۶۰۰: چغلخوري ګناه کبیره (لویه ګناه ده).

۱۹۹۳: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عُبَيْدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعْضِ حِيْطَانِ

۱۹۹۳: ابن سلام، عبیده بن حمید، ابو عبدالرحمٰن، منصور، مجاهد، حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ مدینې دَ یو باغ نه بهر تشریف راوړلو، نو دَ دوو سړو آواز ئے واوریدلو، چه خپلو قبرونو کښ عذاب ورکولے شو. حضور صلي

الْمَدِيْنَةِ فَسَمِعَ صَوْتَ اِنْسَانَيْنِ يُعَذَّبَانِ فِيْ قُبُوْرِهِمَا فَقَالَ يُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرَةٍ وَاِنَّهُ لَكَبِيْرٌ كَانَ اَحَدُهُمَا لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَكَانَ الْاٰخَرُ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ دَعَا بِجَرِيْدَةٍ فَكَسَرَهَا بِكِسْرَتَيْنِ اَوْ ثِنْتَيْنِ فَجَعَلَ كِسْرَةً فِيْ قَبْرِ هٰذَا وَكِسْرَةً فِيْ قَبْرِ هٰذَا فَقَالَ لَهُ لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَالَمْ يَيْبَسَا.

اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دے دواړو له په ظاهره په څه لويه ګناه عذاب نه ورکيږي، اګر که حقيقت کښې هغه لوئے ګنا۔رنه دي. دوي کښې يو خو دَ وړو بولونه نهٔ بچ کيدلو او دويم به چغلخوري کوله. بيائے يو تر، څانګه اوغښتله هغه ئے دوه ټکړے کړه. يوه ئے دَ يو په قبر او بله ئے دَ بل په قبر ښخه کړه، او وے فرمائيل، اُميد دے، چه دَ، دواړو عذاب کښې تخفيف (کمے) اوکړے شي، څو پورے چه هغه څانګے اُوچے (خُشکے) نشي.

بَابُ ٦٠١ : مَا يُكْرَهُ مِنَ النَّمِيْمَةِ وَقَوْلِهِ هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيْمٍ، وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ، يَهْمِزُ وَ يَلْمِزُ يَعِيْبُ.

باب ۶۰۱ : دَ چغلخوري دَ، کراهت بيان، او دَ، اللّٰه تعالٰي قول: هماز بنميم، او، ويلٌ لِكلّ همزةٍ لمزةٍ: يهز او يلمز معني دي، په چا عيب لږول.

۹۹۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ حُذَيْفَةَ فَقِيْلَ لَهُ اِنَّ رَجُلًا يَّرْفَعُ الْحَدِيْثَ اِلٰى عُثْمَانَ فَقَالَ حُذَيْفَةُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ.

۹۹۴ : ابو نعيم، سُفيان، منصور، ابراهيم، همام نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. مونږ حضرت حذيفهؓ سره وو، هغهٔ ته چا اووے، يو سړے عثمان پورے دَ حديث سلسله رسولو سره بيان کوي. حذيفهؓ بيان اوکه، ما دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، چه چغلخور به جنّت ته نهٔ ځي.

بَابُ ٦٠٢ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ.

باب ۶۰۲ : دَ، اللّٰه تعالٰي قول، چه دَ دروغے خبرے نه پرهيز کوئے.

۹۹۵ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَّمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّوْرِ وَالْعَمَلَ بِهِ وَالْجَهْلَ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ

۹۹۵ : احمد بن يونس، ابن ابي ذئب، مقبري حضرت ابو هريرهؓ روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، کوم سړے چه دروغ وئيل، او دَ هغے مطابق عمل کول او، دَ جهالت خبره پرے نهٔ ږدي نو اللّٰه تعالٰي ته

اَنْ يَّدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ قَالَ اَحْمَدُ اَفْهَمَنِيْ رَجُلٌ اِسْنَادَهُ.

دَ دے حاجت نشته، چه هغه خوراک څکاک پرېږدي.

## بـاب ۶۰۳ : مَا قِيْلَ فِي ذِي الْوَجْهَيْنِ.

## باب ۶۰۳ : دَ دوغلـه (دوه مخيز) متعلق چه ونيلے شوے دي.

۹۹۶ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجِدُ مِنْ شَرِّ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ اللّٰهِ ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِيْ يَأْتِيْ هٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَهٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ.

۹۹۶ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، دَ قيامت په ورځ به خلقو کښې دَ ټولو نه خراب دَ اللّٰه په نزد هغه څوک وي، چه دوه پريقه وي. که دے طرف ته راشي، نو يو مخ سره، او که هغه طرف ته لاړ شي نو بل مخ سره (يعني چاله چه ورځي دَ هغۀ دَ طبعے خبره کوي، حقه خبره نۀ کوي

## باب ۶۰۴ : مَنْ اَخْبَرَ صَاحِبَهُ بِمَا يُقَالُ فِيْهِ.

## باب ۶۰۴ : خپل ملګري ته بيان کړه، چه دَ هغه متعلق څۀ وئيلے شي.

۹۹۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَسَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِسْمَةً فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ وَاللّٰهِ مَا اَرَادَ مُحَمَّدٌ بِهٰذَا وَجْهَ اللّٰهِ فَاَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهُ فَتَمَعَّرَ وَجْهُهُ وَقَالَ رَحِمَ اللّٰهُ مُوْسٰى لَقَدْ اُوْذِيَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

۹۹۷ : مُحمّد بن يُوسف، سفيان، اعمش، ابو وائل، ابن مسعود نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ غنيمت مال تقسيم کړلو، نو انصارو کښې يو سړي اووے، په خدائے چه محمّد صلي الله عليه وسلّم دے تقسيم کښې دَ خدائے دَ رضا خيال او نۀ ساتلو. زۀ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم. حضور صلي الله عليه وسلّم ته مِ دغه بيان اوکړلو نو حضور صلي الله عليه وسلّم مخ سُور شولو، او وے فرمائيل، الله دے په موسیٰ رحم اوکړي، هغۀ ته دَ دے نه زيات تکليف ورکړے شو. ليکن هغۀ صبر اوکۀ.

## باب ۶۰۵ : مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّمَادُحِ.

## باب ۶۰۵ : دَ کوم قِسم تعريف مکروه دے.

۹۹۸ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ

۹۹۸ : مُحمّد بن صباح، اسمٰعيل بن زکريا بريد بن عبدالله بن ابي برده، ابو برده، ابو موسیٰؓ نه روايت

حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُثْنِي عَلٰى رَجُلٍ وَّيُطْرِيْهِ فِي الْمِدْحَةِ فَقَالَ اَهْلَكْتُمْ اَوْ قَطَعْتُمْ ظَهْرَ الرَّجُلِ.

كوي، ذ هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ذ يو سړي نه ذ چا تعريف واوريدلو، چه ذ هغهٔ تعريف كښې ئے مبالغه كړ ه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، چه تا هلاك كړلو، يا، ذ دے سړي ملا (كمر) دے ماته كړه.

٩٩٩ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَجُلًا ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَثْنٰى عَلَيْهِ رَجُلٌ خَيْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْحَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ يَقُوْلُهُ مِرَارًا اِنْ كَانَ اَحَدُكُمْ مَادِحًا لَّا مُحَالَةَ فَلْيَقُلْ اَحْسِبُ كَذَا وَكَذَا اِنْ كَانَ يُرٰى اَنَّهٗ كَذَالِكَ وَحَسِيْبُهُ اللّٰهُ وَلَا يُزَكِّيْ عَلَى اللّٰهِ اَحَدًا قَالَ وَهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ وَّيْلَكَ.

٩٩٩ : آدم، شعبه، خالد، عبدالرحمٰن، بن ابي بكره، ابو بكرهؓ نه روايت كوي، يو سړي ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مخكښې ذ چا ذكر اوكه، او ذ هغه تعريف ئے اوكړ، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، په تا افسوس دے، تا ذ خپل دوست څټ مات كړلو. او څو ځله ئے دا كلمات او فرمائيل، (بيائے او فرمائيل) كهٔ تاسو كښې ذ چا تعريف كول وي، نو وائي دے، چه زهٔ داسے داسے گمان كوم، چه ذ ځما په خيال كښې داسے دے. او ذ هغهٔ جاج كونكے اللّٰه دے. او په اللّٰه ذ چا پاكيزگي بيانول نهٔ دي پكار. وهيب ذ خالد نه: ويحك: په ځائے: ويلك: لفظ نقل كهٔ.

باب ٦٠٦ : مَنْ اَثْنٰى عَلٰى اَخِيْهِ بِمَا يَعْلَمُ وَقَالَ سَعْدٌ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لِاَحَدٍ يَّمْشِيْ عَلَى الْاَرْضِ اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اِلَّا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ.

باب ٦٠٦ : ذ خپل ورور داسے تعريف كوه، چه ذ هغے متعلق درته يقين سره معلومه وي. او سعد بيان اوكهٔ، ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه سِوا، ذ، عبداللّٰه بن سلام نه په زمكه ذ، يو تلونكي متعلق دا فرمائيل نهٔ دي آوريدلے، چه هغه ذ اهلِ جنّت نه دے.

١٠٠٠ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ

١٠٠٠ : علي بن عبداللّٰه. سفيان، موسٰي بن عقبه، سالم ذ خپل پلار نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه ذ، پرتوگ (يا تهبند) متعلق كوم بيان او فرمائيلو، نو حضرت ابوبكرؓ عرض

ذَكَرَ فِي الْإِزَارِ مَا ذَكَرَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اِزَارِيْ يَسْقُطُ مِنْ اَحَدِ شِقَّيْهِ قَالَ اِنَّكَ لَسْتَ مِنْهُمْ.

اوکۀ، یا رسول اللّٰه، خـما لنګ (یا تهبند) یو طرف ته خکته شي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل، ته دَ هغوي نه، نۀ ئې.

باب ۷۰۶ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ وَاِيْتَآءِ ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ وَ قَوْلِهِ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰى اَنْفُسِكُمْ ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ وَتَرْكِ اِثَارَةِ الشَّرِّ عَلٰى مُسْلِمٍ اَوْ كَافِرٍ.

باب ۷۰۶ : دَ اللّٰه تعالٰي قول، بیشکه اللّٰه دَ عدل او، احسان او قرابت والوته دَ، ورکړو، حکم کوي. او بے حیائي او خرابو خبرو او سرکشئ نه منع فرمائي. تاسو ته نصیحت کوي، شاید چه تاسو نصیحت واخلئے او دَ، اللّٰه تعالٰي قول، چه ستاسو دَ سرکشئ وبال به هم په تاسو راځي، بیا په هغه ظلم اوشو، نو اللّٰه به دَ هغه مدد کوي. او دَ مُسلمان یا کافر دَ، بدي نۀ مشهورولو بیان.

۱۰۰۱ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَكَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَا وَكَذَا يُخَيَّلُ اِلَيْهِ اَنَّهُ يَأْتِيْ اَهْلَهُ وَلَا يَأْتِيْ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَالَ لِيْ ذَاتَ يَوْمٍ يَا عَائِشَةُ اِنَّ اللّٰهَ اَفْتَانِيْ فِيْ اَمْرٍ اسْتَفْتَيْتُهُ فِيْهِ اَتَانِيْ رَجُلَانِ فَجَلَسَ اَحَدُهُمَا عِنْدَ رِجْلَيَّ وَالْاٰخَرُ عِنْدَ رَاْسِيْ فَقَالَ الَّذِيْ عِنْدَ رِجْلَيَّ عِنْدَ رَاْسِيْ مَا بَالُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوْبٌ يَعْنِيْ مَسْحُوْرٌ قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيْدُ بْنُ اَعْصَمَ قَالَ وَفِيْمَ قَالَ فِيْ جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ فِيْ مُشْطٍ وَّمُشَاطَةٍ تَحْتَ رَعُوْفَةٍ فِيْ بِئْرِ ذَرْوَانَ فَجَاءَ

۱۰۰۱ : حمیدي، سُفیان، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشے رضی اللّٰه عنها نه روایت کوي، دَ هغے بیان دے، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دومره دومره ورځو پورے داسے حال کښ، وو، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته به خیال راتلو. چه دَ خپلے بي بي نه راغلے دے، حالانکه هلته به نۀ وو تلے. د بي بي عائشے رضی اللّٰه عنها بیان دے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ماته یو ځل او فرمائیل اَے عائشے رضی اللّٰه عنها، اللّٰه ماته هغه خبره اوښودله، کومه چه ما معلوموله. ماله دوه سړي راغلل، یو هغے کښ خما پښنو ته کیناست او بل سرته هغه، دَ پښنو طرف واله سر واله نه تپوس اوکۀ، په دے سړي څۀ چل شوے دے. هغۀ اووے، په ده جادو شوے دے. تپوس ئے اوکۀ، چا پرے جادو کړے دے وئیلے لبید بن اعصم تپوس ئے اوکۀ. څۀ څیز کښ، وئیلے، ویښته ئے دَ نر قجورے په پوستکي کښ اچولے دي او ذروان کوهي کښ ئے دَ، یو کاڼري لاندے ایښے دي. نبي صلي

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هٰذَا الْبِئْرُ الَّتِيْ اُرِيْتُهَا كَاَنَّ رُؤُسُ نَخْلِهَا رُؤُسُ الشَّيَاطِيْنَ وَكَاَنَّ مَآءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ فَاَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُخْرِجَ قَالَتْ عَائِشَةُ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَهَلَّا تَعْنِيْ تَنَشَّرْتَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا اللّٰهُ فَقَدْ شَفَانِيْ وَاَمَّا اَنَا فَاَكْرَهُ اَنْ اُثِيْرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا قَالَتْ لَبِيْدُ بْنُ اَعْصَمَ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ زُرَيْقٍ.

اللّٰه عليه وسلّم هغې كوهي پله تشريف يوړلو، او وې فرمائيل، دا هغه كوهے دے، چه ماته خوب كښې ښودلے شوے دے. دے سره دَ قجورو اُونے دَ شيطان دَ سرونو په شان سرے (سُرخ) دي. نبي صلي الله عليه وسلّم دَ هغے دَ اُوبنكلو حكم او كړلو، نو هغه اوبنكلے شو دَ بي بي عائشےؓ بيان دے. ما عرض او كه، يا رسول اللّٰه. بيا تاسوَ دا مشتهرولے نه كړلو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه ماله شفاء راكړه. اوزهٔ نهٔ خوښوم، چه دَ خلقو مخكښې دَ چا شر مشتهر (مشهور) كړم. او بيان ئے او كهٔ، چه لبيد بن اعصم دَ بني زريق يو فرد وو، چه دَ يهودو حليف وو.

بَابٌ ۶۰۸ : مَا يُنْهٰى عَنِ التَّحَاسُدِ وَالتَّدَابُرِ وَقَوْلِهِ تَعَالٰى مِنْ شَرِّ حَاسِدٍ اِذَا حَسَدَ.

باب ۶۰۸ : دَ حسد او غيبت كولو دَ ممانعت بيان، او دَ اللّٰه تعالٰي قول او دَ حسد كونكي دَ بدي نه (پناه غواړم) هر كله چه حسد اوكړي.

۱۰۰۲ : حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ اَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا تَحَاسَدُوْا وَلَا تَدَابَرُوْا وَلَا تَبَاغَضُوْا وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللّٰهِ اِخْوَانًا.

۱۰۰۲ : بشر بن محمّد، عبداللّٰه، معمر، همام بن منبه، حضرت ابو هريرةؓ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو دَ بدګماني نه بچ شئے، ځكه چه بدګماني دَ ټولو نه زياته دروغ خبره ده. او، مه دَ چا دَ عيبونو تلاش كوئے. او، مه لټونے كوئے، او، مه يو بل سره حسد كوئے، او، مه غيبت كوئے. او مه بُغض ساتئے، او، دَ اللّٰه بنديان ورونړه، ورونړه اوسئے.

۱۰۰۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا

۱۰۰۳ : ابو اليمان، شعيب، زهري، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، يو بل سره بُغض مهٔ ساتئے، او، مه حسد كوئے، او، مه غيبت كوئے، او دَ اللّٰه

تَبَاغَضُوْا وَلَا تَحَاسَدُوْا وَلَا تَدَابَرُوْا وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللّٰهِ اِخْوَانًا وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ.

بنديان ورونړه ورونړه اوسئ. او هيڅ مُسلمان ذ پاره جائز نۀ دي، چه ذ خپل وړور نه دَ درے ورځو نه زيات جُدا اوسي (يعني خبرے اترے لين دين ورسره پريږدي).

## بَاب ۶۰۹: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا.

## باب ۶۰۹: اے ايمان والو، اكثر بدګماني نه بچ شئ. ځكه چه بعضے بدګماني ګناه ده، او مه ذ چا ذ عيبونو په لټون كښ اوسئ.

۱۰۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَاِنَّ الظَّنَّ اَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا تَحَسَّسُوْا وَلَا تَنَاجَشُوْا وَلَا تَحَاسَدُوْا وَلَا تَبَاغَضُوْا وَلَا تَدَابَرُوْا وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللّٰهِ اِخْوَانًا.

۱۰۰۴: عبدالله بن يوسف، مالك، ابوالزّناد، اعرج، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو ذ بدګماني نه بچ شئ، ځكه چه بدګماني دَ ټولو نه زياته دروغ خبره ده. او دَ چا دَ عيبونو تلاش مۀ كوئ. او، مه دَ هغے په كوشش كښ اوسئ، (او بيع كښ) يو بل له دهوكه مه وركوئ، او حسد مه كوئ، او بُغض مۀ ساتئ، او، مه دَ چا غيبت كوئ، او دَ الله بنديان ورونړه ورونړه اُوسئ.

## بَاب ۶۱۰: مَا يَكُوْنُ مِنَ الظَّنِّ.

## باب ۶۱۰: دَ څۀ قِسم ګمان كولے شي.

۱۰۰۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَظُنُّ فُلَانًا وَّفُلَانًا يَعْرِفَانِ مِنْ دِيْنِنَا شَيْئًا وَقَالَ اللَّيْثُ كَانَا رَجُلَيْنِ مِنَ الْمُنَافِقِيْنَ.

۱۰۰۵: سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. دَ هغے بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل ماته نۀ ده معلومه، چه فلانے فلانے سړے خمونږ دَ، دين په څۀ خبره پوهيږي. دَ ليث بيان دے، چه هغه دواړه منافق وو.

۱۰۰۶: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بِهٰذَا وَقَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا

۱۰۰۶: ابن بكير، ليث نه (دغے سند سره) دا حديث بيان كه، چه بي بي عائشےؓ اووے، يو خل نبي صلي الله عليه وسلّم ما پله تشريف راوړلو، اووے فرمائيل، زۀ دَ

وَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا أَظُنُّ فُلَانًا وَّفُلَانًا يَعْرِفَانِ دِيْنَنَا الَّذِىْ نَحْنُ عَلَيْهِ.

فلاني فلاني سړي متعلق ګمان نه کوم، چه مونږ په کوم دين قائم يو، ذ دے متعلق په څه هم پوهيږي.

**باب ١١٦ : سَتْرِ الْمُؤْمِنِ عَلٰى نَفْسِهٖ.**

**باب ١١٦ : ذ مؤمن په خپله ګناه پرده اچول.**

١٠٠٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ اَخِى ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّ اُمَّتِىْ مَعَافًى اِلَّا الْمُجَاهِرِيْنَ وَاِنَّ مِنَ الْمَجَانَةِ اَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ بِاللَّيْلِ رَجُلًا ثُمَّ يُصْبِحُ وَقَدْ سَتَرَهُ اللّٰهُ فَيَقُوْلُ يَا فُلَانُ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا وَقَدْ بَاتَ يَسْتُرُهٗ رَبُّهٗ وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ اللّٰهِ عَنْهُ.

١٠٠٧ : عبدالعزيز بن عبدالله، ابراهيم بن سعد، برادر زاده ابن شهاب، ابن شهاب، سالم بن عبدالله، ابو هريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے. ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل. څما ذ ټول اُمت به ګناه معاف وي، خو هغه سړے چه په ښکاره (علانيه) ګناه کوي. او دا خو، ذ ليونتوب خبره ده، چه ذ شپے يو سړے څهٔ کار اوکړي، او الله په هغے پرده واچوي، بيا صبا کيدو سره هغه سړي اووے، چه اے فلانيه، ما تيره شپه فلانے فلانے کار کړے دے. ذ شپے خو الله تعالي ذ هغهٔ په ګناه پرده اچوي، او دے صبا ته ذ الله تعالي اچولے پرده پرانزي (ښکاره کړي).

١٠٠٨ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ ابْنَ عُمَرَ كَيْفَ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِى النَّجْوٰى قَالَ يَدْنُوْا اَحَدُكُمْ مِنْ رَبِّهٖ حَتّٰى يَضَعَ كَنَفَهٗ عَلَيْهِ فَيَقُوْلُ عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا فَيَقُوْلُ نَعَمْ وَيَقُوْلُ عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا فَيَقُوْلُ نَعَمْ

١٠٠٨ : مُسدد، ابو عوانه، قتاده، صفوان بن محرز، نه روايت کوي، يو سړي ابن عمرؓ نه تپوس اوکهٔ، چه تا ذ سرګوشئ (غوږ کښې ذ خبرے کولو) متعلق ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه څنګه آوريدل دي هغهٔ اووے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو کښې به يو سړے رب ته قريب وي، تر دے چه په هغهٔ به لاس خپل کيږدي، فرمائي به. چه تا فلاني فلاني کارونه کړے وو. هغه به عرض اوکړي، او. بيا به تپوس اوکړي، آيا تا فلاني فلاني کارونه کړي وو، هغه به عرض اوکړي. جي. او. په هغهٔ به اِقرار اوکړي. بيا به فرمائي.

فَمُقَرِّرُهُ ثُمَّ يَقُوْلُ اِنِّيْ سَتَرْتُ عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا فَاَنَا اَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ.

ما دُنيا کښې ستا په ګناهونو پرده واچوله. نن زهٔ تا بښم هم. (اللّٰه پاک دې خمونږ پرده پوشي او بښنه نصيب کړي. اللّٰهم آمين).

بَابُ ۲۱۲: اَلْكِبْرُ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ ثَانِيَ عِطْفِهٖ مُسْتَكْبِرٌ فِيْ نَفْسِهٖ عِطْفُهٗ رَقَبَتُهٗ.

باب ۲۱۲: دَ تکبّر بيان. او مجاهد اووې: ثَانِيَ عِطْفِهٖ: نه مراد خپل زړهٔ کښې خپل ځان لوئې ګڼړل دي. عطف نه مراد څټ دې.

۱۰۰۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ الْقَيْسِيِّ عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ نِ الْخُزَاعِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيْفٍ مُتَضَاعِفٍ لَوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَاَبَرَّهٗ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ كَانَتِ الْاَمَةُ مِنْ اِمَآءِ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ لَتَاْخُذُ بِيَدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنْطَلِقُ بِهٖ حَيْثُ شَآءَتْ.

۱۰۰۹: محمّد بن کثير، سُفيان، معبد بن خالد قيسي، حارثه بن وهب، خزاعي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، آيا زهٔ تاسو ته جنت واله اونهٔ ښايم، هر ضعيف او مسکين، چه په څهٔ خبره په اللّٰه قسم خوري، نو اللّٰه ضرور هغه پوره کوي. او آيا زهٔ تاسو ته دوزخ واله اونهٔ ښايم، هغه ټول سرکش او خپل ځان لوئې ګرونکي خلق دي. او محمّد بن عيسٰي اووې، مونږ ته هشيم بيان اوکه، چه مونږ ته حُميد طويل، هغهٔ دَ، انس بن مالکؓ نه روايت اوکه، دَ هغه بيان، مدينه والو کښې يوه وينزه وه، چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم لاسّ به ئې نيولو، او چرته به ئې چه غوښتلو، بوتللو به ئې.

بَابُ ۲۱۳: اَلْهِجْرَةِ وَقَوْلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ اَنْ يَهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثٍ.

باب ۲۱۳: دَ ملاقات ترک کولو بيان، او دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمان، چه هيڅ سړي دَ پاره جائز نه دي، چه خپل وررور سره دَ، درې ورځو نه زيات ملاقات ترک کړي.

۱۰۱۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ

۱۰۱۰: ابو اليمان، شعيب، زهري، عوف بن مالک بن طفيل بن حارث (چه دَ بي بي عائشهؓ. دَ نبي

حَدَّثَنِیُ عَوُفُ بُنُ مَالِكِ بُنِ الطُّفَیُلِ هُوَ ابُنُ الُحَارِثِ وَهُوَ ابُنُ اَخِیُ عَائِشَةَ زَوُجِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیُهِ وَسَلَّمَ لِاُمِّهَا اَنَّ عَائِشَةَ حُدِّثَتُ اَنَّ عَبُدَ اللّٰهِ ابُنَ الزُّبَیُرِ قَالَ فِیُ بَیُعٍ اَوُ عَطَآءٍ اَعُطَتُهُ عَائِشَةُ وَاللّٰهِ لَیَنُتَهِیَنَّ عَائِشَةُ اَوُلَاَحُجُرَنَّ عَلَیُهَا فَقَالَتُ اَهُوَ قَالَ هٰذَا قَالُوا نَعَمُ قَالَتُ وَ لِلّٰهِ عَلَیَّ نَذُرٌ اَنُ لَّا اُكَلِّمَ ابُنَ الزُّبَیُرِ اَبَدًا فَاسُتَشُفَعَ ابُنُ الزُّبَیُرِ اِلَیُهَا حِیُنَ طَالَتِ الُهِجُرَةُ فَقَالَتُ لَا وَاللّٰهِ لَا اُشَفِّعُ فِیُهِ اَبَدًا وَّلَا اَتَحَنَّثُ اِلٰی نَذُرِیُ فَلَمَّا طَالَ ذٰلِكَ عَلَی ابُنِ الزُّبَیُرِ كَلَّمَ الُمِسُوَرَ بُنَ مَخُرَمَةَ وَعَبُدَ الرَّحُمٰنِ بُنَ الُاَسُوَدِ بُنِ عَبُدِ یَغُوُثَ وَهُمَا مِنُ بَنِیُ زُهُرَةَ وَ قَالَ لَهُمَا اَنُشُدُكُمَا بِاللّٰهِ لَمَّا اَدُخَلُتُمَانِیُ عَلٰی عَائِشَةَ فَاِنَّهَا لَا یَحِلُّ لَهَا اَنُ تَنُذِرَ قَطِیُعَتِیُ فَاَقُبَلَ بِهِ الُمِسُوَرُ وَعَبُدُ الرَّحُمٰنِ مُشُتَمِلَیُنِ بِاَرُدِیَتِهِمَا حَتّٰی اسُتَاذَنَا عَلٰی عَائِشَةَ فَقَالَا اَلسَّلَامُ عَلَیُكِ وَ رَحُمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ اَنَدُخُلُ قَالَتُ عَائِشَةُ ادُخُلُوا قَالُوا كُلُّنَا قَالَتُ نَعَمِ ادُخُلُوا كُلُّكُمُ وَلَا تَعُلَمُ اَنَّ مَعَهُمَا ابُنَ الزُّبَیُرِ فَلَمَّا دَخَلُوا دَخَلَ ابُنُ الزُّبَیُرِ الُحِجَابَ فَاعُتَنَقَ عَائِشَةَ وَطَفِقَ یُنَاشِدُهَا وَیَبُكِیُ وَطَفِقَ

صلي الله علیه وسلّم دَ تبر ورارهٔ دے) نه روایت کوي. بي بي عائشے ته بیان اوشو' چه دَ څهٔ بیع یا عطیے متعلق چه بي بي عائشے چاته ورکړے وه' عبدالله بن زبیر اووے' قسم په خدائے' چه بي بي عائشهٔ دے' یا خو' دَ دے نه منع شي' کني زهٔ به هغے سره سختي اوکړم. بي بي عائشے تپوس اوکهٔ' آیا واقعي هغهٔ داسے ونیلي دي. خلقو اووے. او. هغے او فرمائیل' الله دَ پاره عهد کوم' چه زهٔ به ابن زبیر سره هیڅ کله خبرے اونهٔ کړم. هر کله چه دَ دے جدائي ډیر وخت اوشو' نو ابن زبیر سفارش اوکړلو. بي بي عائشے اووے په خدائے چه' زهٔ دَ چا سفارش قبول نهٔ کړم' او نه خپل قسم مات کړم. بیا چه ابن زبیر ته دا خبره گرانه شوه' نو مسور بن مخرمه' عبدالرحمٰن بن اسود بن عبد یغوث (چه دَ بني زهره نه وو) سره ئے خبرے اترے اوکړے. او هغے دواړو ته ئے اووے' تاسو دواړو ته دَ خدائے واسطه درکوم چه ما' بي بي عائشے له بوځئ' ځکه چه دَ هغے دَ پاره جائز نهٔ وو' چه ما سره دَ قطع تعلق دَ پاره دے نذر اومني. مسور او عبدالرحمٰن خپل خپل څادر په سر' کهٔ' ابن زبیر سره روان شو' حتی چه دواړو دَ' بي بي عائشے نه اجازت اُغوښتلو' دواړو اووے' السّلام علیک و رحمة الله و برکاتهٔ ' آیا مونږ دننه درشو' بي بي عائشے ورته اووے' راځئ. مونږ تپوس اوکهٔ' آیا مونږ ټول درشو. هغے اووے' او. ټول راځئ' او هغے ته نهٔ وه معلومه' چه هغوي دواړو سره ابن زبیر هم دے. کوم وخت چه ټول ورننوتل' نو ابن زبیر پرده کښې ورننوت' بي بي عائشے سره جُخت شولو' او هغے ته ئے دَ' الله واسطه ورکړله'

الْمِسْوَرُ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ يُنَاشِدَانِهَا اِلَّا مَا كَلَّمَتْهُ وَقَبِلَتْ مِنْهُ وَيَقُوْلَانِ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَمَّا قَدْ عَمِلْتَ مِنَ الْهِجْرَةِ فَاِنَّهُ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثِ لَيَالٍ فَلَمَّا اَكْثَرُوْا عَلٰى عَائِشَةَ مِنَ التَّذْكِرَةِ وَالتَّحْرِيْجِ طَفِقَتْ تُذَكِّرُهُمَا وَتَبْكِيْ وَتَقُوْلُ اِنِّيْ نَذَرْتُ وَالنَّذْرُ شَدِيْدٌ فَلَمْ يَزَالَا بِهَا حَتّٰى كَلَّمَتِ ابْنَ الزُّبَيْرِ وَاَعْتَقَتْ فِيْ نَذْرِهَا ذٰلِكَ اَرْبَعِيْنَ رَقَبَةً وَّكَانَتْ تَذْكُرُ نَذْرَهَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَتَبْكِيْ حَتّٰى تَبُلَّ دُمُوْعُهَا خِمَارَهَا.

او په ژړا شولو. او مسور او عبدالرحمٰن هم هغې ته قسمونه ورکړل، چه هغهٔ سره خبرې کوي. او د هغهٔ عذر قبول کړي. او هغې دواړو اووې، تاسو ته معلومه ده، چه نبي صلي الله عليه وسلّم ترکِ ملاقات نه منع فرمائيلې ده. هيڅ مُسلمان د پاره جائز نهٔ دي، چه خپل ورور سره د درې شپو نه زيات ملاقات ترک کړي. هر کله چه هغې دواړو، بي بي عائشهؓ پوهې کړله. او اصرار ئې اوکهٔ، نو هغه هم په ژړا شو، وئيلې ما نذرمنلې دې. او د نذر معامله ډيره سخته ده. خو دې دواړو اصرار کولو، تر دې چه هغې درسره خبرې اوکړې. او د هغې نذر کفاره کښې ئې څلويښت غلامان آزاد کړل. دې نه پس چه کله به ئې خپل نذر يادولو، نو ژړل به ئې، تر دې چه د هغې لوپټه به په اُوښکو لونده شوه.

۱۰۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَبَاغَضُوْا وَلَا تَحَاسَدُوْا وَلَا تَدَابَرُوْا وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللّٰهِ اِخْوَانًا وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثِ لَيَالٍ.

۱۰۱۱: عبدالله بن يُوسف، مالک، ابن شهاب، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، مهٔ بُغض ساتئې، مه چا سره حسد کوئې. او، مه د چا غيبت کوئې، او د، الله بنديانو، ورونړه ورونړه شئې. او هيڅ مُسلمان د پاره جائز نهٔ دي، چه خپل ورور سره د، درې شپو نه زيات ملاقات ترک کړي.

۱۰۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ

۱۰۱۲: عبدالله بن يُوسف، مالک، ابن شهاب، عطاء بن يزيد ليثي، ابو ايوب انصاريؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل هيڅ (مُسلمان) سړي د پاره جائز نهٔ دي، چه خپل ورور

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثِ لَيَالٍ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هٰذَا وَيُعْرِضُ هٰذَا وَ خَيْرُهُمَا الَّذِيْ يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ.

سره داسې ملاقات ترک کړي، چه دواړه ذ یو بل مخې ته راشي، نو دې د هغه نه او هغه ذ ده نه مخ واړوي. او دواړه کښې ښه هغه دې، چه سلام کښې ابتدا اوکړي.

**بَابُ ۶۱۴ : مَا يَجُوْزُ مِنَ الْهِجْرَانِ لِمَنْ عَصٰى** وَقَالَ كَعْبٌ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِيْنَ عَنْ كَلَامِنَا وَذَكَرَ خَمْسِيْنَ لَيْلَةً.

**باب ۶۱۴ : نافرماني کونکي سره ذ ملاقات ترک کول جائز کیدل.** او کعبؓ بیان اوکړ، هر کله چه هغه د نبي صلي الله علیه وسلّم نه وروستو پاتې شو، او نبي صلي الله علیه وسلّم مسلمانان مونږ سره د خبرو کولو نه منع او فرمائیل، او د پنځوسو شپو ذکر یې اوکړه.

۱۰۱۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَعْرِفُ غَضَبَكِ وَرِضَاكِ قَالَتْ قُلْتُ وَكَيْفَ تَعْرِفُ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِنَّكِ اِذَا كُنْتِ رَاضِيَةً قُلْتِ بَلٰى وَرَبِّ مُحَمَّدٍ وَاِذَا كُنْتِ سَاخِطَةً قُلْتِ لَا وَرَبِّ اِبْرٰهِيْمَ قَالَتْ قُلْتُ اَجَلْ لَسْتُ اُهَاجِرُ اِلَّا اسْمَكَ.

۱۰۱۳ : محمد، عبده، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې نه روایت دې، د هغې بیان دې، رسول الله صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل، زهٔ ستا رضا مندي او ناراضي پیژنم. بي بي عائشې تپوس اوکړ، یا رسول الله، تاسو څنګه پیژنې؟ حضور صلي الله علیه وسلّم ورته او فرمائیل، چه ته راضي یې، نو وائې، بلي و ربّ مُحمّدٍ (ذ محمد په رب دې قسم وي) او کله چه ناراضه یې، نو وائې، لا و ربّ ابراهیم (ذ ابراهیم په رب م دې قسم وي) او بي بي عائشې اووې جي. او زهٔ صرف ستاسو نوم پریږدم.

**بَابُ ۶۱۵ : هَلْ يَزُوْرُ صَاحِبَهٗ كُلَّ يَوْمٍ اَوْ بُكْرَةً وَّعَشِيًّا.**

**باب ۶۱۵ : آیا ذ خپل دوست ملاقات له دې روزانه یا ذ سحر مابنام وخت کښې ځي.**

۱۰۱۴ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اِنَّ عَائِشَةَ

۱۰۱۴ : ابراهیم، هشام، معمر، او، لیث په واسطه ذ عقیل، ابن شهاب، عروه بن زبیر، حدیث بیان کړ، بي بي عائشې ذ نبي صلي الله علیه وسلّم تېر او فرمائیل، ما خپل مور پلار ذ دیندار کیدو نه سِوا نور څهٔ

زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمْ اَعْقِلْ اَبَوَيَّ اِلَّا وَهُمَا يَدِيْنَانِ الدِّيْنَ وَلَمْ يَمُرَّ عَلَيْهِمَا يَوْمٌ اِلَّا يَاْتِيْنَا فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَفَيِ النَّهَارِ بُكْرَةً وَّعَشِيَّةً فَبَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوْسٌ فِيْ بَيْتِ اَبِيْ بَكْرٍ فِيْ نَحْرِ الظَّهِيْرَةِ قَالَ قَائِلٌ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَّاْتِيْنَا فِيْهَا قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ مَّا جَآءَ بِهٖ هٰذِهِ السَّاعَةَ اِلَّا اَمْرٌ قَالَ اِنِّيْ قَدْ اُذِنَ لِيْ بِالْخُرُوْجِ.

بيا نهٔ مُندل. او هيڅ ورځ به داسې نهٔ وه، چه دَ هغې په دواړه آړخه يعني سحر، مابنام وخت به نبي صلي الله عليه وسلّم زما دَ مور پلار كورته تشريف نه راوړلو. زهٔ يوه ورځ تكنه غرمه دَ، ابوبكرؓ په كور كښ ناسته ووم، دې كښ چا ويونكي اووې، رسول الله ﷺ داسې وخت ما پلِه تشريف راوړي، چه دې وخت كښ هيڅ كله نهٔ وو راغلې. حضرت ابوبكرؓ او فرمائيل، داسې وخت كښ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ څهٔ اهم امر په سبب تشريف راوړي حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ماته دَ هجرت حكم شوې دې.

باب ۶۱۶: اَلزِّيَارَةِ وَمَنْ زَارَ قَوْمًا فَطَعِمَ عِنْدَهُمْ وَ زَارَ سُلَيْمَانُ اَبَا الدَّرْدَآءِ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَكَلَ عِنْدَهٗ.

باب ۶۱۶: دَ ملاقات كولو، او دَ هغې سړي بيان چه دَ، يو جماعت ملاقات له لاړ شي، او هلته ډوډئ او خوري. او سلمان دَ نبي صلي الله عليه وسلّم زمانه كښ دَ ابو درداءؓ ملاقات له ورغې، نو هغهٔ سره ئې ډوډئ او خوړله.

۵۱۰۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ اَنَسِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَارَ اَهْلَ بَيْتٍ فِي الْاَنْصَارِ فَطَعِمَ عِنْدَهُمْ طَعَامًا فَلَمَّا اَرَادَ اَنْ يَّخْرُجَ اَمَرَ بِمَكَانٍ مِّنَ الْبَيْتِ فَنُضِحَ لَهٗ عَلٰى بِسَاطٍ فَصَلّٰى عَلَيْهِ وَدَعَا لَهُمْ.

۵۱۰۱۵: محمّد بن سلام، عبدالوهاب، خالد حذاء، انس بن سيرين، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيا دې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ يو انصاري مكان ته تشريف يوړلو، نو هغهٔ سره ئې ډوډئ او خوړله. كوم وخت چه بهرته وتل ئې اوغوښتل، نو حكم ئې اوكړلو، چه دَ كور يو، ځَټ صاف كړي، په هغې فرش او غوړولې شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم په هغې مونځ اوكړلو. او هغې خلقو دَ پاره ئې دُعا اوكړله.

بَاب ۶۱۷: مَنْ تَجَمَّلَ لِلْوُفُوْدِ.

باب ۶۱۷: وفد سره يو ځائې كيدو دَ پاره دَ زينت كولو بيان.

۱۰۱۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ قَالَ لِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ مَا الْاِسْتَبْرَقُ قُلْتُ مَا غَلُظَ مِنَ الدِّيْبَاجِ وَخَشُنَ مِنْهُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ يَقُوْلُ رَاٰى عُمَرُ عَلٰى رَجُلٍ حُلَّةً مِّنْ اِسْتَبْرَقٍ فَاَتٰى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اشْتَرِ هٰذِهٖ فَالْبَسْهَا لِوَفْدِ النَّاسِ اِذَا قَدِمُوْا عَلَيْكَ فَقَالَ اِنَّمَا يَلْبَسُ الْحَرِيْرَ مَنْ لَّاخَلَاقَ لَهٗ فَمَضٰى فِيْ ذٰلِكَ مَا مَضٰى ثُمَّ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ اِلَيْهِ بِحُلَّةٍ فَاَتٰى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعَثْتَ اِلَيَّ بِهٰذِهٖ وَقَدْ قُلْتَ فِيْ مِثْلِهَا مَا قُلْتَ قَالَ اِنَّمَا بَعَثْتُ اِلَيْكَ لِتُصِيْبَ بِهَا مَالًا فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَكْرَهُ الْعَلَمَ فِي الثَّوْبِ لِهٰذَا الْحَدِيْثِ.

۱۰۱۶ : عبدالله بن محمد، عبدالصمد، پلار، د، عبدالصمد، يحيٰ بن ابي اسحاق نه روايت كوي، ماته سالم بن عبدالله اووے، استبرق څۀ څيز دے. ما ورته اووے، غټه او دبله ريښمينه كپړه ده. هغۀ اووے، ما د عبدالله نه واوريدل. حضرت عمرؓ يو سړي سره د، استبرق جُبه اوليده. هغه، هغے سره د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او عرض ئے اوكۀ، يا رسول اللهؐ تاسو دا، واخلئے. او كله چه وفد راځي، نو دا اغوندئے حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ريښم هغه څوک اغندي، چه د هغۀ آخرت كښې څۀ حصه نۀ وي. په دے واقعه چه څۀ وخت تير شو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم حضرت عُمرؓ ته يوه جُبه اوليږله، نو هغه هغے جُبے سره د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او عرض ئے اوكۀ، تاسوؐ دا ماته راليږلے ده، حالانكه د دے قِسم كپړے متعلق تاسوؐ دا فرمائيلے دي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ما دا تاته دے د پاره درليږلے وه، چه د دے په ذريعه مال حاصل كړې (يعني خرڅه ئے كړه) او ابن عمرؓ د دے حديث په بنا په كپړه نقش و نګار نه خوښولو.

باب ۶۱۸ : اَلْاِخَاءِ وَالْحِلْفِ وَ قَالَ اَبُوْ جُحَيْفَةَ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَاَبِي الدَّرْدَاءِ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِيْ وَبَيْنَ سَعْدِ

باب ۶۱۸ : د، ورورولئ كولو (بھائی چارہ کرنے) او د قسم خوړلو بيان. او د، ابو جحيفهؓ بيان دے، چه حضور صلي الله عليه وسلّم د، سلمانؓ او ابو درداءؓ مينځ كښې ورورولي قائمه كړے وه. او عبدالرحمٰن بن عوف بيان اوكۀ، كوم وخت چه مونږ خلق مدينے ته راغلو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم خما او د سعد بن ربيع مينځ

بْنِ الرَّبِيْعِ.

کښې وروروولي قائمه کړه.

۷ ۱ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَاٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

۷ ۱ ۰ ۱ : مسدّد، يحيٰي، حميد، حضرت انسؓ نه روايت دے. کوم وخت چه مونږ پلے عبدالرحمٰن راغے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ذ هغه او سعد بن ربيع مينځ کښې وروروولي قائمه کړه. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، وليمه اوکړه، اګر که ذ يوے چيلے ولے نه وي.

۸ ۱ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَبَلَغَكَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاحِلْفَ فِي الْاِسْلَامِ فَقَالَ قَدْ حَالَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ قُرَيْشٍ وَّالْاَنْصَارِ فِيْ دَارِيْ.

۸ ۱ ۰ ۱ : محمّد بن صباح، اسمٰعيل بن زكريا عاصم نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے. ما ذ انس بن مالكؓ نه تپوس اوكړهٔ، آيا تا ته معلومه ده، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، چه اِسلام كښې قسم نشته، نو هغهٔ اووے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ قريشو او انصارو مينځ كښې خما كور كښې قسم وركړے وو.

۱ . په جاهليت كښے به عربو قبائلو خاص طور سره د خپلے دشمنے قبيلے نه په جنګ وغيره كښے مدد ذ پاره خپلو كښے يو بل سره لوظنامے لرلے. په كومو دوؤ قبيلو كښے به چه لوظنامه اوشوه هغے ته به ئے "حليف" وئيل. د جاهليت په زمانه كښے چه د لوظنامو كوم تصور وو اسلام هغه ختم كړو ولے چه اسلام پخپله د مُوَدّت، اخوت او اتحاد پيغام وو. او ددے نه پس د جاهِليت د لوظنامے ضرورت نه وو. البته د ضرورت په اوقاتو كښے كه چرے مسلمانان د نورو طاقتونو سره لوظنامه اوكړي نو ظاهره ده چه جائزه به وي.

باب ۹ ۱ ۶ : التَّبَسُّمِ وَالضِّحْكِ وَقَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ اَسَرَّ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكْتُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى.

باب ۹ ۱ ۶ : ذ مُسكا او خندا بيان. او بي بي فاطمےؓ اووے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پټ شان (چپکے) ماته او فرمائيل، نو ما او خاندل. او حضرت ابن عبّاسؓ او فرمائيل، چه اللّٰه تعالي خاندوي او ژړوي.

۹ ۱ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسَى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيَّ طَلَّقَ امْرَاَتَهُ فَبَتَّ طَلَاقَهَا فَتَزَوَّجَهَا بَعْدَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ الزَّبِيْرِ فَجَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَفَاعَةَ فَطَلَّقَهَا اٰخِرَ ثَلٰثِ تَطْلِيْقَاتٍ فَتَزَوَّجَهَا بَعْدَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الزَّبِيْرِ وَاِنَّهُ وَاللّٰهِ مَا مَعَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا مِثْلُ هٰذِهِ الْهُدْبَةِ لِهُدْبَةٍ اَخَذَتْهَا مِنْ جِلْبَابِهَا قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ جَالِسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَابْنُ سَعِيْدِ ابْنِ الْعَاصِ جَالِسٌ بِبَابِ الْحُجْرَةِ لِيُؤْذَنَ لَهُ فَطَفِقَ خَالِدٌ يُنَادِيْ اَبَا بَكْرٍ يَا اَبَا بَكْرٍ اَلَا تَزْجُرُ هٰذِهِ عَمَّا تَجْهَرُ بِهِ عِنْدَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يَزِيْدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى التَّبَسُّمِ ثُمَّ قَالَ لَعَلَّكِ تُرِيْدِيْنَ اَنْ تَرْجِعِيْ اِلٰى رِفَاعَةَ لَا حَتّٰى تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوْقَ عُسَيْلَتَكِ.

ف: طلاق بته: درے طلاقه.

۹ ۱ ۰ ۱ : حبان بن موسي، عبدالله، معمر، زهري، عروه، بي بي عائشے نه روايت کوي. رفاعه قرظي خپلے ښځے له طلاق بته ورکړلو دے نه پس عبدالرحمٰن بن زبير هغے سره نکاح اوکړله. او هغه ښځه ذ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضره شوه، او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، زۀ رفاعه سره ووم، هغه ماله درے طلاقه راکړلو. بيا ما سره عبدالرحمٰن بن زبير نکاح اوکړله، او په خدائے چه، يا رسول الله ده سره ذ دے زونډي په شان دے، دے نه سوا ورسره هيڅ نشته، او خپل څادرئے نيولے اوښودلو (يعني ذ، چيړو، ورسره دے) ذ، راوي بيان دے. حضرت ابوبکرؓ نبي صلي الله عليه وسلم سره ناست وو. او ابن سعيد بن عاص ذ حجرے په دروازه ولاړ وو، چه هغۀ ته ذ، داخلے ورکړے شي، خالدؓ ابوبکرؓ له آواز ورکړلو. اے ابوبکرؓ، دا ښځه ولے نه منع کوے، چه ذ، رسول الله صلي الله عليه وسلم مخکښ په اوچت آاز لګيا ده. او رسول الله صلي الله عليه وسلم صرف مُسکے شولو. او، وے فرمائيل، شايد ته رفاعه له (واپس) تلل غواړے. ليکن تۀ نۀ شے تلے، څو پورے چه تۀ ذ، دۀ نه او دے تا نه خوند وانخلي.

۲۰ ۱ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ عَنْ صَالِحِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ

۲۰ ۱ ۰ ۱ : اسمٰعيل. ابراهيم، صالح بن کيسان، ابن شهاب، عبدالحميد بن عبدالرحمٰن بن زيد بن خطاب، محمد بن سعد ذ خپل پلار نه روايت کوي.

الْخَطَّابِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ ابْنُ الْخَطَّابِ عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَسْأَلْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ عَلٰى صَوْتِهِ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ تَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَأَذِنَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ فَقَالَ أَضْحَكَ اللّٰهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي فَقَالَ عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَاءِ اللَّاتِي كُنَّ عِنْدِي لَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ تَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَقَالَ أَنْتَ أَحَقُّ أَنْ يَهَبْنَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْهِنَّ فَقَالَ يَا عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ أَتَهَبْنَنِي وَلَا تَهَبْنَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ إِنَّكَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيهٍ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ سَالِكًا فَجًّا إِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ .

حضرت عمرؓ بن خطاب، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دَ، داخلے اجازت او غوښتلو، دغه وخت حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره قریشي ښځے ناستے وے، چه څهٔ ډیر تپوسونه ئے کول، دَ هغے ښځو آواز دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم په آواز غالب کیدلو. کوم وخت چه حضرت عمرؓ اِجازت او غوښتلو، نو دغه ښځے تادي سره پردے ته ننوتے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغهٔ ته اِجازت ورکړلول. کوم وخت چه دننه ورغے، نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خاندل، هغه عرض او کهٔ، یا رسول اللّٰه څما مور پلار دے په تاسوٌ قربان وي، اللّٰه پاک دے تاسو خاندیدونکي لري (څهٔ خبره ده) حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل. ما ته په دے ښځو تعجّب راځي، چه کوم وخت هغوي ستا آواز واؤریدلو، نو په تادي پردے ته ورغلے. حضرت عمرؓ عرض او کهٔ، یا رسول اللّٰه، تاسوٌ دَ دے زیات مستحق ئے، چه دوئ تاسوٌ نه اویریږي. بیا هغے ښځو ته متوجّه شو، ورته ئے وئیلے اے دَ خپل ځان دُشمنو ښځو، آیا تاسو مانه ویریږے، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه، نهٔ ویریږے. هغے ښځو جواب ورکهٔ، تهٔ دَ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه زیات سخت او غضب واله ئے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل. اے دَ خطاب خوئیه، واؤره، قَسم دے په هغه ذات، چه دَ هغه په قبضه کښ څما ساه ده، چه شیطان تاسره هیځکله په لاره تلو کښ نهٔ یو ځائے کیږي، په کومه لار چه تهٔ ځے، هغه په بل طرف روان شي.

۱۰۲۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ

۱۰۲۱ : قتیبه بن سعید، سُفیان، عمرو، ابو

سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو وَعَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالطَّائِفِ قَالَ إِنَّا قَافِلُوْنَ غَدًا إِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَقَالَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَبْرَحُ أَوْ نَفْتَحَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْدُوْا عَلَى الْقِتَالِ قَالَ فَغَدَوْا فَقَاتَلُوْهُمْ قِتَالًا شَدِيْدًا وَّ كَثُرَ فِيْهِمُ الْجِرَاحَاتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا قَافِلُوْنَ غَدًا إِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ فَسَكَتُوْا فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَان كُلَّهُ بِالْخَبَرِ.

العباس، حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم طائف كښې جهاد كولو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، صباله به انشاء اللّٰه مونږ واپس شو. ذ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ ؤ كښې چا اووے، مونږ بغير فتح نه واپس كيږو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ښه ده، بيا صباله جنګ او كړئے، نو په دويمه ورځ خلقو سخت جنګ اوكه، او ډير سړي زخمي شو، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل صباله به انشاء اللّٰه مونږ واپس شو. اوس خلق خاموش شو، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او خاندل. ذ، حميدي بيان دے. مونږ ته سُفيان ذا پوره حديث بيان كه:

۱۰۲۲ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ فَقَالَ أَتَى رَجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكْتُ وَقَعْتُ عَلٰى أَهْلِيْ فِيْ رَمَضَانَ فَقَالَ أَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ لَيْسَ لِيْ قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا أَسْتَطِيْعُ قَالَ فَأَطْعِمْ

۱۰۲۲ : موسٰي، ابراهيم، ابن شهاب، حميد بن عبدالرحمٰن، ابو هريرهؓ نه روايت كوي، يو سړے ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او وئيلے زهٔ خو هلاک شوم، رمضان كښې م خپلے بي بي سره صحبت اوكه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، يو غلام آزاد كړه. هغه اووے، ما سره غلام نشته. وے فرمائيل، بيا دوه مياشتے پرله پسے (متواتر) روژے اونيسه، هغه اووے، ذ دے صلاحيّت نه لرم وے فرمائيل شپيتو مسكينانو باندے ډوډئ او خوروه. ما سره دا هم نشته. يو عرق راوړے شو، چه هغے كښې قجورے وے. (ابراهيم اووے عرق يو پيمانه ده). حضور صلي اللّٰه عليه

سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ لَا اَجِدُ فَاُتِيَ بِعَرَقٍ فِيْهِ تَمْرٌ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ الْعَرَقُ الْمِكْتَلُ فَقَالَ اَيْنَ السَّائِلُ تَصَدَّقْ بِهَا قَالَ عَلٰى اَفْقَرَ مِنِّيْ وَاللّٰهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا اَهْلُ بَيْتٍ اَفْقَرُ مِنَّا فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ قَالَ فَاَنْتُمْ اِذًا.

وسلّم تپوس اوکهٔ هغه سائل (تپوس کونکے) چرته دے. (هغه راغے نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل) دا قجورے واخله او صدقه ئے کړه. هغه تپوس اوکه آيا ذ خان نه زيات محتاج له ئے ورکړم. په خدائے م دے قسم وي ذ مدينے ذ دے دواړو کانړيجنو ميدانونو مينځ کښ هيڅ کور داسے نشته چه څما نه زيات محتاج وي نبي صلي الله عليه وسلّم او خاندل تر دے چه ذ حضور آخري (نواجذ) غابښونه ښکاره شول. اووے فرمائيل خه بيا ته سهي (يعني تاسو ئے او خورئے).

ف: عرق: دلته مطلب ترے ټوکرئے يا پچي ده.

۱۰۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنْتُ اَمْشِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيْظُ الْحَاشِيَةِ فَاَدْرَكَهٗ اَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَ بِرِدَآئِهٖ جَبْذَةً شَدِيْدَةً قَالَ اَنَسٌ فَنَظَرْتُ اِلٰى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ اَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الرِّدَآءِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهٖ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ مُرْلِيْ مِنْ مَالِ اللّٰهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ فَضَحِكَ ثُمَّ اَمَرَ لَهٗ بِعَطَاءٍ.

۱۰۲۳: عبدالعزيز بن عبدالله اويسي مالک اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحه انس بن مالکؓ نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے. زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره روان شوم داسے حال کښ چه حضور صلي الله عليه وسلّم يو نجراني څادر اچولے وو چه ذ هغے حاشيے ډبلے جوړے شوے وے. يو اعرابي حضور صلي الله عليه وسلّم سره يو ځائے شو. ذ حضور صلي الله عليه وسلّم څادر ئے زور سره راښکلو. ذ انسؓ بيان دے. ما ذ حضور صلي الله عليه وسلّم اوږه مُبارکه اوليدله چه زور سره ذ راښکلو په سبب پرے نښے پريوتے وے. بيا هغه اووے. اَے محمّد (صلي الله عليه وسلّم) ذ الله مال چه تاسره دے ذ هغے نه ماله راکړه ما چه حضور صلي الله عليه وسلّم ته اوکتل نو حضور صلي الله عليه وسلّم او خاندل. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم هغهٔ ته ذ ورکولو حکم اوکړلو.

۱۰۲۴: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ

۱۰۲۴: ابن نمير ابن ادريس اسمٰعيل قيس

حَدَّثَنَا ابْنُ اِدْرِيْسَ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ مَا حَجَبَنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ اَسْلَمْتُ وَلَا رَاٰنِيْ اِلَّا تَبَسَّمَ فِيْ وَجْهِيْ وَ لَقَدْ شَكَوْتُ اِلَيْهِ اَنِّيْ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَضَرَبَ بِيَدِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا.

جرير نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے. ذَ كوم وخت نه چه زهٔ مُسلمان شوم، نبي صلي الله عليه وسلّم زهٔ هغوي ته ذَ، ورتلو نه، نه يم منع كړے. او كله چه به ئے ما ته كتل، نو مُسكے كيدلو، به. ما حضور صلے الله عليه وسلّم ته شكايت اوكه، چه زهٔ په اَس كيناستے نشم (غرخيبږم ترے) حضور صلي الله عليه وسلّم خپل لاس مُبارك خما په سينه رابنكلو. او وے فرمائيل. اَے اللّٰه، دے ثابت قدم لرے، او دے هدايت كونكے او هدايت يافته جوړ كړے (يا اللّٰه، مونږ هم هدايت كونكي او هدايت يافته كړے. اللّٰهم آمين).

۱۰۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ اَنَّ اُمَّ سُلَيْمٍ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ هَلْ عَلَى الْمَرْاَةِ غُسْلٌ اِذَا احْتَلَمَتْ قَالَ نَعَمْ اِذْ رَاَتِ الْمَآءَ فَضَحِكَتْ اُمُّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ اَتَحْتَلِمُ الْمَرْاَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبِمَ شَبَهُ الْوَلَدِ.

۱۰۲۵: محمّد بن مثني، يحيٰي، هشام، ذَ خپل پلار نه، هغه ذَ، زينب بنت اُم سلمه، اُم سلمهؓ، اُم سُليمؓ نه روايت كوي، ذَ هغے بيان دے، ما عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، اللّٰه تعالٰي ذَ حق خبرے نه نهٔ شرميږي، آيا په ښځے غُسل واجب دے، هر كله چه هغے باندے اودس واوړي (اِحتلام ورته اوشي) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، او په شرط ذَ دے چه اُوبه او ويني اُم سلمهؓ او خاندل، او عرض ئے اوكه، آيا په ښځه هم اودس آوړي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، بيا بچے ورسره ولے مشابه وي.

۱۰۲۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو اَنَّ اَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهٗ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَجْمِعًا قَطُّ

۱۰۲۶: يحيٰي بن سُليمان، ابن وهب، عمرو، ابو النضر، سُليمان بن يسار، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذَ هغے بيان دے، ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم هيڅ كله ټول غاښونه څركند كړے په داسے خندا، نه دے ليدلے، چه ذَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم حلق په نظر راشي، بلكه

ضَاحِكًا حَتّٰى اَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهٖ اِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ.

حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به صرف مُسکے کیدلو.

۱۰۲۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ وَقَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَجُلًا جَاءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهُوَ يَخْطُبُ بِالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ قَحَطَ الْمَطَرُ فَاسْتَسْقِ رَبَّكَ فَنَظَرَ اِلَى السَّمَآءِ وَمَا نَرٰى مِنْ سَحَابٍ فَاسْتَسْقٰى فَنَشَأَ السَّحَابُ بَعْضُهُ اِلٰى بَعْضٍ ثُمَّ مُطِرُوْا حَتّٰى سَالَتْ مَثَاعِبُ الْمَدِيْنَةِ فَمَا زَالَتْ اِلَى الْجُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ مَا تَقْلَعُ ثُمَّ قَامَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ اَوْ غَيْرُهٗ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ غَرِقْنَا فَادْعُ رَبَّكَ يَحْبِسْهَا عَنَّا فَضَحِكَ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا فَجَعَلَ السَّحَابُ يَتَصَدَّعُ عَنِ الْمَدِيْنَةِ يَمِيْنًا وَشِمَالًا يُمْطَرُ مَا حَوَالَيْنَا وَلَا يُمْطِرُ مِنْهَا شَيْءٌ يُرِيْهِمُ اللّٰهُ كَرَامَةَ نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِجَابَةَ دَعْوَتِهٖ.

۱۰۲۷: محمّد بن محبوب، ابو عوانه، قتاده، حضرت انسؓ نه روایت کوي (دوئم سند) خلیفه، یزید بن زریع، سعید قتاده، حضرت انسؓ نه روایت کوي، یو سړے دَ جُمعے په ورځ دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. هغه وخت حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم مدینه کښې خُطبه ورکوله. هغه عرض اوکړه. باران نۀ کیږي، تاسو دَ خپل رب نه دَ، اُوبو (باران) سوال اوکړئ. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم آسمان طرف ته اوکتل، هغه وخت دَ وریځ څۀ ټکړه په نظر نۀ راتله. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم باران دَ پاره دُعا اوکړه، نو دَ وریځے ټکړے را ښکاره شوے، او یو بل سره یو ځائے شوے. بیا باران شروع شو، تر دے چه دَ مدینے نالے او بهیدلے. باران دوئمے جُمعے پورے د غسے کیدلو، چه نه اُودریدلو. بیا هم هغه سړے یا بل څوک اُودریدلو، کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خُطبه ورکوله، نو هغے سړي عرض اوکۀ، مونږ خو اوس غرق شو، تاسو خپل رب نه دُعا او غواړے، چه باران بند کړي. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم په خندا شو، او، وے فرمائیل، یا اللّٰه، خمونږ کیر چاپیره ئے اُووروے، او په مونږ، ئے مه وَروے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دوه درے ځله دغسے او فرمائیل، نو وریځ دَ مدینے ښي او کس طرفته خوره شوه. خمونږ خو اوشا کښې باران وو. لیکن مدینه کښې باران نه وو. اللّٰه تعالیٰ دَ نبي کرامت او دَ هغويٌ دَ دعاګانو مقبولیت اوښودلو.

باب ۶۲۰ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ وَمَا يُنْهٰى عَنِ الْكَذِبِ.

باب ۶۲۰ : دَ الله تعالى قول' اے ايمان والو' الله نه ويريږئ' او صادقانو سره شئ. او دَ دروغو دَ ممانعت بيان.

۱۰۲۸ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِىْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِىْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِىْ اِلَى الْبِرِّ وَاِنَّ الْبِرَّ يَهْدِىْ اِلَى الْجَنَّةِ وَاِنَّ الرَّجُلَ لَيَصْدُقُ حَتّٰى يَكُوْنَ صِدِّيْقًا وَّ اِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِىْ اِلَى الْفُجُوْرِ وَاِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِىْ اِلَى النَّارِ وَاِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ حَتّٰى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ كَذَّابًا.

۱۰۲۸ : عثمان بن ابي شيبه' جرير' منصور' ابو وائل' عبدالله' نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل رېښتيا' نيكي طرف ته او نيكي جنت طرف ته هدايت كوي' او سړے رېښتيا وائي' تر ي چه هغه صديق شي. او دروغ' بدكاري طرف ته او بدكاري سړے دوزخ طرفته بوځي' او سړے دروغ وائي. تر دې چه الله تعالى سره دروغجنو كښ او ليكلے شي.

۱۰۲۹ : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اَبِىْ سُهَيْلٍ نَّافِعِ بْنِ مَالِكِ بْنِ عَامِرٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اٰيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلٰثٌ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَاِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ وَاِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ.

۱۰۲۹ : ابن سلام' اسماعيل بن جعفر ابو سهيل نافع بن مالك بن ابي عامر دَ خپل پلار نه' هغه دَ حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' دَ منافق درې علامتونه دي' چه خبرے كوي' نو دروغ وائي' چه وعده اوكړي' نو ما ته ئے كړي' چه آمانت ورسره كيښودے شي' نو خيانت پكښ اوكړي.

۱۰۳۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ رَجُلَيْنِ اَتَيَانِىْ قَالَ الَّذِىْ رَاَيْتَهٗ يَشُقُّ شِدْقُهٗ فَكَذَّابٌ يُكْذِبُ بِالْكَذْبَةِ تُحْمَلُ

۱۰۳۰ : موسي بن اسماعيل' جرير' ابو رجاء' سمره بن جندبؓ نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' ما خوب اوليدلو چه دوه سړي ماله راغلل' اوونيلے' هغه سړے چه تا دَ معراج په شپه ليدلے وو' چه دَ هغے ژامنے (جبړے) خيرلے شوے' هغه ډير دروغجن وو. او دغه شان دروغ خبرے به ئے خورولے'

عَنْهُ حَتّٰى تَبْلُغَ الْاٰفَاقَ فَيُصْنَعُ بِهٖ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ.

چه دَ دُنيا په ټول کونو کښې به خوريدلې دَ قيامته پورې به هغه سره داسې کيږي.

## باب ۶۲۱: فِي الْهَدْيِ الصَّالِحِ.

## باب ۶۲۱: دَ ښو طريقو بيان.

۱۰۳۱: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ اُسَامَةَ حَدَّثَكُمُ الْاَعْمَشُ سَمِعْتُ شَقِيْقًا قَالَ سَمِعْتُ حُذَيْفَةَ يَقُوْلُ اِنَّ اَشْبَهَ النَّاسِ دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَابْنُ اُمِّ عَبْدٍ مِنْ حِيْنَ يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهٖ اِلٰى اَنْ يَّرْجِعَ اِلَيْهِ لَا نَدْرِيْ مَا يَصْنَعُ فِيْ اَهْلِهٖ اِذَا خَلَا.

۱۰۳۱: اسحاق بن ابراهيم مونږ ته بيان اوکړ، ما ابو اسامه ته اووې، تا ته اعمش حديث بيان کړ، ما دَ شقيق نه واوريدل، هغه اووې، ما دَ حذيفهؓ نه واوريدل، چه خلقو کښې دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم طور طريقې او عادت و خصلت سره ډير زيات مشابه ابن اُم عبد، دې. هر کله چه هغه دَ کور، نه بهر اوځي، تر دې چه واپس کيږي، معلومه نه ده، چه کور کښې چه هغه تنهائي کښې وي، نو څۀ کوي.

۱۰۳۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُخَارِقٍ سَمِعْتُ طَارِقًا قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اِنَّ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتَابُ اللّٰهِ وَ اَحْسَنَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۳۲: ابو الوليد، شعبه، محارق، طارق حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي. دَ هغه بيان دې، بهترې خبرې کتاب اللّٰه دې، او بهترين طور طريقې دَ حضرت مُحمّد صلي اللّٰه عليه وسلّم دي.

## باب ۶۲۲: الصَّبْرِ عَلَى الْاَذٰى وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ.

## باب ۶۲۲: په تکليف دَ صبر کولو بيان. او دَ اللّٰه تعالي فرمان، چه صابرانو ته به دَ هغوي اَجر بې حسابه ورکيږي.

۱۰۳۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي الْاَعْمَشُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰىؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ اَحَدٌ اَوْ لَيْسَ شَيْءٌ اَصْبَرَ عَلٰى اَذًى سَمِعَهٗ

۱۰۳۳: مُسدّد، يحيٰي بن سعيد، سُفيان، اعمش، سعيد بن جبير، ابو عبدالرحمٰن سُلّمي، حضرت ابو موسٰيؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هيڅوک تکليف ورکونکې خبره آوريدو سره دَ اللّٰه تعالي نه زيات صبر کونکې نۀ دې، چه خلق هغۀ دَ پاره ځوئې جوړوي، او هغه،

مِنَ اللّٰهِ إِنَّهُمْ يَدْعُوْنَ لَهُ وَلَدًا وإِنَّهُ لَيُعَافِيْهِمْ وَيَرْزُقُهُمْ.

١٠٣٤ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ شَقِيْقًا يَقُوْلُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِسْمَةً كَبَعْضِ مَا كَانَ يَقْسِمُ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ وَاللّٰهِ إِنَّهَا لَقِسْمَةٌ مَا أُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ قُلْتُ أَمَّا أَنَا لَأَقُوْلَنَّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ فِيْ أَصْحَابِهِ فَسَارَرْتُهُ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ وَغَضِبَ حَتّٰى وَدِدْتُ أَنِّيْ لَمْ أَكُنْ أَخْبَرْتُهُ ثُمَّ قَالَ قَدْ أُوْذِيَ مُوْسٰى بِأَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَصَبَرَ.

بَابُ ٦٢٣ : مَنْ لَمْ يُوَاجِهِ النَّاسَ بِالْعِتَابِ.

١٠٣٥ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَتْ عَائِشَةُ صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَرَخَّصَ فِيْهِ فَتَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

هغوي معاف کوي، او هغوي له رزق ورکوي.

١٠٣٤ : عمر بن حفص، اعمش، شقيق، عبدالله نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ غنيمت مال ذَ قاعدے مطابق تقسيم کړلو. يو انصاري سړي اووے، قَسم په خدائے، ذَ دے تقسيم نه ذَ خدائے رضامندي مقصود نه ده. ما اووے، زۀ به دا خبره ضرور نبي صلي الله عليه وسلّم ته کوم، زۀ ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم، دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم خپلو صحابهؓ سره ناست وو، ما غلے (رو) شان حضور صلي الله عليه وسلّم ته دغه بيان اوکۀ، نو په حضور صلي الله عليه وسلّم دا خبره سخته اولګيده. ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ مخ مُبارک رنګ بدل شولو، او غضب ناک شولو، تر دے چه ما آرمان اوکۀ، چه کاش ما، حضور صلي الله عليه وسلّم ته دا خبره نۀ وے بيان کړے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. موسیٰؑ ته ذَ دے نه زيات تکليف ورکړے شو، ليکن هغۀ صبر اوکۀ.

باب ٦٢٣ : ذَ هغے سړي بيان، چه ذَ عتاب په وخت خلقو ته متوجّه نشي.

١٠٣٥ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، مسلم، مسروق، بي بي عائشهؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم څۀ کار کړے وو، او خلقو ته ئے ذَ هغے ذَ کولو اِجازت هم ورکړے وو. ليکن خلقو ذَ هغے نه پرهيز اوکۀ، نبي صلي الله عليه وسلّم ته دا خبر اورسيد، نو حضور صلي الله عليه وسلّم خطبے ذَ پاره اودريدلو.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَطَبَ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ اَقْوَامٍ يَتَنَزَّهُوْنَ عَنِ الشَّيْءِ اَصْنَعُهُ فَوَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَاَعْلَمُهُمْ بِاللّٰهِ وَاَشَدُّهُمْ لَهٗ خَشْيَةً.

ذَ اللّٰه حمد، ئې بيان كړ، بيائې او فرمائيل. خلقو له څه شوې دي، چه ذَ هغې كار نه پرهيز كوي، كوم چه زهٔ كوم، په خدائې م دې قسم وي، زهٔ اللّٰه ذَ هغوي نه زيات پيژنم، او ذَ هغوي نه زيات (ذَ اللّٰه نه) ويرويدونكې يم.

۱۰۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ هُوَ ابْنُ اَبِيْ عُتْبَةَ مَوْلٰى اَنَسٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشَدَّ حَيَآءً مِّنَ الْعَذْرَاءِ فِيْ خِدْرِهَا فَاِذَا رَاٰى شَيْئًا يَّكْرَهُهٗ عَرَفْنَاهُ فِيْ وَجْهِهٖ.

۱۰۳۶: عبدان، عبداللّٰه شعبه، قتاده، عبداللّٰه بن ابي عتبه (ذَ انس آزاد كړه غلام) حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ پرده دارو پيغلو جينكو نه هم زيات حياناك وو، هر كله چه څه خبره به ئې داسې اوليده، چه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به ناخوښه وه، نو مونږ خلقو ته به ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ مخ مُبارك نه پته لګيده.

باب ۶۲۴: مَنْ كَفَّرَ اَخَاهُ بِغَيْرِ تَاْوِيْلٍ فَهُوَ كَمَا قَالَ.

باب ۶۲۴: څوك چه خپل ورور ته بغير تاويل نه كافر اووائي، نو هغه هغسې دې، څنګه چه هغه اووې.

۱۰۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ وَّاَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُثْمٰنُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِاَخِيْهِ يَا كَافِرُ فَقَدْ بَآءَ بِهٖ اَحَدُهُمَا وَقَالَ عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ سَمِعَ اَبَا سَلَمَةَ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۳۷: محمّد، او، احمد بن سعيد، عثمان بن عمر، علي بن مُبارک، يحيٰي بن ابي كثير، ابو سلمه، حضرت ابو هريرهٔ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هر كله چه يو سړې خپل (مُسلمان) ورور ته اې كافره اووائي، نو هغوي كښې يو ذَ دې مستحق شو. او عكرمه بن عمّار، ذَ يحيٰي نه، هغه ذَ عبداللّٰه بن يزيد نه نقل او كه، هغه ذَ ابو سلمه نه، ابو سلمه ذَ حضرت ابو هريرهٔ نه هغه، ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل.

۱۰۳۸: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ

۱۰۳۸: اسماعيل، مالک، عبداللّٰه بن دينار

حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِاَخِيْهِ يَا كَافِرُ فَقَدْ بَآءَ بِهَا اَحَدُهُمَا.

حضرت عبدالله بن عمرؓ روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل څوک چه خپل (مُسلمان) ورور ته اَے كافره، اووائي نو هغوي كښې يو ذَ دے مستحق شي.

۱۰۳۹ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَبِيْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ غَيْرِ الْاِسْلَامِ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ عُذِّبَ بِهٖ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ وَلَعْنُ الْمُؤْمِنِ كَقَتْلِهٖ وَمَنْ رَّمٰى مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهٖ.

۱۰۳۹ : موسٰي بن اسماعيل، وهيب، ايوب قلابه، ثابت به ضحاک، نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، چا چه ذَ اسلام نه سِوا، ذَ څه بل مذهب په دروغه قسم اُوخورو، نو هغه هم هغسے دے، څنگه چه هغه اووے، او كوم سړي چه څه څيز سره خود كشي اوكړه، نو ذَ جهنم اُور كښې به هغهٔ ته هغې څيز سره عذاب وركړے شي. (الله پاک دے ترے مونږ په آمان كړي. اللّٰهم آمين) او په مؤمن باندے لعنت كول ذَ هغه ذَ قتلولو په شان دي، او چا چه يو مؤمن كُفر سره تُهمتي كړلو. نو دا ذَ هغهٔ ذَ قتل په شان دي.

بَاب ۶۲۵ : مَنْ لَّمْ يَرَ اِكْفَارَ مَنْ قَالَ ذٰلِكَ مُتَاَوِّلًا اَوْ جَاهِلًا وَقَالَ عُمَرُ لِحَاطِبٍ اِنَّهٗ مُنَافِقٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهَ قَدِ اطَّلَعَ اِلٰى اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ.

باب ۶۲۵ : ذَ هغې خلقو دليل چه ذَ جهالت او تاويل په بنا چا كافر ويونكي ته كافر نه وائي. او حضرت عمرؓ ذَ حاطبؓ متعلق او فرمائيل، جه دے منافق دے، نو نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تا ته څنگه معلومه شوه، الله تعالٰي ذَ اهلِ بدر متعلق واقف وو، ځكه ذَ هغوي متعلق ئے او فرمائيل، چه ما تاسو اوبښلئے.

۱۰۴۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَادَةَ اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ اَخْبَرَنَا سَلِيْمٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ

۱۰۴۰ : مُحمّد بن عباده، يزيد، سليم، عمرو بن دينار، جابر بن عبدالله نه روايت كوي. معاذ بن جبل به نبي صلي الله عليه وسلّم سره مونځ كولو، بيا به خپل قوم له تلو، هغوي ته به ئے مونځ وركولو (يعني ذَ هغوي

كَانَ يُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَأْتِيْ قَوْمَهُ فَيُصَلِّيْ بِهِمُ الصَّلٰوةَ فَقَرَاَبِهِمُ الْبَقَرَةَ قَالَ فَتَجَوَّزَ رَجُلٌ فَصَلّٰى صَلٰوةً خَفِيْفَةً فَبَلَغَ ذٰلِكَ مُعَاذًا فَقَالَ اِنَّهُ مُنَافِقٌ فَبَلَغَ ذٰلِكَ الرَّجُلَ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا قَوْمٌ نَعْمَلُ بِاَيْدِيْنَا وَنَسْقِيْ بِنَوَاضِحِنَا وَاِنَّ مُعَاذًا صَلّٰى بِنَا الْبَارِحَةَ فَقَرَاَ الْبَقَرَةَ فَتَجَوَّزْتُ فَزَعَمَ اَنِّيْ مُنَافِقٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مُعَاذُ اَفَتَّانٌ اَنْتَ ثَلٰثًا اِقْرَاْ وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا وَسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى وَنَحْوَهَا.

امامتي به ئې كوله) يو ځل ئې مانځه كښې سُورهٔ بقره اولوستو. دَ راوي بيان دے، يو سړے دَ مانځه نه بهر شولو، او آسان مونځ ئې اوكړلو. معاذ ته چه دا معلومه شوه، نو ونيلے دے مُنافق دے، هغې سړي ته چه پته اولګيده، نو دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او عرض ئې اوكه، يا رسول الله. مونږ دَ داسې قوم نه يُو، چه خپل لاس سره كار كوو، او خپل اُوښان اُوبهٔ كوو. او معاذ چه تيره شپه مونږ ته كوم مونځ راكړلو، هغې كښې ئې دَ سُورهٔ بقره قرأت اوكه. نو زهٔ ترے جُدا شوم، مختصر مونځ مې اوكړلو، نو هغهٔ اُووے چه زهٔ مُنافق يم. حضور صلي الله عليه وسلّم، معاذ ته او فرمائيل، اے معاذؓ، آيا تهٔ فتنه كښې غُرځونكے ئې، درے ځله حضور صلي الله عليه وسلّم دا الفاظ او فرمائيل. (بيائے او فرمائيل) تهٔ سُورهٔ وَالشمس و ضحها او، سبح اسم ربک الاعلٰى او دَ دے قِسم سُورتونه لوله.

۱۰۴۱ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا اَبُو الْمُغِيْرَةِ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ مِنْكُمْ فَقَالَ فِيْ حَلْفِهِ بِاللَّاتِ وَالْعُزّٰى فَلْيَقُلْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهٖ تَعَالَ اُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ.

۱۰۴۱ : اسحاق، ابو المغيره، اوزاعي، زهري، حميد، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو كښې چه څوک دَ لات و منات قَسم او خوري، نو هغه دے سمدستي: لا اله الا الله: اووائي. او څوک چه خپل ملګري ته اووائي، راځه، چه جواري اوكړو، نو هغه له پكار دي، چه صدقه وركړي.

۱۰۴۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّهُ اَدْرَكَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فِيْ رَكْبٍ وَهُوَ يَحْلِفُ

۱۰۴۲ : قتيبه، ليث، نافع، حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه حضرت عمر بن خطابؓ سُورو كښې بيا مُند او هغه دَ خپل پلار قَسم خوړلو، نو حضور صلي

بِاٰبَائِهِ فَنَادَاهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اِنَّ اللّٰهَ يَنْهَاكُمْ اَنْ تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ فَمَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ وَاِلَّا فَلْيَصْمُتْ.

اللّه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، واوره، الله تعالي تا ذ پلارانو ذ قسم خوړلو نه منع كوي. كوم سړے چه قسم خوري، نو پـه اللّه دے قسم او خوري، كني چپ دے اوسي.

باب ۶۲۶ : مَا يَجُوْزُ مِنَ الْغَضَبِ وَالشِّدَّةِ لِاَمْرِ اللّٰهِ وَ قَالَ اللّٰهُ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ. الاٰية

باب ۶۲۶ : احكام الٰهيه كښې غضب او سختي جائز ده. او اللّه تعالي فرماني كفارو او منافقينو سره جهاد كوئے، او هغوي سره سختي كوئے.

۱۰۴۳ : حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي الْبَيْتِ قِرَامٌ فِيْهِ صُوَرٌ فَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ ثُمَّ تَنَاوَلَ السِّتْرَ فَهَتَكَهُ وَقَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَشَدِّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِيْنَ يُصَوِّرُوْنَ هٰذِهِ الصُّوَرَ.

۱۰۴۳ : يسره بن صفوان، ابراهيم، زهري، قاسم، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ماله تشريف راوړلو هغه وخت كور كښې يوه پرده پرته وه، چه هغے كښې تصويرونه وو. ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ مخ مُبارك رنګ بدل شولو. بيائے هغه پرده واخسته، او هغه ئے اوشلوله. ذ بي بي عائشےؓ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم دا هم او فرمائيل، ذ قيامت په ورځ به ذ ټولو نه زيات عذاب هغے خلقو ته وي، چه دا تصويرونه جوړوي.

۱۰۴۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍؓ قَالَ اَتَى رَجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنِّيْ لَاَتَاَخَّرُ عَنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ مِنْ اَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا قَالَ فَمَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطُّ اَشَدَّ غَضَبًا فِيْ مَوْعِظَةٍ مِنْهُ يَوْمَئِذٍ قَالَ

۱۰۴۴ : مُسدّد، يحيٰي، اسمٰعيل بن ابي خالد، قيس بن ابي حازم، ابو مسعودؓ نه روايت كوي، يو سړے ذ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او عرض ئے او كۀ، زۀ ذ ماسختن مونځ كښې ذ فلاني سړي ذ اُوږد مونځ وركولو په سبب نۀ شريكيږم، ذ ابو مسعودؓ بيان دے. ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم وعظ كښې ذ دے نه زيات ذ غصے حالت كښې نۀ دے ليدلے حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، اے خلقو، تاسو كښې بعضے داسے دي، چه نور زغلوي (يعني نفرت په كښې

فَقَالَ يَآيُّهَا النَّاسُ اِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ فَاَيُّكُمْ مَا صَلّٰى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ فَاِنَّ فِيْهِمُ الْمَرِيْضَ وَالْكَبِيْرَ وَذَا الْحَاجَةِ.

پيدا كوي) په دې وجه تاسو كښې چه څوک خلقو ته مونځ وركوي (يعني اِمامتي كوي) نو مختصر مونځ دې وركوي، ځكه چه هغوي كښې مريضان، بوډاګان او حاجت مند خلق هم وي.

**ف:** دغسې په جنازه دَ مسئلې كولو په وخت هم دَ يخنۍ، ګرمۍ باران او دَ مريضانو بوډاګانو او حاجت مندو خيال ساتل پكار دي. يعني دَ، اختصار نه كار اخستل پكا دي.

۱۰۴۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ رَاٰى فِيْ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ نُخَامَةً فَحَكَّهَا بِيَدِهٖ فَتَغَيَّظَ ثُمَّ قَالَ اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا كَانَ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّ اللّٰهَ حِيَالَ وَجْهِهٖ فَلَا يَتَنَخَّمَنَّ حِيَالَ وَجْهِهٖ فِي الصَّلٰوةِ.

۱۰۴۵: موسي بن اسماعيل، جويريه، نافع، عبداللهؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دې. يو ځل نبي صلي الله عليه وسلّم مونځ كولو، نو خپل مخكښې ئې دَ جومات قبلې طرفته بلغم اوليدلو، نو هغه ئې خپل لاس مُبارک سره صاف كړلو. او غصې سره ئې او فرمائيل، تاسو كښې چه څوک مانځه كښې وي، الله تعالي دَ هغه مخې ته وي. نو هغۀ له پكار دي، چه مونځ كښې خپلې مخې ته دَ پوزې وغيره رطوبت نۀ غُرځوي.

۱۰۴۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنَا رَبِيْعَةُ بْنُ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اعْرِفْ وِكَآءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَاِنْ جَآءَ رَبُّهَا فَاَدِّهَا اِلَيْهِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ خُذْهَا فَاِنَّمَا هِيَ لَكَ اَوْ لِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ يَا

۱۰۴۶: مُحمّد اسماعيل بن جعفر، ربيعه بن ابي عبدالرحمٰن، يزيد (دَ منبعث آزاد كړده غُلام) زيد بن خالد جهني نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دې، يو سړي دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه دَ، غُرځيدلي څيز متعلق تپوس اوكۀ، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل دا يو كال پورې مشهور وه (يعني اعلان ئې كوه) بيا دَ هغې سر تړونې اوپيژنه. بياهغه خرچ كه. بيا كۀ دَ هغې مالک راشي، نو هغۀ ته ادائيكي اوكړه هغه عرض اوكۀ، يا رسول الله، دَ وركې شوې چيلئې څه حكم دې. حضور صلې الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هغه واخله، ځكه چه هغه ستا ده، يا ستا دَ ورور يا، دَ شرمخ ده. هغه عرض اوكۀ، يا رسول الله دَ، وركې شوي

رَسُوْلَ اللّٰهِ فَضَالَّةُ الْاِبِلِ قَالَ فَغَضِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ اَوِحْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَآؤُهَا وَسِقَاؤُهَا حَتّٰى يَلْقَاهَا رَبُّهَا وَقَالَ الْمَكِّيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ ح وَحَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ ابْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ بُسْرِبْنِ سَعِيْدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ احْتَجَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُجَيْرَةً مُخَصَّفَةً اَوْ حَصِيْرًا فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْهَا قَالَ فَتَتَبَّعَ اِلَيْهِ رِجَالٌ وَّجَاءُوْا لَيْلَةً فَحَضَرُوْا وَاَبْطَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُمْ فَلَمْ يَخْرُجْ اِلَيْهِمْ فَرَفَعُوْا اَصْوَاتَهُمْ وَحَصَبُوا الْبَابَ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ مُغْضِبًا فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا زَالَ بِكُمْ صَنِيْعُكُمْ بِالصَّلٰوةِ فِيْ بُيُوْتِكُمْ فَاِنَّ خَيْرَ صَلٰوةِ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهٖ اِلَّا الصَّلٰوةَ الْمَكْتُوْبَةَ.

اُوښ څه حُکم دے. دَ راوي بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم سخت غُصه شو، تر دے چه دواړه انګي مُبارک ئے سرهٔ (سُرخ) شول. بيائے او فرمائيل، ستا دے سره څه کار دے، هر کله چه دَ هغه خوراک څکاک هغه سره دے، تر دے چه دَ هغه مالک ئے بياموميي او مکي اووے، مونږ ته عبدالله بن سعيد بيان او کړ، مُحمد بن زياد په واسطه دَ مُحمد بن جعفر، عبدالله بن سعيد، سالم، ابو النضر (دَ عمر بن عبيد الله آزاد کرده غُلام) بسر بن سعيد، زيد بن ثابت نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم يوه حجره (کوټګئ) دَ قجورو دَ څانګو يا بور يانه جوړه کړے وه. يو ځل رسول الله اووتلو، او لاړ، هغے کښې ئے مونځ کولو، نو خلقو هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره مونځ کول شروع کړل. بيايوه شپه (دَ تهجُد) مونځ دَ پاره نور خلق خو راغلل، ليکن حضور صلي الله عليه وسلّم راتلو کښې ايسار شولو، او بهرته ئے تشريف راونه ړلو. خلقو خپل آواز اوچت کړ، او دروازه ئے په کنکرو اوويشتله. دَ غصے حالت کښې حضور صلي الله عليه وسلّم بهرته تشريف راوړلو، او هغے خلقو ته رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ستاسو برابر دَ دغسے کولو په سبب ما خيال او کړ، چه چرته تاسو باندے (دَ شپے مونځ) فرض نۀ شي. په دے وجه تاسو خپلو خپلو کورونو کښې (دَ شپے دَ تهجُد) مونځ کوے، ځکه چه دَ فرض نه سوا نور مونځونه هغه بهتر دي، چه کور کښې کولے شي.

## بَاب ۶۲۷ : اَلْحَذْرِ مِنَ الْغَضَبِ

لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ

## باب ۶۲۷ : دَ غصے نه دَ پرهيز کولو بيان ځکه

چه الله تعالٰي او فرمائيل، کوم خلق چه دَ لويو، لويو

كَبَـائِـرَ الْإِثْـمِ وَالْـفَوَاحِـشَ وَإِذَا مَـا غَـضِبُـوْهُـمْ يَـغْفِرُوْنَ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْـعَـافِيْـنَ عَـنِ الـنَّـاسِ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ.

ګناهونو او بې حيائي د خبرو نه پرهيز کوي، او کوم وخت چه غصه شي، نو بښنه کوي، کوم خلق چه خوشحالئ او مصيبت کښې خرچ کوي، او غصه ضبط کونکي دي، او خلقو ته عفه کونکي دي، او اللّٰه نيکي کونکي خوښوي.

۱۰۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الشَّدِيْدُ بِالصُّرَعَةِ إِنَّمَا الشَّدِيْدُ الَّذِيْ يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ.

۱۰۴۷: عبداللّٰه بن يوسف، مالک، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، قوي هغه نهٔ دے، چه (کُشتئ کښې) څوک راوغرځوي، بلکه قوي (يعني پهلوان) هغه دے، چه د غُصے په وخت ځان قابو کښې اوساتي.

۱۰۴۸: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ جُلُوْسٌ وَأَحَدُهُمَا يَسُبُّ صَاحِبَهُ مُغْضَبًا قَدِ احْمَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّيْ لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ لَوْ قَالَ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ فَقَالُوْا لِلرَّجُلِ أَلَا تَسْمَعُ مَا يَقُوْلُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّيْ لَسْتُ بِمَجْنُوْنٍ.

۱۰۴۸: عثمان بن ابي شيبه، جرير، اعمش، عدي بن ثابت، سُليمان بن صرد نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے. دوو سړو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره نزدے يو بل ته بدرد اُوے. مونږ هم هلته ناست وو. هغه وخت هغوي کښې يو بل ته د غصے حالت کښې بدرد وئيل، او مخ ئے سُر شوے وو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ماته داسے کلمات معلوم دي. که دهٔ هغه ادا کړے وے، نو د غُصے دا حالت به ئے لرے شوے وو، کاش چه هغهٔ: اعوذ باللّٰه من الشيطٰن الرجيم: وئيلے وے. خلقو هغے سړي ته اووے آيا تهٔ آورے، څهٔ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي، هغه اووے، زهٔ ليونے نهٔ يم.

ف: د غصے لرے کولو يو علاج دا دے چه: اعوذ باللّٰه من الشيطٰن الرجيم: دے اووائي.

۱۰۴۹ : حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بَكْرٍ هُوَ ابْنُ عَيَّاشٍ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْصِنِيْ قَالَ لَا تَغْضَبْ فَرَدَّدَ مِرَارًا قَالَ لَا تَغْضَبْ.

۱۰۴۹ : يحيٰي بن يُوسف، ابو بكر بن عياش، ابو حصين، ابو صالح، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، يو سړي حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوكړ، ماته څه نصيحت او فرمائے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، غُصه مهٔ كوه، هغه څو خله عرض اوكړ، او حضور صلي الله عليه وسلّم به ورته دغه فرمائيل، چه غُصه مه كوه.

## بابٌ ۶۲۸ : اَلْحَيَاءِ.

## باب ۶۲۸ : دَ حيا بيان.

۱۰۵۰ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي السَّوَّارِ الْعَدَوِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحَيَآءُ لَا يَأْتِيْ اِلَّا بِخَيْرٍ فَقَالَ بَشِيْرُ بْنُ كَعْبٍ مَكْتُوْبٌ فِي الْحِكْمَةِ اِنَّ مِنَ الْحَيَاءِ وَقَارًا وَّاِنَّ مِنَ الْحَيَآءِ سَكِيْنَةً فَقَالَ لَهُ عِمْرَانُ اُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتُحَدِّثُنِيْ عَنْ صَحِيْفَتِكَ.

۱۰۵۰ : آدم، شعبه، ابو السوار عدوي، عمران بن حصين نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، حيا نيكي راولي: بشير بن كعب اووے، دَ حكمت كتابونو كښ ليكلي دي، چه حيا دَ، وقار، سبب دے، او حيا دَ زړهٔ سكون (آرام) پيدا كوي، هغه ته عمران اووے، زهٔ تا ته دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حديث بيانوم، تهٔ ماته دَ خپلو كتابونو خبره بيانوے (يعني دَ حديث په موجودګئ كښ دَ دے ضرورت نشته).

۱۰۵۱ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا بْنُ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَجُلٍ وَّ هُوَ يُعَاتِبُ فِي الْحَيَاءِ يَقُوْلُ اِنَّكَ لَتَسْتَحْيِيْ حَتّٰى كَاَنَّهُ يَقُوْلُ قَدْ اَضَرَّبِكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۰۵۱ : احمد بن يُونس، عبدالعزيز بن ابي سلمه، ابن شهاب، سالم، حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په يو سړي تير شو، او هغهٔ دَ حيا متعلق عتاب (ملامتيا) كوله، او وئيلئے، چه تهٔ دومره حيا كوے تاته به دَ دې نه نُقصان اورسي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل دے پريږده (داسے مه وايه) ځكه چه حيا دَ، ايمان جزو

دَعْهُ فَاِنَّ الْحَيَآءَ مِنَ الْاِيْمَانِ.

دے.

۱۰۵۲ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ مَّوْلٰى اَنَسٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اسْمُهُ اَبَا سَعِيْدٍ يَّقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشَدَّ حَيَآءً مِّنَ الْعَذْرَآءِ فِيْ خِدْرِهَا.

۱۰۵۲ : علي بن جعد، شعبه، قتاده، عبدالله بن ابي عتبه (د، انس آزاد كردم غلام) ابو سعيد نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم د پيغلو پرده نشينو ښځو نه هم زيات حياناک وو.

باب ۶۲۹ : اِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ.

باب ۶۲۹ : هر كله چه تهٔ حيا نهٔ كوے، نو بيا خه چه دے خواهش وي هغه كوه.

۱۰۵۳ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ رِّبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِمَّا اَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْاُوْلٰى اِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ.

۱۰۵۳ : احمد بن يونس، زهير، منصور، ربعي بن خراش، ابو مسعودؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل دَ نبوّت ورمبنئے خبره چه خلقو ته رسيدلے ده، دا ده، چه هر كله تهٔ حيا نهٔ كوے، نو بيا چه خهٔ دے خواهش وي، هغه كوه.

باب ۶۳۰ : مَا لَا يُسْتَحْيَا مِنَ الْحَقِّ لِلتَّفَقُّهِ فِي الدِّيْنِ.

باب ۶۳۰ : دَ دين په خبره پوهيدو دَ پاره دَ حق خبرے نه حياء (شرم) نهٔ دے پكار.

۱۰۵۴ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ جَآءَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْاَةِ غُسْلٌ اِذَا احْتَلَمَتْ فَقَالَ نَعَمْ اِذَا رَاَتِ الْمَآءَ.

۱۰۵۴ : اسمٰعيل، مالک، هشام بن عروه، عروه، زينب بن ابي سلمه، اُمّ سلمهؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے. اُمّ سلمهؓ دَ حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښ حاضره شوه، او عرض ئے اوكهٔ، يا رسول الله، الله تعاليٰ حق خبرے وئيلو نه نهٔ شرميږي، آيا په ښځے غُسل واجب دے، هر كله چه هغے ته اِحتلام (لويه بے اودسي) اوشي حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل. هاؤ په شرط دَ دے چه هغه اُوبه اووينې. (يعني مني اووينې).

ف: خما فقير مُحمّد عباس قادريه د' دينياتو يو اُستاد مولانا عبدالغفور آخي صاحب مغفور و مرحوم د چارسدې به مونږ ته فرمائيل' دَ دين مسئلې تپوس کولو کښې مهٔ شرميږئ' ځکه چه د دين بې شرمه به جنت له ځي' او دَ دُنيا بې شرمه به دوزخ له' خدا رحمت کند ايں عاشقانِ پاک طينت را (آمين)

۱۰۵۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِسَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ شَجَرَةٍ خَضْرَآءَ لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَلَا يَتَحَاتُّ فَقَالَ الْقَوْمُ هِيَ شَجَرَةُ كَذَا هِيَ شَجَرَةُ كَذَا فَاَرَدْتُ اَنْ اَقُوْلَ هِيَ النَّخْلَةُ وَاَنَا غُلَامٌ شَابٌّ فَاسْتَحْيَيْتُ فَقَالَ هِيَ النَّخْلَةُ وَعَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنَا خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ مِثْلَهُ وَزَادَ فَحَدَّثْتُ بِهٖ عُمَرَ فَقَالَ لَوْ كُنْتَ قُلْتَهَا لَكَانَ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا.

۱۰۵۵ : ادم' شعبه' محارب بن دِثار' ابن عمرؓ نه روايت کوي' نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' د مؤمن مثال دَ هغې شنې اُونې دې چه دَ هغې پانړې نهٔ غورځيږي. خلقو اووې' هغه خو فلانۍ فلانۍ اُونه ده. ما وئيل غوښتل' چه هغه دَ قجورې اُونه ده. خو' زهٔ کم عمره ځلمې ووم په دې وجه ماته وئيلو کښې شرم راغې. بيا خپله حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' هغه دَ قجورې اُونه ده. او شعبه په واسطه دَ خبيب بن عبدالرحمٰن حفص بن عاصم' حضرت ابن عمرؓ دا شان روايت دې. ليکن هغې کښې دومره زيات دي' چه ما دا خبره حضرت عمرؓ ته بيان کړه' نو هغه اووې' کهٔ تا داسې وئيلې وې' نو خما په نِزد به دَ' دومره (مال) نه بهتره وې.

۱۰۵٦ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مَرْحُوْمٌ سَمِعْتُ ثَابِتًا اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسًا يَقُوْلُ جَاءَتْ امْرَاَةٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْرِضُ عَلَيْهَا نَفْسَهَا فَقَالَتْ هَلْ لَكَ حَاجَةٌ فِيَّ فَقَالَتِ ابْنَتُهٗ مَا اَقَلَّ حَيَاءَهَا فَقَالَ هِيَ خَيْرٌ مِنْكِ عَرَضَتْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهَا.

۱۰۵٦ : مسدّد' مرحوم' ثابت' حضرت انسؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دې. يوه ښځه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. خپل ځان ئې حضور صلي الله عليه وسلّم ته نِکاح دَ پاره پيش کړلو' اووئيلې' آيا تاسو ته خما ضرورت شته. دَ حضرت انسؓ لور اووې' څومره بې حيا ښځه وه' هغهٔ ورته اووې' هغه تانه بهتره وه' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته ئې خپل ځان نِکاح دَ پاره پيش کړلو. (قرآن پاک هغې ته مؤمنه ښځه وئيلې دي).

باب ۱۶۳۱ : قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى

باب ۱۶۳۱ : دَ نبي صلي الله عليه وسلّم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا وَكَانَ يُحِبُّ التَّخْفِيْفَ وَالْيُسْرَ عَلَى النَّاسِ.

فرمائيل' آساني (نرمي) كوئے' سختي مه كوئے. او حضور صلي الله عليه وسلّم به خلقو سره نرمي او آساني كول خوښول.

۱۰۵۷ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ لَمَّا بَعَثَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَالَ لَهُمَا يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَتَطَاوَعَا قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا بِاَرْضٍ يُصْنَعُ فِيْهَا شَرَابٌ مِنَ الْعَسَلِ يُقَالُ لَهُ الْبِتْعُ وَشَرَابٌ مِنَ الشَّعِيْرِ يُقَالُ لَهُ الْمِزْرُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ.

۱۰۵۷ : اسحاق' نضر' شعبه' سعيد بن ابي برده' ذ خپل پلار نه' هغه ذ هغه ذ نيكهٔ (دادا) نه روايت كوي. كوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغه او معاذ بن جبل' يمن ته ليږلو' نو دواړو ته ئے او فرمائيل. نرمي كوئے' سختي مه كوئے. او خوشخبري آوروئے' نفرت مه پيدا كوئے. بلكه رغبت پيدا كوئے. ابو موسیٰؓ عرض اوكهٔ' يا رسول اللّٰه' مونږ يو داسے ملک كښ اوسيږو' چه هلته' ذ' شاتو نه شراب جوړيږي' هغے ته بتع وئيلے شي. او ذ' وربشو نه شراب جوړيږي هغے ته مزر وئيلے شي' نو رسُول الله صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' هر نشه راوستونكے څيز حرام دے.

ف: هر نشه آور څيز حرام دے' خواه هغه چلم' نسوار' گزاري او سگريټ ولے نهٔ وي. او كهٔ مكروه دي' نو په مكروه څيز دے سرے خپل صحت او مال وَلے خراب كړي. په دے خرچ كول فضول خرچي دهٔ او فضول خرچه ذ شيطان ورور دے. الله پاک دے ترے مونږ په آمان كړي. اللّٰهم آمين. (محمد عباس قادريه)

۱۰۵۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِّرُوْا وَلَا تُعَسِّرُوْا وَسَكِّنُوْا وَلَا تُنَفِّرُوْا.

۱۰۵۸ : آدم' شعبه' ابو التياح' حضرت انس بن مالکؓ نه روايت كوي' ذ هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' نرمي كوئے' سختي مهٔ كوئے' او خلقو ته آرام رسوئے' او نفرت (كركه) مه پيدا كوئے.

۱۰۵۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۱۰۵۹ : عبداللّٰه بن سلمه' مالک' ابن شهاب' عروه' بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلّم ته چه ذ' دوو كارونو (امرونو) مينځ كښ كله هم اختيار وركړے شو' نو هغے كښ چه كوم آسان صورت

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَمْرَيْنِ قَطُّ اِلَّا اَخَذَ اَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ اِثْمًا فَاِنْ كَانَ اِثْمًا كَانَ اَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ وَمَا انْتَقَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهٖ فِيْ شَيْءٍ قَطُّ اِلَّا اَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ بِهَا اللّٰهُ.

وو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به هغه آسان اختيار کړلو. په شرط دَ دے چه هغه دَ ګناه کار نۀ وي. کۀ هغه ګ...اه وه، نو خلقو کښې به ترے دَ ټولو نه زيات لرے وو (يعني دَ ټولو نه به ئے زيات دَ هغے نه پرهيز کولو) او رسُول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ خپل ذات دَ پاره هيڅ کله بدله وانخسته، خو کوم سړي چه به دَ حرمتِ الٰهيه پرده دري کوله، يعني دَ احکامِ الٰهي خلاف کار به ئے کولو، نو دَ اللّٰه تعالٰي دَ پاره به ئے دَ هغۀ نه بدله اخسته.

**۱۰۶۰** : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنِ الْاَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ كُنَّا عَلٰى شَاطِئِ نَهْرٍ بِالْاَهْوَازِ قَدْ نَضَبَ عَنْهُ الْمَآءُ فَجَآءَ اَبُوْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيُّ عَلٰى فَرَسٍ فَصَلّٰى وَ خَلّٰى فَرَسَهٗ فَانْطَلَقَتِ الْفَرَسُ فَتَرَكَ صَلٰوتَهٗ وَ تَبِعَهَا حَتّٰى اَدْرَكَهَا فَاَخَذَهَا ثُمَّ جَآءَ فَقَضٰى صَلٰوتَهٗ وَ فِيْنَا رَجُلٌ لَهٗ رَاْیٌ فَاَقْبَلَ يَقُوْلُ انْظُرُوْا اِلٰى هٰذَا الشَّيْخِ تَرَكَ صَلٰوتَهٗ مِنْ اَجْلِ فَرَسٍ فَاَقْبَلَ فَقَالَ مَا عَنَّفَنِيْ اَحَدٌ مُنْذُ فَارَقْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اِنَّ مَنْزِلِيْ مُتَرَاخٍ فَلَوْ صَلَّيْتُ وَ تَرَكْتُ لَمْ اٰتِ اَهْلِيْ اِلَى اللَّيْلِ وَ ذَكَرَ اَنَّهٗ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَاٰى مِنْ تَيْسِيْرِهٖ.

**۱۰۶۰** : ابو النعمان، حماد بن زيد، اَزرق بن قيس نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دے. مونږ اهواز کښې دَ نهر په غاړه ايسار شوے وو، دَ هغے اُوبه اُوچے (خشک) شويوے. ابو برزه په يو اَس سور راغے، هغۀ مونځ کولو، او اَس ئے پرانستے پريښودلو، هغه اَس روان شولو، نو مونځ ئے پريښود، هغه پسے شولو، تر دے چه هغه اَسئے راونيولو. بيا واپس راغے، او باقي مونځ ئے پوره کۀ. او مونږ کښې يو سړے عقلمند وو، هغه اووے. دے بوډا ته او ګوره، چه اَس دَ پاره ئے مونځ پريښودلو. نو، ابو برزه ورته اووے، دَ کوم وخت نه چه زۀ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه جُدا شوے يم، هيڅا ماته دومره سخته خبره نۀ ده کړے. او بيان ئے او کۀ، څما کور ډيرلرے دے، کۀ ما مونځ کولے، او دا، اَس مِ پريښے وے نو زۀ شپے پورے هم خپل کور والو ته نۀ شوم رسيدلے او بيان ئے او کۀ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت کښې پاتے شوے يم، او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مِ په آساني اختيارولو ليدلے دے.

**۱۰۶۱** : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

**۱۰۶۱** : ابو اليمان، شعيب، زهري، ح، (دوئم

اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَعْرَابِيًّا بَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَثَارَ اِلَيْهِ النَّاسُ لِيَقَعُوْا بِهِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوْهُ وَاَهْرِيْقُوْا عَلٰى بَوْلِهِ ذَنُوْبًا مِنْ مَّآءٍ اَوْ سَجْلًا مِنْ مَّآءٍ فَاِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِيْنَ وَ لَمْ تُبْعَثُوْا مُعَسِّرِيْنَ.

سند) لیث' یونس' ابن شهاب' عُبید الله بن عبدالله بن عتبه' حضرت ابو هریرهؓ نه روایت کوي ذ هغهٔ بیان دے. یو اعرابي جُمات کښې واړهٔ بول اوکړل' خلقو هغه طرف ته ورمنډې کړے' چه هغه اووهي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغوي ته او فرمائیل' دے پریږدے' او په وَرو بولو باندے یو بالټې اُوبهٔ او بهیوے' ځکه چه تاسو آساني کونکے واله رالیږلے شوے ئے' سختي کولو واله نه ئے رالیږلے شوے (یعني اِسلام کښې بیځایه سختي نشته' ذ نرمي نه کار آخستل دي).

**باب ۶۳۲: اَلْاِنْبِسَاطِ اِلَى النَّاسِ** قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ خَالِطِ النَّاسَ وَ دِيْنَكَ لَا تَكْلِمَنَّهُ وَالدُّعَابَةِ مَعَ الْاَهْلِ.

**باب ۶۳۲:** خلقو سره په ښهٔ شان ذ پیش راتلو (مخامخ کیدو) بیان' او کور والو سره مذاق کول. ذ' ابن مسعود قول دے' خلقو سره داسے میل جول ساتئے' چه ستاسو دین مجروح نشي (یعني نقصان ورته اونهٔ رَسي).

**۱۰۶۲:** حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ اِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا حَتّٰى يَقُوْلَ لِاَخٍ لِّيْ صَغِيْرٍ يَا اَبَا عُمَيْرٍ مَّا فَعَلَ النُّغَيْرُ.

**۱۰۶۲:** آدم' شعبه' ابو التیاح' حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي' ذ هغهٔ بیان دے حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به مونږ سره یو ځائے کیدلو (بے تکلفي کوله)' تر دے چه خما یو وړوکي وررور ته به ئے فرمائیل اے ابو عمیر. نغیر (مرغئے) دے څه شوله.

**۱۰۶۳:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ لِيْ صَوَاحِبُ يَلْعَبْنَ مَعِيَ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**۱۰۶۳:** مُحمَد' ابومعاویه' هشام' ذ خپل پلار نه' هغه ذ بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' هغه فرمائي' ما به ذ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم موجودګئ کښې جینکو کښې لوبے کولے. کوم وخت چه به حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دننه تشریف راوړلو' نو هغوي به پټے شوے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به هغوي

وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ يَتَقَمَّعْنَ مِنْهُ فَيُسَرِّبُهُنَّ اِلَيَّ فَيَلْعَبْنَ مَعِيَ.

راوغبنتې، مالـه به ئې راوستې. بيا به م هغوي سره لوبې كولې.

بـاب ۶۳۳ : الْمُدَارَةِ مَعَ النَّاسِ وَ يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ الدَّرْدَآءِ اِنَّا لَنَكْشِرُ فِيْ وُجُوْهِ اَقْوَامٍ وَ اِنَّ قُلُوْبَنَا لَتَلْعَنُهُمْ.

باب ۶۳۳ : خلقو سره دَ حُسن سلوک بيان.

او ابو الدرداء نه منقول دي، چه مونږ به بعضو خلقو سره ښـه سلوک کولو، ليکن ځمونږ زړونو به په هغوي لعنت وئيلو.

۱۰۶۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ حَدَّثَنَا عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقَالَ ائْذَنُوْا لَهُ فَبِئْسَ بْنُ الْعَشِيْرَةِ اَوْ بِئْسَ اَخُوا الْعَشِيْرَةَ فَلَمَّا دَخَلَ اَلَانَ لَهُ الْكَلَامَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قُلْتَ مَا قُلْتَ ثُمَّ اَلَنْتَ لَهُ فِي الْقَوْلِ فَقَالَ اَيْ عَائِشَةُ اِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللّٰهِ مَنْ تَرَكَهُ اَوْ وَّدَعَهُ النَّاسُ اِتِّقَآءَ فُحْشِهِ.

۱۰۶۴ : قتيبه بن سعيد، سُفيان، ابن منكدر، عروه بن زبير، بي بي عائشې نه روايت کوي. نبي صلي الله عليه وسلّم نه يو سړي دننه دَ راتلو اِجازت اوغوښتلو، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، راځي دې، هغه دَقبيلې خراب ځوئې دې، يا، دَ قبيلې خراب ورور دې. كوم وخت چه هغه دننه راغې، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورسره نرمئ سره خبرې اوكړې. ما (عائشې) حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض او كۀ، يَا رسُول الله، تاسو دَ، دۀ متعلق فرمائيلې وو، څه چه مو فرمائيلې وو. بيا چه هغه دننه راغې، نو تاسوٌ هغه سره نرمئ سره خبرې اَترې اوکړې. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، اَې عائشې، دَ، الله په نزد، دَ ټولو نه خراب سړې دَ، درجې په لحاظ هغه دې، چه هغه خلقو دَ هغۀ دَ فحش خبرونه بچ كيدو دَ پاره پريښې وي.

۱۰۶۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدُ الْوَهَّابِ اَخْبَرَنَا بْنُ عُلَيَّةَ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُهْدِيَتْ لَهُ اَقْبِيَةٌ مِنْ دِيْبَاجٍ مُزَرَّرَةٌ بِالذَّهَبِ

۱۰۶۵ : عبدالله بن عبدالوهاب، ابن عليه، ايوب، عبدالله بن ابي مليكه نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم ته څو قباگانې هديه كښې اوليږلې شوې، چه دَ ديباج (ريښمو) وې. او هغې كښې دَ سرو، بټن (تنړې) لګيدلې وې. هغه ئې دَ صحابهٌ وُ مينځ كښې تقسيم كړلې او يوه قباء ئې مخرمه دَ پاره جُدا كيښودله.

فَقَسَّمَهَا فِيْ نَاسٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ وَ عَزَلَ مِنْهَا وَاحِدًا لِّمَخْرَمَةَ فَلَمَّا جَآءَ قَالَ اَخْبَاْتُ هٰذَا لَكَ قَالَ اَيُّوْبُ بِثَوْبِهٖ اِنَّهٗ يُرِيْهِ اِيَّاهُ وَ كَانَ فِيْ خُلُقِهٖ شَيْءٌ وَ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِيَةٌ.

کوم وخت چه مخرمه راغئ، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل ' دا' ما ستا دَ پاره ايښے وه. دَ ايوب بيان دے ' خپلو کپړو کښې ئے نغښتلے وه ' چه هغه ته ئے اوښائي. او د مخرمه په طبيعت کښې څه قدرے سختي وه. دا حماد بن زيد دَ ايوب نه روايت کړے دے. او حاتم بن وردان بيان اوکه ' مونږ ته ايوب په واسطه دَ ابن ابي مليکه ' مسور دے لفظ سره نقل اوکهٔ ' چه نبي صلي الله عليه وسلّم له څو قباګانے راغلے.

## باب ۶۳۴: لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ مَرَّتَيْنِ وَ قَالَ مُعَاوِيَةُ لَا حَكِيْمَ اِلَّا ذُوْ تَجْرِبَةٍ.

## باب ۶۳۴: مؤمن دَ يوے سوړے (سوراخ) نه دوه ځله نشي چيچلے. او معاويه اووے ' چه حکيم تجربے والاوي.

۱۰۶۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَّاحِدٍ مَّرَّتَيْنِ.

۱۰۶۶: قتيبه ' ليث ' عقيل ' زهري ' ابن مسيب ' حضرت ابو هريرهؓ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي ' حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل ' مؤمن دَ يوے سوړے نه دوه ځله نشي چيچلے.

## باب ۶۳۵: حَقِّ الضَّيْفِ.

## باب ۶۳۵: دَ ميلمه دَ حق بيان.

۱۰۶۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَلَمْ اُخْبَرْ اَنَّكَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ وَ تَصُوْمُ النَّهَارَ

۱۰۶۷: اسحٰق بن منصور ' روح بن عباده حسين ' يحيٰي بن ابي کثير ' ابو سلمه بن عبدالرحمٰن عبدالله بن عمرو نه روايت کوي ' ما پله رسُول الله صلي الله عليه وسلّم تشريف راؤړلو ' او وے فرمائيل آيا ما ته خبر نه دے شوے ' چه تهٔ دَ شپے عبادت کوے ' او ' دَ ورځے روژه نيسے. ما اووے ' جي ' او. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل ' داسے مه کوه. دَ شپے مونځ هم کوه ' او اُودهٔ کيږه هم. روژه هم نيسه ' او افطار هم کوه (ماتوه ئے هم) ځکه چه ستا دَ جسم په تا حق دے ' ستا دَ

قُلْتُ بَلٰى قَالَ فَلَا تَفْعَلْ قُمْ وَ نَمْ وَ صُمْ وَ اَفْطِرْ فَاِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّاِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَ اِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّكَ عَسٰى اَنْ يَّطُوْلَ بِكَ عُمُرٌ وَّ اِنَّ مِنْ حَسْبِكَ اَنْ تَصُوْمَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَاِنَّ بِكُلِّ حَسَنَةٍ عَشْرُ اَمْثَالِهَا فَذٰلِكَ الدَّهْرُ كُلُّهُ قَالَ فَشَدَّدْتُ فَشُدِّدَ عَلَىَّ قُلْتُ اِنِّىْ اُطِيْقُ غَيْرَ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ مِنْ كُلِّ جُمُعَةٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ قَالَ فَشَدَّدْتُ فَشُدِّدَ عَلَىَّ قُلْتُ اِنِّىْ اُطِيْقُ غَيْرَ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ صَوْمَ نَبِىِّ اللّٰهِ دَاوٗدَ قُلْتُ وَ مَا صَوْمُ نَبِىِّ اللّٰهِ دَاوٗدَ قَالَ نِصْفُ الدَّهْرِ

ستر کې په تا حق دے، تا سره دَ ملاقات کونکو په تا حق دے او ستا دَ ښځې په تا حق دے. او یقین دے چه ستا عمر اوږد وي. په دے وجه ستا دَ پاره کافي ده، چه هره میاشت درے روژے نیسه. ځکه چه دَ هرے نیکۍ بدله کښ لس چنده اَجر حاصلیږي دا شان به ستا دَ ټولو ورځو روژے شي. دَ عبدالله بن عمرؓ بیان دے. ما زیاتے او غوښتلو نو حضور صلي الله علیه وسلّم هم په هغے زیاتے اوکړلو. ما عرض اوکۀ زۀ دَ دے نه زیات طاقت لرم، نو حضور صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل. هرے جُمعے نه درے روژے ساته. دَ ابن عمرؓ بیان دے. ما په دے هم زیاتے اوغوښتلو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم په دے هم دَ زیاتے اِجازت راکړلو. ما عرض اوکۀ، زۀ دَ دے نه زیات طاقت لرم، حضور صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل، دَ، الله دَ نبي داؤد علیه السّلام روژه نیسه. ما عرض اوکۀ، دَ، الله دَ نبي داؤد علیه السّلام روژه څنګه وه، حضور صلي الله علیه السّلام او فرمائیل، دَ نیم ژوند روژے.

## باب ۶۳۶ : اِكْرَامُ الضَّيْفِ وَ خِدْمَتِهٖ اِيَّاهُ بِنَفْسِهٖ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ.

## باب ۶۳۶ : دَ میلمه عزت کول او خپله دَ هغه دَ خدمت کولو بیان، او دَ، الله تعالٰي قول، چه دَ، ابراهیم معزز میلمانهٔ.

۱۰۶۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِىْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِىْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِىِّ عَنْ اَبِىْ شُرَيْحِ الْكَعْبِىِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

۱۰۶۸ : عبدالله بن یُوسف، مالک، سعید بن ابي سعید مقبري، ابو شریح کعبي نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل، څوک چه په الله تعالٰي او دَ قیامت په ورځ ایمان لري، هغه له پکار دي، چه دَ خپل میلمه عزت اوکړي، یو ورځ شپه خو، دَ هغه جائزه ده (حق

فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتُهُ يَوْمٌ وَّ لَيْلَةٌ وَّالضِّيَافَةُ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ فَمَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ وَ لَا يَحِلُّ لَهُ اَنْ يَّثْوِىَ عِنْدَهُ حَتّٰى يُحْرِجَهُ.

دے) او درے ورځے میلمستیا ده، او ذ دے نه زیاتے ورځے صدقه ده. او میلمه ذ پاره جائز نهٔ دي، چه چا سره دومره دیره شي، چه هغهٔ ته تکلیف شي (یعني په هغه بوج شي).

١٠٦٩ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ مِثْلَهُ وَ زَادَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ.

١٠٦٩ : اسماعيل په واسطه ذ مالک ذغسے روایت کوي، او دومره زیات بیان ئے کړے دے، چه څوک په اللّٰه او ذ قیامت په ورځ ایمان لري، هغهٔ له پکار دي چه ښه خبره اوکړي یا خاموش شي.

١٠٧٠ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ.

١٠٧٠ : عبداللّٰه بن مُحمّد، ابن مهدي سُفيان، ابو حصين، ابو صالح، حضرت ابو هريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائیل، څوک چه اللّٰه او ذ قیامت په ورځ ایمان لري، هغه دے ذ خپل میلمه عزت کوي، او څوک چه اللّٰه او ذ قیامت په ورځ ایمان لري، هغهٔ له پکار دي، چه ښهٔ خبره اوکړي یا خاموش شي.

١٠٧١ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍؓ اَنَّهُ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ تَبْعَثُنَا فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ فَلَا يَقْرُوْنَنَا فَمَا تَرٰى فَقَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ نَّزَلْتُمْ بِقَوْمٍ فَاَمَرُوْا لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِيْ لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوْا فَاِنْ لَّمْ

١٠٧١ : قتيبه، ليث، يزيد بن ابي حبيب ابو الخير، عقبه بن عامرؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، مونږ عرض اوکهٔ، یا رسول اللّٰهؐ تاسو مونږ خلق لیږئے. مونږ چه کوم قوم سره کوزیږو کهٔ هغوي خمونږ میلمستیا اونهٔ کړي، نو ذ دے متعلق تاسوّ څه فرمائے، رسُول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائیل، کهٔ تاسو یو قوم سره کوزشئے، او هغوي ستاسو ذ پاره ذ هغے څیز حُکم اوکړي، چه هغه ذ میلمه ذ شان سره بنائي، نو هغه

يَفْعَلُوا فَخُذُوا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ الَّذِیْ يَنْبَغِیْ لَهُمْ.

قبول کړے، او کهٔ هغوي داسے اونهٔ کړي. نو هغوي نه ذ هغوي ذ حال مناسب ذ ميلمستيا حق وصول کړئ.

۱۰۷۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْلِيَصْمُتْ.

۱۰۷۲ : عبدالله بن محمد، هشام، معمر زهري، ابو سلمه، حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم سړے چه الله او ذ قيامت په ورخ ايمان لري، هغهٔ له پکار دي، چه صله رحمي (خپلو سره ښه سلوک) کوي. او کوم سړے چه په الله او ذ قيامت په ورخ ايمان لري، هغه له پکار دي چه ښه خبره کوي، کني خاموش دے وي.

بَابُ ۶۳۷ : صُنْعِ الطَّعَامِ وَالتَّكَلُّفِ لِلضَّيْفِ.

باب ۶۳۷ : ميلمه ذ پاره ذ، ډوډئ تيارَولو، او ذ تکلّف کولو بيان.

۱۰۷۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا اَبُوا الْعُمَيْسِ عَنْ عَوْنِ ابْنِ اَبِیْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اٰخَى النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَ اَبِی الدَّرْدَآءِ فَزَارَ سَلْمَانُ اَبَا الدَّرْدَآءِ فَرَاٰى اُمَّ الدَّرْدَآءِ مُتَبَذِّلَةً فَقَالَ لَهَا مَا شَاْنُكِ قَالَتْ اَخُوْكَ اَبُو الدَّرْدَآءِ لَيْسَ لَهُ حَاجَةٌ فِی الدُّنْيَا فَجَآءَ اَبُو الدَّرْدَآءِ فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا فَقَالَ كُلْ فَاِنِّیْ صَآئِمٌ قَالَ مَا اَنَا بِاٰكِلٍ حَتّٰى تَاْكُلَ فَاَكَلَ فَلَمَّا كَانَ اللَّيْلُ ذَهَبَ اَبُو الدَّرْدَآءِ يَقُوْمُ فَقَالَ نَمْ فَنَامَ ثُمَّ ذَهَبَ يَقُوْمُ فَقَالَ نَمْ

۱۰۷۳ : مُحمّد بن بشار، جعفر بن عون، ابو العميس، عون بن ابي جحيفه، ابو جحيفه نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، نبي صلے الله عليه وسلّم ذ، سلمان او ابو درداء مينځ کښ ورور وَلي جوړه کړے وه. سلمان ذ ابو درداء ملاقات له راغے، نو اُم درداء ئے ډير بدحال (خيرنه،ببره) کښ اوليده. تپوس ئے ترے او کهٔ، دا ستا څه حالت دے. هغے ورته اووے، ستا ذ، ورور ابو درداء دُنيا سره هيڅ سروکار نشته، بيا ابو درداء راغے، هغهٔ ذ پاره ئے طعام تيار کړلو. وئيلے، خوره، څما خو روژه ده. سلمانؓ ورته اووے، څو پورے چه ته اونهٔ خورے، زهٔ نهٔ خورم، نو هغهٔ او خوړله، چه شپه راغله. ابو درداء نفل کولو ذ پاره

فَلَمَّا كَانَ اٰخِرُ اللَّيْلِ قَالَ سَلْمَانُ قُمِ الْاٰنَ قَالَ فَصَلَّيَا فَقَالَ لَهُ سَلْمَانُ اِنَّ لِرَبِّكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ لِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَ لِاَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَ لِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَ لِاَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا فَاَعْطِ كُلَّ ذِىْ حَقٍّ حَقَّهُ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ سَلْمَانُ اَبُوْ جُحَيْفَةَ وَهْبُ السُّوَائِيُّ يُقَالُ وَهْبُ الْخَيْرِ.

اودرېدلو. سلمانؓ ورته اووې. اُودهٔ شه. چه دَ شپې آخري حصّه شوه، نو سلمانؓ ورته اووې، اوس اودرېږه نو دواړو مونځ اوکړلو. سلمانؓ ورته اووې. ستا دَ رب په تا حق دے. او ستا دَ ځان (نفس) په تا حق دے، او ستا دَ کوروالو په تا حق دے، نو هر مستحق ته دَ هغهٔ حق ورکړه. ابودرداءؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ئې دا واقعه بيان کړه، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، سلمانؓ ريښتيا اووې، ابو جحيفه وهب سوائي دے، هغهٔ ته وهب الخير هم وئيلے شي.

## بَاب ٦٣٨ : مَا يُكْرَهُ مِنَ الْغَضَبِ وَالْجَزَعِ عِنْدَ الضَّيْفِ.

## باب ٦٣٨ : دَ ميلمه مخکښې دَ، غصے کولو او دَ، ويريدلو دَ، کراهت بيان.

۱۰۷۴ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْجُرَيْرِيُّ عَنْ اَبِىْ عُثْمَانَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِىْ بَكْرٍؓ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ تَضَيَّفَ رَهْطًا فَقَالَ بِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ دُوْنَكَ اَضْيَافَكَ فَاِنِّىْ مُنْطَلِقٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَافْرُغْ مِنْ قِرَاهُمْ قَبْلَ اَنْ اَجِيْءَ فَانْطَلَقَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَاَتَاهُمْ بِمَا عِنْدَهُ فَقَالَ طْعَمُوْا فَقَالُوْا اَيْنَ رَبُّ مَنْزِلِنَا قَالَ اطْعَمُوْا قَالُوْا مَا نَحْنُ بِاٰكِلِيْنَ حَتّٰى يَجِيْءَ

۱۰۷۴ : عياش بن وليد، عبدالاعلیٰ، سعيد جريري، ابو عثمان، عبدالرحمٰن بن ابي بکرؓ نه روايت کوي، حضرت ابوبکرؓ دَ يو جماعت ضيافت اوکهٔ (ميلمستيا اوکړه) او عبدالرحمٰن ته ئې اووې، زهٔ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضرېږم، تهٔ دا ميلمانهٔ بوځه او ځما دَ واپسئ نه مخکښې مخکښې ته دوي ته دَ طعام ورکولو نه فارغ شهٔ. عبدالرحمٰن لاړ، او ځهٔ سامان چه وو، دَ هغې ميلمنو مخکښې ئې پيش کهٔ، ورته ئې وئيلے خورئې. هغوي ورته اووې، ځمونږ دَ کور مالک کوم ځائے دے، عبدالرحمٰن ورته اووې، تاسو خورے. هغوي ورته اووې، تر څو پورے چه دَ کور مالک رانشي، مونږ طعام نه خورو، هغه ورته اووې، ځمونږ دَ طرفنه ميلمستيا قبوله کړئې، که تاسو ډوډئ اونهٔ خوړله، او هغه واپس راغے نو مونږ ته به غُصه شي، خو هغوي دَ

رَبُّ مَنْزِلِنَا قَالَ اقْبَلُوا عَنَّا قِرَاكُمْ فَإِنَّهُ إِنْ جَاءَ وَلَمْ تَطْعَمُوا لَنَلْقَيَنَّ مِنْهُ فَأَبَوْا فَعَرَفْتُ أَنَّهُ يَجِدُ عَلَيَّ فَلَمَّا جَاءَ فَتَنَحَّيْتُ عَنْهُ فَقَالَ مَا صَنَعْتُمْ فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَسَكَتُّ ثُمَّ قَالَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَسَكَتُّ فَقَالَ يَا غُنْثَرُ أَقْسَمْتُ عَلَيْكَ إِنْ كُنْتَ تَسْمَعُ صَوْتِي لَمَّا جِئْتَ فَخَرَجْتُ فَقُلْتُ سَلْ أَضْيَافَكَ فَقَالُوا صَدَقَ أَتَانَا بِهِ قَالَ فَإِنَّمَا انْتَظَرْتُمُونِي وَاللّٰهِ لَا أَطْعَمُهُ اللَّيْلَةَ فَقَالَ الْآخَرُونَ وَاللّٰهِ لَا نَطْعَمُهُ حَتَّى تَطْعَمَهُ قَالَ لَمْ أَرَ فِي الشَّرِّ كَاللَّيْلَةِ وَيْلَكُمْ مَا أَنْتُمْ لِمَ لَا تَقْبَلُونَ عَنَّا قِرَاكُمْ هَاتِ طَعَامَكَ فَجَاءَهُ فَوَضَعَ يَدَهُ فَقَالَ بِسْمِ اللّٰهِ الْأُولَى لِلشَّيْطَانِ فَأَكَلَ وَأَكَلُوا.

خوراک نه انکار او کۀ. زۀ پوه شوم، چه اوس به هغه (یعنې څما پلار ابوبکرؓ) څما نه ضرور خفه شي. کوم وخت چه هغه واپس راغې. نو زۀ یو طرف ته اخوا، شوم. هغه تپوس اوکۀ، نو هغې میلمنو ورته ټول حال بیان کۀ. بیا هغه آواز اوکه، اې عبدالرحمانه زۀ خاموش شوم. بیائې آواز اوکۀ. اې عبدالرحمانه زۀ بیا خاموش شوم. بیائې اووې، اې جاهله، زۀ تاله قَسم درکوم، کۀ تۀ څما آواز آورې، بیا وَلې نۀ راځې، نو زۀ راووتلم، او ونیلې م، دَ دې میلمنو نه تپوس اوکه، هغوي ورته اووې، ریښتیا وائي، مونږ له ئې طعام راوړې وو، حضرت ابوبکرؓ ورته اووې، تاسو څما انتظار کښې وئې، قَسم په خدائې، زۀ به نن شپه نۀ خورم، نو هغې میلمنو اووې، قَسم په خدائې مونږ هم نه خورو، څو پورې چه تاسو اُونه خورئې. حضرت ابوبکرؓ اووې، دَ نن په شان خرابه شپه م نۀ ده لیدلې. په تاسو اَفسوس دې، تاسو څمونږ میلمستیا وَلې نۀ قبلوئې. بیائې اووې، طعام راوړئې، عبدالرحمان ډوډۍ راوړله، نو بسم الله وئیلو سره ئې خپل لاس طعام کښې کینبودلو. او وئیلې، ورمبنې حالت دَ شیطان دَ، وجې نه وو، نو هغه او خوړله، او هغې میلمنو هم او خوړله.

باب ۶۳۹: قَوْلُ الضَّيْفِ لِصَاحِبِهِ لَا آكُلُ حَتَّى تَأْكُلَ فِيهِ حَدِيثُ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۶۳۹: دَ میلمه، کوربه ته دا، وئیل، چه څو پورې تـه نۀ خورې، زۀ به نه خورم. دې باب کښې دَ، ابو جحیفه حدیث دَ نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت دې.

۱۰۷۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ

۱۰۷۵: مُحمّد بن مثنيٰ، ابن ابي عدي، سُلیمان، ابو عثمان، عبدالرحمٰن بن ابي بکرۃؓ نه روایت کوي، حضرت ابوبکرؓ یو یا څو میلمنو سره کورته راغې. او

قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِیْ بَکْرٍؓ جَآءَ اَبُوْ بَکْرٍ بِضَیْفٍ لَهٗ اَوْ بِاَضْیَافٍ لَهٗ فَاَمْسٰی عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا جَآءَ قَالَتْ اُمِّیْ احْتَبَسْتَ عَنْ ضَیْفِكَ اَوْ اَضْیَافِكَ اللَّیْلَةَ قَالَ مَا عَشَّیْتِهِمْ فَقَالَتْ عَرَضْنَا عَلَیْهِ اَوْ عَلَیْهِمْ فَاَبَوْا اَوْ فَاَبٰی غَضِبَ اَبُوْ بَکْرٍ فَسَبَّ وَ جَدَّعَ وَ حَلَفَ لَا یَطْعَمُهٗ فَاخْتَبَأْتُ اَنَا فَقَالَ یَا غُنْثَرُ فَحَلَفَتِ الْمَرْاَةُ لَا تَطْعَمُهٗ حَتّٰی یَطْعَمَهٗ فَحَلَفَ الضَّیْفُ اَوِ الْاَضْیَافُ اَنْ لَّا یَطْعَمُهٗ اَوْ یَطْعَمُوْهُ حَتّٰی یَطْعَمَهٗ فَقَالَ اَبُوْ بَکْرٍؓ کَانَ هٰذِهٖ مِنَ الشَّیْطَانِ فَدَعَا بِالطَّعَامِ فَاَکَلَ وَ اَکَلُوْا فَجَعَلُوْا لَا یَرْفَعُوْنَ لُقْمَةً اِلَّا رَبَا مِنْ اَسْفَلِهَا اَکْثَرُ مِنْهَا فَقَالَ یَا اُخْتَ بَنِیْ فِرَاسٍ مَّا هٰذَا فَقَالَتْ وَقُرَّةِ عَیْنِیْ اِنَّهَا الْاٰنَ لَاَکْثَرُ قَبْلَ اَنْ نَّاْکُلَ فَاَکَلُوْا وَ بَعَثَ بِهَا اِلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَذَکَرَ اَنَّهٗ اَکَلَ مِنْهَا.

خپله مابنام وخت کښې نبي صلي الله علیه وسلّم له ورغے. کوم وخت چه واپس راغے، نو څما مور اووے، تا خپلو میلمنو بانده طعام خوړولو کښې ناوخته کړو، هغهٔ تپوس اوکړ، آیا تا په هغے میلمنو ډوډئ نهٔ ده خوړولے، څما مور ورته اووے، مونږ ورته طعام پیش کړلو، خو هغوي انکار اوکړ. حضرت ابوبکرؓ سخت غصه شو، بدرد ئے اووے. او قسم ئے او خوړ. چه ډوډئ به اُونهٔ خوري. دَ عبدالرحمٰن بیان دے. زهٔ چپ ولاړ ووم، هغه آواز راکړ، اے جاهله ښځے (څما مور) هم قسم او خوړ، چه هغه به هم نهٔ خوري، څو پورے چه هغه (یعني ابوبکرؓ) اونهٔ خوري، میلمه یا میلمنو هم قسم او خوړ، چه طعام به نهٔ خوري څو پورے چه هغه (ابوبکرؓ) اونهٔ خوري. حضرت ابوبکرؓ اووے، دا شیطاني خبره وه. بیائے طعام راوغښتلو، خپله ئے هم اوخوړلو، او خلقو هم اوخوړلو. خلقو چه به کومه نوړئے (لقمه) اوچتوله، دَ هغے لاندے به دَ هغے نه زیاته او زیاته راتله. دے لیدو سره حضرت ابوبکرؓ اووے. اے دَ نبي فراس خور، داڅهٔ دي، هغے اووے، اے څما دَ سترګو یخوالیه، اوس خو دَ هغے نه هم زیاته شوه، څومره چه څمونږ دَ خوراک نه مخکښې وه، نو هغے ټولو خلقو (ډوډئ) او خوړه. بیائے هغه دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې اولیږله. او بیان ئے اوکړ حضورؐ هم د هغے نه اوخوړه.

## بَاب ۶۴۰ : اِکْرَامِ الْکَبِیْرِ وَ یَبْدَاُ الْاَکْبَرُ بِالْکَلَامِ وَالسُّؤَالِ.

## باب ۶۴۰ : دَ مشرانو عزت کول او دَ دے امر بیان، چه سوال او خبرو اترو کښې دے مشر سرے ابتدا اوکړي.

۱۰۷۶ : حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ بْنُ

۱۰۷۶ : سُلیمان بن حرب، حماد بن یزید، یحیي

حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ مَوْلَى الْأَنْصَارِ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَّ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ أَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنِ سَهْلٍ وَّ مُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُوْدٍ أَتَيَا خَيْبَرَ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ فَقُتِلَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَهْلٍ فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَهْلٍ وَّ حُوَيِّصَةُ وَ مُحَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُوْدٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَكَلَّمُوْا فِيْ أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَبَدَأَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَ كَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَبِّرِ الْكُبْرَ قَالَ يَحْيَى لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ فَتَكَلَّمُوْا فِيْ أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَسْتَحِقُّوْنَ قَتِيْلَكُمْ أَوْ قَالَ صَاحِبَكُمْ بِأَيْمَانِ خَمْسِيْنَ مِنْكُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ أَمْرٌ لَّمْ نَرَهُ قَالَ فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُوْدُ فِيْ أَيْمَانِ خَمْسِيْنَ مِنْهُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِهِ قَالَ سَهْلٌ فَأَدْرَكْتُ نَاقَةً مِنْ تِلْكَ الْإِبِلِ فَدَخَلْتُ مِرْبَدًا لَهُمْ فَرَكَضَتْنِيْ بِرِجْلِهَا قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى عَنْ بُشَيْرٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ يَحْيَى حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ مَعَ

بن سعيد، بشير بن يسار، (دَ، انصار، آزاد كرده غلام) رافع بن خديج او سهل بن ابي حثمه دواړو نه روايت كوي. دَ دې دواړو بيان دې، عبدالله بن سهل او محيصه بن مسعود خيبر ته راغلل او دَ قجورو باغ كښې دَ، يو بل نه جُدا شو. عبدالله بن سهل چا قتل كړلو، نو عبدالرحمٰن بن سهل او حويصه بن مسعود او محيصه بن مسعود، دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. او دَ خپل ملګري دَ قتل معامله كښې ئې خبرې اترې شروع كړې. عبدالرحمٰن خبرې شروع كړې، چه هغې جماعت كښې دَ ټولو نه زيات كم عمره وو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، مشر سړې دې خبرې اوكړي. يحيٰي اووې. دَ خبرو مستحق مشر سړې دې. هغې خلقو دَ خپل ملګري دَ قتل معامله كښې خبرې شروع كړې. نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل آيا تاسو پنځوس قسمونو خوړلو سره دَ خپل مقتول يا ملګري (دَ، خون بها) مستحق كيدئ شئ. هغې خلقو عرض اوكهٔ، يا رسول الله، دا، داسې څيز دې، چه مونږ خپلو ستركو سره نهٔ دې ليدلې حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. بيا به يهود پنځوس قسمونو خوړلو سره بري شي. هغې خلقو عرض اوكهٔ، يا رسول الله، دا خلق خو كافر دي (يعني په دروغه به قسمونه اوخوري) رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغې خلقو ته دَ خپل طرف نه ديت (خون بها) وركړله. دَ سهل بيان دې، دَ، ديت دَ، اوښانو نه يو اوښ م واخست، دَ هغې رَمې (ګلې) ته ورغلم، نو هغهٔ ماله يوه لته راكړه. ليث اووې، يحيٰي په واسطه دَ، بشير، سهل نقل اوكهٔ. دَ يحيٰي بيان

رَافِعِ بْنِ خُدَيْجٍ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ بُشَيْرٍ عَنْ سَهْلٍ وَّحْدَهٗ.

دي. خما خيال دي، چه سهل دَ رافع بن خديج دَ ملګرتيا (معيت) تذکره کړې ده. ابن عيينه په واسطه دَ يحيٰي، بشير، صرف سهل نه روايت کړې دې.

۱۰۷۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبِرُوْنِيْ بِشَجَرَةٍ مَثَلُهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ تُؤْتِيْ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ بِاِذْنِ رَبِّهَا وَ لَا تَحُتُّ وَرَقَهَا فَوَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ النَّخْلَةُ فَكَرِهْتُ اَنْ اَتَكَلَّمَ وَ ثَمَّ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَلَمَّا لَمْ يَتَكَلَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ فَلَمَّا خَرَجْتُ مَعَ اَبِيْ قُلْتُ يَا اَبَتَاهُ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ النَّخْلَةُ قَالَ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَقُوْلَهَا لَوْ كُنْتَ قُلْتَهَا كَانَ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنْ كَذَا وَ كَذَا قَالَ مَا مَنَعَنِيْ اِلَّا اَنِّيْ لَمْ اَرَكَ وَ لَا اَبَا بَكْرٍ تَكَلَّمْتُمَا فَكَرِهْتُ.

۱۰۷۷: مسدد، يحيٰي، عُبيد اللّٰه، نافع، ابن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هغه اُونه اوښائې، چه دَ مُسلمان په شان ده، او هغه هر وخت دَ خپل رب حکم سره ميوه ورکوي، او دَ هغې پاڼې نه غورځيږي. خما زړهٔ کښې خيال راغې، چه هغه دَ قجورې اُونه ده، خو ما وئيل مناسب اونه ګڼړل، هر کله چه حضرت ابوبکرؓ او عمرؓ هلته موجود وو، هر کله چه هغوي دواړو هيڅ اونهٔ وې، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل هغه دَ قجورې اُونه ده. کوم وخت چه زهٔ خپل پلار سره اووتم، نو ما اووې، اې بابا جانه، خما زړهٔ کښې دا خيال راغلې وو، چه هغه دَ قجورې اُونه ده، نو هغه اووې، بيا تهٔ دَ وئيلو نه څه څيز منع کړې، که تا دا، وئيلې وې، نو خما په نِزد به دَ دومره دومره مال نه بهتره وې. ابن عمرؓ اووې، زهٔ صرف دې څيز دَ وئيلو نه منع کړم، چه نه تاسو او نه حضرت ابوبکرؓ څه خبره اوکړه. په دې وجه ما نامناسبه اوګڼړله (چه ستاسو موجودګئ کښې خبره اوکړم).

## بَاب ۶۴۱: مَا يَجُوْزُ مِنَ الشِّعْرِ وَالرَّجَزِ وَالْحُدَآءِ وَ مَا يُكْرَهُ مِنْهُ.

## باب ۶۴۱: شعر، رجز او، حدي خواني دَ څهٔ قِسم جائز ده، او کوم قِسم مکروه ده،

وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ اَلَمْ تَرَ اَنَّهُمْ فِيْ كُلِّ وَادٍ يَّهِيْمُوْنَ وَ اَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ مَا لَا يَفْعَلُوْنَ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ ذَكَرُوا

او دَ اللّٰه تعالٰي قول، دَ شاعرانو، اتباع لار خطا خلق کوي، آيا تاسونه وينئې، چه هغوي هرې وادئ کښې حيران او سرګردان ګرځي، او هغه خلق داسې خبره کوي کومه چه نه کوي. خو کومو خلقو چه ايمان راوړلو، او صالح عمل کوي،

اللّٰـهَ كَثِيرًا وَّانْتَصَرُوْا مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا وَ سَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ كُلِّ لَغْوٍ يَّخُوْضُوْنَ.

او الله ډير يادوي، او ظلم كيدونه پس بدله اَخلي، او ظلم كونكو ته به عنقريب معلومه شي، چه په كوم اړخ آوړي. او ابن عباسؓ (في كُلّ وادٍ يهيمون) تفسير كښې دا بيان اوكه، چه لغو خيالاتو كښې غوټې وهي.

۱۰۷۸ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْبَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْاَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوْثَ اَخْبَرَهُ اَنَّ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً.

۱۰۷۸ : ابو اليمان، شعيب، زهري، ابوبكر بن عبدالرحمٰن، مروان بن حكم، عبدالرحمٰن بن اسود بن عبد يغوث نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے. ماته ابن ابي كعب اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، چه بعضے شعر كښې حِكمت وي.

۱۰۷۹ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ سَمِعْتُ جُنْدُبًا يَقُوْلُ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِيْ اِذْ اَصَابَهُ حَجَرٌ فَعَثَرَ فَدَمِيَتْ اِصْبَعُهُ فَقَالَ:

هَلْ اَنْتِ اِلَّا اِصْبَعٌ دَمِيْتِ
وَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا لَقِيْتِ

۱۰۷۹ : ابو نعيم، سُفيان، اسود بن قيس، جندب نه روايت كوي، ما ذَ هغه نه واوريدل، يو ځل نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم جهاد له تشريف اوړلو. چه يو كاڼړے حضورؐ ته اولېريدلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او خويدلو. او ذَ حضورؐ ذَ ګوتې مباركې نه وينه بهيدله. نو حضورؐ او فرمائيل.

تهٔ صرف يوه ګوته ئې، چه په وينو ككړه شوې ئې
او تا نه چه كوم تكليف رسيدلے دے، هغه ذَ اللّٰه لار كښې رسيدلے دے

۱۰۸۰ : حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيْدٍ ـ

۱۰۸۰ : ابن بشار، ابن مهدي، سفيان، عبدالملک ابو سلمه، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، چه شاعر ذَ ټولو نه زياته كومه رېښتيا خبره كړے ده، هغه ذَ لبيد قول دے، چه:

اَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللّٰهُ بَاطِلُ
وَ كَادَ اُمَيَّةُ بْنُ اَبِي الصَّلْتِ اَنْ يُّسْلِمَ

۱۰۸۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى خَيْبَرَ فَسِرْنَا لَيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ لِعَامِرِ بْنِ الْاَكْوَعِ اَلَا تُسْمِعُنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ قَالَ وَ كَانَ عَامِرٌ رَّجُلًا شَاعِرًا فَنَزَلَ يَحْدُوْا بِالْقَوْمِ يَقُوْلُ ـ

اَللّٰهُمَّ لَوْ لَآ اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا
وَ لَا تَصَدَّقْنَا وَ لَا صَلَّيْنَا
فَاغْفِرْ فِدَآءٌ لَّكَ مَا اقْتَفَيْنَا
وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَّا قَيْنَا
وَاَلْقِيَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا
اِنَّا اِذَا صِيْحَ بِنَا اَتَيْنَا
وَ بِالصِّيَاحِ عَوَّلُوْا عَلَيْنَا

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هٰذَا السَّائِقُ قَالُوْا عَامِرُ بْنُ الْاَكْوَعِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ وَجَبَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ لَوْ اَمْتَعْتَنَا بِهٖ قَالَ فَاَتَيْنَا خَيْبَرَ فَحَاصَرْنَاهُمْ حَتّٰى اَصَابَتْنَا مَخْمَصَةٌ شَدِيْدَةٌ ثُمَّ اِنَّ اللّٰهَ

واورئـے، دَ، اللّٰه نه سِوا ټول څيزونه باطل دي او، اُميـه بن ابي الصلت، قريب وه، چه مُسلمان شي

۱۰۸۱ : قتيبـه بـن سعيـد، حـاتـم بن اسمٰعيل، يـزيـد بـن ابي عبيـد، سـلـمـه بـن اکـوع نـه روايت کـوي، ذ هـغـه بيـان دے، مـونـږ خـلـق رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـليـه وسـلّم سره خيبـر طرف تـه روان شـو. مـونـږ دَ شپـے روان وو، نـو جـمـاعـت نـه يو سـړي، عـامـر بـن اکـوع تـه اووے، تـهٔ خپـل کـلام ولـے نـهٔ آورے، دَ، راوي بيـان دے، عـامـر شـاعـر وو، نو هغـه حـدي آورول شروع کړل. ـ

اے اللّٰه کهٔ تهٔ نهٔ وے، نو مونږ هدايت نهٔ شو بيامُندے
نـه بـه مـونږ صدقه ورکوله، اونه به مو مونځ کولو
نـو څـه چه مونږ اوکړل، هغه دَ خپلے صدقے نه اوبښے
اوکـه مونږ دُشمن سره مقابل شو، نو مونږ ثابت قدم لرے
او پـه مـونـږ دَ زړهٔ اطـمـيـنـان نـازل کـړے
مونږ دے هغه وخت موجود يُو، کوم وخت چه اعلان جنګ وي
او دُشـمـن دے هم په مونږ اعلان کولو سره حمله اوکړي

رسـول الـلّٰـه صـلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا څوک اُوبن شـړي. خـلـقـو عـرض اوکـهٔ. عامر بن اکوع دے. حـضـور صـلـي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه دے په دهٔ رحـم اوکړي، جماعت نه يو سړي اووے، اَے دَ، اللّٰه نبي، (جـنّـت) واجـب شـولـو. کـاش چـه مونږ ته هم دَ دے نه فـائـده رسـيـدلے وے. دَ، راوي بيـان دے، مونږ خيبر تـه اورسيدو، او محاصره مو، اوکړله، تر دے چه مونږ ته ډير تـکـليـف اورسـيـدلـو، خو اللّٰه تعالٰي فتح راکړه، او په هغه

فَتَحَهَا عَلَيْهِمْ فَلَمَّا اَمْسَى النَّاسُ الْيَوْمَ الَّذِيْ فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ اَوْ قَدُوْا نِيْرَانًا كَثِيْرَةً فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هٰذِهِ النِّيْرَانُ عَلٰى اَيِّ شَيْءٍ تُوْقِدُوْنَ قَالُوْا عَلٰى لَحْمِ حُمُرٍ اِنْسِيَّةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهْرِيْقُوْهَا وَاكْسِرُوْهَا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْ نُهْرِيْقُهَا وَ نَغْسِلُهَا قَالَ اَوْ ذَاكَ فَلَمَّا تَصَافَّ الْقَوْمُ كَانَ سَيْفُ عَامِرٍ فِيْهِ قِصَرٌ فَتَنَاوَلَ بِهٖ يَهُوْدِيًّا لِيَضْرِبَهٗ وَ يَرْجِعَ ذُبَابُ سَيْفِهٖ فَاَصَابَ رُكْبَةَ عَامِرٍ فَمَاتَ مِنْهُ فَلَمَّا قَفَلُوْا قَالَ سَلَمَةُ رَاٰنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاحِبًا فَقَالَ لِيْ مَالَكَ فَقُلْتُ فِدًى لَّكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ زَعَمُوْا اَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهٗ قَالَ مَنْ قَالَهٗ قُلْتُ قَالَهٗ فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ وَّ اُسَيْدُ بْنُ الْحُضَيْرِ الْاَنْصَارِيُّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبَ مَنْ قَالَهٗ اِنَّ لَهٗ لَاَجْرَيْنِ وَ جَمَعَ بَيْنَ اِصْبَعَيْهِ اِنَّهٗ لَجَاهِدٌ مُجَاهِدٌ قَلَّ عَرَبِيٌّ نَشَاَبِهَا مِثْلَهٗ.

ورځ چه ذ' مابنام وخت راغے' نو خلقو ډير اُور بل كړلو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم تپوس اوكه' دا' اور' مو' څۀ ذ پاره بل كړلو' خلقو عرض اوكه' غوښے ذ پاره. ذ څۀ څيز ذ' غوښے ذ پاره' خلقو اووے' ذ كورني خرونو غوښے ذ پاره. رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. دا (غوښه) اوغرځوئے' او (لوښي) مات كړئے. يو سړي عرض اوكه' يا رسول الله آيا داسے نشي كيدے' چه دا غوښه اوغرځوو' او لوښي اووينزو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل (ښه ده) دغسے اوكړئے. ذ' راوي بيان دے. كوم وخت چه لښكر صف بندي اوكړه' نو عامر په يو يهودي ذ خپلے تورے وار اوكړلو' چه هغه قتل كړي' خو' ذ هغے ذ' وړوكوالي په سبب (توره) خپله ذ هغۀ په كونډه اولږيده' او شهيد شولو. كوم وخت چه خلق ذ جنګ نه فارغ شو. ذ سلمه بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم زۀ پريشانه اوليدم' وے فرمائيل' څۀ خبره ده. ما عرض اوكه' خما مور پلار دے په تاسو قربان وي' خلق وائي' چه ذ' عامر عمل ضائع شولو' رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' څوك وائي. ما عرض اوكه' فلانے فلانے سړے' او' اسيد بن حضير (انصاري) وائي' نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل څوك چه داسے وائي' نو دروغ وائي' او دواړه ګوتے ئے يو ځائے كړے' حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' هغه ذ پاره دوچند ثواب دے' هغه جاهد مجاهد وو. عربو كښ ډير كم داسے خلق پيدا شوے دي.

۱۰۸۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۱۰۸۲ : مُسدد' اسماعيل' ايوب' ابو قلابه'

إِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَعْضِ نِسَآئِهِ وَ مَعَهُنَّ أُمُّ سُلَيْمٍ فَقَالَ وَيْحَكَ يَا أَنْجَشَةُ رُوَيْدَكَ سَوْقًا بِالْقَوَارِيْرِ قَالَ أَبُوْ قِلَابَةَ فَتَكَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَلِمَةٍ لَوْ تَكَلَّمَ بَعْضُكُمْ لَعِبْتُمُوْهَا عَلَيْهِ قَوْلُهٗ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيْرِ.

حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو بعضو بيبيانو له تشريف راوړلو. او هغوي سره اُم سليمؓ هم وه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، انجشه، ستا دے خرابي وي، شيشے (يعني ښځے) په قلاره بوزه. ذ، ابو قلابه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم داسے خبره او فرمائيله، که تاسو کښې چا سړي داسے وئيلے وے، نو تاسو به دا معيوب ګنړله، يعني ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم: سَوْقَکَ بِالْقَوَارِيْر: فرمائيل

## باب ۲۴۲: هِجَآءِ الْمُشْرِكِيْنَ.

## باب ۲۴۲: ذ مشرکينو ذ هجو کولو بيان.

۱۰۸۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتِ اسْتَأْذَنَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هِجَآءِ الْمُشْرِكِيْنَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَيْفَ بِنَسَبِيْ فَقَالَ حَسَّانُ لَأَسُلَّنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعْرَةُ مِنَ الْعَجِيْنِ وَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ ذَهَبْتُ أَسُبُّ حَسَّانَ عِنْدَ عَآئِشَةَؓ فَقَالَتْ لَا تَسُبُّهٗ فَإِنَّهٗ كَانَ يُنَافِحُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۸۳: مُحمّد، عبده، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، ذ هغے بيان دے، حسّان بن ثابت، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ مشرکينو ذ هجوَ بيانولو، اِجازت اوغوښتلو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، خما ذ نسب به څهٔ کوے (يعني مشرکينو کښې ذ بعضو مونږ سره نسبي تعلق دے) که ذ هغوي هجوه کوے، نو خما به هم هجوه، وي. حسان عرض اوکه، زهٔ به تا داسے اوکاږم، څنګه چه ويښتهٔ ذ، اُوړو نه اوښکلے شي. هشام بن عروه ذ خپل پلار نه نقل اوکه، هغه اووے، حسّان ته بدرذ وئيلو سره زهٔ بي بي عائشےؓ له ورغلم، نو هغے اووے، حسّان ته بدرذ مه وايه، ځکه چه هغه به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ طرف نه جواب ورکولو.

۱۰۸۴: حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ

۱۰۸۴: اصبغ، عبداللّٰه بن وهب، يُونس ابن شهاب، هيثم بن ابي سنان، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے،

الْهَيْثَمَ بْنَ اَبِيْ سِنَانٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ فِيْ قَصَصِهٖ يَذْكُرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اَخًا لَّكُمْ لَا يَقُوْلُ الرَّفَثَ يَعْنِيْ بِذَالِكَ ابْنَ رَوَاحَةَ قَالَ:

چه هغه به ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ ذكر دوران كښې وئيلې، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ستا ورور هغه دے، چه خرابه خبره اونه كړي. ذ دے نه مراد ابن رواحهؓ وو، چه هغه وئيلي وو:

فِيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ يَتْلُوْا كِتَابَهٗ
اِذَا انْشَقَّ مَعْرُوْفٌ مِنَ الْفَجْرِ سَاطِعٌ
اَرَانَا الْهُدٰى بَعْدَ الْعَمٰى فَقُلُوْبُنَا
بِهٖ مُوْقِنَاتٌ اَنَّ مَا قَالَ وَاقِعٌ
يَبِيْتُ يُجَافِيْ جَنْبَهٗ عَنْ فِرَاشِهٖ
اِذَا اسْتَثْقَلَتْ بِالْكَافِرِيْنَ الْمَضَاجِعُ

او مونږ كښې ذ الله رسول دے، چه ذ هغه ذ كتاب تلاوت كوي، كوم وخت چه ذ سحر رڼړا ظاهريږي، مونږ ته ئې ذ ګمراهئ نه پس نيغه لار اوښودله، نو خمونږ زړونو ته يقين دے چه څۀ حضورؐ او فرمائيل، هم هغه به كيږي. هغه شپه تيروي داسے حال كښې، چه اړخ ئې ذ بسترے نه جُدا وي هر كله چه مشركين ذ خوب خايونو كښې غافله پراتۀ وي

تَابَعَهٗ عُقَيْلٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدٍ وَالْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

عقيل ذ زهري نه ذ دے متابعت كښې روايت كړے دے. او زبيدي په واسطه ذ زهري، سعيد نه او، اعرج ذ ابوهريرهؓ نه نقل اوكۀ.

۱۰۸۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنْ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهٗ سَمِعَ حَسَّانَ بْنَ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيَّ يَسْتَشْهِدُ اَبَا هُرَيْرَةَ فَيَقُوْلُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ نَشَدْتُكَ بِاللّٰهِ هَلْ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَا حَسَّانُ اَجِبْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اَيِّدْهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ نَعَمْ.

۱۰۸۵: ابو اليمان، شعيب، زهري، (دوئم سند) اسماعيل، برادرِ اسماعيل، سُليمان مُحمد بن ابي عتيق، ابنِ شهاب، ابو سلمه بن عبدالرحمٰن بن عوف نه روايت كوي. هغه ذ حسّان بن ثابت انصاري نه واوريدل، چه حضرت ابو هريرهؓ ئې ګواه جوړولو، او وائي چه، اے ابوهريرهؓ زۀ تاله په خدائے قسم دركوم، آيا تا رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلي دي، چه اے حسّان، ذ الله ذ رسول ذ طرف نه جواب وركړه، يا الله ذ دۀ ذ روح القدس په ذريعه تائيد اوكړے ابوهريرهؓ جواب وركۀ. او (ما آوريدلي دي).

۱۰۸۶ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ رضی اللہ عنہ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِحَسَّانَ اهْجُهُمْ اَوْ قَالَ هَاجِهِمْ وَ جِبْرِيْلُ مَعَكَ.

۱۰۸۶ : سلیمان بن حرب، شعبه، عدي بن ثابت، حضرت براء رضی اللہ عنہ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم حسّان ته او فرمائیل ذ مشرکینو هجوه کوه، جبرائیل علیه السّلام تاسره دے.

ف : هجو: بدوالے، مذمّت، بدګوئي، بده وینا، په شعرونو یا نظم کښ چاته بد وئیل.

باب ۶۴۳ : مَا يُكْرَهُ اَنْ يَّكُوْنَ الْغَالِبُ عَلَى الْاِنْسَانِ الشِّعْرَ حَتّٰى يَصُدَّهُ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَالْعِلْمِ وَالْقُرْاٰنِ.

باب ۶۴۳ : دا مکروه وي، چه په یو سړي شعر داسے غالب راشي، چه ذ، اللّٰه ذ ذکر، او علم او قرآن نه هغه منع کړي.

۱۰۸۷ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی اللہ عنہ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاَنْ يَّمْتَلِئَ جَوْفُ اَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ لَّهُ مِنْ اَنْ يَّمْتَلِئَ شِعْرًا.

۱۰۸۷ : عُبید اللّٰه بن موسٰي، حنظله، سالم، حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، چه تاسو کښ ذ چا خیټه ذ، نو (پیپ) نه ډکه شي، نو هغه ذ دے نه بهتره ده، چه ذ شعر نه ډکه شي.

۱۰۸۸ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَنْ يَّمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا يَّرِيْهِ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ يَّمْتَلِئَ شِعْرًا.

۱۰۸۸ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل ذ چا سړي خپله خیټه ذ، نو (پیپ) نه ډکول، چه ذ هغه خیټه اوخوري (یعني خرابه ئے کړي) ذ دے نه بهتره ده، چه ذ شعر نه ډکه شي.

باب ۶۴۴ : قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرِبَتْ يَمِيْنُكَ وَ عُقْرٰى حَلْقٰى.

باب ۶۴۴ : ذ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم تَرِبَتْ يَمِيْنُکَ : او عقرٰی حلقٰی : فرمائیل.

۱۰۸۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ

۱۰۸۹ : یحیي بن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب، عروه، بي بي عائشے رضی اللہ عنہا نه روایت کوي. ذ هغے بیان دے. ذ ابو القعیس ورور افلح ذ، پردے ذ آیت نازلیدو

اِنَّ اَفْلَحَ اَخَا اَبِى الْقُعَيْسِ اسْتَأْذَنَ عَلَىَّ بَعْدَ مَا نَزَلَ الْحِجَابُ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا اٰذَنُ لَهُ حَتّٰى اسْتَأْذِنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ اَخَا اَبِى الْقُعَيْسِ لَيْسَ هُوَ اَرْضَعَنِىْ وَلٰكِنْ اَرْضَعَتْنِىْ امْرَاَةُ اَبِى الْقُعَيْسِ فَدَخَلَ عَلَىَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ الرَّجُلَ لَيْسَ هُوَ اَرْضَعَنِىْ وَلٰكِنْ اَرْضَعَتْنِىْ اِمْرَاَتُهُ قَالَ ائْذَنِىْ لَهُ فَاِنَّهُ عَمُّكِ تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ قَالَ عُرْوَةُ فَبِذَالِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ تَقُوْلُ حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ.

نه پس ما نه دننه دَ راتلو اجازت اوغوښتلو، نو ما اووے، زۀ اجازت نۀ درکوم، څو پورے چه زۀ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اجازت وانخلم، ځکه چه دَ ابو القعيس ورور ماله پئے نۀ دي راکړے بلکه ماته دَ ابو القعيس ښځے پئے راکړے دي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه ماته تشريف راوړلو، نو ما عرض اوکۀ، يا رسول الله، سړي خو ما له پئے نه دي راکړي، بلکه دَ هغه ښځے ماله پئے راکړے دي. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، دۀ له اِجازت ورکړه، ځکه چه دے ستا ترۀ (چچا) دے. ستا لاس دِ په خاورو ککړ شي. په دے وجه به بي بي عائشےؓ فرمائيل، چه دَ رضاعت تولو نه هغه رشتے حرامے اوګنړئے. کومے چه نسب سره حرام دي.

• ۱۰۹ ۱ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَرَادَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّنْفِرَ فَرَاٰى صَفِيَّةَ عَلٰى بَابِ خِبَائِهَا كَئِيْبَةً حَزِيْنَةً لِاَنَّهَا حَاضَتْ فَقَالَ عَقْرٰى حَلْقٰى لُغَةُ قُرَيْشٍ اِنَّكِ لَحَابِسَتُنَا ثُمَّ قَالَ اَكُنْتِ اَفَضْتِ يَوْمَ النَّحْرِ يَعْنِى الطَّوَافَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَانْفِرِىْ اِذًا.

• ۱۰۹ ۱ : آدم، شعبه، حكم، ابراهيم، اسود، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. دَ هغے بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم دَ واپسئ إراده اوکړه نو بي بي صفيهؓ ئے اوليده، چه دَ خپلے خيمے په دروازه غمجنه ولاړه ده، ځکه چه هغے ته حيض راغلے وو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل بدنصيبے يا سر پريکړے (دا دَ قريشو دَ ژبے نه دي) بيشکه تۀ مونږ پاتے کونکے ئے بيائے او فرمائيل، آيا تا دَ قربانئ په ورځ طوافِ افاضه کړے دے. بي بي صفيهؓ اووے. اووے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل. بيا تۀ هم څه.

باب ۶۴۵ : مَا جَاءَ فِىْ زَعَمُوْا.

باب ۶۴۵ : دَ لفظ زعموا، دَ استعمال بيان.

۱۰۹۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِى

۱۰۹۱ : عبدالله بن مسلمه، مالک، ابو النضر (د عمر بن عبيد الله آزاد كرده غلام) ابو مره (دَ اُم هاني

النَّضرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى اُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اُمَّ هَانِئٍ بِنْتَ اَبِيْ طَالِبٍ تَقُوْلُ ذَهَبْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَ فَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَنْ هٰذِهٖ فَقُلْتُ اَنَا اُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ مَرْحَبًا بِاُمِّ هَانِئٍ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهٖ قَامَ فَصَلّٰى ثَمَانِيَ رَكْعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَلَمَّا انْصَرَفَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زَعَمَ ابْنُ اُمِّيْ اَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا قَدْ اَجَرْتُهُ فُلَانُ ابْنُ هُبَيْرَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَجَرْنَا مَنْ اَجَرْتِ يَا اُمَّ هَانِئٍ قَالَتْ اُمُّ هَانِئٍ وَ ذَاكَ ضُحًى.

آزاد کرده غلام) اُم هاني بنت ابي طالب نه روايت کوي. دَ هغې بيان دے، زهٔ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې دَ مکے دَ فتح په کال حاضره شوم، نو ما اوليدل، چه حضور صلي الله عليه وسلّم غُسلْ کوي، او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم لور، بي بي فاطمےؓ پرے پرده کړے وه. ما حضور صلي الله عايه وسلّم ته سلام اوکه. حضور او فرمائيل، څوک دي. ما جواب ورکه، اُم هانيؓ ابي طالب. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل،هاني، په خير راغلے. کوم وخت چه دَ غسل نه فارغ شو، نو اُودريدلو، او اته، رکعاته مونځ ئے اوکړلو، داسے حال کښې، چه حضور صلي الله عليه وسلّم يوه کپړه دَ ځان نه راتاؤ کړے وه. کوم وخت چه دَ مونځ نه فارغ شو، نو ما عرض اوکه، يا رسول الله، ځما دَ مور خوئے وائي. چه کوم سړي ته يعني فلان بن هبيره ته تا پناه ورکړے وه، زهٔ به هغه قتل کړم. رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، اَے اُم هانيَ. چاله چه تا پناه ورکړے ده، مونږه هم هغه له پناه ورکړله. دَ اُم هاني بيان دے، چه هغه دَ چاشت وخت وو.

باب ٦٤٦ : مَا جَآءَ فِيْ قَوْلِ الرَّجُلِ وَيْلَكَ.

باب ٦٤٦ : دَ يو سړي چاته: وَيْلَکَ: وئيل.

۱۰۹۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ

۱۰۹۲ : موسي بن اسماعيل، همام، قتاده، حضرت انسؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم يو سړے اوليدلو، چه دَ قرباني اُوښ ئے شړلو (بوتللو) حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، په دهٔ سور شه، هغه اوويے دا، دَ قرباني اُوښ دے. بيا ورته حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، په دهٔ سور شه، هغه اوويے، دا، دَ قرباني اوښ

قَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بُدْنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ.

۱۰۹۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ لَهُ ارْكَبْهَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ اَوْ فِي الثَّالِثَةِ.

۱۰۹۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَّ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ وَ كَانَ مَعَهُ غُلَامٌ لَهُ اَسْوَدُ يُقَالُ لَهُ اَنْجَشَةُ يَحْدُوْا فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْحَكَ يَا اَنْجَشَةُ رُوَيْدَكَ بِالْقَوَارِيْرِ.

۱۰۹۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَثْنٰى رَجُلٌ عَلٰى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ اَخِيْكَ ثَلٰثًا مَنْ كَانَ مِنْكُمْ

دے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل: ويلک (ستا خرابي دے وي) په دۀ سور شه.

۱۰۹۳: قتيبه بن سعيد، مالک، ابوالزناد، اعرج، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو سړے اوليدلو، چه دَ قربانۍ اوښ ئے شړلو (بوتللو) حضور صلي الله عليه وسلّم هغه ته اووے، په دۀ سور شه، هغه عرض اوکۀ يا رسول الله، دا دَ قربانۍ اُوښ دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته په دوئم يا درئم وار او فرمائيل، ستا دے خرابي وي، سور شه پرے (يعني دَ قربانۍ دَ څاروي نه هم دَ سوريدو فائده اخستل پکار دي).

۱۰۹۴: مسدد، حماد، ثابت بناني، انس بن مالک او، ايوب، ابو قلابه، انس بن مالکؓ نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو سفر کښې وو، او حضور صلي الله عليه وسلّم سره خپل يو تور غُلام وو. هغه ته ئے انجشه وئيلے، چه تيزۍ سره ئے اُوښان شړل، نبي صلي الله عليه وسلّم هغۀ ته او فرمائيل، ستا دے خرابي وي. اَے انجشه، لږ دا شيشے سنبال کړه (شيشو نه مراد ښځے وے).

۱۰۹۵: موسٰي بن اسماعيل، وهيب، خالد، عبدالرحمٰن بن ابي بکره، ابو بکرهؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. يو سړي دَ نبي صلي الله عليه وسلّم مخکښې دَ چا تعريف اوکۀ، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ستا دے تباهي وي، تا دَ خپل ورور گردن مات کړلو. درے ځله حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. تاسو کښې چه څوک دَ چا تعريف

مَا دِحًا لَا مُحَالَةَ فَلْيَقُلْ اَحْسِبُ فُلَانًا وَاللّٰهُ حَسِيْبُهُ وَ لَا اُزَكِّيَ عَلَى اللّٰهِ اَحَدًا اِنْ كَانَ يَعْلَمُ.

كول غواړي' او كه هغه پيژني' نو هغه له وئيل پكار دي' چه خما په فلانكي دا گمان دے (يعني ښه گمان پرے كوم) او الله دَ هغهٔ نگران دے. او دَ الله مخكښې زهٔ دَ چا تزكيه (پاكے) نهٔ كوم.

۶۰۹۶ ا : حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ عَنِ الْاَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَالضَّحَاكِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ ذَاتَ يَوْمٍ قِسْمًا فَقَالَ ذُو الْخَوَيْصَرَةُ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِعْدِلْ قَالَ وَيْلَكَ مَنْ يَعْدِلُ اِذَا لَمْ اَعْدِلْ فَقَالَ عُمَرُ ائْذَنْ لِيْ فَلِاَضْرِبْ عُنُقَهُ قَالَ لَا اِنَّ لَهُ اَصْحَابًا يَحْقِرُ اَحَدُكُمْ صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَ صِيَامَهُ مَعَ صِيَامِهِمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمُرُوْقِ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ يُنْظَرُ اِلٰى نَصْلِهِ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ ثُمَّ يَنْظُرُ اِلٰى رِصَافِهِ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ ثُمَّ يَنْظُرُ اِلٰى نَضِيِّهِ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ اِلٰى قِذَذِهِ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ يَخْرُجُوْنَ عَلٰى حِيْنِ فُرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ اٰيَتُهُمْ رَجُلٌ اِحْدٰى يَدَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْاَةِ اَوْ مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ اَشْهَدُ لَسَمِعْتُهُ مِنَ النَّبِيِّ

۶۰۹۶ ا : عبدالرحمٰن بن ابراهيم' وليد' اوزاعي' زهري' ابو سلمه او ضحاك' حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' يو ځل حضور صلي الله عليه وسلّم دَ غنيمت مال تقسيمولو' چه ذوالخويصره چه دَ نبي تميم يو فرد وو' وئيلے' يا رسول الله' انصاف سره تقسيم اوكړئے' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' ستا دے خرابي وي (خوار شے) كه زهٔ دَ عدل نه كار وانخلم' نو بيا څوك به عدل كوي' حضرت عمرؓ عرض اوكهٔ يا رسول الله' اجازت راكړے' چه زهٔ دَ' دهٔ گردن والوځوم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل نه (داسے مه كوه) ځكه چه دَ' دهٔ بعضے ملگري به داسے وي' چه تاسو كښې به يو سړے دَ هغوي دَ مونځونو او روژو مقابله كښې خپل مونځ او روژے حقير كنړي' حالانكه هغوي به دَ' دين نه داسے وتلي وي' څنگه چه تير دَ' ليندے نه اوځي'.نه دَ هغے تير په پيكان (تيركا پهل ـ برچهي كى انى) څه نښه وي' اونه دَ هغے لاندے' اونه به دَ هغے په وَزرو (پروں) څهٔ باقي وي' دَ هغے نښه دا ده' چه دغه خلق به مُسلمانانو كښې دَ تفرّقے په وخت ظاهر شي' او هغوي كښې به يو سړے داسے وي' چه دَ هغه لاس به داسے وي' لكه دَ ښځے تي (پستان) يا' لكه دَ غوښے ټكړه' چه حركت كوي (دَ حضرت ابو سعيدؓ بيان دے) زهٔ گواهي كوم چه دا' دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَشْهَدُ اَنِّيْ كُنْتُ مَعَ عَلِيٍّ حِيْنَ قَاتَلَهُمْ فَالْتُمِسَ فِي الْقَتْلٰى فَأُتِيَ بِهٖ عَلَى النَّعْتِ الَّذِيْ نَعَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

آوريدلے دي. او ذ دے هم گواهي کوم' چه زۀ حضرت علي سره ذ هغے جنگ په وخت موجود ووم. هغه قتل شوو کښې تلاش کړے شو' نو هغه شان بيامُندے شو' څنګه چه حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے وو.

ف: پهل: ذ' غشي يا نيزے څوکه. تيره' پريکوونکي او غُڅه کوونکي حصّه.

۱۰۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَكْتُ قَالَ وَيْحَكَ قَالَ وَقَعْتُ عَلٰى اَهْلِيْ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ اَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ مَا اَجِدُهَا قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا اَسْتَطِيْعُ قَالَ فَاَطْعِمْ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ مَا اَجِدُ فَاُتِيَ بِعَرَقٍ فَقَالَ خُذْهُ فَتَصَدَّقْ بِهٖ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعَلٰى غَيْرِ اَهْلِيْ فَوَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا بَيْنَ طُنُبَيِ الْمَدِيْنَةِ اَحْوَجُ

۱۰۹۷: محمد بن مقاتل' ابو الحسن' عبدالله' اوزاعي' ابن شهاب' حميد بن عبدالرحمٰن' ابو هريرةؓ نه روايت کوي' يو سړے ذ' رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شولو. او عرض ئے اوکه' يا رسول الله زۀ خو هلاک شوم' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' ستا دے خرابي وي (څه چل اوشو) هغه عرض اوکۀ' ما رمضان کښې خپلے بي بي سره کوروالے (صحبت) اوکه. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل يو غلام آزاد که' هغه اووے. ما سره غلام نشته. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل. بيا دوه مياشتے پرله پسے روژے اونيسه. هغه اووے' ما کښې ذ دے طاقت نشته' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' شپيتو مسکينانو باندے طعام اوخوروه. هغه اووے' ما سره (دا هم) نشته. نو يو عرق (پيمانه ده) راوړے شوه' هغے کښې قجورے وے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' دا' يوسه' او صدقه ئے کړه' هغه تپوس اوکه' يا رسول الله' ذ خپل کور والو نه علاوه بل چا له ئے ورکړم' په هغه ذات م دے قسم وي' ذ چا په قبضه کښې چه ځما ساه ده' مدينه کښې ځما نه زيات محتاج هيڅوک نشته' نو نبي صلي الله عليه وسلّم په خندا شو' تر دے چه ذ حضور صلي الله عليه

مِنِّيْ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ اَنْيَابُهٗ قَالَ خُذْهُ تَابَعَهٗ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَيْلَكَ.

وسلّم مخکښي غابښ مُبارک ظاهر شو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل ته دا واخله (يعني خپله دا قجورے اوخورئے) يُونس دَ زهري نه دَ دے متابعت کښې روايت کړے دے. او عبدالرحمٰن بن خالد، دَ زهري نه: ويلک: لفظ نقل که.

ف: عرق: دلته ترے مطلب يوه ټوکرے قجورے دي.

۱۰۹۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَمْرٍو وَالْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابِ الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ اَعْرَابِيًّا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخْبِرْنِيْ عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَ وَيْحَكَ اِنَّ شَاْنَ الْهِجْرَةِ شَدِيْدٌ فَهَلْ لَكَ مِنْ اِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَهَلْ تُؤَدِّيْ صَدَقَتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاعْمَلْ مِنْ وَّرَآءِ الْبِحَارِ فَاِنَّ اللّٰهَ لَنْ يَّتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا.

۱۰۹۸: سُليمان بن عبدالرحمٰن، وليد، ابو عمرو اوزاعي، ابن شهاب، زهري، عطاء بن يزيد ليثي، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. يو اعرابي عرض اوکه، ما دَ هجرت متعلق خبر کړے، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ستا دے خرابي وي، هجرت خو ډير سخت څيز دے، آيا تاسره اوښ شته. هغه اووے، او حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، آيا ته دَ هغے صدقه ادا کوے، هغه اووے، او حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ته دَ درياب هغے طرف ته (کور کښې) خپل کار کوه، الله تعالي به ستا دَ اعمالو نه هيڅ نۀ ضائع کوي.

۱۰۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحٰرِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَيْلَكُمْ اَوْ وَيْحَكُمْ قَالَ شُعْبَةُ شَكَّ هُوَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ وَّ قَالَ النَّضْرُ عَنْ شُعْبَةَ وَيْحَكُمْ وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ

۱۰۹۹: عبدالله بن عبدالوهاب، خالد بن حارث، شعبه، واقد بن محمّد بن زيد، محمد بن زيد حضرت ابن عمرؓ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضورؐ: ويلکم يا ويحکم (ستا دے بدي وي يا خرابي وي) او فرمائيل. دَ شعبه بيان دے، واقد بن محمّد ته شبهه اوشوه، داسے نه چه مانه پس کافر شئے دَ يو بل گردن اووهئے. او نضر دَ شعبه نه: ويحکم: لفظ نقل کړے دے. او عمر بن محمد دَ خپل پلار نه ويلکم يا ويحکم: نقل کړے

مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْهِ وَيْلَكُمْ اَوْ وَيْحَكُمْ.

۱۱۰۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَجُلًا مِنْ اَهْلِ الْبَادِيَةِ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَتَى السَّاعَةُ قَائِمَةٌ قَالَ وَيْلَكَ وَ مَا اَعْدَدْتَ لَهَا قَالَ مَا اَعْدَدْتُ لَهَا اِلَّا اَنِّيْ اُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ قَالَ اِنَّكَ مَعَ مَنْ اَحْبَبْتَ فَقُلْنَا وَ نَحْنُ كَذَالِكَ قَالَ نَعَمْ فَفَرِحْنَا يَوْمَئِذٍ فَرَحًا شَدِيْدًا فَمَرَّ غُلَامٌ لِلْمُغِيْرَةِ وَ كَانَ مِنْ اَقْرَانِيْ فَقَالَ اِنْ اُخِّرَ هٰذَا فَلَنْ يُدْرِكَهُ الْهَرَمُ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ وَاخْتَصَرَهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دي.

۱۱۰۰: عمرو بن عاصم. همام' قتاده' حضرت انسؓ نه روايت كوي' بانډيسو كښې يو سړے ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو' او عرض ئې اوكه' يا رسول اللّٰه' قيامت به كله وي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' ستا دے خرابي وي' تا هغې ذ پاره څۀ تياري كړے ده' هغۀ اوويے. ما هيڅ سامان نه دے تيار كړے' ماسوا' ذ دے نه' چه زۀ اللّٰه او ذهغه رسول سره محبت ساتم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' تۀ به هغې چا سره ئې' چاسره چه محبت كوے. په دے خبره مونږ عرض اوكه' آيا مونږ به هم دغسے يو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. او په دغه ورځ مونږ ډير خوشحاله شو. دے كښې ذ مغيره يو غلام تير شولو' چه څما هم عمر وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' كه دے ژوندے پاتے شو' نو ذ دۀ ذ بوډا توب نه به مخكښې قيامت راشي. او شعبه ذ قتاده نه دا حديث مختصراً روايت كړے دے' ما ذ' انسؓ نه هغه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه (دغسے) واوريدل.

باب ۷۴۶: عَلَامَةِ حُبِّ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ.

باب ۷۴۶: ذ' اللّٰه بزرگ و برتر ذ نښې بيان څكه چه اللّٰه تعالٰي او فرمائيل' كه تاسو اللّٰه سره محبّت لرئې' نو څما پيروي كوئې' اللّٰه تعالٰي به تاسو محبوب ساتي.

۱۱۰۱: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمٰنَ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۰۱: بشر بن خالد' محمد بن جعفر' شعبه سليمان' ابو وائل' عبداللّٰه نه روايت كوي' ذ هغۀ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' سړے به هغې چاسره وي' چاسره چه محبت ساتي. (يا اللّٰه'

وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ.

خو نو محبت تا او ستا رسُول سره کړے. اللّٰهم آمين).

۱۱۰۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ تَقُوْلُ فِيْ رَجُلٍ اَحَبَّ قَوْمًا وَّ لَمْ يَلْحَقْ بِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ تَابَعَهُ جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ وَ سُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ وَّ اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۰۲: قتيبه بن سعيد، جرير، اعمش، ابو وائل، حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، يو سړے ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو، او عرض ئے او کړه، يا رسول اللّٰه تاسو، ذ هغه سړي متعلق څه فرمايئے چه يو قوم سره محبت کوي، او هغه بيا نۀ مومي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، سړے به هغے چا سره وي، چا سره چه محبت کوي. جرير بن حازم او سُليمان بن قرم او ابو عوانه په واسطه ذ، اعمش، ابو وائل، حضرت عبداللّٰه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ دے متابع حديث روايت کړے دے.

۱۱۰۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قِيْلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يُحِبُّ الْقَوْمَ وَ لَمَّا يَلْحَقْ بِهِمْ قَالَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ تَابَعَهُ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ وَ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ.

۱۱۰۳: ابو نعيم، سُفيان، اعمش، ابو وائل، ابو موسٰي نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه چا تپوس او کړه، يو سړے يو قوم سره محبت ساتي او هغه ورسره يو ځائے نۀ شي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، سړے به هغے چا سره وي، چا سره چه محبت ساتي. ابو معاويه او محمّد بن عبيد ذ دے متابع حديث روايت کړه.

۱۱۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَتَى السَّاعَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ مَآ

۱۱۰۴: عبدان، ذ عبدان پلار، شعبه، عمرو بن مره، سالم بن ابي الجعد، انس بن مالکؓ نه روايت کوي، يو سړي ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس او که، يا رسول اللّٰه، قيامت به کله وي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، تا هغے ذ پاره څۀ تيارے کړے دے. هغۀ اووے، ما خو ذ ډيرو زياتو مونځونو، روژو

أَعْدَدْتُ لَهَا قَالَ مَآ أَعْدَدْتُ لَهَا مِنْ كَثِيْرِ صَلٰوةٍ وَ لَا صَوْمٍ وَّ لَا صَدَقَةٍ وَّ لٰكِنِّيْ أُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ قَالَ أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ.

سامان نه دے تيار کړے، خو، دا چه زهٔ الله او ذ هغه رسول سره محبّت ساتم، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل ته به هغے چاسره ئے، چاسره چه محبت ساتے.

باب ۶۴۸ : قَوْلِ الرَّجُلِ لِلرَّجُلِ اِخْسَأْ.

باب ۶۴۸ : ذ، يو سړي چاته دا، ونيل چه لرے شه.

۵۱۰۵ : حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيْرٍ سَمِعْتُ أَبَا رَجَاءٍ سَمِعْتُ بْنَ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِابْنِ صَائِدٍ قَدْ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيْئًا فَمَا هُوَ قَالَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَأْ.

۵۱۰۵ : ابو الوليد، سلم بن زرير، ابو رجاء حضرت ابن عبّاسؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ابن صائد (ابن صياد) ته او فرمائيل، ما ستا ذ پاره زړهٔ کښ يوه خبره پټه کړے ده. اووايه، هغه څه خبره ده، هغه اووے. لوګے دے، حضورؐ ورته او فرمائيل "لرے شه.

۵۱۰۶ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ انْطَلَقَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَهْطٍ مِّنْ أَصْحَابِهٖ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتّٰى وَجَدَهُ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فِيْٓ أُطُمِ بَنِيْ مُغَالَةَ وَ قَدْ قَارَبَ بْنُ صَيَّادٍ يَوْمَئِذٍ الْحُلُمَ فَلَمْ يَشْعُرْ حَتّٰى ضَرَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَالَ أَتَشْهَدُ أَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ الْأُمِّيِّيْنَ ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ أَتَشْهَدُ

۵۱۰۶ : ابو اليمان، شعيب، زهري، سالم بن عبدالله، عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے. حضرت عمرؓ رسول الله صلي الله عليه وسلّم او څو صحابهؓ ؤ ابن صياد طرف ته روان شو. ذ، بني مغاله محله کښ هغه هلکانو سره لوبے کولے. دغه وخت هغه سن بلوغ ته قريب وو. هغهٔ ته ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ تشريف آوړو علم اونهٔ شولو، تر دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ هغه په شا، لاس اووهلو. بيائے او فرمائيل، آيا تهٔ ګواهي کوے، چه زهٔ ذ، الله رسول يم. هغه حضور صلي الله عليه وسلّم طرف ته اوکتل، او وئيلے، زه ګواهي کوم چه ته د اميانو رسول ئے نبي صلي الله عليه وسلّم هغه له ديکه ورکړله. بيائے او فرمائيل، ما په الله او ذ هغه په رسول ايمان راوړلو.

اَتَشْهَدُ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَرَضَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ ثُمَّ قَالَ لِابْنِ صَيَّادٍ مَا ذَا تَرٰى قَالَ يَاْتِيْنِيْ صَادِقٌ وَّ كَاذِبٌ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُلِّطَ عَلَيْكَ الْاَمْرُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ خَبَاْتُ لَكَ خَبِيْئًا قَالَ هُوَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَاْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ قَالَ عُمَرُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَاْذَنُ لِيْ فِيْهِ اَضْرِبُ عُنُقَهٗ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ يَّكُنْ هُوَ لَا تُسَلَّطُ عَلَيْهِ وَ اِنْ لَّمْ يَكُنْ هُوَ فَلَا خَيْرَ لَكَ فِيْ قَتْلِهٖ قَالَ سَالِمٌ فَسَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ انْطَلَقَ بَعْدَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْاَنْصَارِيُّ يَؤُمَّانِ النَّخْلَ الَّتِيْ فِيْهَا ابْنُ صَيَّادٍ حَتّٰى اِذَا دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ وَ هُوَ يَخْتِلُ اَنْ يَّسْمَعَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ اَنْ يَّرَاهُ وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلٰى فِرَاشِهٖ فِيْ قَطِيْفَةٍ لَّهٗ فِيْهَا رَمْرَمَةٌ اَوْ زَمْزَمَةٌ فَرَاَتْ اُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ

بيانيے دَ ابن صياد نه تپوس اوكهٔ ستا دَ خپل خان متعلق څه خيال دے، هغه اووے، ماله رِيښتنيے او دروغجن دواړه قِسمه خلق راځي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، په تا معامله مشتبه شوے ده. بيا رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ما ستا دَ پاره زړهٔ كښې يوه خبره پټه كړے ده، هغه (ابن صياد) اووے، هغه لوګے (دھواں) دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل لرے شه، تهٔ دَ خدائے دَ مرضئ نه وړاندے نه شے تلے. حضرت عمر رضی اللہ عنہ عرض اوكړهٔ، آيا تاسو اِجازت راكوئ، چه زهٔ دَ دهٔ ګردن اووهم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، كه دا سړے هغه وي (يعني دجّال) نو تهٔ په دهٔ قابو نهٔ شے بيامُندے، او كه دے هغه نهٔ وي، نو دَ دهٔ په قتل كښې ستا دَ پاره هيڅ فائده نشته. دَ سالم بيان دے. ما دَ عبداللّٰه بن عمر رضی اللہ عنہ نه واؤريدل، دے نه پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او ابي بن كعب انصاري رضی اللہ عنہ په هغے مقصد روان شو، كوم ځائے چه ابن صياد وو، تر دے چه كوم وخت رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم باغ كښې داخل شو، نو دَ اُونو دَ تنو په پناه كښې تلو. او مقصد ئے دا وو، چه دَ ابن صياد څه خبره واؤري، مخكښې دَ دے نه چه هغه، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او ويني. هغه وخت ابن صياد په خپله بستره په يو څادر كښې پټ پروت وو، هغے كښې هغهٔ څه ګنګړ كول. دَ ابن صياد مور نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، چه دَ اُونو په خوا كښې تشريف راوړي، نو هغے ابن صياد ته اووے، اے صاف (دا دَ هغهٔ نوم وو) دا محمد

يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ فَقَالَتْ لِابْنِ صَيَّادٍ اَيْ صَافِ وَ هُوَ اسْمُهُ هٰذَا مُحَمَّدٌ فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ قَالَ سَالِمٌ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنِّيْ اُنْذِرُكُمُوْهُ مَا مِنْ نَبِيٍّ اِلَّا وَ قَدْ اَنْذَرَ قَوْمَهُ لَقَدْ اَنْذَرَ نُوْحٌ قَوْمَهُ وَ لٰكِنِّيْ سَاَقُوْلُ لَكُمْ فِيْهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهٖ تَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ اَعْوَرُ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم راروان دے. نو ابن صياد ګنګنړ كول موقوف كړل. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، كه هغے ذے پريښے وے، نو اصل حقيقت به واضحه شوے وو. دَ، سالم بيان دے، عبدالله اووے. رسول الله صلي الله عليه وسلم خلقو كښې اودريدلو. دَ، اللّٰه تعريف ئے بيان كۀ، چه دَ هغے، هغه لائق دے. بيائے دَ، دجّال تذكره اوكړه. اووے فرمائيل، زۀ تاسو، دَ هغۀ نه ويرَوم، او هيڅ نبي داسے نۀ دے تير شوے، چه هغۀ خپل قوم دَ هغه (يعني دجّال) نه ويرَولے نۀ وي. نوح عليه السّلام خپل قوم دَ هغۀ نه اويرولو. ليكن زۀ تاسو ته داسے خبره ښايم، چه هيڅ نبي خپل قوم ته نۀ ده ښودلے. تاسو پوه شے، چه هغه دجّال كانړا (كانا) دے، او اللّٰه تعالٰي كانړا (كانا) نۀ دے.

بَابُ ۶۴۹: قَوْلِ الرَّجُلِ مَرْحَبًا وَ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ مَرْحَبًا بِابْنَتِيْ وَ قَالَتْ اُمُّ هَانِيءٍ جِئْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَرْحَبًا بِاُمِّ هَانِيءٍ.

باب ۶۴۹: چاته دَ، مرحبا وئيلے بيان. او دَ بي بي عائشے رض بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم، بي بي فاطمے رض ته او فرمائيل، مرحبا (په خيره راغلے)، اے ځما لورے او دَ، اُم هاني بيان دے، زۀ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوم، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل مرحبا اے اُم هاني (يعني هر كله راشے).

۷۱۰۶: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۷۱۰۶: عمران بن ميسره، عبدالوارث، ابوالتياح، ابو جمره، حضرت ابن عباس رض نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے. كوم وخت چه دَ ابو القيس وفد دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، مرحبا هغے وفد ته، چه راغلے دے، رسوا او شرمسار مۀ شئے. هغوي عرض اوكۀ، يا

مَرْحَبًا بِالْوَفْدِ الَّذِيْنَ جَآءُ وا غَيْرَ خَزَايَا وَ لَا نَدَامٰى فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا حَيٌّ مِّنْ رَّبِيْعَةَ وَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكَ مُضَرُ وَ اِنَّا لَا نَصِلُ اِلَيْكَ اِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ فَصْلٍ نَدْخُلُ بِهِ الْجَنَّةَ وَ نَدْعُوْا بِهٖ مَنْ وَّرَآئَنَا فَقَالَ اَرْبَعٌ وَّاَرْبَعٌ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ وَ صَوْمُ رَمَضَانَ وَاَعْطُوْا خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَ لَا تَشْرَبُوْا فِي الدُّبَّآءِ وَالْحَنْتَمِ وَالنَّقِيْرِ وَالْمُزَفَّتِ.

رسول الله، مونږ قبيله ربيعه سره تعلّق لرو، او خمونږ او ستاسو مينځ کښې مضر (قبيله) ده، نو مونږ ستاسو خدمت کښې صرف دَ حرام مياشتو کښې حاضريدے شو. په دے وجه مونږ ته څه داسے فيصله شوے اَمر، اوښائے، چه په هغے عمل کولو سره مونږ جنّت کښې داخل شو. او خان نه وروستو خلقو ته دَ هغے دعوت ورکړو، حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، څلور او څلور خبرے داسے دي (يعني څلور دَ کولو، او څلور دَ نه کولو دي) مونځ کوے، زکٰوة ورکوے، دَ رمضان روژے نيسے، دَ غنيمت دَ مال پنځمه حصه ورکوے. او، دباء، حنتم، نقير او، مزمت کښې مه څکئے.

ف: دباء، حنتم، نقير، مزفت: دا قسما قِسم لوښي وو، چه شراب به په کښې جوړولے او، څکلے شو.

## باب ۶۵۰: مَا يُدْعَى النَّاسُ بِاٰبَآئِهِمْ.

## باب ۶۵۰: خلق به دَ خپلو پلرونو نومونه سره بللے شي.

۱۱۰۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْغَادِرَ يُرْفَعُ لَهٗ لِوَآءٌ يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ يُقَالُ هٰذِهٖ غَدْرَةُ فُلَانِ ابْنِ فُلَانٍ.

۱۱۰۸: مُسدد، يحيٰي، عُبيد الله، ابن عمرؓ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، لوظ ماتونکي، دَ پاره به دَ قيامت په ورځ جنډه اوچته کړے شي، او او، به وئيلے شي، چه دا، دَ فلاني بن فلاني لوظ ماتول (عهدشکني) ده.

۱۱۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهٗ لِوَاءٌ يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيُقَالُ هٰذِهٖ غَدْرَةُ فُلَانِ ابْنِ فُلَانٍ.

۱۱۰۹: عبدالله بن مسلمه، مالک، عبدالله بن دينار، حضرت ابن عمرؓ روايت کوي، دَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. دَ هر عهد شکني کونکي دَ پاره به دَ قيامت په ورځ جنډه اوچته کړے شي، او، او، به وئيلے شي، چه دا، دَ فلان بن فلان عهد شکني ده.

## بـاب ۶۵۱ : لَا يَقُلْ خَبُثَتْ نَفْسِيْ.

۱۱۱۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِيْ وَ لٰكِنْ لِيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِيْ.

## باب ۶۵۱ : هيڅوک دې داسې نه وائي' چه خما نفس خبيث شولو.

۱۱۱۰ : مُحمّد بن يوسف' سفيان' هشام' عروه بي بي عـائشېؓ نـه روايت کوي. حضور صلي اللّٰه عليـه وسلم او فرمـائيل' تاسو کښې دې هيڅوک داسې نـهٔ وائي' چـه خمـا نفـس خبيث شولو' بلکه داسې دې وائي چه: لَقِسَتْ نَفْسِيْ: (خمـا نفس خراب شو)۱.

۱. دَ "خَبُثَتْ نَفْسِي" او "لَقِسَتْ نَفْسِي" مفهوم يو دې ليکن په ړومبي کښې لفظي قباحت او شناعت هم مونـدې کيږي. پـه دې وجـه پـاک حضرتؐ اوفرمائيل چه ددې نه بچ کيدل پکار دي' ددې په ځائې مهذب الفـاظ استعمالول پکار دي که چرې څه بَده خبره هم بيانول وي نو په هغې کښې هم حتي الامکان بې ډَبه او قبيح الفاظ استعمالولو نه پرهيز کول پکار دي.

## باب ۶۵۲ : لَا تَسُبُّوا الدَّهْرَ.

۱۱۱۱ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِيْ وَ لٰكِنْ لِيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِيْ تَابَعَهٗ عُقَيْلٌ.

## باب ۶۵۲ : زمانې ته بدرَد' مه وائې.

۱۱۱۱ : يحيٰي بن بکير' ليث' يُونس' ابن شهاب' ابو سلمه' حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمـائيل' اللّٰه تعالٰي او فرمائيل' بني آدم زمانې ته کنځل کوي' حالانکه زمانه زهٔ يم. شپه او ورځ خما قبضه کښې دي.

۱۱۱۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَؓ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ يَسُبُّ بَنُوْ اٰدَمَ الدَّهْرَ وَ اَنَا الدَّهْرُ بِيَدِيَ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ.

۱۱۱۲ : يحيٰي بن بکير. ليث. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دې' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل' اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل' بني آدم زمانې ته کنځل کوي' حالانکه زمانه زهٔ يم. شپه او ورځ خما قبضه کښې دي.

۱۱۱۳ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ

۱۱۱۳ : عياش بن وليد. عبدالاعلي.

الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُسَمُّوا الْعِنَبَ وَالْكَرْمَ وَلَا تَقُوْلُوْا خَيْبَةَ الدَّهْرِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهْرُ.

معمر. زهري. ابوسلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي: حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، انګور ته كرم مه وائيے، او زمانے ته خرابه، مه وائيے، ځكه چه زمانه خو، اللّٰه تعالٰي دے.

باب ۶۵۳: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا الْكَرْمُ قَلْبُ الْمُؤْمِنِ وَقَدْ قَالَ اِنَّمَا الْمُفْلِسُ الَّذِيْ يُفْلِسُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كَقَوْلِهٖ اِنَّمَا الصُّرَعَةُ الَّذِيْ يَمْلِكُ نَفْسَهٗ عِنْدَ الْغَضَبِ كَقَوْلِهٖ لَا مُلْكَ اِلَّا لِلّٰهِ فَوَصَفَهٗ بِانْتِهَاءِ الْمُلْكِ ثُمَّ ذَكَرَ الْمُلُوْكَ اَيْضًا فَقَالَ اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا.

باب ۶۵۳: دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيل، چه كرم دَ مؤمن زړهٔ دے. او، وے فرمائيل، مفلس هغه دے، چه دَ قيامت په ورځ (دَ، اعمالو دَ، اعتبار نه) مفلس وي. او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيل، چه كُشتئ كښې راغرځول دراصل دا دي، چه دَ غصے په وخت سړے خپل نفس قابو كښې اوساتي. او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيل، چه ملك دَ اللّٰه دے. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلم داسے بيان اوكه، چه هغه آخري بادشاه دے، بيائے دَ، بادشاهانو ذكر هم اوكهٔ. او، وے فرمائيل، چه بادشاهان كله يو ے آبادي ته راكوز شي، نو هغه تاخت و تاراج (لوټ) كړي.

۱۱۱۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ يَقُوْلُوْنَ الْكَرْمُ اِنَّمَا الْكَرْمُ قَلْبُ الْمُؤْمِنِ.

۱۱۱۴: علي بن عبداللّٰه. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، خلق كرم وائي، حالانكه كرم خو دَ، مؤمن زړهٔ دے.

باب ۶۵۴: قَوْلِ الرَّجُلِ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ فِيْهِ الزُّبَيْرُ.

باب ۶۵۴: دَ يو سړي فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ وئيل دے باب كښې دَ، زبير روايت دے.

۱۱۱۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۱۱۱۵: مُسدد. يحيٰي. سفيان. سعد بن

يَحْيٰى عَنِ سُفْيَانَ حَدَّثَنِىْ سَعْدُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّؓ قَالَ مَا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفَدِّىْ اَحَدًا غَيْرَ سَعْدٍ سَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ اِرْمِ فِدَاكَ اَبِىْ وَ اُمِّىْ اَظُنُّهٗ يَوْمَ اُحُدٍ.

ابراهيم. عبدالله بن شداد. حضرت عليؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ما ذ سعد نه سوا ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه هيڅا ذ پاره دا فرمائيل نه دي آوريدلے، چه: فِداک ابی و اُمِی: (خما مور پلار دے په تا قربان وي) او خما خيال دے، چه شايد ذ جنګ اُحد په ورځ حضور صلي الله عليه وسلم دا فرمائيلي وو.

بـــاب ٦٥٥ : قَـوْلِ الـرَّجُـلِ جَعَلَنِـى الـلّٰهُ فِدَاكَ وَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَدَيْنَاكَ بِاٰبَآءِ نَا وَ اُمَّهَاتِنَا.

باب ٦٥٥ : دا، يو دا وئيل، چه الله دے ما په تا قربان كړي. او حضرت ابوبكرؓ نبي صلي الله عليه وسلم ته اووے، چه مونږ خپل پلرونه او ميندے په تاسو قربان كړو.

٦١١١ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ اَبِىْ اِسْحَاقَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّـهٗ اَقْبَلَ هُـوَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلٰى رَاحِلَتِهٖ فَلَمَّا كَانُوْا بِبَعْضِ الطَّرِيْقِ عَثَرَتِ النَّاقَةُ فَصُرِعَ النَّبِىُّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ وَالْـمَرْاَةُ وَ اَنَّ اَبَا طَلْحَةَ قَالَ اَحْسِبُ قَالَ اِقْتَحَمَ عَنْ بَعِيْرِهٖ فَاَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ جَعَلَنِى اللّٰهُ فِدَاكَ هَلْ اَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَلٰكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْاَةِ فَاَلْقٰى اَبُوْ طَلْحَةَ ثَوْبَهٗ عَلٰى وَجْهِهٖ فَقَصَدَ قَصْدَهَا فَاَلْقٰى ثَوْبَهٗ عَلَيْهَا فَقَامَتِ الْمَرْاَةُ فَشَدَّ لَهُمَا عَلٰى

٦١١١ : علي بن عبدالله. بشر بن مفضل. يحيٰي بن ابي اسحاق. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغه او ابو طلحه، نبي صلي الله عليه وسلم سره مدينے ته راغلل. او نبي صلي الله عليه وسلم سره بي بي صفيهؓ وه، هغه حضور صلي الله عليه وسلم خان پسے روستو سوره كړے وه. لار كښې يو ځائے ذ، اُوښے (اونٹنی) پښه اوخويدله، نبي صلي الله عليه وسلم او بي بي صفيهؓ دواړه اوغرځيدل. ابو طلحه ذ خپلے سورلۍ نه راكوز شو. رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اورسيد، تپوس ئے اوكه، اے ذ الله نبي، الله دے ما په تاسوؐ قربان كړي، آيا تاسوؐ ته څهٔ تكليف اورسيدو. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه. ليكن ښځه (صفيهؓ) اوګوره. نو، ابو طلحه په خپل مخ كپړه واچوله، بيائے بي بي صفيےؓ طرف ته ذ تلو قصد اوكه، او خپله كپړه ئے ذ هغے په مخ واچونه. هغه اودريدله. بيائے دواړو ذ پاره كجاوه درست كړله. بيا

رَاحِلَتِهِمَا فَرَكِبَا فَسَارُوا حَتَّى إِذَا كَانُوا بِظَهْرِ الْمَدِينَةِ أَوْ قَالَ أَشْرَفُوا عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰئِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ فَلَمْ يَزَلْ يَقُوْلُهَا حَتّٰى دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ.

دواړه سوارهٔ شو او روان شو، تردې چه کوم وخت مدينې ته قريب اورسيدل، نو نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، مونږ واپس کيدونکي يو، توبه کونکي يو، عبادت کونکي يو، ذَ خپل رب حمد (ثنا) کونکي يو. او برابر دغسې ئې وئيلې، تردې چه مدينه کښې داخل شولو.

باب ۶۵۶: أَحَبِّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ قَوْلِ الرَّجُلِ لِصَاحِبِهِ يَا بُنَيَّ.

باب ۶۵۶: ذَ الله په نزد، ذَ محبوب تريـن نوم بيان.

۱۱۱۷: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقُلْنَا لَا نَكْنِيْكَ أَبَا الْقَاسِمِ وَلَا كَرَامَةَ فَأَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَمِّ ابْنَكَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ.

۱۱۱۷: صدقه بن فضل. ابن عيينه. ابن منكدر. جابر رض نه روايت کوي، مونږ کښې ذَ يو سړي ځوئې اوشولو، ذَ هغه نوم ئې قاسم کيښودلو. مونږ هغه ته اووې، تا به مونږ ذَ ابوالقاسم په کُنيت نه بلو، او نه به دِ با عزته ګنړو، هغه نبي صلي الله عليه وسلم ته بيان اوکه. نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ذَ خپل ځوئ نوم عبدالرحمٰن کيږده.

ف: ذَ دې حديث ذَ مخه ځوئ له عبدالرحمٰن نوم ايښودل بهتر دي.

باب ۶۵۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تُكَنُّوْا بِكُنْيَتِيْ.

باب ۶۵۷: ذَ نبي صلي الله عليه وسلم فرمان، څما په نوم اږدې، ليکن څما په کُنيت خپل کُنيت مه اږدې، انس رض ذَ نبي صلي الله عليه وسلم نه دا نقل کړې دې.

۱۱۱۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ رض قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقَالُوْا لَا نَكْنِيْهِ حَتّٰى نَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا

۱۱۱۸: مُسدد. خالد. حصين. سالم. حضرت جابر رض نه روايت کوي. مونږ کښې ذَ يو سړي ځوئې پيدا شو، نو هغه ذَ هغه نوم قاسم کيښودلو. خلقو ورته اووې، مونږ به تا ذَ ابوالقاسم په کُنيت نهٔ بلو. څو پورې چه ذَ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اونه کړو، نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څما په نوم خپل نوم

بِكُنْيَتِي.

اږدئې' ليكن خما كُنيت مه اږدئې.

**١١١٩ :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اَبُوْ الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاِسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ.

**١١١٩ :** علي بن عبداللّٰه. سُفيان. ايوب. ابن سيرين. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي' ذَ هغه بيان دے' ابوالقاسم صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل' خما نوم خان له اږدئې' ليكن خما كُنيت (ابوالقاسم) مه اږدئې.

**١١٢٠ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِؓ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِّنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمُ فَقَالُوْا لَا نَكْنِيْكَ بِاَبِي الْقَاسِمِ وَلَا نُنْعِمُكَ عَيْنًا فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ سَمِّ ابْنَكَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ.

**١١٢٠ :** عبداللّٰه بن محمد. سفيان. ابن منكدر. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي' مونږ كښې ذَ يو سړي ځوئې پيدا شو' هغه' ذَ هغه نوم قاسم كيښود خلقو ورته اووے. مونږ به تا ذَ ابوالقاسم په كُنيت نهٔ بلو. او مونږ به نه تاله فضيلت دركوو' هغه سړے ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته ئې دا واقعه بيان كړله' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل' ذَ خپل ځوئې نوم عبدالرحمٰن كيږده.

**ف:** مور پلار له پكار دي' چه ذَ ځوي نوم داسے اږدي' چه اسمائے حسنٰي كښې ذَ يو اسم مخكښې دے "عبد" لګوي' لكه عبداللّٰه' عبدالرحمٰن' عبدالرحيم وغيره بختور نومونه دي.

## باب٦٥٨ : اِسْمِ الْحَزْنِ.

## باب٦٥٨ : ذَ حزن نوم ايښودو بيان.

**١١٢١ :** حَدَّثَنَا اسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيِّبِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ اَبَاهُ جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا اسْمُكَ قَالَ حَزْنٌ قَالَ اَنْتَ سَهْلٌ قَالَ لَآ اُغَيِّرُ اِسْمًا سَمَّانِيْهِ اَبِيْ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبُ فَمَا زَالَتِ الْحُزُوْنَةُ فِيْنَا بَعْدُ.

**١١٢١ :** اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. زهري. ابن مسيب. خپل پلار نه روايت كوي' ذَ هغه پلار ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ترے تپوس اوكه' ستا څه نوم دے' وئيلے' حَزن (سخت والے)' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل' تهٔ سهل (نرم) ئې' هغه اووے' زهٔ دا نوم نهٔ بدلوم' چه خما پلار ايښے دے. ذَ ابن مسيب بيان دے' ذَ هغې نه پس ځمونږ په خاندان كښې برابر سختي وه.

**١١٢٢ :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

**١١٢٢ :** علي بن عبداللّٰه او محمود.

اللّٰهِ وَ مَحْمُوْدٌ قَالَا حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ بِهٰذَا.

عبدالرزاق. معمر. زهري. ابن مسيب. خپل پلار نه، هغه د هغه د نيكه (دادا) نه دا حديث روايت كوي.

## باب ۷۵۹ : تَحْوِيْلِ الْاِسْمِ اِلٰى اِسْمٍ اَحْسَنَ مِنْهُ.

## باب ۷۵۹ : يو نوم بدلول او د هغې نه د ښه نوم ايښودو بيان.

۱۱۲۳ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ اُتِيَ بِالْمُنْذِرِ بْنِ اَبِيْ اُسَيْدٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ وُلِدَ فَوَضَعَهٗ عَلٰى فَخِذِهٖ وَ اَبُوْ اُسَيْدٍ جَالِسٌ فَلَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ بَيْنَ يَدَيْهِ فَاَمَرَ اَبُوْ اُسَيْدٍ بِابْنِهٖ فَاحْتُمِلَ مِنْ فَخِذِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفَاقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَيْنَ الصَّبِيُّ فَقَالَ اَبُوْ اُسَيْدٍ قَلَبْنَاهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ مَا اسْمُهٗ قَالَ فُلَانٌ قَالَ لَا وَلٰكِنْ اِسْمُهُ الْمُنْذِرُ فَسَمَّاهُ يَوْمَئِذٍ الْمُنْذِرَ.

۱۱۲۳ : سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. ابو حازم. سهل نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے، منذر بن ابي اُسيد چه كوم وخت پيدا شو، نو د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې حاضر كړے شو. حضور صلي الله عليه وسلم هغه په خپل پتون كينولو. او ابو اُسيد ناست وو. حضور صلي الله عليه وسلم خپلے مخے ته څه څيز كښې مصروف شولو. ابو اُسيد د چا په معرفت خپل خوئ د نبي صلي الله عليه وسلم د پتون نه اوچت كړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلم ته خيال راغے، يا حضور صلي الله عليه وسلم تپوس اوكه، هغه بچے څه شولو. ابو اُسيد اووے، يا رسول الله، ما هغه كورته واستولو. حضور صلي الله عليه وسلم تپوس اوكهٔ د هغه نوم څه دے. وئيلے، فلانے نوم ئے دے. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، نهٔ بلكه منذر د هغه نوم دے. د هغې ورځ نه نوم د هغه منذر شولو.

۱۱۲۴ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ اَبِيْ مَيْمُوْنَةَ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ زَيْنَبَ كَانَ اسْمُهَا بَرَّةَ فَقِيْلَ تُزَكِّيْ نَفْسَهَا فَسَمَّاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۲۴ : صدقه بن فضل. محمد بن جعفر. شعبه. عطاء بن ابي ميمونه. ابو رافع. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، د زينب نوم بره وو، نو اووئيلے شو، چه هغه د خپل نفس پاكيزگي ظاهروي، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغې نوم زينب

وَسَلَّمَ زَيْنَبَ.

کيښودلو.

ف: بره: بنة اعلٰي.

۱۱۲۵: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ قَالَ جَلَسْتُ اِلٰى سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ فَحَدَّثَنِيْ اَنَّ جَدَّهٗ حَزْنًا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا اسْمُكَ قَالَ اسْمِيْ حَزْنٌ قَالَ بَلْ اَنْتَ سَهْلٌ قَالَ مَآ اَنَا بِمُغَيِّرٍ اِسْمًا سَمَّانِيْهِ اَبِيْ قَالَ ابْنُ الْمُسَيِّبِ فَمَا زَالَتْ فِيْنَا الْحُزُوْنَةُ بَعْدُ.

۱۱۲۵: ابراهيم بن موسٰي. هشام. ابن جريج. عبدالحميد بن جبير بن شيبه نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے. زهٔ سعيد بن مسيب سره ناست ووم، هغه بيان اوکه. خما نيکهٔ (دادا) حزن ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت کښ حاضر شو. حضور صلي الله عليه وسلم ترے تپوس اوکه، ستا نوم څهٔ دے. وئيلے خما نوم حَزَن دے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، بلکه تهٔ سهل ئے. هغه اووے، زهٔ دا نوم بدلونکے نه يم، چه خما پلار ايښے دے. ذَ ابن مسيب بيان دے، ذَ هغے نه پس سختي خما خاندان کښ برابر چليده.

ف: (۱) حزن: غمگين، رنجيده، اندوهناک، ملول. (۲) سهل: آسان، هموار، نرم.

باب ۶۶۰: مَنْ سَمّٰى بِاَسْمَآءِ الْاَنْبِيَآءِ وَ قَالَ اَنَسٌ قَبَّلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِبْرٰهِيْمَ يَعْنِيْ اِبْنَهٗ.

باب ۶۶۰: ذَ انبياؤ په نوم ذَ نوم ايښودو بيان. او ذَ حضرت انسؓ بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ابراهيم يعني خپل ځوئے ښکل کړلو.

۱۱۲۶: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قُلْتُ لِابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى رَاَيْتَ اِبْرٰهِيْمَ بْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَاتَ صَغِيْرًا وَّلَوْ قُضِيَ اَنْ يَّكُوْنَ بَعْدَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيٌّ عَاشَ ابْنُهٗ وَلٰكِنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهٗ.

۱۱۲۶: ابن نمير. محمد بن بشر. اسماعيل نه روايت کوي، ما ذَ ابن ابي اوفٰي نه تپوس اوکهٔ چه آيا تا ابراهيم بن نبي صلي الله عليه وسلم ليدلے دے، هغه اووے، هغه بکم عمرئ کښ وفات شولو. کهٔ ذَ خدائے مرضي وے، چه ذَ محمد صلي الله عليه وسلم نه پس دِ څوک نبي وے، نو ذَ حضور صلي الله عليه وسلم ځوئے به ژوندے وے، ليکن ذَ حضور صلي الله عليه وسلم نه پس هيڅ نبي نشته.

۱۱۲۷ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ قَالَ لَمَّا مَاتَ إِبْرٰهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لَهٗ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ.

۱۱۲۷ : سُليمان بن حرب. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براءؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، كوم وخت چه ذ حضور صلي الله عليه وسلم خوئے ابراهيمؑ وفات شولو، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، جنت كښې هغه له پئے وركونكے شته. (يعني مقرر شوله).

۱۱۲۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ فَاِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ اَقْسِمُ بَيْنَكُمْ وَ رَوَاهُ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۲۸ : آدم. شعبه. حصين بن عبدالرحمٰن. سالم بن ابي الجعد. جابر بن عبدالله انصاري نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خما په نوم، خپل نوم اږدئے. ليكن خما په كُنيت خپل كُنيت مه اږدئے، ځكه چه زۀ تقسيمونكے يم، ستاسو مينځ كښې تقسيموم، او انسؓ دا، ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړے دے.

۱۱۲۹ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ وَمَنْ رَاٰنِيْ فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَاٰنِيْ فَاِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ صُوْرَتِيْ وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّءْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ.

۱۱۲۹ : موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. ابو حصين. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، خما په نوم، نوم اږدئے، ليكن خما په كُنيت، كُنيت مه اږدئے. او چا چه زۀ خوب كښې اوليدم، نو هغه زۀ اوليدم، ځكه چه شيطان خما شكل نشي اختيارولے. او كوم سړے چه خما متعلق قصداً دروغ اووائي، نو هغه دے خپل ځائے جهنم كښې جوړ كړي.

۱۱۳۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ

۱۱۳۰ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبدالله بن ابي برده. ابو برده. ابو موسٰيؓ نه روايت

بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ وُلِدَ لِيْ غُلَامٌ فَاَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمَّاهُ اِبْرٰهِيْمَ فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ وَّ دَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ وَ دَفَعَهُ اِلَيَّ وَ كَانَ اَكْبَرَ وَلَدِ اَبِيْ مُوْسٰى.

کوي' د هغه بيان دے' ځما يو هلک پيدا شو. هغه مِ دَ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښ حاضر که. حضور صلي الله عليه وسلم دَ هغهٔ نوم ابراهيم کيښودلو. او دَ قجورے په ذريعه ئے دَ هغه تحنيک اوکهٔ (يعني جويلے قجورے ئے ورله خوله کښ کيښوده) او دَ هغه حق کښ ئے دَ برکت دُعا اوکړه. او ماله ئے راکړلو' او دا' دَ' ابو موسیٰ دَ ټولونه مشر ځوئے وو.

١١٣١ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عِلَاقَةَ سَمِعْتُ الْمُغِيْرَةَ بْنَ شُعْبَةَ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ يَوْمَ مَاتَ اِبْرٰهِيْمُ رَوَاهُ اَبُوْبَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

١١٣١ : ابوالوليد. زائده. زياد بن علاقه. حضرت مغيره بن شعبه نه روايت کوي' دَ هغه بيان دے' په کومه ورځ چه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ځوئے ابراهيمؓ وفات شو' نو نمر تندر اونيولو. ابوبکرهؓ دا دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت اوکه.

باب ١٦٦١ : تَسْمِيَةِ الْوَلَدِ.

باب ١٦٦١ : دَ' يو سړي بچي له دَ خپل نوم ايښودو بيان.

١١٣٢ : اَخْبَرَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ قَالَ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ وَ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَ عَيَّاشَ بْنَ اَبِيْ رَبِيْعَةَ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ بِمَكَّةَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْاَتَكَ عَلٰى مُضَرَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا عَلَيْهِمْ سِنِيْنَ كَسِنِيْ يُوْسُفَ.

١١٣٢ : ابو نعيم. فضل بن دُکين. ابن عُيينه. زهري. سعيد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' دَ هغه بيان دے' کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم خپل سر دَ رکوع نه اوچت کړلو' نو' وے فرمائيل. اے اللّٰه' وليد بن وليد' سلمه بن هشام' عياش بن ابي ربيعه' او' کمزورو مسلمانانوله مکه کښ نجات (خلاصي) ورکړے. اے اللّٰه' په مضر سختي اوکړے. او هغوي دَ يُوسف عليه السلام دَ قحط په شان قحط کښ آخته کړے.

باب ١٦٦٢ : مَنْ دَعَا صَاحِبَهُ فَنَقَصَ مِنْ اِسْمِهِ حَرْفًا. وَ قَالَ اَبُوْ

باب ١٦٦٢ : دَ خپل ملګري دَ نوم نه دَ څه حرف کمولو سره دَ هغه دَ نوم اخستو بيان. او ابو حازم دَ

حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هِرٍّ.

حضرت ابوهريرهؓ نه نقل او كه، چه ماته نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، اے ابوهر.

۱۱۳۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشُ هٰذَا جِبْرِيْلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ قُلْتُ وَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ قَالَتْ وَهُوَ يَرٰى مَالَا نَرٰى.

۱۱۳۳ : ابوالوليد. شعيب. زهري. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشےؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ تبر نه روايت كوي. دَ هغې بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اے عائشےؓ دا جبرائيلؑ دے، په تا سلام وائي. ما اووے، وعليه السلام و رحمة اللّٰه. بي بي عائشهؓ بيان كوي، چه حضورؐ به هغه څيزونه ليدل كوم چه به مونږه نه ليدل.

۱۱۳۴ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِیْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ كَانَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ فِي الثَّقْلِ وَ اَنْجَشَةُ غُلَامُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسُوْقُ بِهِنَّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَنْجَشُ رُوَيْدَكَ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيْرِ.

۱۱۳۴ : موسٰي بن اسماعيل. وهيب. ايوب. ابو قلابه. حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے. اُم سليم سفر كښې وه. او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم غُلام انجشه سورلئ شړله. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اے انجشه، دا شيشے سنبالئے سره بوځه (دَ شيشو نه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم مراد ښځے وے).

باب۲۶۳ : اَلْكُنْيَةِ لِلصَّبِيِ وَ قَبْلَ اَنْ يُّوْلَدَ لِلرَّجُلِ.

باب۲۶۳ : دَ بچي كُنيت ايښودل او، دَ چا چه بچے نه وي پيدا شوے، دَ هغه دَ كُنيت ايښودو بيان.

۱۱۳۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِی التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا وَّ

۱۱۳۵ : مُسدد. عبدالوارث. ابوالتياح. انسؓ نه روايت كوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ خُلق دَ، اعتبار نه خلقو كښې دَ ټولونه ښه وو، او خما يو ورور وو، چه هغهٔ ته ابو عمير وئيلے شو. دَ، راوي بيان دے. غالباً دَ هغه پئے كټ شوے وو. كله چه به هغه راغے، نو حضور

كَانَ لِيْ اَخٌ يُقَالُ لَهُ اَبُوْ عُمَيْرٍ قَالَ اَحْسِبُهُ فَطِيْمٌ وَّ كَانَ اِذَا جَآءَ قَالَ يَا اَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ نُغَرٌ كَانَ يَلْعَبُ بِهٖ فَرُبَّمَا حَضَرَ الصَّلٰوةُ وَهُوَ فِيْ بَيْتِنَا فَيَاْمُرُ بِالْبَسَاطِ الَّذِيْ تَحْتَهُ فَيُكْنَسُ وَ يُنْضَحُ ثُمَّ يَقُوْمُ وَ نَقُوْمُ خَلْفَهٗ فَيُصَلِّيْ بِنَا.

صلي الله عليه وسلم به فرمائيل. اے ابو عمير' ذَ نغير څه اوشولو. نغير يوه مرغۍ وه' چه هغې سره به هغه لوبې کولې. او اکثر به ذَ مونځ وخت وو. او حضور صلي الله عليه وسلم به خمونږ په کور کښې وو. په کوم فرش چه به حضور صلي الله عليه وسلم تشريف فرما وو' ذَ هغې ذَ' څنډلو او صفا کولو حکم به ئې کولو. بيا به حضورؐ مانځه ذَ پاره اودريدلو' مونږ به هم حضورؐ پسې اودريدلو او حضورؐ به مونږ له مونځ راکولو.

باب ۶۶۴ : اَلتَّكَنِّيْ بِاَبِيْ تُرَابٍ وَ اِنْ كَانَتْ كُنْيَةٌ اُخْرٰى.

باب ۶۶۴ : ذَ' ابو تراب کُنيت ايښودو بيان اګر که ذَ هغه دوئم کُنيت هم وي.

۱۱۳۶ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ اِنْ كَانَتْ اَحَبَّ اَسْمَآءِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِلَيْهِ لَاَبُوْتُرَابِ وَ اِنْ كَانَ لَيَفْرَحُ اَنْ يُدْعٰى بِهَا وَمَا سَمَّاهُ اَبُوْتُرَابِ اِلَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَاضَبَ يَوْمًا فَاطِمَةَ فَخَرَجَ فَاضْطَجَعَ اِلَى الْجِدَارِ اِلَى الْمَسْجِدِ فَجَاءَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَامْتَلَاَ ظَهْرُهٗ تُرَابًا فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ التُّرَابَ عَنْ ظَهْرِهٖ وَ يَقُوْلُ اِجْلِسْ يَا اَبَا تُرَابٍ.

۱۱۳۶ : خالد بن مخلد. سليمان. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي' ذَ هغه بيان دے ذَ حضرت عليؓ خپلو نومونو کښې ابوتراب لفظ ډير نه واوريدل' خو' دا چه ابن ابي طالب اوغواړي (يعني حضرت علي). او. خوښ وو. او دے نوم اخستلو سره به ډير خوشحاليدلو او دا نوم ورله نبي صلي الله عليه وسلم ايښے وو. يوه ورځ ذَ' بي بي فاطمےؓ نه ناراضه شو' بهرته لاړلو' او ذَ جُمات ديوال سره خوا کښې سملاستلو. نبي صلي الله عليه وسلم ذَ هغه تلاش کښې تشريف راوړلو' دغه وخت ذَ هغه شا ذَ خاورر شوے وه' نبي صلي الله عليه وسلم به ذَ هغه ذَ' شا' نه خاوره څنډله' او فرمائيل به ئې اے ابو تُرابه' پاسه.

باب ۶۶۵ : اَبْغَضُ الْاَسْمَاءِ اِلَى اللّٰهِ.

باب ۶۶۵ : الله ته ذَ ټولونه زيات ذَ' ناخوښه نوم بيان.

۱۱۳۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

۱۱۳۷ : ابواليمان. شعيب. ابوالزناد.

اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنِ اَبِیْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْنَى الْاَسْمَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ تُسَمّٰى مَلِكَ الْاَمْلَاكِ.

اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل دَ قيامت په ورځ به دَ اللّٰه په نزد دَ ټولونه خراب نوم دَ هغه سړي وي، چه خپل نوم ملک الاملاک كيږدي.

۱۱۳۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رِوَايَةً قَالَ اَخْنَعُ اسْمٍ عِنْدَ اللّٰهِ وَ قَالَ سُفْيَانُ غَيْرَ مَرَّةٍ اَخْنَعُ الْاَسْمَاءِ عِنْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ تَسَمّٰى بِمَلِكِ الْاَمْلَاكِ قَالَ سُفْيٰنُ يَقُوْلُ غَيْرُهُ تَفْسِيْرُهُ شَهَانْ شَاهْ.

۱۱۳۸: علي بن عبداللّٰه. سفيان. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، چه اخنع اسم عنداللّٰه (يعني دَ اللّٰه په نزد دَ ټولونه خراب نوم، او، سُفيان څو ځله بيان اوكه چه: اخنع الاسماء عنداللّٰه: يعني دَ اللّٰه په نزد نومونه كښې دَ ټولونه خراب نوم) به دَ هغے چا، وي، چه خپل نوم ملک الاملاک اږدي، نورو خلقو دَ دے تفسير شاهان شاه (شهنشاه) بيان كړے دے.

باب ۶۶۲: كُنْيَةِ الْمُشْرِكِ وَ قَالَ مِسْوَرٌ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِلَّا اَنْ يُّرِيْدَ ابْنُ اَبِیْ طَالِبٍ.

باب ۶۶۲: دَ مشرک دَ كُنيت ايښودو بيان او مسور اووے، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه واؤريدو چه هغوئ اوفرمايل هاؤ كۀ ابن ابي طالب اوغواړي.

۱۱۳۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَخِیْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِیْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلٰى حِمَارٍ عَلَيْهِ قَطِيْفَةٌ فَدَكِيَّةٌ وَ اُسَامَةُ وَرَآءَهٗ يَعُوْدُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِیْ

۱۱۳۹: ابواليمان. شعيب. زهري. اسمٰعيل. برادر اسمٰعيل. سليمان. محمد بن ابي عتيق. ابن شهاب. عروه بن زبيرؒ نه روايت كوي، دَ اسامه بن زيد بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په يو خر سور وو، چه په هغے دَ فدک جوړ شوے څادر وو، او، اسامه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم پسے ورستو ناست وو. دَ جنگ بدر نه مخكښ، بني حارث بن خزرج كښ دَ سعد بن عباده تپوس له تلو، دواړه روان

بَنِیْ حَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ قَبْلَ وَقْعَةِ
بَدْرٍ فَسَارَا حَتّٰی مَرَّا بِمَجْلِسٍ فِیْهِ
عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَیِّ ابْنُ سَلُوْلٍ وَ ذٰلِكَ
قَبْلَ اَنْ یُّسْلِمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَیِّ فَاِذَا
فِی الْمَجْلِسِ اَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ
وَالْمُشْرِكِیْنَ عَبَدَةَ الْاَوْثَانِ وَالْیَهُوْدُ
فِی الْمُسْلِمِیْنَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ
فَلَمَّا غَشِیَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّآبَّةِ
خَمَّرَا بْنُ اُبَیِّ اَنْفَهٗ بِرِدَآئِهٖ وَ قَالَ لَا
تُغَبِّرُوْا عَلَیْنَا فَسَلَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلَیْهِمْ ثُمَّ
وَقَفَ فَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ اِلَی اللّٰهِ وَقَرَأَ
عَلَیْهِمُ الْقُرْاٰنَ فَقَالَ لَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ
اُبَیِّ ابْنِ سَلُوْلٍ اَیُّهَا الْمَرْءُ لَا اُحْسِنُ
مِمَّا تَقُوْلُ اِنْ كَانَ حَقًّا فَلَا تُؤْذِنَا بِهٖ
فِیْ مَجَالِسِنَا فَاِنَّا نُحِبُّ ذٰلِكَ فَاسْتَبَّ
الْمُسْلِمُوْنَ وَالْمُشْرِكُوْنَ وَالْیَهُوْدُ
حَتّٰی كَادُوْا یَتَثَاوَرُوْنَ فَلَمْ یَزَلْ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ
یُخَفِّضُهُمْ حَتّٰی سَكَنُوْا ثُمَّ رَكِبَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ
دَابَّتَهٗ فَسَارَ حَتّٰی دَخَلَ عَلٰی سَعْدِ بْنِ
عُبَادَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ
عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَیْ سَعْدُ اَلَمْ تَسْمَعْ مَا
قَالَ اَبُوْ حَبَّابٍ یُرِیْدُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ
اُبَیِّ قَالَ كَذَا وَ كَذَا وَ قَالَ سَعْدُ بْنُ

وو، یو مجلس باندې تیریدل، هغې کښې (ذ منافقانو مشر) عبدالله بن ابي سلول هم وو. او دا، ذ عبدالله بن ابي ذ مسلمانیدو نه مخکښې واقعه ده او هغې مجلس کښې مسلمانان، بُت پرست، مشرکین او یهود ټول موجود وو، او مسلمانانو نه عبدالله بن رواحه وو. هر کله چه ذ سورلی ذ تلو ګرد (دوړه) په دغې خلقو پریوته نو، ابن ابي خپله پوزه څادر کښې پټه کړه، وئیلې، په مونږ ګرد، مه آلوخوه. رسول الله صلي الله علیه وسلم هغې خلقوته سلام اوکه. سورلي ئې ایساره کړه، او هلته کوز شولو. بیائې هغوي الله طرف ته اوبلل. او هغوي ته ئې قرآن واورولو. عبدالله بن ابي بن سلول. حضور صلي الله علیه وسلم ته اووې. اې سړیه، ته چه څۀ وائې، دا، ماته ښۀ نۀ معلومیږي که دا حق وي، نو څمونږ مجلسونوته راتلو سره مونږ ته تکلیف مه راکوه، څوک چه درشي، نو هغوي ته بیان کوه. عبدالله بن رواحهؓ عرض اوکۀ. یا رسول الله، څمونږ مجلسونوته راځې، مونږ دا زیات خوښوو. مسلمانانو، مشرکانو او یهودیانو یو بل ته بد رد وئیل شروع کړې، او نزدې وه، چه جګړه اوشي. خو، رسول الله هغه خلق خاموش کول، تردې چه هغوي خاموش شولو. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم په خپله سورلي سور شولو. او روان شولو تردې چه سعد بن عبادهؓ نه راورسیدلو. رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، اې سعد، آیا تا وانۀ ریدل، څه حه ابو حباب یعني عبدالله بن

عُبَادَةَ اَیْ رَسُوْلَ اللّٰهِ بِاَبِیْ اَنْتَ اعْفُ وَاصْفَحْ فَوَالَّذِیْ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ لَقَدْ جَآءَ اللّٰهُ بِالْحَقِّ الَّذِیْ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتَابَ وَلَقَدِ اصْطَلَحَ اَهْلُ هٰذِهِ الْبَحْرَةِ عَلٰی اَنْ یُّتَوِّجُوْهُ وَ یُعَصِّبُوْهُ بِالْعِصَابَةِ فَلَمَّا رَدَّ اللّٰهُ ذٰلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِیْ اَعْطَاكَ شَرِقَ بِذٰلِكَ فَذٰلِكَ فَعَلَ بِهٖ مَا رَاَیْتَ فَعَفَا عَنْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ یَعْفُوْنَ عَنِ الْمُشْرِكِیْنَ وَ اَهْلِ الْكِتٰبِ كَمَا اَمَرَهُمُ اللّٰهُ وَ یَصْبِرُوْنَ عَلَی الْاَذٰی قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ الْاٰیَةَ وَ قَالَ وَدَّ كَثِیْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَتَاَوَّلُ فِی الْعَفْوِ عَنْهُمْ مَّا اَمَرَهُ اللّٰهُ بِهٖ حَتّٰی اُذِنَ لَهٗ فِیْهِمْ فَلَمَّا غَزَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بَدْرًا فَقَتَلَ اللّٰهُ بِهَا مَنْ قَتَلَ مِنْ صَنَادِیْدِ الْكُفَّارِ وَسَادَةِ قُرَیْشٍ فَقَفَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ مَنْصُوْرِیْنَ غَانِمِیْنَ مَعَهُمْ اُسَارٰی مِنْ صَنَادِیْدِ الْكُفَّارِ وَسَادَةِ قُرَیْشٍ قَالَ ابْنُ اُبَیِّ ابْنُ سَلُوْلَ وَمَنْ مَعَهٗ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ

ابي اووے. هغه داسے خبره اوكړه. سعد بن عبادهؓ عرض اوكړه: يا رسول اللّٰه، خما مور پلار دے په تاسو قربان وي، هغه معاف كړئے. او پرېږدئے، په هغه ذات م دے قسم وي، چه هغه په تاسوٌ كتاب نازل كړے دے، قسم دے په هغه ذات، چه هغه تاسو حق سره راليږلے ئے، دَ دے ښار خلقو صلاح كړے وه، چه دهٔ ته تاج په سر كړي، او بادشاه ئے جوړ كړي، هر كله چه اللّٰه، هغه دَ هغے حق په ذريعه، چه تاسوٌ ته ئے دركړے دے، رد كړلو، په دے وجه په هغه (دَ حسد نه) اُور اولږيدلو، نو هغه دا حركت اوكه، چه هغه تاسو اوليدلو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم هغه معاف كړلو. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او دَ حضورؐ اصحابوؓ به مشركين او اهل كتاب معاف كول ځنګه چه اللّٰه تعالٰي هغوي ته حكم وركړلو، او په تكليف به ئے صبر كولو. اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: ولتسمعن من الذين اوتوا الكتٰب الخ. بل ځائے اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: ودّ كثير من اهل الكتٰب الخ. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم به دَ اللّٰه دَ حكم مطابق هغوي برابر معاف كول، تردے چه دَ جهاد حكم وركړے شو. كوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم بدر كښې جنګ اوكه، نو اللّٰه تعالٰي دَ هغے جنګ په ذريعه ډير لوئے لوئے كفار او دَ قريشو سرداران قتل كړل. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او اصحاب كاميابۍ او مال غنيمت سره واپس شو. هغوي سره لوئے لوئے كفار او دَ قريشو سرداران قيد كښې راغلل ابن ابي بن سلول او دَ هغه بُت پرستو مُشركو ملګرو اووے، چه دا، امر (يعني اسلام) غالب راغے. په

عَـبَـدَةِ الْاَوْثَـانِ هٰذَا اَمْـرٌ قَدْ تَوَجَّهَ فَبَايَعُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاَسْلَمُوْا.

دے وجه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه په اسلام بيعت اوكړئے. نو هغه خلق (په ظاهره) مسلمانان شول.

۱۱۴۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عَبَّاسِ بْنِ عَبْدُ الْمُطَّلِبِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ نَفَعْتَ اَبَا طَالِبٍ بِشَيْءٍ فَاِنَّهٗ كَانَ يَحُوْطُكَ وَ يَغْضَبُ لَكَ قَالَ نَعَمْ هُوَ فِيْ ضَحْضَاحٍ مِنْ نَّارٍ لَوْلَا اَنَا لَكَانَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ.

۱۱۴۰ : موسي بن اسمعيل. ابو عوانه. عبدالملک. عبداللّٰه بن حارث بن نوفل. عباس بن مطلب نه روايت كوي. ذَ هغه بيان دے. ما عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' آيا تاسوٌ ابوطالب ته څۀ هم فائده اورسوله. هغه به ستاسوٌ حفاظت كولو' او ستاسو ذَ پاره به ئے په نورو غُصّه كوله. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل' او. هغه جهنم كښې كمے كهرائي باندے دے. كه زۀ نه وے' نو هغه به ذَ جهنم ذَ ټولونه لاندے حصه كښې وو.

بَـابُ ۶۶۷ : اَلْـمَـعَـارِيْـضُ مَنْدُوْحَةٌ عَنِ الْكَذِبِ وَ قَالَ اِسْحٰقُ سَمِعْتُ اَنَسًا مَّاتَ ابْنٌ لِاَبِيْ طَلْحَةَ فَقَالَ كَيْفَ الْغُلَامُ قَالَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ هَدَا نَفْسُهٗ وَ اَرْجُوْا اَنْ يَكُوْنَ قَدِ اسْتَرَاحَ وَ ظَنَّ اَنَّهَا صَادِقَةٌ.

باب۶۶۷ : تصريح سره خبره نه كول دروغو كښې داخل نه دي. او' اسحٰق اووے' ما ذَ' انسؓ نه واوريدل' ذَ' ابو طلحه يو ځوئے مړ شولو. ابو طلحه تپوس اوكه هلک څنګه دے. اُم سليمٌ جواب وركۀ هغه په آرام دے. او زۀ ګُمان كوم' چه هغه راحت بيامُند' ابوطلحهؓ ګمان اوكه' چه اُم سليم ټيک وائي.

۱۱۴۱ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ ثَابِتِ الْبُنَانِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَسِيْرٍ لَّهٗ فَحَدَا الْحَادِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْفُقْ يَا اَنْجَشَةُ وَيْحَكَ بِالْقَوَارِيْرِ.

۱۱۴۱ : آدم. شعبه. ثابت بناني. حضرت انس بن مالک نه روايت كوي' ذَ هغه بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم يو سفر كښې وو' شړونكي اُوښان تيزي سره شړل' نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل. اے انجشه' رو' رو شړه. دا شيشے (مراد بيبيانے) په احتياط بوځه.

۱۱۴۲ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ

۱۱۴۲ : سُليمان بن حرب. حماد. ثابت. حضرت انسؓ او ايوب. ابو قلابه. حضرت انسؓ

اَنَسٍ وَ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ سَفَرٍ وَّ كَانَ غُلَامٌ يَحْدُوْبِهِنَّ يُقَالُ لَهُ اَنْجَشَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُوَيْدَكَ يَا اَنْجَشَةُ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيْرِ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ يَعْنِي النِّسَآءِ.

نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم يو سفر كښې وو. او يو غلام حُدي خواني سره اُوښان شړل. ذ هغه نوم انجشه وو، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل. اے انجشه، په قلار قلار ځه. دا شيشے دي. او ذ، ابو قلابه بيان دے ذ شيشے نه مراد زَنانه وے.

۱۱۴۳ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ فَزَعٌ فَرَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِاَبِيْ طَلْحَةَ فَقَالَ مَا رَاَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَّ اِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا.

۱۱۴۳ : مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. يو ځل ذ مدينے خلق ويرے واخستل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ، ابو طلحهؓ په اَس سور شولو. او واپس راغے ، وے فرمائيل، مونږ ته هيڅ په نظر رانغلل اووے فرمائيل چه مونږه دا اَس د درياب غوندے تيز بيامُندو.

باب ۲۶۸ : قَوْلِ الرَّجُلِ لِشَيْءٍ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَّهُوَ يَنْوِيْ اَنَّهُ لَيْسَ بِحَقٍّ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْقَبْرَيْنِ يُعَذَّبَانِ بِلَا كَبِيْرٍ وَ اِنَّهُ لَكَبِيْرٌ.

باب ۲۶۸ : ذ، يو سړي دا وئيل چه آيا دا ځيز نه دے، او دے نه مراد دا وي چه آيا دا واقعه نۀ ده. او ابن عباسؓ اووئيل چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ذ دوه قبر والؤ په حق كښې اوفرمائيل ځۀ لويه ګناه كښې عذابولے نشي او هغه لويه ګناه ده.

۱۱۴۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيْدَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ عُرْوَةَ اَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ يَقُوْلُ قَالَتْ عَائِشَةُ سَاَلَ اُنَاسٌ رَّسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۱۴۴ : محمد بن سلام. مخلد بن يزيد. ابن جريج. ابن شهاب. يحيٰي بن عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے، ځنے خلقو ذ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه ذ كاهنانو متعلق تپوس اوكه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل، دا هيڅ ځيز نۀ دے. خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه كله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسُوْ بِشَيْءٍ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاِنَّهُمْ يُحَدِّثُوْنَ اَحْيَانًا بِالشَّيْءِ يَكُوْنُ حَقًّا فَقَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ فَيَقُرُّهَا فِيْ اُذُنِ وَلِيِّهٖ قَرَّ الدَّجَاجَةِ فَيَخْلِطُوْنَ فِيْهَا اَكْثَرَ مِنْ مِّائَةِ كَذْبَةٍ.

هغوي داسې خبرې اوکړې، چه صحیح وي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم ورته اوفرمائیل، دا خبر، ذ خدائې ذ طرف نه وي. هغه شیطان راوتښتوي او، ذ خپل دوست په غوږ کښې ئې اوغږ خوي، څنګه چه یو چرګ ذ بل چرګ غوږ ته آواز اورسوي. بیا هغه کاهن هغې کښې سل دروغ (ذ خان نه) زیات کړي.

باب ۶۶۹ : رَفْعِ الْبَصَرِ اِلَى السَّمَاءِ. وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اَفَلَا يَنْظُرُوْنَ اِلَى الْاِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ وَ اِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ وَ قَالَ اَيُّوْبُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهٗ اِلَى السَّمَاءِ.

باب ۶۶۹ : آسمان طر ته ذ نظر اوچتولو بیان. او ذ اللّٰه تعالٰي قول، آیا هغوي اُوبښ ته نه ګوري، چه څنګه پیدا کړې شوې دې، او آسمان طرف ته چه څنګه اوچت کړې شوې دې. او، ایوب ذ، ابن ابي ملیکه نه، هغه ذ بي بي عائشې نه روایت اوکه، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم خپل سر مبارک آسمان طرف ته اوچت کړلو.

۱۱۴۵ : حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ يَقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ ثُمَّ فَتَرَ عَنِّي الْوَحْيُ فَبَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِّنَ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِيْ اِلَى السَّمَاءِ فَاِذَا الْمَلَكُ الَّذِيْ جَاءَ نِيْ بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلٰى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ.

۱۱۴۵ : ابن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب، ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، ذ هغه بیان دې. ما ذ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه واوریدل. بیا په ما وحي راتلل بند شو. یو ځل زهٔ تلم، نو ما ذ، آسمان (غاړې) نه یو آواز واوریدلو، چه آسمان ته م نظر اوچت که، نو هغه فریښته په نظر راغله، چه ما ته حراء (غار) کښې راغلې وه. ذ آسمان او مزکې مینځ کښې په کُرسۍ ناسته وه.

۱۱۴۶ : حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ

۱۱۴۶ : ابن ابي مریم، مُحمّد بن جعفر،

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ شَرِيْكٌ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ فِيْ بَيْتِ مَيْمُوْنَةَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ اَوْ بَعْضُهُ قَعَدَ فَنَظَرَ اِلَى السَّمَآءِ فَقَرَاَ اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى الْاَلْبَابِ.

شريک، کريب، ابن عباسؓ نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. زهٔ يو شپه بي بي ميمونے کره پاتے شوم حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورسره وو. کوم وخت چه دَ شپے آخري دريمه حصه پاتے شوه، نو حضورؐ کيناستو او آسمان طرف ته ئے اوکتل، او دا آيت ئے او لوست "بيشکه دَ آسمانونو او مزکے پيدا کولو او دَ شپے او ورځے په بدليدو کښ عقل والؤ دَ پاره نښے دي.

## باب ٦٧٠: نَكْتِ الْعُوْدِ فِي الْمَآءِ وَالطِّيْنِ.

## باب ٦٧٠: اوبو او خاوره کښ، لرګي وهلو بيان.

۱۱۴۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَائِطٍ مِّنْ حِيْطَانِ الْمَدِيْنَةِ وَفِيْ يَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُوْدٌ يَّضْرِبُ بِهٖ بَيْنَ الْمَآءِ وَالطِّيْنِ فَجَاءَ رَجُلٌ يَّسْتَفْتِحُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَذَهَبْتُ فَاِذَا اَبُوْ بَكْرٍ فَفَتَحْتُ لَهٗ وَبَشَّرْتُهٗ بِالْجَنَّةِ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ

۱۱۴۷: مُسدّد، يحيٰي، عُثمان بن غياث، ابو عثمان، ابو موسٰي نه روايت کوي، هغه دَ مدينے يو باغ کښ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره وو، او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم لاس کښ يو لرګے وو، چه هغه ئے دَ اوبو او ..تے مينځ کښ وهلو. يو سړے راغے؛ او دروازه پرانستلو دَ پاره ئے اووے، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، دروازه لرے کړه، او هغه ته دَ جنّت خوشخبري ورکړه. زهٔ چه دروازے له ورغلم، نو څه ګورم، چه هغه حضرت ابوبکرؓ وو، ما هغه دَ پاره دروازه لرے کړه، او دَ جنّت خوشخبري مِ ورکړله. بيا دوئم سړي دروازے پرانستلو دَ پاره اووے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، دروازه ورته لرے کړه او دَ جنت خوشخبري ورکړه څه ګورم چه هغه حضرت عمرؓ وو، هغه ته مِ دروازه لرے کړه، او دَ جنت خوشخبري مِ ورکړله. بيا يو سړي دروازه پرانستو دَ پاره اووے، دغه وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلم تکيه وهلے وه.

رَجُلٌ اٰخَرُ وَ كَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ افْتَحْ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلٰى بَلْوٰى تُصِيْبُهُ اَوْ تَكُوْنُ فَذَهَبْتُ فَاِذَا عُثْمَانُ فَفَتَحْتُ لَهٗ وَ بَشَّرْتُهٗ بِالْجَنَّةِ فَاَخْبَرْتُهٗ بِالَّذِىْ قَالَ قَالَ اللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ.

حضور صلي الله عليه وسلم كيناستلو. اووے فرمائيل' لرے كړه' او دهٔ ته دَ جنت خوشخبري ور كړه' په هغے مصيبت چه دهٔ ته به رسي' ما اوليدل' چه هغه حضرت عثمان وو' ما' دروازه لرے كړله' هغه ته مِ دَ جنت خوشخبري ور كړله. او هغه بيان مِ هم ورته اوكه' كوم چه حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے وو. هغه اووے' الله مددګار دے.

بَاب ۱۷۱: الرَّجُلِ يَنْكُتُ الشَّيْئَ بِيَدِهٖ فِى الْاَرْضِ.

باب ۱۷۱: خپل لاس سره زمكه كښ دَ څه څيز دَ ګرؤلو بيان.

۱۱۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِىْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ وَ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِىْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ جَنَازَةٍ فَجَعَلَ يَنْكُتُ الْاَرْضَ بِعُوْدٍ فَقَالَ لَيْسَ مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا وَقَدْ فُرِغَ مِنْ مَقْعَدِهٖ مِنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَقَالُوْا اَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى الْاٰيَةَ.

۱۱۴۸: محمّد بن بشار' ابن ابي عدي' شعبه' سُليمان' منصور' سعد بن عبيده' ابو عبدالرحمٰن سلمي' حضرت عليؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' مونږ يو جنازه كښ حضور صلي الله عليه وسلم سره وو. حضور صلي الله عليه وسلم زمكه يو لرګي سره ګروله. اووے فرمائيل' تاسو كښ دَ' هر سړي ټيكاونړه جنت او جهنّم (ليكلو) سره فراغت شوے دے. خلقو عرض اوكه' بيا دے مونږ ولے په دے بهروسه اونه كړو' حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل' عمل كوئے' ځكه چه هر سړي دَ پاره هغه څيز آسان كړے شوے دے' كوم دَ پاره چه پيدا كړے شوے دے. بيائے آيت: فاما من اعطى واتقى الخ اولوستلو.

بَاب ۱۷۲: التَّكْبِيْرِ وَالتَّسْبِيْحِ عِنْدَ التَّعَجُّبِ.

باب ۱۷۲: دَ تعجّب په وخت دَ تكبير او تسبيح وئيلو بيان.

۱۱۴۹: حَدَّثَنَا اَبُوا الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَتْنِىْ هِنْدُ بِنْتُ الْحَارِثِ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ قَالَتْ

۱۱۴۹: ابو اليمان' شعيب' زهري' هند بنتِ حارث' بي بي اُمِ سلمهؓ نه روايت كوي. دَ هغے بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم دَ خوب نه

اسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَاذَا أُنْزِلَ مِنَ الْخَزَائِنِ وَ مَاذَا أُنْزِلَ مِنَ الْفِتَنِ مَنْ يُوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجَرِ يُرِيْدُ بِهٖ أَزْوَاجَهُ حَتّٰى يُصَلِّيْنَ رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الْاٰخِرَةِ وَ قَالَ ابْنُ أَبِيْ ثَوْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنْ عُمَرَ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَّقْتَ نِسَاءَكَ قَالَ لَا قُلْتُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ.

بيدار شو، نو وې فرمائيل، سُبحان الله، څه څه خزانې او څه څه فِتنې نازلې شوې دي، څوک شته، چه دا حجرې والـه راپاسوي (دې نـه مـراد دَ حضورؐ بيبيانې وې) چـه مونـځ اوكـړي. دُنيـا كـښې ډيرې اغوستونكې بـه آخرت كښې بربنډې وي. او ابن ابي ثور، ابن عباسؓ نـه هغـه دَ حضرت عمرؓ نه نقل اوكه. دَ حضرت عمرؓ بيان دې، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكه، چه آيا تاسوٌ خپلو بيبيانو له طلاق وركه. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، نه. ما، اووې، الله اكبر.

۱۱۵۰: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزُوْرُهُ وَ هُوَ مُعْتَكِفٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي الْعَشْرِ الْغَوَابِرِ مِنْ رَمَضَانَ فَتَحَدَّثَتْ عِنْدَهُ سَاعَةً مِنَ الْعِشَاءِ ثُمَّ قَامَتْ تَنْقَلِبُ فَقَامَ مَعَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْلِبُهَا حَتّٰى إِذَا بَلَغَتْ بَابَ الْمَسْجِدِ الَّذِيْ عِنْدَ مَسْكَنِ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۱۵۰: ابـو اليمان، شعيب، زهري (دوئم سند) اسماعيل، برادر اسماعيل، سُليمان، مُحمّد بن ابي عتيق، ابن شهاب، علي بن حسين نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې. صفيهؓ بنت حي دَ حضور صلي الله عليه وسلم تبر، هغه ته بيان اوكه، چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملاقات دَ پاره راغله. هغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم جمات كښ دَ رمضان آخري عشرې كښ اعتكاف كښ وو. او حضور صلي الله عليه وآلهٖ وسلم سره ئې دَ شپې څه وخته پورې خبرې كولې. بيا تلو دَ پاره اودريدله. نو نبي صلي الله عليه وآلهٖ وسلم دَ هغې دَ رسوولو دَ پاره اُودريدلو، تر دې چه كوم وخت دَ جماعت هغې دروازې ته اُورسيده. چه دَ، اُم سلمهؓ دَ نبي صلي الله عليه وآلهٖ وسلم دَ تبر مكان سره وه نو دوه انصار، دَ حضور صلي الله عليه وآلهٖ وسلم خوا كښ تير شول، او دواړو حضور صلي الله عليه وآلهٖ وسلم ته سلام

مَرَّ بِهِمَا رَجُلاَنِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَسَلَّمَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَفَذَا فَقَالَ لَهُمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكُمَا اِنَّمَا هِيَ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ قَالاَ سُبْحَانَ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ كَبُرَ عَلَيْهِمَا قَالَ اِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنِ ابْنِ اٰدَمَ مَبْلَغَ الدَّمِ وَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ يَقْذِفَ فِيْ قُلُوْبِكُمَا.

اوکړلو. بيا دواړه روان شول. رسول الله صلي الله عليه وآله وسلم هغې دواړو ته او فرمائيل. لږ ايسار شئ. دا صفيهؓ بنت حيّ (حُما بي بي) ده. هغې دواړو اووې. سبحان الله، يا رسول الله، او په هغې دواړو دا خبره ډيره سخته شان تيره شوه حضور صلي الله عليه وآله وسلم ورته او فرمائيل شيطان د بني آدم په رګونو کښې دَ وينې په شان ګردش کوي. په دې وجه ماته خيال پيدا شو چه شيطان ستاسو زړهٔ کښې چرته وسوسه پيدا نه کړي.

## بَاب ٦٧٣ : النَّهْيِ عَنِ الْخَذْفِ.

باب ٦٧٣ : دَ کنکر (قتکانړي يا ګټکې) دَ ويشتلو دَ ممانعت بيان.

**۱۱۵۱** : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ صُهْبَانَ الْاَزْدِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلِ الْمُزَنِيِّ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَذْفِ وَ قَالَ اِنَّهُ لاَ يَقْتُلُ الصَّيْدَ وَ لاَ يَنْكَأُ الْعَدُوَّ وَ اِنَّهُ يَفْقَأُ الْعَيْنَ وَ يَكْسِرُ السِّنَّ.

**۱۱۵۱** : آدم، شعبه، قتاده، عقبه بن صهبان ازدي، عبدالله بن مغفل مزني نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې. حضور صلي الله عليه وآله وسلم دَ کنکر ويشتلو نه منع فرمانيلې ده، او وې فرمائيل، چه دا ښکار نشي ويشتلې. او نه دُشمن ته تکليف رسولې شي. که ستر که پرې اولږي، نو ستر که اوچوي او که غاښ پرې اولږي، نو غاښ مات کړي.

## بَاب ٦٧٤ : اَلْحَمْدِ لِلْعَاطِسِ.

باب ٦٧٤ : دَ انتوشي کونکي دَ الحمد لله وئيلو بيان.

**۱۱۵۲** : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ عَطَسَ رَجُلاَنِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَمَّتَ اَحَدَهُمَا وَ لَمْ يُشَمِّتِ الْاٰخَرَ فَقِيْلَ لَهُ فَقَالَ هٰذَا حَمِدَ اللّٰهَ وَ هٰذَا لَمْ يَحْمَدِ اللّٰهَ.

**۱۱۵۲** : محمد بن کثير، سفيان، سليمان انس بن مالکؓ نه روايت کوي. نبي صلي الله عليه وآله وسلم له دوو سړو نه انتوشې واوريدو هغوي کښې يو کس ته حضور صلي الله عليه وآله وسلم يرحمک الله اووې. او دويم ته ئې اونهٔ وې. حضور صلي الله عليه وآله وسلم نه چا دَ دې تپوس اوکه. نو ورته ئې او فرمائيل هغه دَ الله حمد (ثنا) اووې، او دويم دَ الله حمد، او نه وې.

**باب ۶۷۵ : تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ اِذَا حَمِدَ اللّٰهَ.**

**باب ۶۷۵ : انتهوشے كونكے كه الحمد لله اووائي، نو هغهٔ له جواب وركول پكار دي.**

۱۱۵۳ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعٰوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَّ نَهَانَا عَنْ سَبْعٍ اَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَازَةِ وَ تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَ اِجَابَةِ الدَّاعِيْ وَ رَدِّ السَّلَامِ وَ نَصْرِ الْمَظْلُوْمِ وَ اِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَ نَهَانَا عَنْ سَبْعٍ عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ اَوْ قَالَ حَلْقَةِ الذَّهَبِ وَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالسُّنْدُسِ وَالْمَيَاثِرِ.

۱۱۵۳ : سليمان بن حرب، شعبه، اشعث بن سليم، معاويه بن سويد بن مقرن، حضرت براءؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، مونږ خلقو ته حضور صلي اللّٰه عليه واٰلهٖ وسلم دَ اوو څيزونو حكم اوكړلو. او دَ اوو څيزونو نه منع كړلو. مونږ ته ئے دَ مريض دَ پښتنے كولو، جنازے پسے دَ تلو، انتهوشي كونكي ته دَ جواب وركولو، دَ، دَعوت وركونكي د، دعوت قبلولو، دَ سلام جواب وركولو. دَ مظلوم دَ مدد او دَ قسم پوره كولو حكم راكړلو. او دَ اوو څيزونو نه ئے منع كړلو. دَ سرو دَ ګوتے دَ سرو دَ څلي (راوي ته شك دے) حرير، ديباج، سندس او مياثر (نه منع او فرمائيله).

**باب ۶۷۶ : مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْعُطَاسِ وَ مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّثَاوُبِ.**

**باب ۶۷۶ : انتهوشے ښهٔ دے او اسويلے بد دے.**

۱۱۵۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمُقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَ يَكْرَهُ التَّثَاوُبَ فَاِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ فَحَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ سَمِعَهُ اَنْ يُّشَمِّتَهُ وَ اَمَّا التَّثَاوُبَ فَاِنَّمَا هُوَ مِنَ الشَّيْطَانِ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ فَاِذَا قَالَ هَاضَحِكَ

۱۱۵۴ : آدم بن ابي اياس، ابن ابي ذئب، سعيد بقري، دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت ابو هريرهؓ نه هغه دَ حضور صلي اللّٰه عليه واٰلهٖ وسلم نه روايت كوي اللّٰه تعالي انتهوشے خوښوي، او اسويلے كول (جمائی لینا) نه خوښوي. كوم وخت چه يو سړے انتهوشے اوكړي. او الحمد اللّٰه اووائي، نو هر مسلمان چه هغه واوري، په هغه واجب دي، چه دَ هغے جواب وركړي (يعني يرحمك اللّٰه اووائي) او اسويلے كول دَ شيطان دَ طرف نه دي، څو پورے چه ممكنه وي، هغه دے بند كړي، هر كله چه يو سړے، دَ ها آواز اوكاږي، نو هغے سره شيطان

مِنْهُ الشَّيْطَانُ.

بَاب ٦٧٧ : إِذَا عَطَسَ كَيْفَ يُشَمَّتُ.

١١٥٥ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دِينَارٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ وَلْيَقُلْ لَهُ أَخُوهُ أَوْ صَاحِبُهُ يَرْحَمُكَ اللهُ فَإِذَا قَالَ لَهُ يَرْحَمُكَ اللهُ فَلْيَقُلْ يَهْدِيكُمُ اللهُ وَ يُصْلِحُ بَالَكُمْ.

بَاب ٦٧٨ : لَا يُشَمَّتُ الْعَاطِسُ إِذَا لَمْ يَحْمَدِ اللهَ.

١١٥٦ : حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَ لَمْ يُشَمِّتِ الْآخَرَ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللهِ شَمَّتَّ هٰذَا وَ لَمْ تُشَمِّتْنِي قَالَ إِنَّ هٰذَا حَمِدَ اللهَ وَ لَمْ تَحْمَدِ اللهَ.

١١٥٧ : إِذَا تَثَاوَبَ فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيهِ.

خاندي.

باب ٦٧٧ : ذ انتهوشي جواب څنګه ورکړي.

١١٥٥ : مالک بن اسمعيل، عبدالعزيز بن ابي سلمه، عبدالله بن دينار، ابو صالح حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه واله وسلم او فرمائيل. کله چه تاسو کښې څوک انتهوشے اوکړي، نو الحمد الله دے اووائي، او ذ هغه ورور يا ملګرے دے يرحمک الله اووائي. او کوم وخت چه هغه يرحمک الله اووائي. نو انتهوشے کونکے دے يهديکم الله و يصلح بالکم (الله تعالٰي دے تا ته هدايت اوکړي، او ستا ذ زړهٔ دے اصلاح اوکړي) اووائي.

باب ٦٧٨ : انتهوشي کونکي له جواب نه دي ورکول پکار، کهٔ هغه الحمد لله اونهٔ وائي.

١١٥٦ : آدم بن ابي اياس، شعبه، سليمان تيمي، حضرت انسؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه واله وسلم سره دوو سړو له انتهوشے راغے حضور صلي الله عليه واله وسلم يو سړي ته د، انتهوشي جواب ورکړلو. ليکن دويم سړي ته ئے د، انتهوشي جواب ورنه کړلو هغوي کښې يو سړي ترے تپوس اوکړلو، يا رسول الله صلي الله عليه واله وسلم، تاسو ذ هغه د، انتهوشي جواب ورکړلو، ليکن څما د، انتهوشي جواب مورانه کړلو. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، هغه الحمد لله اووے، او تا اونه وئيلے.

باب ١١٥٧ : هر کله چه اسويلے راشي، نو په خپله خوله ذ، لاس ايښودو بيان (په خوله دے ګس لاس اړدي).

١١٥٨: حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيِّ حَدَّثَنَا بْنُ اَبِیْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِیِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَ يَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ فَاِذَا عَطَسَ اَحَدُكُمْ وَ حَمِدَ اللّٰهَ كَانَ حَقًّا عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ سَمِعَهُ اَنْ يَقُوْلَ لَهُ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ وَ اَمَّا التَّثَاؤُبُ فَاِنَّمَا هُوَ مِنَ الشَّيْطٰنِ فَاِذَا تَثَاؤَبَ اَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ فَاِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا تَثَاؤَبَ ضَحِكَ مِنْهُ الشَّيْطَانُ.

١١٥٨: عاصم بن علي، ابن ابي ذئب، سعيد مقبري، ذ مقبري پلار، ابو هريرهؓ نبي صلي الله عليه واله وسلم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه واله وسلم او فرمائيل الله انتوشے خوښوي، او اسويلے كول نه خوښوي هر كله چه تاسو كښې يو سړي له انتوشے راشي، او هغه الحمد لله اووائي، نو په هر اوريدونكي مسلمان واجب دي، چه هغه ته يرحمك الله اووائي. او اسويلے كول ذ شيطان ذ طرف نه دي. هر كله چه تاسو كښې څوك اسويلے كوي. نو دے سره شيطان خاندي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

# كِتَابُ الْاِسْتِيْذَان

# دَ اجازت اخستو بيان

## باب ٦٧٩:

## باب ٦٧٩: ذ سلام ذ ابتدا بيان.

١١٥٩: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مُعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللّٰهُ اٰدَمَ عَلٰى صُوْرَتِهِ طُوْلُهُ سِتُّوْنَ ذِرَاعًا فَلَمَّا خَلَقَهُ قَالَ اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلٰى اُولٰٓئِكَ النَّفَرِ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ جُلُوْسٍ فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّوْنَكَ فَاِنَّهَا تَحِيَّتُكَ وَ تَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَالُوْا السَّلَامُ عَلَيْكَ

١١٥٩: يحيي بن جعفر، عبدالرزاق، معمر، همام، حضرت ابو هريره، نبي صلي الله عليه واله وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه واله وسلم او فرمائيل الله تعالي آدم عليه السلام ذ هغه په صورت پيدا كه. ذ هغه اوږدوالے (لمبائي) شپيته ګزه وو كوم وخت چه الله تعالي هغه پيدا كړلو. نو ورته ئے ونيلے ته لاړ شه، او ذ ملائكو دغه جماعت ته چه ناست دے سلام اوكړه. او واوره، چه هغوي څه جواب ذركوي دغه به ستا او ستا ذ اولاد سلام وي. نو هغه ورته اووے السلام عليكم. فرښتو ورته اووے السلام عليك و رحمة الله. هغے

وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ فَزَادُوْهُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ فَكُلُّ مَنْ يَّدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلٰى صُوْرَةِ اٰدَمَ فَلَمْ يَزَلِ الْخَلْقُ يَنْقُصُ بَعْدَ حَتّٰى الْاٰنَ.

فربنتو ورسره ذَ رحمة الله لفظ زيات كړلو. هر هغه سړے چه جنت كښې داخليږي، هغه به ذَ ادم عليه السلام په صورت وي. ذَ هغې وخت نه اوسه پورے ذَ سړو قد كښې كمے كيږي.

باب ۶۸۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَ تُسَلِّمُوْا عَلٰى اَهْلِهَا ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَا اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَ اِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَ مَا تَكْتُمُوْنَ. وَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ اَبِي الْحَسَنِ لِلْحَسَنِ اِنَّ نِسَآءَ الْعَجَمِ يَكْشِفْنَ صُدُوْرَهُنَّ وَ رُؤُوْسَهُنَّ قَالَ اصْرِفْ بَصَرَكَ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَ يَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ وَ قَالَ قَتَادَةُ عَمَّا لَا يَحِلُّ لَهُمْ وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ مِنَ النَّظَرِ اِلٰى مَا نُهِىَ عَنْهُ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ

باب ۶۸۰: ذَ الله تعالٰي قول اے ايمان والو، ذَ خپلو كورونو نه علاوه ذَ بل چا كور كښې مه داخليږئ، ځو پورے چه تاسو ترے اجازت وانخلئ، او ذَ كور اوسيدونكو ته سلام اونه كړئ دا ستاسو ذَ پاره بهتره ده. شايد چه تاسو نصيحت واخلئ، كه هغه مكان كښې تاسو ځوک بيانه مومئ نومه داخليږئ په كښې، ځو پورے چه تاسو ته اجازت درنه كړے شي. او كه تاسو ته اووئيلے شي، چه تاسو واپس شئ، نو واپس لاړ شئ، دا ستاسو د پاره زياته ذَ پاكيزګي خبره ده. او الله تعالٰي په هغې څيزونو پوهيدونكے دے كوم چه تاسو كوئ، په تاسو دے خبره كښې هيڅ حرج نشته چه غير اباد مكانونو كښې داخل شئ، چه هغې كښې سامان وي ستاسو او الله تعالٰي په هغه څيز پوهيږي، چه تاسو ئے ظاهري طور سره كوئ، او څۀ چه پټوئ. او سعيد بن ابي الحسن، حسن ته اُووے، عجمي ښځې خپل سر او سينه پرانستے لري، نو هغه ورته اُووے، خپل نظر واړوه، الله بزرګ و برتر فرمائي. مؤمنانو ته اُووايه چه خپل نظرونه خكته ساتي، او ذَ خپلو شرمګاهونو حفاظت كوئ. قتاده اُووے دا حكم ذَ هغې ښځو ذَ پاره دے چه حلالے نه دي (او ذَ الله تعالٰي قول) او مؤمنو ښځو ته اُووايه چه خپل نظرونه خكته ساتي، او ذَ خپلو شرم ګناهونو حفاظت كوئ. خائنة الاعين" معني دا دي، چه هغې څيز طرف ته او ګورئ ذَ

فِي النَّظَرِ اِلَى الَّتِيْ لَمْ تَحِضْنَ مِنَ النِّسَآءِ لَا يَصْلُحُ النَّظَرُ اِلٰى شَيْءٍ مِنْهُنَّ مِمَّنْ يُشْتَهٰى النَّظَرُ اِلَيْهِ وَ اِنْ كَانَتْ صَغِيْرَةً وَ كَرِهَ عَطَاءُ النَّظَرَ اِلَى الْجَوَارِيْ يُبَعْنَ بِمَكَّةَ اِلَّا اَنْ يُرِيْدَ اَنْ يُشْتَرِيَ.

کوم نه چه منع کړے کړے شوي دي. او دَ پيغلو جينکو طرف ته دَ کتلو متعلق زهري اووے هغوي طرف ته کتل درست نه دي که هغوي ته دَ کتلو خواهش وي. اګر که هغه کم عمره وي. او عطاء، وينزو طرف ته کتل مکروه اوګنړل، چه خرڅ دَ پاره به دَمکے بازارونو ته راتلے، خو دا چه دَ هغوي دَ خريدارئ اراده وي.

٦٠ ١ ١: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍ قَالَ اَرْدَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَضْلَ بْنَ عَبَّاسٍ يَوْمَ النَّحْرِ خَلْفَهُ عَلٰى عَجُزِ رَاحِلَتِهٖ وَ كَانَ الْفَضْلُ رَجُلًا وَّ ضِيْئًا فَوَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنَّاسِ يُفْتِيْهِمْ وَ اَقْبَلَتِ امْرَاَةٌ مِنْ خَثْعَمَ وَضِيْئَةٌ تَسْتَفْتِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَفِقَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ اِلَيْهَا وَ اَعْجَبَهٗ حُسْنُهَا فَالْتَفَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْفَضْلُ يَنْظُرُ اِلَيْهَا فَاَخْلَفَ بِيَدِهٖ فَاَخَذَ بِذَقَنِ الْفَضْلِ فَعَدَلَ وَجْهَهٗ عَنِ النَّظَرِ اِلَيْهَا فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ فِي الْحَجِّ عَلٰى عِبَادِهٖ اَدْرَكَتْ اَبِيْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَّسْتَوِيَ عَلَى الرَّاحِلَةِ فَهَلْ يَقْضِيْ عَنْهُ اَنْ

٦٠ ١ ١: ابو اليمان، شعيب، زهري، سليمان بن يسار، عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت کوي دَ هغه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم فضل بن عباسؓ د نحر (قرباني) په ورځ خان پسے دَ خپلے سورلئ په شا کينولو، او فضل يو خوبصورته سړے وو. حضور صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم خلقو ته دَ څه مسائيلو ښودلو دَ پاره ايسار شولو، نو دَ قبيلـه خثعم يوه ښځه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم نه دَ څه مسئلے تپوس کولو دَ پاره راغلـه، نو فضل هغے ښځے طرف ته کتل حضور صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم خپل لاس مبارک دَ شا طرف نه که، دَ فضل زنه (ٹھوڑی) ئے اونيوله، او دَ هغے ښځے طرف نه ئے ورله مخ واړولو (مطلب دا چه هغے ته دے نهٔ ګوري) هغے عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، اللّٰه چه خپلو بنديانو باندے حج فرض کړے دے، هغهٔ خما په پلار هم فرض شوے دے چه ډير بوډا دے، او په سورلئ نيغ نشي کيناستے که زهٔ دَ هغه دَ طرف نه حج اوکړم نو آيا دا به ادا شي. حضور صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم ورته او فرمائيل او (يا اللّٰه دَ حج دا لوئے نعمت خمونږ هم دَ ټولو مسلمانانو سره په بيا بيا نصيب

اَحُجَّ عَنْهُ قَالَ نَعَمْ.

کړے). اللّٰهم امين.

۱۱۶۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيَّاكُمْ وَالْجُلُوْسَ بِالطُّرُقَاتِ فَقَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا لَنَا مِنْ مَّجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيْهَا فَقَالَ اِذَا اَبَيْتُمْ اِلَّا الْمَجْلِسِ فَاَعْطُوا الطَّرِيْقَ حَقَّهُ قَالُوْا وَ مَا حَقُّ الطَّرِيْقِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ غَضُّ الْبَصَرِ وَ كَفُّ الْاَذٰى وَ رَدُّ السَّلَامِ وَالْاَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ.

۱۱۶۱ : عبداللّٰه بن محمد ابو عامر زهير، زيد بن اسلم، عطاء بن يسار، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي دَ هغه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وآلهٖ وسلم او فرمائيل تاسو لارو کښې دَ ناستے نه پرهيز اوکړئے خلقو عرض اوکه يا رسول اللّٰه مونږ خو يو بل سره دَ خبرو کولو دَ پاره دَ لارو نه سيوا بله څه چاره نشته. حضور صلي اللّٰه عليه وآلهٖ وسلم ورته او فرمائيل هر کله چه ستاسو ناسته ضروري وي نو لارے ته دَ هغے حق ادا کوئے. خلقو تپوس اوکه يا رسول اللّٰه دَ لارے حق څه دے حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل نظر خکته ساتل، تکليف دِ خبرونه بچ اُوسيدل، دَ سلام جواب ورکول، دَ ښو خبرو حکم ورکول، او دَ بدو خبرو نه منع کيدل.

باب ۶۸۱ : اَلسَّلَامُ اِسْمٌ مِنْ اَسْمَآءِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَا اَوْ رُدُّوْهَا.

باب ۶۸۱ : سلام دَ اللّٰه دَ نومونو نه يو نوم دے. او هر کله چه تاسو ته سلام اوکړے شي، نو دَ هغے نه بهتر طور سره جواب ورکوے، يا هغسے جواب ورکوے.

ف: سورة يٰسين دَ قرآن پاک زړهٔ دے او سلامٌ قولًا منْ ربّ الرّحيم: دَ سورة يٰسين زړهٔ دے، او سلام: دَ سلام قولًا من ربّ الرحيم زړهٔ دے. ځنے بزرګانو فرمائيلي دي چه سلام اسمِ اعظم دے ځوک چه هر فرض مونځ پسے د دے ورد (وظيفه) کوي انشاء اللّٰه تعالٰي دَ دواړو جهانو سلامتي به ئے نصيب شي. اللّٰه پاک دے دَ دے اسم مبارک په خاطر ځمونږ دَ ټولو په دواړه جهانه سلامتي نصيب کړي. اللّٰهم امين. (فقير محمد عباس)

۱۱۶۲ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا اِذَا صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى

۱۱۶۲ : عمر بن حفص، اعمش، شقيق عبداللّٰه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے کوم وخت چه به مونږ حضور صلي اللّٰه عليه وآلهٖ وسلم سره مونځ کولو نو وئيل به مو السلام علي اللّٰه قبل عِبَادهٖ (په اللّٰه دے دَ ټولو بنديانو نه مخکښ

اللّٰهِ قَبْلَ عِبَادِهٖ السَّلَامُ عَلٰى جِبْرِيْلَ السَّلَامُ عَلٰى مِيْكَائِيْلَ السَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ فَاِذَا جَلَسَ اَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهٗ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ فَاِنَّهٗ اِذَا قَالَ ذٰلِكَ اَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ صَالِحٍ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ ثُمَّ يَتَخَيَّرُ بَعْدُ مِنَ الْكَلَامِ مَا شَآءَ.

سلام وي) السلام علٰي جبريل' السلام علٰي ميكائيل' السلام علٰي فلان. كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه واٰلهٖ وسلم ذَ مانځه نه فارغ شو' نو مونږ خلقو ته متوجه شو. او وې فرمائيل چه اللّٰه خپله سلام دې. هر كله چه تاسو كښې څوک سرې مونځ كښې كيني نو وائي دې التحيات للّٰه والصلٰوت والطيبات السلام عليک ايّها النبّی و رحمة اللّٰه و بركاته السلام علينا و علٰى عباد اللّٰه الصالحين: هر كله چه ذَ عباد اللّٰه الصالحين: لفظ اووائي نو ټولو صالحانو بنديانو ته چه آسمان او په مزكه كښې دي. سلام اورسي: اشهد ان لّا الٰه الّا اللّٰه و اشهد انّ محمدًا عبده و رسوله: بيا ذَ دې ونيلو نه چه څه ئې خوښه وي دُعا دې اوغواړي.

## بَاب ٧٨٢ : تَسْلِيْمِ الْقَلِيْلِ عَلَى الْكَثِيْرِ.

## باب ٧٨٢ : ذَكم تعداد' زيات تعداد ته سلام كول.

١١٦٣ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُسَلِّمُ الصَّغِيْرُ عَلَى الْكَبِيْرِ وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيْلُ عَلَى الْكَثِيْرِ.

١١٦٣ : محمد بن مقاتل ابو الحسن' عبداللّٰه' معمر' همام بن منبه' حضرت ابو هريرهؓ حضور صلي اللّٰه عليه واٰلهٖ وسلم نه روايت كوي رسول اللّٰه مبارک او فرمائيل وړوكے دې لوئے ته' تيريدونكے دې ناست ته' او كم تعداد واله دې د زيات تعداد والو ته سلام كوي.

١١٦٤ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زِيَادٌ اَنَّهٗ سَمِعَ ثَابِتًا مَّوْلٰى عَبْدِ

١١٦٤ : محمد' مخلد' ابن جريج زياد' ثابت (ذَ عبدالرحمٰن بن زيد آزاد كرده غلام) حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي ذَ هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه

الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِيْ وَالْمَاشِيْ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيْلُ عَلَى الْكَثِيْرِ.

عليه وسلم او فرمائيل سور (سوار) دے پياده تلونكي ته او پياده تلونكے دے ناست ته، او كم تعداد واله دے زيات تعداد والو ته سلام كوي. (الله پاک دے زمونږ ډ ټولو ډ سلام. خيرات او بركات په دواړه جهانه نصيب كړي. اللّهم امين).

## باب ۶۸۳: تَسْلِيْمُ الْمَاشِيْ عَلَى الْقَاعِدِ.

## باب ۶۸۳: ډ پياده تلونكي، ناست ته سلام كول.

۱۱۶۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زِيَادٌ اَنَّ ثَابِتًا اَخْبَرَهُ وَ هُوَ مَوْلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِيْ وَالْمَاشِيْ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيْلُ عَلَى الْكَثِيْرِ.

۱۱۶۵: اسحاق بن ابراهيم، روح بن عباده ابن جريج، زياد، ثابت (ډ عبدالرحمٰن بن زيد ازاد كړده غلام) حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. ډ هغه بيان دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه واله وسلم اُفرمائيل، سوَر دے پيَدل ته، تلونكے دے ناست ته او كم تعداد دے زيات تعداد (يعني كم خلق دے زياتو خلقو يعني مسلمانانو ته) سلام كوي.

## باب ۶۸۴: تَسْلِيْمُ الصَّغِيْرِ عَلَى الْكَبِيْرِ. وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ الصَّغِيْرُ عَلَى الْكَبِيْرِ وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيْلُ عَلَى الْكَثِيْرِ.

## باب ۶۸۴: ډ، وړوكي لوئے ته سلام كول.

او ابراهيم په واسطه ډ، موسي بن عقبه، صفوان بن سليم، عطاء بن يسار، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ډ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، وړوكے دے لوئے ته، او تيريدونكے دے ناست ته، او كم تعداد واله دے زيات تعداد والو ته سلام كوي.

## باب ۶۸۵: اِفْشَاءِ السَّلَامِ.

## باب ۶۸۵: سلام رائج كول.

۱۱۶۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۱۱۶۶: قتيبه، جرير، شيباني، اشعث بن

جَرِيْرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ بِعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَ تَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَ نَصْرِ الضَّعِيْفِ وَ عَوْنِ الْمَظْلُوْمِ وَ إِفْشَاءِ السَّلَامِ وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَ نَهَى عَنِ الشُّرْبِ فِي الْفِضَّةِ وَ نَهَانَا عَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ وَ عَنْ رُكُوْبِ الْمَيَاثِرِ وَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْقَسِّيِّ وَالْإِسْتَبْرَقِ.

ابي الشعثاء معاويه بن سويد بن مقرن، حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. مونږ ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم دَ اوو خبرو حكم راكړه، دَ مريض پوښتنه كول، جنازے پسے تلل، انتوشي كونكي له جواب وركول، دَ كمزوري مدد كول، دَ مظلوم حمايت كول، سلام رائج كول، او قسم پوره كول، او دَ سپينو زرو لوښي كښې دَ څكلو نه ئے منع فرمائيلے ده، او دَ سرو زرو ګوتے دَ اچولو نه، او ميائر بانديے دَ سورلئ نه، ريښمينه كپړه اغستلونه، او ديباج او، قسي او استبرق اغستونه ئي منع فرمائيلے ده.

## باب ٦٨٦: السَّلَامِ لِلْمَعْرِفَةِ وَ غَيْرِ الْمَعْرِفَةِ.

## باب ٦٨٦: پيژندګلو يا نا پيژندګلو خلقو ته دَ سلام كولو بيان.

۱۱٦۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَ تَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَ عَلَى مَنْ لَمْ تَعْرِفْ.

۱۱٦۷: عبداللّٰه بن يوسف، ليث يزيد، ابوالخير، عبداللّٰه بن عمرو نه روايت كوي، يو سړي دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم نه تپوس اوكړه كوم اسلام بهتر دے حضور صلي اللّٰه عليه واٰله وسلم ورته او فرمائيل دا چه ته (په خلقو) طعام او خوروے او كړه ته ئے پيژنے يا نه ئے پيژنے ټولو ته سلام اوكړے.

**ف**: په خلقو خورول او سلام اچول بهترين اسلام دے. اللّٰه پاک دِ مونږ كښې دا دواړه صفات پيدا كړي. اللّهم امين.

۱۱٦۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ

۱۱٦۸: علي بن عبداللّٰه، سفيان، زهري، عطاء بن يزيد ليثي، ابو ايوبؓ نه روايت كوي. حضور صلي

عَطَاءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَّهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثٍ يَلْتَقِيَانِ فَيَصُدُّ هٰذَا وَ يَصُدُّ هٰذَا خَيْرُهُمَا الَّذِيْ يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ وَ ذَكَرَ سُفْيَانُ أَنَّهُ سَمِعَهُ مِنْهُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ.

الله عليه واله وسلم او فرمائيل هيڅ مسلمان د پاره جائز نه دي. چه تهل وروړ سره ترې ورځو پورې داسې ترک ملاقات اوکړي چه کله دواړه سره يو ځائې شي نو يو يو طرف ته او بل بل طرف ته مخ کړي. او دې دواړو کښې بهترهغه يو دې چه سلام کښې ابتدا اوکړي او د سفيان بيان دې. هغه د زهري نه دا درې ځله واوريدل.

## باب ۶۸۷ : أيَةِ الْحِجَابِ.

## باب ۶۸۷ : د پردې د آيت بيان.

۱۱۶۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَنَسُ ابْنُ مَالِكٍ أَنَّهُ كَانَ ابْنَ عَشْرِ سِنِيْنَ مَقْدَمَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَخَدَمْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرًا حَيَاتَهُ وَ كُنْتُ أَعْلَمَ النَّاسِ بِشَأْنِ الْحِجَابِ حِيْنَ أُنْزِلَ وَ قَدْ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَسْأَلُنِيْ عَنْهُ وَ كَانَ أَوَّلَ مَا نَزَلَ فِيْ مُبْتَنٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ أَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَا عَرُوْسًا فَدَعَا الْقَوْمَ فَأَصَابُوْا مِنَ الطَّعَامِ ثُمَّ خَرَجُوْا وَ بَقِيَ مِنْهُمْ رَهْطٌ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۱۶۹ : يحيى بن سليمان، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې، د رسول الله صلي الله عليه وسلم مدينې ته د تشريف راوړلو په وخت زه د لسو کالو ووم. او زه لس کاله د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت کښې پاتې شوم. د پردې د آيت متعلق د نورو خلقو نه زيات واقف يم. کوم وخت چه هغه نازل شولو او ابي ابن کعب رضی الله عنه ما نه د دې متعلق تپوس کړې وو. او دا آيت د ټولو نه مخکښې کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم ي بي زينب رضی الله عنها بنت جحش سره زفاف (د واده شپه تيرول) کړې وو. هغه وخت نازل شولو، سحر ته رسول الله صلي الله عليه وسلم د وادهٔ ځلمې وو. حضور صلي الله عليه وسلم خلقو له دعوت ورکه. خلقو چه دعوت اوخوړلو، نو لاړل، او څه خلق رسول الله صلي الله عليه وسلم سره پاتې شو، او ډير وخته پورې ايسار وو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اودريدلو، او زه هم اودريدم، د پاره د دې چه دا خلق لاړ شي. رسول الله صلي الله عليه وسلم لاړلو، او زه هم حضور صلي الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَطَالُوا الْمُكْثَ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ وَ خَرَجْتُ مَعَهُ كَيْ يَخْرُجُوا فَمَشٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَشَيْتُ مَعَهُ حَتّٰى جَآءَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ ظَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَ رَجَعْتُ مَعَهُ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى زَيْنَبَ فَاِذَا هُمْ جُلُوْسٌ لَمْ يَتَفَرَّقُوا فَرَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجَعْتُ مَعَهُ حَتّٰى بَلَغَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَظَنَّ اَنْ قَدْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَ رَجَعْتُ مَعَهُ فَاِذَا هُمْ قَدْ خَرَجُوا فَاُنْزِلَ اٰيَةُ الْحِجَابِ فَضَرَبَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ سِتْرًا.

عليه وسلم سره لاړم. تر دې چه دَ بي بي عائشې دَ چوکټ قريب اورسيدو. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم خيال اوکه. چه خلق به تلي وي. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم واپس شولو' او زه هم حضور صلي الله عليه وسلم سره واپس شوم' تر دې چه حضور صلي الله عليه وسلم دَ بي بي زينبؓ مكان كښ داخل شو' نو' وې ليدل. چه هغه خلق لا اوسه پورې ناست دي' تلي نه دي. رسول الله صلي الله عليه وسلم واپس شولو' او زه هم حضور صلي الله عليه وسلم سره واپس شوم. تر دې چه دَ بي بي عائشېؓ چوكټ ته اورسيدو. بيا حضور صلي الله عليه وسلم خيال اوكه' چه خلق به تلي وي. نو بيا حضور صلي الله عليه وسلم واپس شولو' او زه هم حضور صلي اللّٰه عليه وسلم سره واپس شوم' نو څه گورو چه خلق تګي دي. دغه وخت دَ پردې آيت نازل شولو. حضور صلي الله عليه وسلم څما او خپل مينځ كښ پرده او غرځوله.

۱۱۷۰: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ اَبِيْ حَدَّثَنَا اَبُوْ مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ لَمَّا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ دَخَلَ الْقَوْمُ فَطَعِمُوا ثُمَّ جَلَسُوا يَتَحَدَّثُوْنَ فَاَخَذَ كَاَنَّهُ يَتَهَيَّأُ لِلْقِيَامِ فَلَمْ يَقُوْمُوْا فَلَمَّا رَاٰى قَامَ فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ مِنَ الْقَوْمِ وَقَعَدَ بَقِيَّةُ الْقَوْمِ وَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ لِيَدْخُلَ فَاِذَا الْقَوْمُ جُلُوْسٌ ثُمَّ اِنَّهُمْ

۱۱۷۰: ابو النعمان' معتمر' دَ معتمر پلار' ابو مجلز' حضرت انسؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم بي بي زينبؓ سره نكاح اوكړله. خلق راغلل' او ډوډئ ئې او خوړله. بيا كيناستل' خبرې ئې كولې' نو حضور صلي الله عليه وسلم ظاهره كړه' چه گويا پاسيدل غواړي' ليكن خلق پانه سيدل. حضور صلي الله عليه وسلم چه دا حال اوليد. نو حضور صلي الله عليه وسلم پاسيدلو' كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم پاسيدلو. نو هغوي كښ څوک لاړل او څوک لا ناست وو. بيا

قَامُوْا فَانْطَلَقُوْا فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ حَتّٰي دَخَلَ فَذَهَبْتُ اَدْخُلُ فَاَلْقَي الْحِجَابَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰي يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ الْاٰيَةَ قَالَ اَبُوْ عَبْدُ اللّٰهِ فِيْهِ مِنَ الْفِقْهِ اَنَّهٗ لَمْ يَسْتَاْذِنْهُمْ حِيْنَ قَامَ وَ خَرَجَ وَ فِيْهِ اَنَّهٗ تَهَيَّاَ لِلْقِيَامِ وَ هُوَ يُرِيْدُ اَنْ يَقُوْمُوْا.

رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم، بي بي زينبؓ له ورتلل اوغوښتل. ليکن وړے ليدل. چه خلق ناست دي. بيا هغه خلق پاسيدل، او لاړل. نو ما نبي صلي الله عليه وسلم خبر کړلو. حضور صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو. او دننه داخل شولو. او زه هم دننه ورتلونکے ووم. چه حضور صلي الله عليه وسلم خما او د خپل ځان مينځ کښ پرده راوغرځوله. او اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل کړلو. چه اے مؤمنانو، د نبي صلي الله عليه وسلم کور کښ مه داخليږئ.

۱۱۷۱ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُحْجُبْ نِسَآءَكَ قَالَتْ فَلَمْ يَفْعَلْ وَ كَانَ اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجْنَ لَيْلًا اِلٰي لَيْلٍ قِبَلَ الْمَنَاصِعِ خَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ وَ كَانَتِ امْرَاَةً طَوِيْلَةً فَرَاٰهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَ هُوَ فِي الْمَجْلِسِ فَقَالَ عَرَفْتُكِ يَا سَوْدَةُ حِرْصًا عَلٰي اَنْ يُنْزِلَ الْحِجَابُ قَالَتْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ اٰيَةَ الْحِجَابِ

۱۱۷۱ : اسحاق، يعقوب، د يعقوب پلار، صالح، ابن شهاب، عروه بن زبيرؓ بي بي عائشهؓ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلم د تېر نه روايت کوي. دَ بي بي عائشےؓ بيان دے. حضرت عمرؓ بن خطاب به رسول صلي اللّٰه عليه وسلم ته وئيلے. چه خپلے بيبيانے پرده کښ ساتئے. بي بي عائشهؓ وائي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم دغسے او نه کړل. او د حضور صلي اللّٰه عليه وسلم بيبيانے به رفعِ حاجت د پاره د شپے بهرته تلے. بي بي سوده بنت زمعه بهرته اووتله، هغه يوه اوږده قدے (لمبی) بي بي وه. حضرت عمرؓ بن خطاب هغه وخت مجلس کښ ناست وو. هغه اوليده، او وئيلے، اے بي بي سودهؓ ماته او پيژندلے. صرف په دے خواهش ئے داسے اووے. چه د پردے آيت نازل شي. د بي بي عائشےؓ بيان دے. نو اللّٰه بزرګ و برتر دَ پردے آيت نازل کړلو.

**باب ۶۸۸ : اَلْاِسْتِئْذَانُ مِنْ اَجْلِ الْبَصَرِ.**

**باب ۶۸۸ : دَ چا کور کښ داخليدو د پاره اجازت غوښتل، د نظر پريوتو په وجه ضروري دي.**

۱۱۷۲ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَفِظْتُهُ كَمَا أَنَّكَ هٰهُنَا عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ اطَّلَعَ رَجُلٌ مِّنْ جُحْرٍ فِيْ حُجَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِدْرًى يَحُكُّ بِهِ رَأْسَهُ فَقَالَ لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْظُرُ لَطَعَنْتُ بِهِ فِيْ عَيْنِكَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ الْبَصَرِ.

۱۱۷۲ : علي بن عبدالله، سفيان، زهري، سهل بن سعدؓ نه روايت كوي. ذَ هغه بيان دے. يو سړي ذَ حضور صلي الله عليه وسلم ذَ حجرو نه يوه حجره كښې (چونډ كښې) اوكتل. او ذَ نبي صلي الله عليه وسلم لاس كښې ذَ سر كرولو آله وه. چه هغې سره ئے محهل سر مبارك كرولو. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. كه ماته پته وے. چه ته به (چونډ كښې) گورے، نو ما به دے سره ستا سترګه وهلے وه. اجازت اخستل خو ذَ ليدو په وجه مقرر شوے دے.

ف: دلته ذَ حجرو نه مراد ذَ ډيڅتو په شان لوئے لوئے حجرے نه دي. بلكه ورے ورے كوټګۍ ترے مراد دي. چه ذَ حضور صلي الله عليه وسلم د بيبيانو د پاره مسجد نبوي سره جوړ شوے دے.

۱۱۷۳ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ مِنْ بَعْضِ حُجَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصٍ أَوْ بِمَشَاقِصَ فَكَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَخْتِلُ الرَّجُلَ لِيَطْعُنَهُ.

۱۱۷۳ : مسدد، حماد بن زيد، عبيد الله بن ابي بكر، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يو سړي د حضور صلي الله عليه وسلم د حجرو نه يوړے حجرے (كوټګۍ) كښې اوكتل. حضور صلي الله عليه وسلم د غشي يو پلكے يا څو پلكي واخستل او هغه طرف ته ئے ور داؤ كړل. او ذَ حضرت انسؓ بيان دے، چه ګويا حضور صلي الله عليه وسلم هغه سړے لټولو، چه په هغه پلكي ئے ټولي.

ف: ذَ دے حديث ذَ مخه د هيچا كور كښې ذَ ديوال يا ذَ دروازے چونډ كښې كتل نه دي پكار. ځكه چه كور ذَ پردے خائے دے. او ذَ غير سړي هغے كښې كتل، د كور به پرده اخستل دي.

## باب ۷۸۹ : زِنَا الْجَوَارِحِ دُوْنَ الْفَرْجِ.

## باب ۷۸۹ : د اعضاء او شرم ګاه جدا جدا زنا ګڼلے دي.

۱۱۷۴ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمْ أَرَ شَيْئًا

۱۱۷۴ : حميدي، سفيان، ابن طاؤس، طاؤس، ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما دا ابوهريرهؓ

اَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِنْ قَوْلِ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ح وَ حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا رَاَيْتُ شَيْئًا اَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِمَّا قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا اَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مُحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ وَ زِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَالنَّفْسُ تَمَنّٰى وَ تَشْتَهِيْ وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ اَوْ يُكَذِّبُهُ.

ذَ خبرې نه بهتره خبره نه ده آوريدلې. هغه ئې ذَ حضور صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي، چه الله تعالٰي د نبي آدم ذَ پاره ذَ زنا يوه حصه ليكلې ده. چه يقيناً به ترې كيږي. نو د سترګې زنا كتل دي. ذَ ژبې زنا خبره كول دي، او نفس خواهش او تمنّا كوي. او شرم ګاه د هغې تصديق يا تكذيب كوي.

## بَابُ ۶۹۰ : التَّسْلِيْمِ وَالْاِسْتِئْذَانِ ثَلٰثًا.

## باب ۶۹۰ : ذَ سلام كولو او درې ځله ذَ اجازت غوښتلو بيان.

۱۱۷۵ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا سَلَّمَ سَلَّمَ ثَلٰثًا وَ اِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ اَعَادَهَا ثَلٰثًا.

۱۱۷۵ : اسحاق، عبد الصمد، عبد الله بن مثنٰي، ثمامه بن عبدالله، حضرت انس نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم چه به سلام كولو، نو درې ځله به ئې كولو. او كله چه به ئې څه خبره كوله. نو درې ځله به ئې كوله.

۱۱۷۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ خُصَيْفَةَ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنْتُ فِيْ مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْاَنْصَارِ اِذْ جَآءَ اَبُوْ مُوْسٰى كَاَنَّهُ مَذْعُوْرٌ فَقَالَ

۱۱۷۶ : علي بن عبد الله، سفيان، يزيد بن خصيفه، بسر بن سعيد، ابو سعيد خدري نه روايت كوي، زه ذَ انصارو يو مجلس كښې ووم، نو ابو موسٰي ويريدلې راغې. او وئيلې. ما درې ځله د حضرت عمر نه اجازت اوغوښتلو، خو اجازت رانه كړې شو. نو زه واپس راغلم.

اسْتَأْذَنْتُ عَلٰى عُمَرَ ثَلٰثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لِيْ فَرَجَعْتُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ قُلْتُ اسْتَأْذَنْتُ ثَلٰثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لِيْ فَرَجَعْتُ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَأْذَنَ اَحَدُكُمْ ثَلٰثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهٗ فَلْيَرْجِعْ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَتُقِيْمَنَّ عَلَيْهِ بِبَيِّنَةٍ اَمِنْكُمْ اَحَدٌ سَمِعَهٗ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَاللّٰهِ لَا يَقُوْمُ مَعَكَ اِلَّا اَصْغَرُ الْقَوْمِ فَكُنْتُ اَصْغَرَ الْقَوْمِ فَقُمْتُ مَعَهٗ فَاَخْبَرْتُ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذٰلِكَ وَ قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ عَنْ بُسْرٍ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدٍ بِهٰذَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَرَادَ عُمَرُ التَّثَبُّتَ لَا اَنْ لَا يُجِيْزَ خَبَرَ الْوَاحِدِ.

بیا عمرؓ اووې ته دننه راتلو نه څه څيز منع کړې. ما اووې، ما اجازت اوغښتلو، ليکن تاسو اجازت رانه کړلو. په دې وجه زه واپس لاړم، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي، هر کله چه تاسو کښې يو سړې درې ځله اجازت اوغواړي. او هغه ته اجازت اونشي، نو هغه له واپس کيدل پکار دي. حضرت عمرؓ اووې، په دې به ته ګواه پيش کوې. ابو موسیٰؓ اووې، تاسو کښې چا د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا آوريدلې دي. ابي بن کعبؓ اووې. په خدائې چه ستا د ګواهي د پاره د قوم يو کم عمره سړې اودريږي. د راوي بيان دې. زه هغه وخت سره اودريدم، او عمرؓ م خبر کړلو. چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دا فرمائيلې دي. او ابن مبارک او وې. ما ته ابن عيينه په واسطه د يزيد بسر، ابو سعيد دا حديث روايت که.

## باب ۱ ۹ ۶ : اِذَا دُعِيَ الرَّجُلُ فَجَآءَ هَلْ يَسْتَأْذِنُ

قَالَ سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هُوَ اِذْنُهٗ.

## باب ۱ ۹ ۶ : هر کله چه يو سړې اوغښتلې شي، او هغه راشي. نو آيا هغه به هم اجازت اخلي.

سعيد دَ قتاده نه په واسطه دَ ابو رافع، ابو هريرهؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه دا رابلل د هغه اجازت دې.

۱۱۷۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ ح وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ اَخْبَرَنَا مُجَاهِدٌ عَنْ اَبِيْ

۱۱۷۷ : ابو نعيم، عمر بن ذر (دوئم سند) محمد بن مقاتل، عبداللّٰه، عمر بن ذر، مجاهد، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دې. زه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره مکان کښې داخل

هُرَيْرَةَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ لَبَنًا فِيْ قَدَحٍ فَقَالَ اَبَاهِرِّ اَلْحِقْ اَهْلَ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ اِلَيَّ قَالَ فَاَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ فَاَقْبَلُوْا فَاسْتَاْذَنُوْا فَاَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوْا.

شوم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم پيالئے كښې پئے اوليدل. نو وے فرمائيل' اے ابوهريرةؓ اهلِ صُفَّه لـه ورشـه' او هغوي مـالـه راولـه. زه هغے خلقو لـه ورغلم' هغوي مِ راوغښتل' هغه خلق راغلل' او اجازت ئے اوغښتلو' نو هغوي ته اجازت وركړے شو. او دننه داخل شو.

ف: صُفَّه (۱) دالان (۲) اهلِ صُفَّه' هغه غريب او بے وطنه مسلمانان وو. چه هغوي ته دَ رسالت زمانه كښې دَ اوسيدو د پاره كور نصيب نه وو. د جمات صحن (آنګړ) او كچه سائبانونو كښې به ئے ژوند تيرولو. چه د كجورو د لختو نه به جوړ وو.

## باب ۶۹۲: اَلتَّسْلِيْمِ عَلَى الصِّبْيَانِ.

## باب ۶۹۲: بچو تـه دَ سلام كولو بيان.

۱۱۷۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَيَّارٍ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ مَرَّ عَلٰى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ وَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ.

۱۱۷۸: علي بن جعد' شعبه' سيار' ثابت بناني' حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضرت انسؓ د بچو خوا كښې تير شو. نو هغوي ته ئے سلام اوكه. او وئيلے. چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دغسے كول.

## باب ۶۹۳: تَسْلِيْمِ الرِّجَالِ عَلَى النِّسَآءِ وَالنِّسَآءِ عَلَى الرِّجَالِ.

## باب ۶۹۳: دَ سړو ښځو ته او دَ ښځو سړو ته دَ سلام كولو بيان.

۱۱۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ كُنَّا نَفْرَحُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قُلْتُ وَلِمَ قَالَ كَانَتْ لَنَا عَجُوْزٌ تُرْسِلُ اِلٰى بُضَاعَةَ قَالَ ابْنُ مَسْلَمَةَ نَخْلٌ بِالْمَدِيْنَةِ فَتَاْخُذُ مِنْ اُصُوْلِ السِّلْقِ فَتَطْرَحُهُ

۱۱۷۹: عبداللّٰه بن مسلمه' ابن ابي خازم' ابو خازم' سهل نه روايت كوي. مونږ ته به د جمعے په ورځ ډيره خوشحالي وه. ما تپوس اوكه. ولے. هغه اووے' يوه بوډئ وه. چه بضاعه سره به ئے مونږ كينولو' ابن مسلمه اووے. بضاعه مدينه كښې د كجورو يو باغ دے. هغے بوډئ به د چقندر جرړے اُوښكلے او يوے كټوے كښې به ئے اچولے. هغے كښې به ئے دَ وربشو ځو دانے هم

فِيْ قِدْرٍ وَّ تُكَرْكِرُ حَبَّاتٍ مِّنْ شَعِيْرٍ فَإِذَا صَلَّيْنَا الْجُمُعَةَ انْصَرَفْنَا وَنُسَلِّمُ عَلَيْهَا فَتُقَدِّمُهُ اِلَيْنَا فَنَفْرَحُ مِنْ اَجْلِهِ وَ مَا كُنَّا نَقِيْلُ وَ لَا نَتَغَدّٰى اِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

ورسره پخولے. كوم وخت چه به مونږ دَ جمعے دَ مونځ نه فارغ شو. او هغے له به ورغلو، نو هغے ته به مو سلام كولو، هغے به مونږ ته هغه (طعام) كيښودلو، په دے وجه مونږ به ډير خوشحاله شو. او مونږ به د جمعے دَ مونځ نه پس قيلوله كوله. او ډوډئ به مو خوړله.

ف: قيلوله. دَ غرمے آرام.

۱۱۸۰: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ هٰذَا جِبْرَئِيْلُ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلَامَ قَالَتْ قُلْتُ وَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ تَرٰى مَا لَا نَرٰى تُرِيْدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابَعَهُ شُعَيْبٌ وَّ قَالَ يُوْنُسُ وَالنُّعْمَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ بَرَكَاتُهُ.

۱۱۸۰: ابن مقاتل، عبدالله معمر، زهري، ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. د هغے بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اے عائشے، دا جبرائيل عليه السلام دے، په تا سلام وائي. د بي بي عائشےؓ بيان دے. ما او وے، و عليه السلام و رحمة الله تاسو هغه څيز وينئے، چه مونږ ئے نه وينو (ترى) نه د هغے مُراد حضور صلي الله عليه وسلم وو. شعيب د دے متابعت كښ روايت اوكه. او يونس او نعمان دَ زهري نه دَ بركاته لفظ نقل كه.

## بَابٌ ۶۹۴: إِذَا قَالَ مَنْ ذَا فَقَالَ اَنَا.

## باب ۶۹۴: هر كله چه څوك اووائي، چه څوك يے. نو د هغے په جواب كښ دَ زه وئيلو بيان.

۱۱۸۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُوْلُ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ دَيْنٍ كَانَ عَلٰى اَبِيْ فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ مَنْ ذَا فَقُلْتُ اَنَا فَقَالَ اَنَا اَنَا كَاَنَّهُ

۱۱۸۱: ابو الوليد، هشام بن عبدالملكؒ شعبه، محمد بن منكدر، حضرت جابرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. زه د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت كښ د هغے قرض سلسله كښ حاضر شوم، چه څما په پلار وو. ما دروازه اوټكوله. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، څوك دے. ما اووے زه يم، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، زه، زه، ګويا حضور صلي الله

كَرِهَهَا.

بَابُ ٦٩٥: مَنْ رَدَّ فَقَالَ عَلَيْكَ السَّلَامُ وَقَالَتْ عَائِشَةُ وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدَّ الْمَلَائِكَةُ عَلَى آدَمَ السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ.

١١٨٢: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَرَجَعَ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ فَقَالَ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ فَقَالَ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ فَارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَقَالَ فِي الثَّانِيَةِ أَوْ فِي الَّتِي بَعْدَهَا عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا

عليه وسلم دا مكروه او ګڼړلو.

باب ٦٩٥: د سلام جواب كښې د عليك السلام وئيلو بيان. او بي بي عائشې رض وعليه السلام ورحمة الله وبركاته اووې، او حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، فرښتو آدم عليه السلام ته اسلام عليكم ورحمة الله (جواب كښې) اووې.

١١٨٢: اسحاق بن منصور، عبدالله بن نمير، عبيد الله، سعيد بن ابي سعيد مقبري، حضرت ابو هريرة رض نه روايت كوي، د هغه بيان دې. يو سړې جمات كښې داخل شو، او رسول الله صلي الله عليه وسلم د جمات يو ګټ كښې ناست وو. هغې سړي مونځ اوكړه، بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم له راغې، او سلام ئې اوكړه. هغه ته رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، وعليك السلام، ته واپس شه او مونځ اوكړه، ځكه چه تا مونځ نه دې كړې. هغه لاړ، مونځ ئې اوكړه. بيا راغې، او سلام ئې اوكړه، حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، وعليك السلام، ته واپس شه بيا مونځ اوكړه. ځكه چه تا مونځ نه دې كړې. په دوئم ځل يا په دريم ځل هغه عرض اوكړه، يا رسول الله، ما ته اوښايه. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل د مونځ لپاره چه اوكړې. نو پوره طور سره اودس اوكړه. بيا

تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَسْتَوِيَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِيْ صَلٰوتِكَ كُلِّهَا وَ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ فِي الْاٰخِيْرِ حَتّٰى تَسْتَوِيَ قَائِمًا.

قبلے ته مخ کړه. تکبير اوکړه. بيا چه تاته څه قرآن ياد وي، هغه اولوله. بيا رکوع اوکړه. تر دے چه اطمينان سره رکوع اوکړے بيا سر اوچت کړه. تر دے چه نيغ اودريږے. بيا سجده اوکړه، تر دے چه اطمينان سره سجده اوکړے. بيا سر اوچت کړه، تر دے چه اطمينان سره کينے. بيا دغسے خپل ټول مونځونه کوه. او ابو اسامه اخير کښ حَتّٰى تَسْتَوِي قَائِمًا. لفظ نقل که.

١١٨٣: حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا.

١١٨٣: ابن بشار، يحيٰي، عبيد اللّٰه، سعيد د خپل پلار نه هغه ذ ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، بيا سر اوچت کړه، تر دے چه اطمينان سره کينے.

## باب ٦٩٦: اِذَا قَالَ فُلَانٌ يُقْرِئُكَ السَّلَامَ.

## باب ٦٩٦: هر کله چه يو سړے اووائي، چه فلانے په تا سلام وائي.

١١٨٤: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرًا يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا اِنَّ جِبْرِيْلَ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ قَالَتْ وَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ.

١١٨٤: ابو نعيم، زکريا، عامر، ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. ذ هغې بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ماته او فرمائيل، اے عائشهؓ، جبرائيلؑ په تا سلام وائي، نو هغے او وے: و عليه السلام و رحمة اللّٰه.

## باب ٦٩٧: التَّسْلِيْمِ فِيْ مَجْلِسٍ فِيْهِ اَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ

## باب ٦٩٧: هغے مجلس ته سلام کول، چه هغے کښ مسلمانان او مشرکان شريک ناست

وَالْمُشْرِكِيْنَ.

وي.

١١٨٥ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ حِمَارًا عَلَيْهِ اِكَافٌ تَحْتَهُ قَطِيْفَةٌ فَدَكِيَّةٌ وَ اَرْدَفَ وَرَآءَ هُ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَّ هُوَ يَعُوْدُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِيْ بَنِيْ الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ حَتّٰى مَرَّ فِيْ مَجْلِسٍ فِيْهِ اَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُشْرِكِيْنَ عَبَدَةِ الْاَوْثَانِ وَالْيَهُوْدِ وَ فِيْهِمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عُجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ اَنْفَهٗ بِرِدَآئِهٖ ثُمَّ قَالَ لَا تُغَبِّرُوْا عَلَيْنَا فَسَلَّمَ عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَقَفَ فَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ اِلَى اللّٰهِ وَ قَرَاَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ ابْنُ سَلُوْلٍ اَيُّهَا الْمَرْءُ لَا اَحْسَنُ مِنْ هٰذَا اِنْ كَانَ مَا تَقُوْلُ حَقًّا فَلَا تُؤْذِنَا فِيْ مَجَالِسِنَا وَارْجِعْ اِلٰى رَحْلِكَ فَمَنْ جَآءَكَ مِنَّا فَاقْصُصْ عَلَيْهِ قَالَ ابْنُ رَوَاحَةَ اغْشَنَا فِيْ مَجَالِسِنَا فَاِنَّا نُحِبُّ ذٰلِكَ فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُوْنَ وَالْمُشْرِكُوْنَ وَالْيَهُوْدُ حَتّٰى هَمُّوْا اَنْ يَّتَوَاثَبُوْا

١١٨٥ : ابراهيم بن موسىٰ، هشام، معمر، زهري، عروه بن زبير، اسامه بن زيد نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلم په يو خر سور شولو، د هغې خر دَ زين لاندې دَ فدک څادر وو. او خپل ورستو ئې اسامه بن زيد کينولو. هغه وخت بني حارث بن خزرج کښې د سعد بن عباده تپوس له حضور صلي الله عليه وسلم تلو. او دا دَ جنګِ بدر نه د مخکښې واقعه ده. تر دې چه په مجلس تير شولو، چه هغې کښې مسلمانان، بت پرست مشرکان او يهوديان ناست وو. او هغوي کښې عبدالله بن ابي بن سلوک هم وو. او عبدالله بن رواحه هم هغې مجلس کښې وو. کوم وخت چه دَ سورلي ګرد (دُوړه) په هغې خلقو پريوته، نو عبدالله بن ابي، په خپله پوزه خپل څادر کيښودلو (يعني پوزه ئې څادر کښې پټه کړله) بيائې اووې. په مونږ ګرد، مه الوځوه. نبي صلي الله عليه وسلم هغې خلقو ته سلام اوکه. بيا دَ سورلي نه راکوز شولو. او هغوي ئې الله طرف ته اوبلل. او قرآن ئې ورته واورولو، عبدالله بن ابي ابن سلول اووې. اې سړيه ته چه څه وائې. دا ماته ښه نه معلوميږي. که دا صحيح هم وي. نو څمونږ مجلسونو کښې راتلو سره مونږ ته تکليف مه راکوه. خپلې تيکاؤنړې ته ځه. مونږ کښې چه کوم سړې تاله درشي، هغه ته بيان کوه. ابن رواحهؓ عرض اوکه، يا رسول الله تاسو څمونږ مجلسونو ته راځئې، مونږ دا خوښوو، نو مسلمانانو، مشرکانو او يهوديانو يو بل ته بد رد وئيل شروع کړل. تر دې چه قصد ئې اوکه. چه په يو بل حمله اوکړي. نبي صلي الله

فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ ثُمَّ رَكِبَ دَابَّتَهُ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ اَىْ سَعْدُ اَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ اَبُوْ حُبَابٍ يُرِيْدُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ قَالَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ اعْفُ عَنْهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاصْفَحْ فَوَ اللّٰهِ لَقَدْ اَعْطَاكَ اللّٰهُ الَّذِيْ اَعْطَاكَ وَ لَقَدِ اصْطَلَحَ اَهْلُ هٰذِهِ الْبَحْرَةِ عَلٰى اَنْ يُتَوِّجُوْهُ فَيُعَصِّبُوْنَهُ بِالْعِصَابَةِ فَلَمَّا رَدَّ اللّٰهُ ذٰلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِيْ اَعْطَاكَ شَرِقَ بِذٰلِكَ فَذٰلِكَ فَعَلَ بِهِ مَا رَاَيْتَ فَعَفَا عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عليه وسلم هغه خلق خاموش كړل. بيا په خپله سورلئ سور شولو، تر دې چه سعد بن عباده له راورسېدلو. او وې فرمائيل، اې سعده، تا واونه ريدل. چه ابو حباب يعني عبدالله بن ابي څه او وې، هغه داسې داسې خبره اوكړله. سعدؓ او وې، يا رسول اللّٰهؐ هغه معاف كړې. په اللّٰه مِ دې قسم وي، اللّٰه تاسو ته هغه څيز دركړې دې، كوم چه ئې دركول غوښتل. د دې ښار خلقو دا مشوره كړې وه، چه د هغه په سر تاج كيږدي، او د سردارۍ پټكې ورته اوتړي. هر كله چه اللّٰه تعالٰي هغه منصوبه، د دې حق په ذريعه رد كړله. چه اللّٰه تعالٰي تاسوله دركړې دې، نو هغه په دې وجه اوسولو (د حسد نه اوسوزېده) او دغه وجه ده، چه هغه دا حركت اوكړ چه تاسوؐ ملاحظه كړلو (اوكتلو) نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم هغه معاف كړلو.

ف: ۀ چا دوستي او دوښمني چه د خدائې تعالٰي د پاره وي. نو هغوي د معافي نه كلو اخلي، او د چا چه د خپل ذات د پاره وي. نو هغه بدل اخلي.

بَابُ ۶۹۸: مَنْ لَمْ يُسَلِّمْ عَلٰى مَنِ اقْتَرَفَ ذَنْبًا وَ لَمْ يَرُدَّ سَلَامَهُ حَتّٰى تَتَبَيَّنَ تَوْبَتُهُ وَ اِلٰى مَتٰى تَتَبَيَّنُ تَوْبَةُ الْمَعَاصِيْ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو وَّ لَا تُسَلِّمُوْا عَلٰى شَرَبَةِ الْخَمْرِ.

باب ۶۹۸: د ګناه مرتكب ته د سلام نه كولو، او نه هغه ته د جواب وركولو بيان، تر څو پورې چه د هغه د توبې آثار ظاهر نشي. او د ګنهګار د توبې قبوليت كله ظاهريږي، او عبداللّٰه بن عمروؓ او وې، شرابي ته سلام مه كوئې.

۱۱۸۶: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ

۱۱۸۶: ابن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن كعبؓ نه روايت كوي. هغه د كعب بن مالكؓ نه واوريدل. چه كوم وخت كعب بن مالكؓ جنګ تبوك كښې ورستو پاتې شو. نو رسول

سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنْ تَبُوْكَ وَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَلَامِنَا وَ اٰتِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُسَلِّمُ عَلَيْهِ فَأَقُوْلُ فِيْ نَفْسِيْ هَلْ حَرَّكَ شَفَتَيْهِ بِرَدِّ السَّلَامِ اَمْ لَا حَتّٰى كَمُلَتْ خَمْسُوْنَ لَيْلَةً وَّ اٰذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَوْبَةِ اللّٰهِ عَلَيْنَا حِيْنَ صَلَّى الْفَجْرَ.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خلق مونږ سره د خبرو کولو نه منع کړل. او زه به د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت کښې حاضريدم. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته به م سلام کولو. بيا به م زړه کښې وئيلې. (يعني گڅل به م) چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم د سلام جواب راکولو د پاره شونډې مبارکې خوزوي که نه. تر دې چه پنځوس شپې تيرې شوې. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د سحر مونځ اوکه. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اعلان اوکړلو. چه اللّٰه تعالٰي څمونږ توبه قبوله کړله.

## بَاب ٦٩٩: كَيْفَ يَرُدُّ عَلٰى اَهْلِ الذِّمَّةِ السَّلَامُ.

## باب ٦٩٩: ذميانو ته د سلام جواب څنګه ورکولے شي.

١١٨٧: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ رَهْطٌ مِنَ الْيَهُوْدِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا السَّامُ عَلَيْكَ فَفَهِمْتُهَا فَقُلْتُ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْلًا يَا عَائِشَةُ فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْاَمْرِ كُلِّهٖ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوَ لَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ قُلْتُ وَ عَلَيْكُمْ.

١١٨٧: اليمان، شعيب، زهري، عروه، بي بي عائشې نه روايت کوي، ذ هغې بيان دے. د يهودو يو جماعت ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت کښې حاضر شولو. او وئيلے: السام عليک (يعني په تا دې هلاکت وي) زه په هغې پوه شوم، نو ما او وے: عليکم السام واللعنة (په تاسو دې هلاکت او لعنت وي) رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. اے عائشې پريږده، اللّٰه تعالٰي تولو معاملاتو کښې نرمي خوښوي. ما عرض اوکه. يا رسول اللّٰه، آيا تاسو وانه ريدل. څه چه دې خلقو او وے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل ما هم ورته: و عليکم: وئيلے وو.

١١٨٨: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ

١١٨٨: عبد اللّٰه بن يوسف، مالک، عبداللّٰه بن دينار، عبداللّٰه بن عمر نه روايت کوي. د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمُ الْيَهُوْدُ فَاِنَّمَا يَقُوْلُ اَحَدُهُمُ السَّامُ عَلَيْكَ فَقُلْ وَ عَلَيْكَ.

عليه وسلم او فرمائيل' كله چه يهود تاسو ته سلام وكړي. او هغوي كښې يو سړے السام عليك اووائي' نو تاسو هم صرف: و عليك: وائے.

۱۱۸۹ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَنَسٍ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ اَهْلُ الْكِتٰبِ فَقُوْلُوْا وَ عَلَيْكُمْ.

۱۱۸۹ : عثمان بن ابي شيبه' هشيم' عبدالله بن ابي بكر بن انس' حضرت انس بن مالك نه روايت كوي' د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' هر كله چه تاسو ته اهل كتاب سلام اوكړي' نو تاسو ورته: و عليك: وائيے.

باب ۷۰۰: مَنْ نَظَرَ فِيْ كِتَابِ مَنْ يُحْذَرُ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ لِيَسْتَبِيْنَ اَمْرَهُ.

باب ۷۰۰: د هغے سړي د خط ليدو بيان' چه هغے كښې د مسلمانانو د مفادو خلاف څه خبره ليكلے وي' د پاره د دے چه اصل حال معلوم شي.

۱۱۹۰ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ بُهْلِ حَدَّثَنَا ابْنُ اِدْرِيْسَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُصَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالزُّبَيْرَ بْنَ الْعَوَّامِ وَ اَبَا مَرْثَدِ الْغَنَوِيَّ وَ كُلُّنَا فَارِسٌ فَقَالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ فَاِنَّ بِهَا اِمْرَاَةٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ مَعَهَا صَحِيْفَةٌ مِّنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ قَالَ فَاَدْرَكْنَا هَا تَسِيْرُ عَلٰى جَمَلٍ لَهَا حَيْثُ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۹۰ : يوسف بن بهلول' ابن ادريس' حصين بن عبدالرحمٰن' سعد بن ابو عبيده' ابو عبدالرحمٰن سلمي' حضرت علي كرم الله وجهه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. ما (عليؓ) ته او زبير بن عوامؓ او ابو مرثد غنويؓ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم راكه. چه روضه خاخ ته لاړشئے. هلته يوه مشركه ښځه ده. هغے سره د حاطب بن ابي بلتعهؓ خط دے. چه د مشركينو په نوم دے' (هغه خط راوړئے) د حضرت عليؓ بيان دے. مونږ كښې هر يو سړے سور وو. نو هغه مو' را لاندے كړه' كوم ځائے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے وو. هغه په اوښ سوره وه. مونږ ورته اووے. هغه تحرير (خط) چه تاسره دے. هغه چرته دے. هغے اووے. ماسره خو هيڅ خط نشته. مونږ د هغے اوښ

وَسَلَّمَ قَالَ قُلْنَا اَيْنَ الْكِتَابُ الَّذِیْ
مَعَكِ قَالَتْ مَا مَعِیَ كِتَابٌ فَاَنَخْنَا بِهَا
فَابْتَغَيْنَا فِي رَحْلِهَا فَمَا وَجَدْنَا شَيْئًا
قَالَ صَاحِبَایَ مَا نَرٰی كِتَابًا قَالَ قُلْتُ
لَقَدْ عَلِمْتُ مَا كَذَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِیْ
يُحْلَفُ بِهٖ لَتُخْرِجَنَّ الْكِتٰبَ اَوْ
لَاُجَرِّدَنَّكِ قَالَ فَلَمَّا رَاَتِ الْجِدَّ مِنِّیْ
اَهْوَتْ بِيَدِهَا اِلٰی حُجْزَتِهَا وَ هِیَ
مُحْتَجِزَةٌ بِكِسَاءٍ فَاَخْرَجَتِ الْكِتَابَ
قَالَ فَانْطَلَقْنَا بِهٖ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا
حَمَلَكَ يَا حَاطِبُ عَلٰی مَا صَنَعْتَ قَالَ
مَا بِیَ اِلَّا اَنْ اَكُوْنَ مُؤْمِنًا بِاللّٰهِ وَ
رَسُوْلِهٖ وَ مَا غَيَّرْتُ وَ لَا بَدَّلْتُ اَرَدْتُّ
اَنْ تَكُوْنَ لِیْ عِنْدَ الْقَوْمِ يَدٌ يَدْفَعُ
اللّٰهُ بِهَا عَنْ اَهْلِیْ وَ مَالِیْ وَ لَيْسَ
مِنْ اَصْحَابِكَ هُنَاكَ اِلَّا وَلَهٗ مَنْ يَدْفَعُ
اللّٰهُ بِهٖ عَنْ اَهْلِهٖ وَ مَالِهٖ قَالَ صَدَقَ
فَلَا تَقُوْلُوْا لَهٗ اِلَّا خَيْرًا قَالَ فَقَالَ عُمَرُ
بْنُ الْخَطَّابِ اِنَّهٗ قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَ
رَسُوْلَهٗ وَالْمُؤْمِنِيْنَ فَدَعْنِیْ فَاَضْرِبَ
عُنُقَهٗ قَالَ فَقَالَ يَا عُمَرُ وَ مَا يُدْرِيْكَ
لَعَلَّ اللّٰهَ قَدِ اطَّلَعَ عَلٰی اَهْلِ بَدْرٍ
فَقَالَ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ وَجَبَتْ
لَكُمُ الْجَنَّةُ قَالَ فَدَمَعَتْ عَيْنَا عُمَرَ وَ

کینولو. او د هغې د کټې (پالان) وغیره تالاشي مو واخسته، خو هغه خط مو بیا نه مند، بیا ما اووې، زه پوهیږم، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم دروغ نه دي ویلې. په هغه ذات مې دې قسم وي. چه په هغه قسم خوړلې شي. خط راوکاږه، کني بربنډه به دې کړم. هغې چه زمونږ سختي اولیده. نو د هغې څادر نه چه د هغې نه ئې تهبند جوړ کړې وو. خط راوښکلو او مونږ ته ئې راکړلو. هغه خط مونږ د رسول الله صلي الله علیه وسلم خدمت کښ پیش کړلو. حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل. اې حاطبؓ تا داسې ولې وکړل. حاطبؓ عرض اوکه، یا رسول الله، زه په الله او د هغه په رسول ایمان لرم، زه بدل شوې نه یم (یعني مرتد شوې نه یم) بلکه دې د پاره مې خط اولیکلو، چه مکه کښ څما څوک خپلوان نشته، چه څما د بال بچ خیال اوساتي، نو ما اوغوښتل، د هغوي سره خپل تعلق جوړ کړم، د پاره د دې چه هغوي څما د اهل و عیال نګراني کوي، او د نورو صحابؤ خو هلته رشته دار موجود دي، چه د هغوي د بال بچ حفاظت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم او وې، صحیح خبره ئې اوکړه، اوس دهٔ ته هیڅ مه وایئې. حضرت عمرؓ عرض اوکه دهٔ د الله د رسول او مؤمنانو سره خیانت کړې دې. تاسوٌ اجازت اوکړې، چه دَ دهٔ ګردن والوځوم. حضور صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، اې عمرهٔ، تاته معلومه ده، چه الله تعالیٰ دَ اهلِ بدر متعلق خبردارې کړیدې، چه څه کوئې، ستاسو دَ پاره جنت واجب شولو. دَ راوي بیان دې، دَ عمرؓ دَ دواړو سترګو نه اوښکې جاري شوې. او عرض ئې

قَالَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ.

او که، الله او دَ هغه رسُول ښه پوهيږي.

## بـاب ۷۰۱: كَيْفَ يُكْتَبُ الْكِتَابُ اِلَى اَهْلِ الْكِتَابِ

## باب ۷۰۱: اهلِ کتابو طرفته څنګه خط ليکل پکار دي.

۱۱۹۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ هِرَقْلَ اَرْسَلَ اِلَيْهِ فِيْ نَفَرٍ مِّنْ قُرَيْشٍ وَّ كَانُوْا تِجَارًا بِالشَّامِ فَاَتَوْهُ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ قَالَ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُرِئَ فَاِذَا فِيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مِنْ مُّحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ اِلٰى هِرَقْلَ عَظِيْمِ الرُّوْمِ السَّلَامُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى اَمَّا بَعْدُ.

۱۱۹۱: محمد بن مقاتل، ابو الحسن، عبدالله، يونس، زهري، عبيد الله بن عبدالله بن عتبه، ابن عباسؓ، ابو سفيان بن حرب نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. هرقل هغه دَ قريشو يو جماعت کښې راوغښتلو چه شام ته دَ تجارت په غرض تلے وو. هغه خلق هغه ته ورغلل. بيائے پوره حديث بيان که. بيا هرقل دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خط اوغوښتلو هغه اولوستے شو، هغے کښې ليکلے وو:

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مَنْ محمدٍ عبدِ اللّٰهِ وَ رَسولهٖ الٰى هرقل عظيم الروم. السّلام على من اتّبعَ الهدٰى

اَمَّا بَعْدُ

## بـاب ۷۰۲: بِمَنْ يَّبْدَاُ فِي الْكِتَابِ

وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ ذَكَرَ رَجُلًا مِّنْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَخَذَ خَشَبَةً فَنَقَرَهَا فَاَدْخَلَ فِيْهَا اَلْفَ دِيْنَارٍ وَّ صَحِيْفَةً مِّنْهُ اِلٰى صَاحِبِهٖ وَ قَالَ عُمَرُ

## باب ۷۰۲: خط کښې دَ څه څيز نه شروع پکار ده.

او ليث بيان اوکه، ما ته جعفر بن ربيعه په واسطه دَ عبدالرحمٰن بن هرمز او ابو هريرهؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه نقل اوکه، چه حضور صلي الله عليه وسلّم دَ بني اسرائيلو دَ يو سړي ذکر اوکه، چه هغه يو لرګے واخست، هغه ئے اوکنولو او هغے کښې ئے يو زر دينار کيښودل. او دَ هغے دَ مالک په نوم ئے يو خط اوليکه. عمر بن ابي سلمه دَ خپل پلار نه روايت که، هغه دَ ابوهريرهؓ نه واوريدل نبي صلي الله عليه وسلّم او

بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْهِ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَقَرَ خَشَبَةً فَجَعَلَ الْمَالَ فِيْ جَوْفِهَا وَ كَتَبَ اِلَيْهِ صَحِيْفَةً مِّنْ فُلَانٍ اِلٰى فُلَانٍ.

فرمائيل' چه هغې سړي يو لرګے ووړ كړلو' (كهوكهلا كيا) او مال ئے دَ هغې په مينځ كښې كيښودلو' يو خط ئے اوليكه' چه هغې كښې دا ليكلي وو:

من فلان الى فلان

(دَ فلاني دَ جانب نه فلاني ته)

**باب ٧٠٣: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ.**

**باب ٧٠٣: دَ نبي صلے الله عليه وسلّم فرمان' چه خپل سردار دَ پاره اودريږئ.**

**١١٩٢:** حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ اَهْلَ قُرَيْظَةَ نَزَلُوْا عَلٰى حُكْمِ سَعْدٍ فَاَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِ فَجَآءَ فَقَالَ قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ اَوْ قَالَ خَيْرِكُمْ فَقَعَدَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هٰٓؤُلَآءِ نَزَلُوْا عَلٰى حُكْمِكَ قَالَ فَاِنِّيْ اَحْكُمُ اَنْ تُقْتَلَ مَقَاتِلَتُهُمْ وَ تُسْبٰى ذَرَارِيُّهُمْ. فَقَالَ لَقَدْ حَكَمْتَ بِمَا حَكَمَ بِهِ الْمَلِكُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَفْهَمَنِيْ بَعْضُ اَصْحَابِيْ عَنْ اَبِي الْوَلِيْدِ مِنْ قَوْلِ اَبِيْ سَعِيْدٍ اِلٰى حُكْمِكَ.

**١١٩٢:** ابو الوليد' شعبه' سعد بن ابراهيم' ابو امامه بن سهل بن حنيف' ابو سعيد نه روايت كوي' اهل قريظه دَ سعد په حكم راكوز شول (يعني دا چه دَ سعدؓ فيصله مونږ ته منظوره ده) نبي صلے الله عليه وسلّم سعدؓ راوغبنتلو' هغه راغے حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل' خپل سردار دَ پاره اودريږئ. دَ راوي شك دے چه حضور صلے الله عليه وسلّم: قوموا الى سيّدكم يا قوموا الى خيركم: او فرمائيل. سعدؓ نبي صلے الله عليه وسلّم سره كيناستلو. حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل دوي ستا په فيصله راضي شوے دي. سعدؓ اووے' زهٔ دا فيصله كوم. چه دوي كښې دَ جنګ قابل دِ قتل كړے شي' او اولاد دے قيد كړے شي. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل' تا هغه فيصله او كړه' كومه چه دَ الله حُكم دے. ابو عبدالله (بخاريؒ) وائي. ماته خما بعضے ملګرو په واسطه دَ ابو الوليد دَ ابو سعيد قول (دَ: نزلوا على حكمك: په ځائے) الى حكمك: نقل كه.

**باب ٧٠٤: اَلْمُصَافَحَةِ.** وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ عَلَّمَنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى

**باب ٧٠٤: دَ' مصافحه (جوړ تازه) كولو بيان.**

او ابن مسعودؓ اووے' ما ته نبي صلے الله عليه وسلّم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ وَ كَفِّي بَيْنَ كَفَّيْهِ وَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَاِذَا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَامَ اِلَيَّ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ يُهَرْوِلُ حَتّٰى صَافَحَنِيْ وَ هَنَّأَنِيْ.

تشهّد اوښودلو: او څما لاس د حضور صلے الله عليه وسلّم د دواړو لاسونو په مينځ کښې وو. او کعب بن مالک اووې، زۀ جُمات کښې داخل شوم، نو څه ګورم، چه رسُول الله صلے الله عليه وسلّم تشريف فرما دے. طلحه بن عبيد الله په تادئ را پاسيد، ما طرفته راغے، تر دے چه ما سره ئے جوړتازه اوکړل، او ماته ئے مُبارکبادي راکړله.

۱۱۹۳: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسٍ اَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِيْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ.

۱۱۹۳: عمرو بن عاصم، همام، قتاده نه روايت کوي، چه ما د انسؓ نه روايت اوکه، آيا د نبي صلے الله عليه وسلّم صحابهؓ ؤ کښې د مصافحے (جوړ تازه) کولو رواج وو. هغه اووے. او.

۱۱۹۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حَيْوَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو عَقِيْلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ سَمِعَ جَدَّهُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ هِشَامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ اٰخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

۱۱۹۴: يحيى بن سُليمان، ابن وهب، حيوة، ابو عقيل، زهره بن معبد، عبدالرحمٰن بن هشام نه روايت کوي، د هغه بيان دے، مونږ يو ځل حضور صلے الله عليه وسلّم سره وو. او هغه وخت حضور صلے الله عليه وسلّم د حضرت عمرؓ بن خطاب لاس نيولے وو.

## باب ۷۰۵: اَلْاَخْذِ بِالْيَدَيْنِ وَ صَافَحَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ اِبْنَ الْمُبَارَكِ بِيَدَيْهِ.

## باب ۷۰۵: د دواړو لاسونو، د نيولو بيان. او حماد بن زيد، ابن مُبارک سره په دواړه لاسه جوړ تازه اوکړل.

۱۱۹۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفٌ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَخْبَرَةَ اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ

۱۱۹۵: ابو نعيم، سيف، مجاهد، عبدالله بن سنجره ابو معمر، حضرت ابن مسعودؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، ما ته رسُول الله صلے الله عليه وسلّم تشهّد دا شان او

يَقُوْلُ عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَفِّيْ بَيْنَ كَفَّيْهِ التَّشَهُّدَ كَمَا يُعَلِّمُنِيْ السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ وَ هُوَ بَيْنَ ظَهْرَا نَيْنَا فَلَمَّا قُبِضَ قُلْنَا السَّلَامُ يَعْنِيْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ښودلو، څنګه چه به ئے ذ قرآن سُورت ښودلو او څما لاس ئے دَ خپلو دواړو لاسونو مینځ کښې اونیولو (دَ تشهّد هغه کلمات دا وو) التحیات لِلّٰه وَالصَّلٰوت وَالطیبات السَّلام علیک ایها النبی و رحمة اللّٰه و برکاتهٗ السَّلام علینا و علٰی عباد اللّٰه الصّٰلحین اشهد ان لا الٰه الا اللّٰه وَ اشهد انّ محمّدًا عبدهٗ و رسُولهٗ: حضور هغه وخت زمونږ مینځ کښې موجود وو، کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم وفات شولو، نو مونږ خلقو: اَلسَّلَامُ عَلَى النَّبِيِّ: وئیل شروع کړل.

## الحمد للّٰه و الشکر للّٰه پنځویشتمه پاره ختمه شوه

Dini2